# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب الخُمس

**تالیف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی.
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق** ← مولانا حبیب الله زکریا صاحب استاذ جامعه فاروقیه کراچی

**ترجمه** ← مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصیات**

**جلد ۸**

① د احادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ د گرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ د حدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې دا حدیث په کوم کوم ځائې کښې دې.

**خورونکی** فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## (۲۱) ابواب الخمس



## ① باب: فرض الخمس



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ④باب: ماجاء فى بيوت ازواج النبى صلى الله عليه وسلم وما نُسِبَ من البيوت اليهن



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## ⑥ باب: قول الله تعالی: فان لله خمسه وللرسول



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑨ باب: الغنيمة لمن شهد الوقعة



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698　　https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑱باب: من لم يخمس الاسلاب،ومن قتل قتيلاً فله سلبه من غير أن يخمس وحكم الامام فيه.



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|


https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑲باب: ما کان النبی صلی الله علیه وسلم یعطی المؤلفة قلوبهم وغیرهم من الخمس ونحوه



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ۷۲۔ أبواب الجزية والموادعة



### ① باب: الجزيةِ والموادعةِ مع أهل الذّمة والحربِ



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑤ باب: إثم من قتل معاهدا بغير جرم



## ⑥ باب: إخراج اليهود من جزيرة العرب



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|


https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ⑫ باب: فضل الوفاء بالعهد



## ⑬ باب: هل یعفی عن الذمی إذا سحر



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ⑪ باب: کیف یُنْبَذُ إلی أهل العهد



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# فهرس اسماء من ترجم لهم علي حروف الهجاء

| مضمون | صفحه | مضمون | صفحه |
|---|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# (۶۱) ابواب الخمس

**تیرشوي باب سره مناسبت:** کتاب الجهاد چونکه ختم شوي دي او د جهاد په ملحقاتو کښې ابواب الخمس هم راځی، په دې وجې امام بخاری به اوس د خمس احکامات بیانوی.
**د نسخو اختلاف:** د اسماعیلی په نسخه کښې عنوان په "کتاب" سره معنون دې او اکثرو نسخو کښې د باب لفظ دې او په بعضو نسخو کښې عنوان کښې صرف د "فرض الخمس" کلمات دی، نۀ د کتاب کلمات شته او نۀ د باب. بیا په نسخو کښې بسمله هم موجود ده[1] البته راجحه داده چې عنوان په "کتاب" سره معنون وی. ددې یو وجه خو داده چې امام بخاری وړاندې مختلف بابونه قائم کړې دی چې په هغې کښې د ډیرو موضوع او مقصد د خمس د احکاماتو بیان دې، لهذا ددې ټولو بابونو د یو کتاب لاندې راتلل غوره دی.
دویم دا چې مصنف علیه الرحمة عموماً بسمله هم د کتاب د پاره ذکر کوی، نۀ چې د بابونو د پاره او ددې مقصد ددې بابونو اهمیت ښودل دی چې دا بابونه څومره اهم دی چې دا جدا عنوان سره ذکر کول پکار دی.

# ① باب: فرضِ الخمس

**د خمس لغوی او اصطلاحی تعریف:** خمس . بضم الخاء والمیم . معنی ده پنځمه حصه یا پنځم جزء لکه څنګه چې ربع یا ثلث وی. او د شریعت په اصطلاح کښې خمس د غنیمت هغه پنځمې حصې ته وئیلې شی چې هغه د تقسیم نه جدا کولې شي[2] او باقی څلور حصې په مجاهدینو باندې تقسیمولې شی، د خمس د مصارفو تفصیل په آئنده بابونو کښې راځی.
**د ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر فرمائی چې دلته د ترجمة الباب درې مقصدونه کیدې شی:
① امام بخاری د خمس د فرضیت وخت او تاریخ بیانول غواړی چې د خمس فرضیت کله شوې دې؟
② د خمس د فرضیت کیفیت بیانول غواړی چې په اول وختونو کښې د خمس د فرضیت کیفیت څۀ وو؟
③ صرف د خمس فرضیت ثابتول او بیانول غواړی چې د غنیمت په مال کښې د خمس ویستل فرض او ضروری دی[3] هم دا دریمه رائې د علامه عینی هم ده[4]
**د جاهلیت دستور او د خمس ابتداء:** په جاهلیت کښې به د څلورمې حصې دستور وو، یعنی عربو ته به چې په جنګ کښې کوم غنیمت حاصل شو هغه به ئې څلور حصې کولې، درې

---

[1]) فتح الباری: ۱۹۸/۶، وعمدة القاری: ۱۵ /۱۷، والقسطلانی: ۵ /۱۸۹، والابواب والتراجم: ۱ /۲۰۵)_
[2]) فتح الباری: ۶ /۱۹۸، والقاموس الوحید، مادة خمس"، ولسان العرب: ۷۰/۶، مادة خمس"، وفیه لغة اخری، وهی اسکان المیم.)_
[3]) فتح الباری: ۱۹۸/۶)_
[4]) عمدة القاری: ۱۷/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حصې به د غانمينو وې او يوه حصه به جدا کولې شوه، چې د قبيلې د سردار به وه هغې حصې ته به ئې رباعه وئيله، د بنو نمير يو شاعر وائى[1]

انا ابن الرابعين من آل عمرو وفرسان المنابر من جناب

چې زهٔ د آل عمرو د سردارانو او د جناب قبيلې د منبر د شهسوارانو ځوې يم۔

ليکن حضرت عبدالله بن جحش په يو سريه کښې داسې اوکړل چې هغوى ته کوم مال غنيمت حاصل شو هغه ئې پنځه حصې کړې، څلور حصې خو ئې په غانمينو کښې تقسيم کړې او يوه حصه ئې جدا کړه چې د حضوراقدس ﷺ په خدمت کښې ئې پيش کړه، دا ددې ابتداء ده۔[2]

**د خمس فرضيت کله اوشو؟** اوس پاتې شوه دا مسئله چې د خمس فرضيت کله اوشو په دې کښې اختلاف دې، پورته چې د حضرت عبدالله بن جحش رضي الله عنه د سريې تذکره راغلې ده هغه د دويمې هجرئ د رجب ده يعنې د غزوهٔ بدر نه دوه مياشتې وړاندې[3]، په دې سريه کښې چې حضرت عبدالله بن جحش رضي الله عنه د مال غنيمت کومه پينځمه حصه ويستلې وه دا د هغوى خپل اجتهاد وو، دغه وخته پورې د خمس د فرضيت حکم نازل شوې نهٔ وو۔

ابن اسحاق نقل کړې دى:

"وقد ذكر لى بعض آل عبدالله بن جحش ان عبدالله قال لاصحابه: ان لرسول الله صلى الله عليه وسلم مما غنمنا الخمس، وذلك قبل ان يفرض الله تعالى الخمس من المغانم، فعزل له الخمس، وقسم سائر الغنيمة بين اصحابه، قال: فوقع رضا الله بذلك"[4]

ددې خلاصه دا ده چې حضرت عبدالله خپلو ملګرو مجاهدينو ته اووئيل چې زمونږ په غنيمت کښې به د رسول اکرم پنځمه حصه وى چې هغوى جدا هم کړه او باقى غنيمت ئې تقسيم کړو۔ فرمائى چې ددې نه پس د دوى په موافقت کښې د الله تعالى حکم هم راغې چې خمس دې ويستلې شى۔

ليکن دا حکم کله راغئ نو په دې کښې قاضى اسماعيل فرمائى چې د بعضو حضراتو د قول مطابق د خمس د فرضيت حکم د بنوقريظه د غزوې په دوران کښې نازل شوې وو او د بعضو نورو وينا داده چې ددې نه پس دا حکم نازل شوې دې ليکن د قاضى اسماعيل د وينا مطابق زما په خيال کښې ددې واضح حکم د حنين د غنيمتونو په موقع باندې راغلې دې[5]

---

[1] ) :ديوان الحماسة، باب الحماسة: ۱۲۰)_

[2] ) تفسير ابن كثير: ۲۵۵/۱، سورة البقرة/۲۱۷)_

[3] ) فتح البارى: ۱۹۹/۶: ددې غزوې د تفصيلاتو دپاره اوګورئ، كشف البارى، كتاب المغازى: ۴۲-۴۶)_

[4] ) فتح البارى: ۱۹۹/۶، والسيرة النبوية لابن هشام: ۶۰۳/۲، سرية عبدالله بن جحش، وطرح التثريب فى شرح التقريب: ۱۹۸/۶)_

[5] ) فتح البارى: ۱۹۹/۶، وشرح ابن ابطال: ۲۴۸/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د علامه ابن ابطال رائې:** دباب په اولني حديث كښې دا راغلي دي، "وكان النبى صلى الله عليه وسلم اعطانى شارفا من الخمس" حضرت على فرمائى چې نبى عليه السلام په خمس كښې يوه اوښه ما ته راكړه، ددې په تشريح كښې علامه ابن ابطال فرمائى چې ددې حديث د ظاهر نه دا معلوميږي چې د خمس مشروعيت په بدر كښې شوې دې ليكن ......د اهل سير په دې خبره باندې اتفاق دې چې د بدر په موقع باندې خمس مشروع شوې نه وو.

بيا ابن ابطال د قاضى اسماعيل قول ته ترجيح وركړې ده چې د غزوه حنين په موقع باندې د خمس د فرضيت حكم نازل شوې وو او د حضرت على په دې حديث كښې ئې دا تاويل اوكړو چې په دې حديث شريف كښې د كومې اوښې ذكر دې نو دا د هغه خمس په اوښانو كښې وه كوم خمس چې د عبدالله بن جحش په سريه كښې ويستلې شوې وو.[1] هم دا موقف د ابن الملقن هم دې چې هغوى د ابن ابطال په اتباع كښې اختيار كړې دې.[2]

**د حافظ ابن حجر رائې او ابن ابطال ته جواب:** د حافظ ابن حجر رائې دا ده چې د غزوه بدر په موقع باندې د خمس د فرضيت حكم راغلې وو، دا ځكه چې سورة الانفال د بدر په موقع باندې نازل شوې دې او په دې سورت كښې د خمس د فرضيت وضاحت راغلې دې، په دې وجه امام داودى مالكى په دې باندې يقين كړې دې چې د خمس آيت د بدر په ورځ نازل شوې دې، د تاج السبكى هم دا قول دې، فرمائى چې:

"نزلت الانفال فى بدر وغنائمها"[3]

د امام كلبى قول هم دادې چې د خمس فرضيت د بدر په موقع باندې نازل شوې وو.[4]

هرچه د ابن ابطال قول دې نو هغه څۀ عجبيه دې ځكه چې په دې كښې تضاد موندلې كيږى هغه داسې چې په خپله ابن ابطال دا تسليموى چې د عبدالله بن جحش رضي الله عنه په سريه كښې كوم خمس ويستلې شوې وو او دا سريه لكه څنګه چې وړاندې تير شو چې د غزوۀ بدر نه هم وړاندې ده نو بيا به په غزوه بدر كښې د خمس نۀ كيدلو څۀ وجه وى؟[5]

---

[1] ) قال ابن ابطال رحمه الله: اما قول على: اعطانى النبى عليه السلام شارفا من الخمس يومئذ "يعنى: يوم بدر، فظاهره ان الخمس قد كان يوم بدر، ولم يختلف اهل السير ان الخمس لم يكن يوم بدر، ذكر اسماعيل...... (القاضى) قال: فى غزوة بنى قريظة حين حكم سعد بان تقتل المقاتلة، وتسبى الذرية ـ قيل: انه اول يوم جعل فيه الخمس. قال: و احسب ان بعضهم قال: نزل امر الخمس بعد ذلک، ولم يات فى ذلک من الحديث ما فيه بيان شرف، و انما جاء امر الخمس يقيناً فى غنائم حنين، وهى آخر غنيمة حضرها رسول الله.......واذا لم يختلف ان الخمس لم يكن يوم بدر، فيحتاج قول على: اعطانى رسول الله شارفا من الخمس" الى تاويل لايعارض قول اهل السير......."شرح ابن ابطال: ٢٤٨/٥)ـ

[2] ) ارشاد السارى: ١٨٩/٥)ـ

[3] ) فتح البارى: ١٩٩/٦، وارشاد السارى: ١٨٩/٥، وتفسير المنار: ٥/١٠، الانفال: ٤١)ـ

[4] ) التفسير الكبير للرازى: ١٦٦/١٥، والكشاف: ٢٢٢/٢)ـ

[5] ) فتح البارى: ١٩٩/٦، وارشاد السارى: ١٨٩/٥)ـ

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې وجه راجح قول هم هغه دې چې کوم د عامو مفسرينو او د ابن حجر دې.

**د باب احاديث مبارک:** ددې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چې امام بخاري دلته په باب کښې درې احاديث مبارک ذکر کړې دی، چې په هغې کښې اولنې حديث د حضرت علی رضی الله عنه دې.

۲۹۲۵ :(۱) حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ أَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَلِيًّا قَالَ كَانَتْ لِي شَارِفٌ مِنْ نَصِيبِي مِنَ الْمَغْنَمِ يَوْمَ بَدْرٍ، وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَعْطَانِي شَارِفًا مِنَ الْخُمُسِ، فَلَمَّا أَرَدْتُ أَنْ أَبْتَنِيَ بِفَاطِمَةَ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَاعَدْتُ رَجُلاً صَوَّاغًا مِنْ بَنِي قَيْنُقَاعَ، أَنْ يَرْتَحِلَ مَعِيَ فَنَأْتِيَ بِإِذْخِرٍ أَرَدْتُ أَنْ أَبِيعَهُ الصَّوَّاغِينَ، وَأَسْتَعِينَ بِهِ فِي وَلِيمَةِ عُرُسِي، فَبَيْنَا أَنَا أَجْمَعُ لِشَارِفَيَّ مَتَاعًا مِنَ الأَقْتَابِ وَالْغَرَائِرِ وَالْحِبَالِ، وَشَارِفَايَ مُنَاخَانِ إِلَى جَنْبِ حُجْرَةِ رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ، رَجَعْتُ حِينَ جَمَعْتُ مَا جَمَعْتُ، فَإِذَا شَارِفَايَ قَدِ اجْتُبَّ أَسْنِمَتُهُمَا وَبُقِرَتْ خَوَاصِرُهُمَا، وَأُخِذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا، فَلَمْ أَمْلِكْ عَيْنَيَّ حِينَ رَأَيْتُ ذَلِكَ الْمَنْظَرَ مِنْهُمَا، فَقُلْتُ مَنْ فَعَلَ هَذَا فَقَالُوا فَعَلَ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَهُوَ فِي هَذَا الْبَيْتِ فِي شَرْبٍ مِنَ الأَنْصَارِ. فَانْطَلَقْتُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - وَعِنْدَهُ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ، فَعَرَفَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - فِي وَجْهِي الَّذِي لَقِيتُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - «مَا لَكَ» فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ قَطُّ، عَدَا حَمْزَةُ عَلَى نَاقَتَيَّ، فَأَجَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا، وَهَا هُوَ ذَا فِي بَيْتٍ مَعَهُ شَرْبٌ. فَدَعَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِرِدَائِهِ فَارْتَدَى ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِي، وَاتَّبَعْتُهُ أَنَا وَزَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ حَتَّى جَاءَ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ حَمْزَةُ، فَاسْتَأْذَنَ فَأَذِنُوا لَهُمْ فَإِذَا هُمْ شَرْبٌ، فَطَفِقَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَلُومُ حَمْزَةَ فِيمَا فَعَلَ، فَإِذَا حَمْزَةُ قَدْ ثَمِلَ مُحْمَرَّةً عَيْنَاهُ، فَنَظَرَ حَمْزَةُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم، ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى رُكْبَتِهِ، ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى سُرَّتِهِ، ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى وَجْهِهِ ثُمَّ قَالَ حَمْزَةُ هَلْ أَنْتُمْ إِلاَّ عَبِيدٌ لأَبِي فَعَرَفَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ قَدْ ثَمِلَ، فَنَكَصَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى عَقِبَيْهِ الْقَهْقَرَى وَخَرَجْنَا مَعَهُ. [ر: ۱۹۸۳]

## رجال الحديث

① **عبدان:** دا عبد الله بن عثمان ملقب په عبدان دې.

② **عبدالله:** دا مشهور محدث حضرت عبد الله بن مبارک دې.

③ **يونس:** دا يونس بن يزيد الايلي رحمه الله دې، ددې درې وارو حضراتو تذکره د بدء الوحی د الحديث الخامس لاندې راغلې ده (۲)

---

(۱) قوله: أنّ عليا......: الحديث، مر تخريجه في البيوع، باب ماقيل في الصواغ)

(۲) کشف الباری: ۱/۴۶۱، ۴۶۳، د يونس ايلی نور حالاتو دپاره اوګورئ، کشف: ۳/۲۸۲.)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④**الزهرى**:دا ابن شهاب زهرى دې،د دوى تذكره د "بدء الوحى" لاندې تيره شوې ده [1]
⑤**على بن الحسين**:دا د حضرت على نوسې على بن حسين بن على دې چې زين العابدين رحمه الله سره مشهور دې [2]
⑥**حسين بن على**:د نبى كريم ﷺ نوسې مبارك،حضرت حسين بن على رضي الله عنهما دې [3]
⑦**على**:دا د نبى كريم زوم،حضرت على رضي الله عنه بن ابى طالب دې،د دوى پوره او تفصيلى حالات په كتاب العلم،"باب كتابة العلم" كښې تير شوې دى [4]
**د حديث ترجمه**:د حضرت على د پورته حديث تشريح چونكه په مغازى[5] كښې تيره شوې ده،په دې وجه دلته صرف د هغې په ترجمه باندې اكتفاء كولې شى۔
حضرت على رضي الله عنه فرمائى چې ماسره يوه اوښه وه چې د بدر په غنيمت كښې ماته ملاؤ شوې وه،يو دويمه اوښه هم وه چې نبى عليه السلام ما ته په خمس كښې راكړې وه چې كله ما د فاطمه رضي الله عنها بنت رسول الله ﷺ د رخصتئ اراده اوكړه نو د بنو قينقاع يو زرگر سره مې دا خبره اوكړه چې هغه ما سره لاړ شى چې مونږ اذخر گيا راوړو،زما اراده دا وه چې زۀ به دا گيا(واښۀ) په زرگرانو باندې خرڅ كړم او ددې په ذريعې سره به د خپل وادۀ په وليمه كښې څۀ مدد حاصل كړم۔
نو دې دوران كښې چې ما د خپلو دواړو اوښو دپاره پالان،بورئ او بياستې جمع كولې او زما اوښې د يو انصارى په حجره كښې ناستې وې،نو څۀ چې مې جمع كول هغه مې جمع كړل او واپس شوم نو ناگهانه ما اوكتل چې.....زما د اوښانو كوهانونه(قُبونه) پرې كړې شوې دى،د هغوى خيټې څيرلې شوې دى او كولمې، لرى وغيره ئې راويستلې شوې وو. ما چې كله دا منظر اوليدو نو په خپلو سترگو مې قابو اونۀ ساتلې شو ما تپوس اوكړو چې دا كار چا كړې دې؟خلقو اووئيل چې دا حمزه بن عبدالمطلب كړې دې او هغه د انصارو يو شرابى جماعت(ډلې)سره په دې مكان كښې موجوددې۔
ددې حالت په ليدلو سره زۀ د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم،هغوى سره حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه هم وو،نبى ﷺ زما مخ ليدلو سره زما په غم او خفگان باندې پوهه شو او وې فرمائيل:"مالك؟" په تا څۀ شوې دى؟ما ورته اووئيل،يا رسول الله ﷺ !ما د نن ورځ په شان منظر كله هم نۀ دې ليدلې،حمزه نن زما په دوو اوښو باندې ظلم كړې دې د هغوى قبونه ئې پرې كړې دى او د هغوى خيټې ئې څيرلې دى حمزه او د هغۀ ملگرى دلته په يو كور كښې موجود دى(زما په خبرو اوريدو سره)نبى كريم ﷺ خپل څادر طلب كړو،هغه ئې په سر

[1] ) كشف البارى:۱/۳۲۶،الحديث الثالث)_
[2] ) د دوى د حالات كتلو دپاره اوگورئ: كتاب الغسل،باب الغسل بالصاع ونحوه.)_
[3] ) ددوى دحالاتو كتلودپاره اوگورئ: كتاب التهجد،باب تحريض النبى صلى الله عليه وسلم على صلوة الليل)
[4] ) كشف البارى:۴/۱۴۹.)_
[5] ) كشف البارى،كتاب المغازى:۱۵۶، ۱۶۰.)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کړو او روان شو،زهٔ او حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه هم نبی ﷺ پسې وروستو روان شو تردې چې هغه کور ته راغلو چرته چې حمزه رضی الله عنه موجود وو،نبی ﷺ دننه د تلو اجازت طلب کړو نو هغوی ته اجازت ملاؤ شو،وې لیدل چې ټول هلته د شراب نوشئ دپاره جمع شوي وو،نبی ﷺ حضرت حمزه رضی الله عنه لره د هغهٔ په دې کار باندې ملامته کول شروع کړل لیکن هغهٔ په نشه کښې وو،د هغهٔ سترګې سرې کیدلې نو هغهٔ نبی ﷺ اولیدو،بیا ئې نظر لږ نور اوچت کړواو د نبی کونډو طرفته ئې اوکتل،بیا ئې نظر لږ نور هم اوچت کړو او د نبی ﷺ د نافه(نوم)طرفته ئې اوکتلو،بیا ئې نظر نور هم اوچت کړو او د نبی ﷺ مخ مبارک طرفته ئې اوکتل،بیا حمزه رضی الله عنه اووئیل"تاسو خلق خو بس هم زما د پلار غلامان یئ کنه!"نبی ﷺ پوهه شو چې اوس په نشه کښې ډوب دې نو نبی ﷺ د هغه ځائې نه واپس شو او مونږ دواړه هم ورسره بهر راووتلو۔

**ترجمة الباب سره دحدیث مبارک مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت په "وکان النبی صلی الله علیه وسلم اعطانی شارفاًمن الخمس" کښې دې[1] چې د دې نه دخمس مشروعیت واضحه کیږی.

د باب دویم حدیث مبارک د حضرت عائشه دې:

۲۹۲۲ :[2] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ - رضى الله عنها - أَخْبَرَتْهُ أَنَّ فَاطِمَةَ - عَلَيْهَا السَّلاَمُ - ابْنَةَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - سَأَلَتْ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ بَعْدَ وَفَاةِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يَقْسِمَ لَهَا مِيرَاثَهَا، مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْهِ . فَقَالَ لَهَا أَبُو بَكْرٍ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ» . فَغَضِبَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَهَجَرَتْ أَبَا بَكْرٍ، فَلَمْ تَزَلْ مُهَاجِرَتَهُ حَتَّى تُوُفِّيَتْ وَعَاشَتْ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - سِتَّةَ أَشْهُرٍ . قَالَتْ وَكَانَتْ فَاطِمَةُ تَسْأَلُ أَبَا بَكْرٍ نَصِيبَهَا مِمَّا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ خَيْبَرَ وَفَدَكٍ وَصَدَقَتِهِ بِالْمَدِينَةِ، فَأَبَى أَبُو بَكْرٍ عَلَيْهَا ذَلِكَ، وَقَالَ لَسْتُ تَارِكًا شَيْئًا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَعْمَلُ بِهِ إِلاَّ عَمِلْتُ بِهِ، فَإِنِّي أَخْشَى إِنْ تَرَكْتُ شَيْئًا مِنْ أَمْرِهِ أَنْ

[1]) عمدة القاری:۱۵/۱۷،وارشادالساری:۵/۱۹۱)۔

[2]) قوله: ان عائشة......":الحدیث،اخرجه البخاری ایضاً،کتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم،باب مناقب قرابة رسول الله......رقم(۳۷۱۱-۳۷۱۲)والمغازی،باب حدیث بنی النضیر...... رقم (۴۰۳۵-۴۰۳۶)،وباب غزوة خیبر،رقم(۴۲۴۰-۴۲۴۲)والفرائض،باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: لانورث....... (۶۷۲۵-۶۷۲۶)ومسلم،کتاب الجهاد والسیر،باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: لانورث....... (۴۵۴۵-۳۵۴۳)و ابو داؤد،کتاب الخراج.......باب فی صفایا رسول الله.......رقم (۲۸۹۸-۲۹۶۹) والنسائی، قسم الفیئ،رقم(۴۱۴۶).)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أَزِيغَ. فَأَمَّا صَدَقَتُهُ بِالْمَدِينَةِ فَدَفَعَهَا عُمَرُ إِلَى عَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ، فَأَمَّا خَيْبَرُ وَفَدَكُ فَأَمْسَكَهَا عُمَرُ وَقَالَ هُمَا صَدَقَةُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَتَا لِحُقُوقِهِ الَّتِي تَعْرُوهُ وَنَوَائِبِهِ، وَأَمْرُهُمَا إِلَى مَنْ وَلِيَ الأَمْرَ. قَالَ فَهُمَا عَلَى ذَلِكَ إِلَى الْيَوْمِ.[٣٥٠٨، ٣٨١٠، ٣٩٩٨، ٦٣٤٦، ٦٣٤٩]

## رجال الحديث

① **عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبدالعزيز بن عبدالله اویسی عامری رحمه الله دي د دوی تفصیلی حالات په کتاب العلم، "باب الحرص علی الحدیث" کښې تیر شوي دی.[1]

② **ابراهیم بن سعد:** دا ابراهیم بن سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمٰن بن عوف قرشی زهری رحمه الله دي.

③ **صالح:** دا صالح بن کیسان رحمه الله دي ددې دواړو حضراتو تذکره په کتاب الایمان، "باب من کره ان یعود فی الکفر کما یکره....." کښې تیره شوې ده.[2]

④ **ابن شهاب:** د ابن شهاب زهری رحمه الله تذکره د بدء الوحی د "الحدیث الثالث" لاندې تیره شوې ده.[3]

⑤ **عروة:** دا عروة بن الزبیر بن العوام قرشی رضی الله عنه دې.

⑥ **عائشه:** دا حضرت عائشه صدیقه بنت ابوبکرصدیق رضی الله عنهما ده د دواړو ترجمه د بدء الوحی د "الحدیث الثانی" لاندې تیره شوې ده.[4]

**خبرداري:** د حضرت عائشې رضی الله عنها دا حدیث چې په دې کښې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او د حضرت فاطمه رضی الله عنها مینځ کښې دفدک او دخیبر د زمکو د وراثت په باره کښې تذکره راغلې ده په کتاب المغازی کښې هم راغلې دې، په دې باندې هلته تفصیلی بحث راغلې دې.[5]

**ترجمة الباب سره د حدیث مبارک مطابقت:** دلته دا اعتراض شوې دې چې په حدیث شریف او ترجمه کښې څۀ مطابقت نشته ځکه چې په دې کښې د خمس تذکره نشته لیکن ددې جواب دادې چې حضرت فاطمه رضی الله عنها چې د میراث کومه مطالبه اوکړه په دې کښې خیبر هم شامل وو، امام زهری رحمه الله ذکر کړې دی چې خیبر د صلح او عنوه په دواړو طریقو سره فتح شوې وو ځکه چې ددې په بعضو علاقو کښې قتال اوشو او بعضې علاقې د قتال نه بغیر په صلح سره حاصلې شوې، نو کاره خبره ده چې کومه حصه په قتال سره حاصله شوه په هغې کښې به

---

[1] کشف الباری: ٤/٤٨_
[2] کشف الباری: ٢/١٢٠_١٢٢_
[3] کشف الباری: ١/٣٢٦_
[4] کشف الباری: ١/٢٩١، د عروة دپاره نور اوګورئ، کشف الباری: ٢/٤٣٦_
[5] کشف الباری، کتاب المغازی ٤٥٤_٤٦٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خمس هم جارى شوې وى،دغه شان مطابقت اوموندلې شو[1]
ددې نه علاوه چې ددې حديث كوم طريق امام بخارى رحمه الله په مغازى كښې ذكر كړې دې،په هغې كښې د خمس د الفاظو وضاحت موجوددې، "ارسلت (فاطمة) الى ابى بكر تسأله ميراثها من رسول الله صلى الله عليه وسلم، مما أفاء الله عليه بالمدينة وفدك، ومابقى من خمس خيبر"[2] په دې وجه امام بخارى ددې روايت طرفته اشاره اوكړه چې معامله چونكه مشهوره ده،په دې وجه دلته په اختصار باندې اكتفاء اوكړې شوه[3]

**د يو تفسيرى قول اضافه:** د بخارى شريف په ډيرو نسخو كښې دلته د يو تفسيرى قول اضافه هم ده،هغه داسې چې: قال ابوعبدالله: اعتراك: افتعلت، من عورتُه، فاصبته، ومنه يعروه واعترانى.
د ابوعبدالله نه مراد امام بخارى په خپله دې او ددې تفسيرى جملې غرض په دې حديث كښې وارد شده د يو لفظ "تعروه" وضاحت،ددې مشتقات او معنى بيانول دى.
په دې وجه فرمائى چې تعروه په اصل كښې د عروتُ يعروه نه دې،نصر ددې باب دې،ددې معنى ده حاصلول او پېتول،ددې نه تعروه دې او اعترانى دې دغه شان د قرآن كريم آيت شريفه (ان تقول الا اعتراك بعض آلهتنا بسوء)[4] كښې چې كوم لفظ اعتراك دې.ددې اصل هم دا لفظ دې او دا د امام بخارى عادت دې چې هغه د حديثو د غريب الفاظو تفسير د قرآن كريم په غريب الفاظو سره كوى[5]
ددې نه علاوه په دې باندې هم ځان پوهه كړئ چې دا تفسير د ابوعبيده د "المجاز" نه نقل كړې شوې دې ليكن بهرحال د بخارى په نسخو كښې د اعتراك وزن افتعلت ښودلې شوې دې او په "المجاز" كښې وزن افتعلك ذكر دې او د مذكوره لفظ حقيقى وزن هم دادې[6]
دريم حديث د حضرت مالک بن اوس بن حدثان دې.
ددې حديث نه مخكښې په بعضو نسخو كښې د "قصة فدك" په عنوان سره يو عبارت هم شته[7] ليكن ددې عنوان دلته حقيقةً څۀ ضرورت نشته ځكه چې په تير شوې حديث كښې

[1] ) عمدة القارى:١٩/١٥،وشرح ابن ابطال:٢٥٢/٥)_
[2] ) صحيح بخارى،كتاب المغازى،باب غزوة خيبر،رقم(٤٢٤٠-٤٢٤١))_
[3] ) عمدة القارى:١٩/١٥)_
[4] ) هود/٥٤)_
[5] ) فتح البارى:٢٠٤/٦،وارشادالسارى:١٩٣/٥،قال العينى فى العمدة(٢١/١٥): وقال الجوهرى:عرانى هذا الامر،واعترانى:اذا غشيک.وعروت الرجل اعروه عروا:اذا ألممت به،و أتيته طالبا،فهو معرو.وفلان تعروه الاضياف ويعتريه أى:تغشاه".والصحاح للجوهرى: ٦٨٤،مادة عرا،عرى")_
[6] ) فتح البارى:٢٠٤/٦،وارشاد السارى:١٩٣/٥)_
[7] ) اوګورئ،عمدة القارى:٢١/١٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

صرف د فدک واقعه مذکور ده، علامه قسطلانی فرمائی، "و زاد أبو ذر فی روایة الحموی هنا ترجمة، فقال: "قصة فدك"، وهی زیادة مستغنی عنها بما سبق فی الحدیث المتقدم" [1]

٢٩٢٧: [2] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْفَرْوِيُّ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، وَكَانَ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرٍ ذَكَرَ لِي ذِكْرًا مِنْ حَدِيثِهِ ذَلِكَ، فَانْطَلَقْتُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ، فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ الْحَدِيثِ فَقَالَ مَالِكٌ بَيْنَا أَنَا جَالِسٌ فِي أَهْلِي حِينَ مَتَعَ النَّهَارُ، إِذَا رَسُولُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ يَأْتِينِي فَقَالَ أَجِبْ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى عُمَرَ، فَإِذَا هُوَ جَالِسٌ عَلَى رِمَالِ سَرِيرٍ، لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ فِرَاشٌ مُتَّكِئٌ عَلَى وِسَادَةٍ مِنْ أَدَمٍ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ جَلَسْتُ فَقَالَ يَا مَالِ، إِنَّهُ قَدِمَ عَلَيْنَا مِنْ قَوْمِكَ أَهْلُ أَبْيَاتٍ، وَقَدْ أَمَرْتُ فِيهِمْ بِرَضْخٍ فَاقْبِضْهُ فَاقْسِمْهُ بَيْنَهُمْ. فَقُلْتُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، لَوْ أَمَرْتَ بِهِ غَيْرِي. قَالَ اقْبِضْهُ أَيُّهَا الْمَرْءُ. فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ عِنْدَهُ أَتَاهُ حَاجِبُهُ يَرْفَا فَقَالَ هَلْ لَكَ فِي عُثْمَانَ وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرِ وَسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ يَسْتَأْذِنُونَ قَالَ نَعَمْ. فَأَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوا فَسَلَّمُوا وَجَلَسُوا، ثُمَّ جَلَسَ يَرْفَا يَسِيرًا ثُمَّ قَالَ هَلْ لَكَ فِي عَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ قَالَ نَعَمْ. فَأَذِنَ لَهُمَا، فَدَخَلَا فَسَلَّمَا فَجَلَسَا، فَقَالَ عَبَّاسٌ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، اقْضِ بَيْنِي وَبَيْنَ هَذَا. وَهُمَا يَخْتَصِمَانِ فِيمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ بَنِي النَّضِيرِ. فَقَالَ الرَّهْطُ عُثْمَانُ وَأَصْحَابُهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، اقْضِ بَيْنَهُمَا وَأَرِحْ أَحَدَهُمَا مِنَ الآخَرِ. قَالَ عُمَرُ تَيْدَكُمْ، أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالأَرْضُ، هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ». يُرِيدُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَفْسَهُ. قَالَ الرَّهْطُ قَدْ قَالَ ذَلِكَ. فَأَقْبَلَ عُمَرُ عَلَى عَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ فَقَالَ أَنْشُدُكُمَا اللَّهَ، أَتَعْلَمَانِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ قَالَ ذَلِكَ قَالَا قَدْ قَالَ ذَلِكَ. قَالَ عُمَرُ فَإِنِّي أُحَدِّثُكُمْ عَنْ هَذَا الأَمْرِ، إِنَّ اللَّهَ قَدْ خَصَّ رَسُولَهُ - صلى الله عليه وسلم فِي هَذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ لَمْ يُعْطِهِ أَحَدًا غَيْرَهُ - ثُمَّ قَرَأَ (وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ) إِلَى قَوْلِهِ (قَدِيرٌ) - فَكَانَتْ هَذِهِ خَالِصَةً لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. وَاللَّهِ مَا احْتَازَهَا دُونَكُمْ، وَلاَ اسْتَأْثَرَ بِهَا عَلَيْكُمْ قَدْ أَعْطَاكُمُوهُ، وَبَثَّهَا فِيكُمْ حَتَّى بَقِيَ مِنْهَا هَذَا الْمَالُ، فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هَذَا الْمَالِ، ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ مَالِ اللَّهِ، فَعَمِلَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - بِذَلِكَ حَيَاتَهُ، أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ هَلْ تَعْلَمُونَ ذَلِكَ قَالُوا نَعَمْ. ثُمَّ قَالَ لِعَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ أَنْشُدُكُمَا بِاللَّهِ هَلْ

---

[1] ارشادالساری: (۱۹۳/۵)۔

[2] قوله: عن مالک بن اوس......" الحدیث، مر تخریجه فی کتاب الجهاد، باب المجن، ومن........)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تَعلَمَانِ ذٰلِكَ قَالَ عُمَرُ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ نَبِيَّهُ صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَنَا وَلِيُّ رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم. فَقَبَضَهَا أَبُو بَكْرٍ، فَعَمِلَ فِيهَا بِمَا عَمِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم -، وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّهُ فِيهَا لَصَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ، ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ أَبَا بَكْرٍ، فَكُنْتُ أَنَا وَلِيَّ أَبِي بَكْرٍ، فَقَبَضْتُهَا سَنَتَيْنِ مِنْ إِمَارَتِي، أَعْمَلُ فِيهَا بِمَا عَمِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم وَمَا عَمِلَ فِيهَا أَبُو بَكْرٍ، وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنِّي فِيهَا لَصَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ، ثُمَّ جِئْتُمَانِي تُكَلِّمَانِي وَكَلِمَتُكُمَا وَاحِدَةٌ، وَأَمْرُكُمَا وَاحِدٌ، جِئْتَنِي يَا عَبَّاسُ تَسْأَلُنِي نَصِيبَكَ مِنِ ابْنِ أَخِيكَ، وَجَاءَنِي هٰذَا يُرِيدُ عَلِيًّا يُرِيدُ نَصِيبَ امْرَأَتِهِ مِنْ أَبِيهَا، فَقُلْتُ لَكُمَا إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ». فَلَمَّا بَدَا لِي أَنْ أَدْفَعَهُ إِلَيْكُمَا قُلْتُ إِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهَا إِلَيْكُمَا عَلَى أَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللّٰهِ وَمِيثَاقَهُ لَتَعْمَلَانِ فِيهَا بِمَا عَمِلَ فِيهَا رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم، وَبِمَا عَمِلَ فِيهَا أَبُو بَكْرٍ، وَبِمَا عَمِلْتُ فِيهَا مُنْذُ وَلِيتُهَا، فَقُلْتُمَا ادْفَعْهَا إِلَيْنَا. فَبِذٰلِكَ دَفَعْتُهَا إِلَيْكُمَا، فَأَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ، هَلْ دَفَعْتُهَا إِلَيْهِمَا بِذٰلِكَ قَالَ الرَّهْطُ نَعَمْ. ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى عَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ فَقَالَ أَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا إِلَيْكُمَا بِذٰلِكَ قَالَا نَعَمْ. قَالَ فَتَلْتَمِسَانِ مِنِّي قَضَاءً غَيْرَ ذٰلِكَ فَوَاللّٰهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ، لَا أَقْضِي فِيهَا قَضَاءً غَيْرَ ذٰلِكَ، فَإِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهَا فَادْفَعَاهَا إِلَيَّ، فَإِنِّي أَكْفِيكُمَاهَا. [ر: ۲۷۴۸]

## رجال الحدیث

① **اسحاق بن محمد الفروی**: دا اسحاق بن محمد الفروی رحمه الله. د فاء په فتحې، د راء او د واؤ په سکون سره دې[1]

**خبردارې (یو اهم وضاحت)**: د فربری او د قابسی په نسخو کښې دلته قلب واقع شوې دې نو په دې نسخو کښې محمد بن اسحاق الفروی رحمه الله مذکور دې چې وهم دې، صحیح نوم اسحاق بن محمد رحمه الله دې[2]

ددې نه علاوه اسحاق بن محمد رحمه الله د امام بخاری رحمه الله داسې شیخ دې چې د هغوی نه دوی په واسطې سره او بغیر د واسطې نه دواړو طریقو سره روایت کوی، کتاب الصلح[3] کښې یوځائې کښې امام بخاری رحمه الله د اسحاق بن محمد نه د محمد بن عبدالله په واسطې سره روایت نقل کړې دې[4]

② **مالک بن انس**: دا امام دارالهجرة مالک بن انس دې د دوی تذکره په "بدء الوحی" کښې

---

[1]) د دوی د حالاتو کتلو دپاره اوګورئ، کتاب الصلح، باب قول الامام لاصحابه، اذهبوا بنا نصلح)_

[2]) عمدة القاری: ۲۳/۱۵، وفتح البای: ۲۰۴/۶، وارشادالساری: ۱۹۳/۵)_

[3]) کتاب الصلح، باب قول الامام لاصحابه: اذهبوا بنا نصلح، رقم (۲۶۹۳))_

[4]) فتح الباری: ۲۰۴/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تیره شوي ده[1]

③ **ابن شهاب**: د ابن شهاب زهری رحمه الله اجمالی تذکره په "بدء الوحی" کښې تیره شوې ده[2]

④ **مالک بن اوس بن الحدثان**: دا مشهور تابعی حضرت ابو سعید مالک بن اوس بن حدثان بن عوف نصری دې[3]

**قوله: وكان محمد بن جبير ذكر لي ذكرا من حديثه ذلك، فانطلقت معه حتى أدخل على مالك بن أوس، فسألته عن ذلك الحديث:** او محمد بن زبیر د هغوی د حدیث څهٔ تذکره ماته کړې وه نو زهٔ هم هغوی سره د مالک بن اوس خدمت ته لاړم او هلته حاضر شوم، بیا مې د هغوی نه د حدیث متعلق پوښتنه اوکړه.

محمد بن جبیر نه مراد مشهور تابعی محمد بن جبیر بن مطعم رحمه الله دې[4]

پورته ذکر شوې عبارت د امام زهری دې واقعه داده چې د باب لاندې ذکر کړې شوې حدیث هغوی د محمد بن جبیر نه هم اوریدلې وو لیکن خواهش دا وو چې د واقعې والا نه ئې هم واؤری، ددې دپاره ئې محمد بن جبیر ځان سره کړو او د مالک بن اوس په خدمت کښې حاضر شو، مقصد واضح دې چې امام زهری خپل سند اوچتول غوښتل، حافظ فرمائی:

"وفي صنيع ابن شهاب ذلك أصل في طلب علو الاسناد، لأنه لم يقتنع بالحديث عنه، حتى دخل عليه، ليشافهه به، وفيه حرص ابن شهاب على طلب الحديث وتحصيله"[5]

دلته د ذلك مشار الیه محذوف ده ای الآتی ذکره[6] یعنی آئنده کرخو کښې چې د کوم حدیث ذکر راځی هغه ما د محمد بن جبیر نه اوریدلې وو.

د أدخل په اعراب کښې دوه احتمالات دی:

① مرفوع دې په دې وجه چې حتی عاطفه ده. مطلب دا دې چې: انطلقت فدخلت،،

② منصوب دې، چې حتی د "إلی أن" په معنی کښې وی. ابن مالک د نصب وجه راجحه گرځولې ده[7]

حافظ فرمائی چې د ماضی په ځائې د مضارع صیغه استعمالول د مبالغې په طور دی چې دې وخت کښې ټول صورت حال په پوره توګه ما ته حاضر دې[8]

---

[1] ) کشف الباری: ١/ ٢٩٠، الحدیث الثانی: ٢/ ٨٠)_

[2] ) کشف الباری: ١/ ٣٢٦، الحدیث الثالث

[3] ) د دوی د حالاتو کتلو دپاره اوګورئ، کتاب البیوع، باب مایذکر فی بیع الطعام والحکرة)_

[4] ) د دوی د حالاتو کتلو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان، باب الجهر فی المغرب)_

[5] ) فتح الباری: ٦/ ٢٠٤)_

[6] ) پورته حواله، و ارشاد الساری: ٥/ ١٩٣)_

[7] ) پورته حواله جات، وعمدة القاری: ١٥/ ٢٣)_

[8] ) فتح الباری: ٦/ ٢٠٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قال مالك:** مالک بن اوس اوفرمائيل:
حضرت مالک بن اوس په مشرانو تابعينو کښې دې.د حضرت عمر رضي الله عنه نه کثرت سره روايت کوی،د هغوی په صحبت کښې اختلاف دې.بعضې علماؤ د دوی شمار په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې کړې دې ليکن د راجح قول مطابق دوی ته د نبی ﷺ صحبت حاصل شوې نۀ دې البته د دوی والد صاحب حضرت اوس رضي الله عنه بالاتفاق صحابی دې.
د حضرت مالک بن اوس په بخاری شريف کښې دوه روايتونه دی،يو خو د باب حديث دې،دويم روايت په بيوع[1] کښې تير شوې دې[2]

**قوله: بينا أنا جالس في أهلي حين متع النهار:** دې دوران کښې چې زۀ خپل اهل وعيال سره ناست ووم او ورځ شوې وه.

**متع.** بالميم والتاء المثناة .....والعين المهملة المفتوحات[3] معنی ده،"ارتفع" يعنی اوچته شوه،

صاحب العين فرمائيلې دی چې متع النهار هغه وخت وئيلې کيږی چې کله ورځ اوخيژی او د زوال نه مخکښې وخت وی[4]

دمسلم او ابوداؤد[5] په روايت کښې د "حين تعالى النهار" الفاظ راغلې دی[6]معنی واضحه ده.

**قوله: اذا رسول عمر بن الخطاب يأتيني،فقال: أجب أمير المؤمنين:** اچانک ما ته د عمر بن خطاب رضي الله عنه قاصد راغئ او وې وئيل چې امير المؤمنين ته حاضر شه.
حافظ فرمائی چې ددې قاصد نوم ماته معلوم نۀ شو،ليکن دا احتمال دې چې مراد يرفا دربان وی،چې د هغۀ ذکر وړاندې راروان دې[7]،حافظ خو دلته احتمالاً يرفا قاصد ګرځولې دې ليکن په هدی الساری کښې ئې په خپله ددې نفی هم کړې ده،اوګورئ،هدى السارى: ۴۳۹،فرض الخمس)_

**قوله: فانطلقت معه حتى أدخل على عمر،فاذا هو جالس على رمال سرير،ليس بينه و بينه فراش،متكئ على وسادة من أدم:** نو زۀ هغې قاصد سره لاړم او

---

[1]) صحيح بخاری،کتاب البيوع،باب مايذکر فی بيع الطعام والحکرة،رقم(٢١٣٤))_
[2]) فتح البارى:٢٠٤/٦،وعمدة القارى:٢٣/١٥، والانساب للسمعانى:٤٩٤/٥،النصرى،باب النون والصاد(المهملة))_
[3]) عمدة القارى:٢٣/١٥)_
[4]) پورته حواله،و ارشادالسارى:١٩٣/٥،و کتاب العين،٨٣/٢،باب العين والتاء والميم معهما)_
[5]) صحيح مسلم،کتاب الجهاد والسير،باب حکم الفئ،رقم(٤٥٧٧)،وسنن ابى داؤد،کتاب الخراج.....باب فی صفايا رسول الله صلى الله عليه وسلم من الاموال،رقم(٢٩٦٣))_
[6]) عمدة القارى:٢٣/١٥،وفتح البارى:٢٠٤/٦_٢٠٥)_
[7]) فتح البارى:٢٠٥/٦)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عمر رضي الله عنه ته حاضر شوم،نو اومې ليدل چې د کهجورو د ښاخونو نه جوړ شوې کټ باندې هغوی ناست وو،د هغوی او د کټ مينځ کښې څۀ بستره نۀ وه،د څرمن نه جوړه شوې تکيې ته ئې ډډه لګولې وه.

فانطلقت معه...... کښې هم هغه خبره ده چې کومه اوس وړاندې تيره شوه،د رفع او نصب په حوالې سره او د مبالغې په حوالې سره چې څنګه زهری ته د خپل ملاقات هره جزئيه ياده ده،دغه شان مالک بن اوس ته هم د خپل او د حضرت عمر رضي الله عنه مينځ کښې چې کوم ملاقات شوې وو،د هغې يو يو جزء ياد او مستحضر دې.

رُمال د راء په ضمې او کسرې سره،جوړ کړې شوې څيز،د رمال سرير معنی ده هغه کټ چې د کهجورې د ښاخونو نه جوړ شوې وی [1]

د ليس بينه وبينه فراش دا وضاحت ئې دې دپاره اوکړو چې عموماً او عادة په کټ باندې بستره وی [2] ليکن د وخت خليفه او د نيمې دنيا بادشاه چې په کوم کټ باندې ناست وو نو هغه د بسترې نه هم محروم وو. الله اکبر

**قوله:** فسلمت عليه،ثم جلست،فقال:يا مالُ: ما ورته سلام اوکړو،بيا کيناستم. حضرت اوفرمائيل اې مالک!

مال په اصل کښې مالک وو،د ترخيم په وجه باندې مال شوې دې. لام لره کسرې سره لوستل هم جائز دی ځکه چې اصل هم دا ده او په لام باندې ضمه وئيل هم جائز دی ځکه چې د ترخيم نه پس دا مستقل اسم جوړ شوې دې،په دې وجې د منادی مفرد اعراب دې ته ورکړې شو [3]

**قوله:** إنه قدم علينا من قوم أهل أبيات: ستاسو د قوم څو کورونو والا مونږ ته راغلې دی.

د قوم نه مراد بنونصر بن معاويه بن بکر بن هوازن دې،د حضرت مالک بن اوس تعلق هم ددې قبيلې سره وو [4]

د مسلم شريف د جويريه عن مالک په طريقه کښې د "دف أهل أبيات" [5] الفاظ دی،ددې مطلب دادې چې هغوی په لړه لړه راغلې دی،غالباً ددې خلقو وطن اصلی د قحط ښکار شوې وو،په دې وجې دوی د معاش په تلاش کښې مدينې منورې ته راغلې وو [6]

---

[1] فتح الباری،٢٠٥/٦،وعمدة القاری:٢٣/١٥)_

[2] پورته حواله جات)_

[3] عمدة القاری،٢٤/١٥،وفتح الباری:٢٠٥/٦،والقسطلانی:١٩٣/٥،والکرمانی:٧٧/١٣)_

[4] فتح الباری:٢٠٥/٦،وارشادالساری:١٩٣/٥)_

[5] صحيح مسلم،کتاب الجهاد والسير،باب حکم الفیء،رقم(٤٥٧٧))_

[6] فتح الباری:٢٠٥/٦،وارشادالساری:١٩٣/٥،وعمدة القاری:٢٤/١٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله**: وقد أمرت فيهم برضخ،فاقبضه،فاقسمه بينهم:يقيناً ما د هغوى دپاره د څۀ امداد حکم جارى کړې دې،د هغې قبضه تاسو واخلئ،بيا ئې هغوى کښې تقسيم کړئ.

رضخ. بفتح الراء،وسكون المعجمة،بعدها خاء معجمة. ورکړې او امداد ته وئيلې شى،چې ډير زيات وى،مقرر شوې نۀ وى.[1]

**قوله**: فقلت:يا أميرالمؤمنين،لو أمرت به غيرى؟:نو ما اووئيل،اميرالمؤمنين!زما نه علاوه بل چاته دا ذمه دارى ورکړئ(نو ډيره غوره به وى)

چونکه د امانت د معاملې برداشت کول وو او ذمه دارى لويه وه،په دې وجه مالک بن اوس د عذر پيش کولو کوشش اوکړو.[2]

**قال:اقبضه أيها المرء**: حضرت عمر(حکماً)اوفرمائيل اې سړيه!دا په خپله قبضه کښې واخله.

دويم ځل باندې حضرت عمر حکماً حضرت مالک بن اوس ته اوفرمائيل چې دا کار به هم تاسو کوئ،نو هغوى د حضرت عمر حکم منلو سره مذکوره امداد په خپله قبضه کښې واخستلو او د خپل قوم په کسانو کښې ئې تقسيم کړو،چونکه قرينه په دې باندې موجود وه په دې وجه هغوى دا تفصيل حذف کړې دې.[3]

**فبينا أنا جالس عنده أتاه حاجبه يرفا**: دې دوران کښې چې زۀ هرکله هغوى سره ناست ووم چې د هغوى دربان يرفا دننه راغئ.

**يرفا**: دا نوم همزه سره او د همزه نه بغير دواړو طريقو سره لوستلې شوې دې ليکن د همزې نه بغير ډير مشهور دې.[4]

دا د حضرت عمر رضي الله عنه مولى او دربان وو دوى د نبي صلى الله عليه وسلم زمانه موندلې ده بلکه د جاهليت زمانه ئې هم ليدلې ده،ليکن صحبت ئې ثابت نۀ دې.[5]

د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کښې دوى د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه سره د حج سعادت هم حاصل کړو.[6]

حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته په څۀ طريقې سره دا خبره معلومه شوه چې حضرت يزيد بن ابى سفيان رضي الله عنه په يو وخت کښې مختلف او قسما قسم خوراکونه کوى چې دا کار د زهد او تقوىٰ خلاف دې،ددې وجې نه هغوى يرفا ته اووئيل چې کله د يزيد رضي الله عنه د شپې خوراک راشى نو ماته اووايه. د حکم مطابق د خوراک په رارسيدو سره يرفا اميرالمؤمنين ته اطلاع

---

[1] ) پورته حواله جات)_

[2] ) پورته حواله جات)_

[3] ) پورته حواله جات)_

[4] ) عمدة القارى:١٥/٢٤)_

[5] ) پورته حواله،وفتح البارى:٦/٢٠٥،والاصابة:٣/٦٧٢، وشرح القسطلانى:٥/١٩٤)_

[6] ) فتح البارى:٦/٢٠٥،والاصابة:٣/٦٧٢)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ورکړه نو هغوی راغلل او اجازت ئې طلب کړو، په اجازت ملاویدو باندې دننه راغلل، اول ورته د غوښې ثرید پیش کړې شو، چې هغې کښې ورسره حضرت عمر رضی الله عنه هم خوراک اوکړو...... بیا ورته کړې شوې غوښه پیش کړې شوه نو حضرت یزید خپل لاس وراوږد کړو لیکن حضرت عمر رضی الله عنه اودریدو او وې فرمائیل، ائې یزیده! دا څۀ دی؟ د خوراک نه پس بیا خوراک؟ قسم دې د هغې ذات چې د هغۀ د قدرت په قبضه کښې د عمر ساه ده! که تا د هغۀ د طریقې مخالفت اوکړو نو تۀ به هم د هغۀ د طریقې نه لرې کړې شې.[1]

د یرفا ذکر د مصنف ابن ابی شیبه رحمه الله د کتاب الصلوة په یو حدیث کښې هم راغلې دې لکه ابن ابی شیبه د "یحیی بن سعید عن عبیدالله بن عبدالله عن أبیه" د طریق نه نقل کړې دی، هغوی فرمائی، "جئت إلی عمر، وهو یصلی، فجعلنی عن یمینه، فجاء یرفا، فجعلنا خلفه".[2]

د سعید بن منصور رحمه الله د یو حدیث نه معلومیږی چې حضرت یرفا د حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه په خلافت کښې هم ژوندې وو لکه ابو اسحاق[3] د یرفا نه روایت کوی،

"قال: قال لی عمر: إنی أنزلت نفسی من مال الله بمنزلة ولی الیتیم، إن احتجتُ أخذتُ منه، وإن أیسرتُ رددته، و إن استغنیت استعففت".[4]

**قوله: فقال: هل لك في عثمان و عبد الرحمن بن عوف و الزبير و سعد بن وقاص يستاذنون؟ قال: نعم. فاذن لهم، فدخلوا، فسلموا وجلسوا:** یرفا اووئیل چې (امیرالمؤمنین) آیا تاسو ته د عثمان، عبدالرحمن بن عوف، زبیر بن عوام او سعد بن ابی وقاص رضی الله عنهم په ملاقات کښې څۀ رغبت شته څکه چې دا حضرات د ملاویدو اجازت غواړی؟ هغوی اوفرمائیل بالکل. نو یرفا هغوی ته اطلاع ورکړه، دا حضرات دننه راغلل، سلام ئې اوکړو او کیناستل.

د حضرت عمر رضی الله عنه دربار ته راتلونکی حضرات ټول څومره وو، په دې باره کښې حافظ فرمائی چې ددې حدیث په ټولو طرقو کښې ددې څلورو نه علاوه د بل چا نوم ما لیدلې نۀ دې، سوا د نسائی شریف[5] او د عمر بن شبه[6] په یو روایت کښې، چې د عمرو بن دینار عن

---

[1]) کتاب الزهد لابن المبارک، الجزء الرابع، باب ماجاء فی الفقر: ۲۰۳-۲۰۴، رقم(۵۷۸))_

[2]) المصنف لابن ابی شیبة: ۵۶۸/۳، کتاب الصلوة، باب ماقالوا: اذا کانوا ثلاثة......رقم(۴۹۸۲))_

[3]) د حضرت ابواسحاق عمرو بن عبید الله سبیعی رحمه الله ولادت د عثمانی دور په آخری کلونو کښې شوې دې. کشف الباری: ۲۷۱/۲)_

[4]) السنن الکبری للبیهقی: ۳۵۴/۶، کتاب قسم الفئ......رقم(۱۲۷۹۰) ومعرفة السنن والآثار: ۱۶۴/۵، کتاب قسم الفئ......باب رزق الوالی، رقم(۴۰۱۲) دې اثر لره ابن ابی شیبة هم نقل کړې دې لیکن په هغې کښې د یرفا په ځائې حارثه بن مضرب عبدی دا اثر د حضرت عمر رضی الله عنه نه نقل کړې دې. انظر المصنف: ۴۹۱/۱۷، کتاب السیر، باب ما قالوا فی عدل الولی......رقم(۳۳۵۸۵) رحمه الله تعالی رحمة واسعة)_

[5]) سنن النسائی الکبری، کتاب الفرائض، باب ذکر مواریث الانبیاء، رقم(۶۳۰۹))_

[6]) اخبار المدینة: ۱۲۸/۱، رقم(۵۶۵)، خصومة علی و العباس رضی الله عنهما إلی عمر......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابن شهاب د طریق نه دي. په دي کښې د طلحه بن عبیدالله رضي الله عنه د نوم اضافه هم موندلې کیږي. ددې نه علاوه امامی عن ابن شهاب په طریق کښې هم د طلحه بن عبیدالله رضي الله عنه ذکر موندلې شوې دې. دغه شان دا روایت ابوداؤد د ابوالبختری د طریق نه نقل کړې دې[1]
په دې کښې هم د طلحه ذکر موجوددې البته په دې کښې دحضرت عثمان بن عفان ذکر نشته[2]

**قوله: ثم جلس یرفا یسیرا، ثم قال: هل لك فی علی وعباس؟ قال: نعم. فأذن لهما، فدخلا، فسلما، فجلسا:** بیا یرفا لږ ساعت کیناستو، بیا ئې ووئیل آیا تاسو د حضرت علی رضي الله عنه او حضرت عباس رضي الله عنه سره ملاویدل خوښوئ؟ امیرالمؤمنین اوفرمائیل آوجی! نو یرفا دواړو ته دننه د راتلو اووئیل نو دا دواړه حضرات دننه راغلل، سلام ئې اوکړو او کیناستل.

د شعیب بن ابی حمزه د مغازی په روایت کښې "هل لك فی علی وعباس" نه پس د "یستاذنان"[3]
اضافه هم ده چې "هغه دواړه دننه د راتلو اجازت غواړی".

**قوله: فقال عباس: یا امیرالمؤمنین، اقض بینی وبین هذا..:** حضرت عباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه اوفرمائیل، امیرالمؤمنین: زما او د دوی مینځ کښې فیصله اوکړئ.
دلته د باب روایت داسې دې چې "اقض بینی وبین هذا" لیکن د شعیب بن ابی حمزه د روایت الفاظ داسې دی چې "فاستب علی وعباس"[4] او د عقیل عن ابن شهاب په طریق کښې د "اقض بینی وبین هذا الظالم، استبا"[5] الفاظ دی او د جویریه په روایت کښې "و بین هذا الکاذب، الآثم، الغادر، الخائن"[6] الفاظ دی.
ددې ټولو طرقو حاصل دادې چې د حضرت عمر رضي الله عنه او نورو مشرانو په موجودګئ کښې حضرت عباس رضي الله عنه حضرت علی رضي الله عنه ته بد رد اووئیل او د هغوی په حق کښې ئې د کاذب، آثم او غادر په شان سخت کلمات استعمال کړل لیکن حضرت علی رضي الله عنه چې حضرت عباس رضي الله عنه ته هرڅۀ وئیلې وی نو په روایاتو کښې د هغې څۀ وضاحت نشته. د حافظ د قول مطابق صرف د عقیل یو روایت دې، چې په هغې کښې د "استبا" کلمات دی چې دې دواړو یو بل ته بد رد اووئیل، لکه حافظ وائی:

---

[1] سنن أبی داود، کتاب الخراج......باب فی صفایا رسول الله صلی الله علیه وسلم ........رقم(۲۹۷۵)_
[2] فتح الباری: ۲۰۵/۶، وشرح القسطلانی: ۱۹۴/۵)_
[3] صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب حدیث بنی النضیر، ومخرج رسول الله......رقم(۴۰۳۳))_
[4] پورته حواله)_
[5] صحیح بخاری، کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة، باب مایکره من التعمق......رقم، (۷۳۰۵))_
[6] صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب حکم الفئ، رقم(۴۵۷۷))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"ولم أر في شئ من الطرق أنه صدر من علي في حق العباس شئ، بخلاف مايفهم قوله في رواية عقيل: استبا"[1]
ددې نه علاوه د شعيب روايت هم په دې خبره دلالت کوی چې دې دواړو يو بل ته بدرد وئيلي دی، "فاستب علي وعباس"
ليکن راجحه خبره داده چې په دې موقع باندې حضرت عباس رضي الله عنه دا مذکوره کلمات وئيلې دی نۀ چې حضرت علی رضي الله عنه وئيلې دی، په دې شرط چې ددې صحت تسليم کړې شی چې حضرت عباس رضي الله عنه واقعی هم دا کلمات وئيلې دی او حضرت علی رضي الله عنه ته ئې بد ردوئيلې دی.
**ايا حضرت عباس رضي الله عنه واقعی دا کلمات وئيلې دی؟** اوس سوال دا دې چې آيا واقعی حضرت عباس دا مذکوره کلمات وئيلې دی او حضرت علی ته ئې بدرد وئيلې دی؟ نو په دې کښې د علماؤ مختلف اقوال دی:

① علامه عينی فرمائی چې دلته د عبارت تقدير داسې دې: الكاذب إن لم ينصف[2] چې دې دروغژن دې، خيانت گر دې...... که چرته ماسره انصاف اونکړی يعنی د حضرت عباس رضي الله عنه دا مذکوره کلمات په شرط سره مقيد دی.
② علامه مازری دې کلماتو لره د حذف کولو صورت جوړ کړې دې، هغوی فرمائی چې غالباً دلته بعضې راويانو ته وهم شوې دې او علامه عينی خو دې کلماتو لره حذف کول واجب گڼړی، "يجب إزالة هذه اللفظة عن الكتاب"[3]
③ مازری مزيد دا هم فرمائی چې که دا کلمات محفوظ هم وی نو دا به داسې حمل کړې شی چې حضرت عباس رضي الله عنه دا مذکوره کلمات د ناز و ادا په طريقه باندې فرمائيلې دی ځکه چې حضرت علی رضي الله عنه د حضرت دپاره د ځوی په منزله دې ځکه چې حضرت عباس ئې خپل سکه تره وو، د پلار ځوی او د تره وراره ترمينځه داسې کلمات څۀ لرې خبره نۀ ده، حضرت عباس رضي الله عنه چونکه حضرت علی رضي الله عنه په غلطئ باندې گڼړلو په دې وجه د هغوی غرض دا وو چې حضرت علی رضي الله عنه منع کړې شی.
④ دغه شان د حضرت عباس رضي الله عنه غرض دا هم کيدې شی چې حضرت علی رضي الله عنه څۀ کوی نو که دا ټول قصداً عمداً کوی نو بيا خو په دې مذکوره صفاتو سره متصف دې، او که قصداً نه وی نو بيا مذکوره صفاتو سره متصف نۀ دې.
مزيد فرمائی چې دا تاويل ځکه ضروری دې چې څۀ هم اوشو نو دا ټول هرڅۀ د صحابه کرامو رضي الله عنهم د يو جماعت په موجودگئ کښې اوشو، چې په هغوی کښې د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په شان شخصيت هم وو او نور جليل القدر صحابه کرام رضي الله عنهم او لوئې لوئې هستئ هم موجود وې، ددې ټولو حضراتو په موجودگئ کښې ددې واقعې پيښيدل او ددې حضراتو پرې تنبيه او خبردارې نۀ کول په سمجه او پوهه کښې نۀ راځی، مازری ليکی:

---

[1] ) فتح البارى: ۶/۲۰۵)_
[2] ) عمدة القارى: ۱۵/۲۴)_
[3] ) پورته حواله)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"ولابد من هذا التاويل، لوقوع ذلك بمحضر الخليفة ومن ذكر معه، ولم يصدر منهم إنكار لذلك، مع ما علم من تشددهم في إنكار المنكر"[1] وهما يختصمان فيما أفاء الله على رسوله صلى الله عليه وسلم من بني النضير
او دي دواړو د بنو نضير په هغې مال فئ کښې جهګړه کوله کوم چې الله تعالى نبی کریم ﷺ ته ورکړې وو.

**په روايت كښې اختصار**: دلته په روايت كښې اختصار دې څكه چې په دې كښې صرف د بنونضير د مال فئ ذكر دې او مراد ترينه د نبی كريم ﷺ ملكيتى زمكې دى، چې په هغې كښې د بنوقريظه، بنونضير زمكې چې په مدينه منوره كښې وې، د فدك او د خيبر خمس وغيره هم شامل دى، علامه عينى د امام نسفى په حوالې سره فرمائى:

"وقال ابن عباس في قوله (وما أفاء الله على رسوله منهم)[2] هو من أموال الكفار، و أهل القرى. وهم بنوقريظة والنضير وهما بالمدينة، وفدك، وخيبر، وقرى عرينة، وينبع"[3] فقال الرهط عثمان و أصحابه: يا اميرالمؤمنين، اقض بينهما، وأرح أحدهما من الآخر
جماعت يعنى حضرت عثمان ﷺ او د هغوى ملګرو اووئيل، اميرالمؤمنين! ددې دواړو حضراتو مينځ كښې فيصله اوكړئ او يو ته د بل نه آرام وركړئ.

دلته په روايت كښې د "الرهط" لفظ دې او د مسلم شريف په روايت كښې "القوم" راغلې دې، دغه روايت كښې ددې كلماتو اضافه هم نقل ده، "فقال مالك بن أوس: يخيل إلى أنهم قد كانوا قدموهم لذلك"[4] او د ابوداؤد شريف په روايت كښې دى: "فقال العباس: يا اميرالمؤمنين، اقض بيني وبين هذا. يعنى عليا. فقال بعضهم: أجل يا اميرالمؤمنين، فاقض بينهما و أرحهما"[5] ددې نه ددې حضراتو د تشريف راوړلو مقصد واضحه كيږى چې دا حضرات د سفارش دپاره راغلې وو، چې د حضرت عباس ﷺ او د حضرت على ﷺ مينځ كښې څۀ واضحه فيصله اوكړې شى چې دا جهګړه ختمه شى او خپل مينځ كښې تعلقات نور خراب نۀ شى[6]
حافظ ابن حجر د مسند ابن ابى عمر د يو روايت چې د معمر عن الزهرى د طريق نه روايت دې په حوالې سره ليكلې دى چې حضرت زبير بن العوام ﷺ "اقض بينهما" فرمائيلې وو، په

---

[1]) پورته حواله، وفتح البارى: ۲۰۵/۶، وشرح النووى على مسلم: ۹۰/۲، وكذا انظر حاشية السندى على صحيح مسلم، المطبوعة مع مسلم: ۳۶۶/۲)_
[2]) الحشر/۶)_
[3]) عمدة القارى: ۲۴/۱۵، وتنوير المقياس من تفسير ابن عباس، الحشر/۳_۸، ۸۶/۲، و أحكام القرآن للرازى: ۵۷۴/۳، ومن سورة الحشر\
[4]) مسلم شريف، كتاب الجهاد والسير، باب حكم الفئ، رقم (۴۵۷۷))_
[5]) سنن أبى داود، كتاب الخراج و الفئ و الامارة، باب فى صفايا رسول الله صلى الله عليه وسلم ...... رقم (۲۹۶۳)
[6]) فتح البارى: ۲۰۵/۶، وعمدة القارى: ۲۴/۱۵، وتكملة فتح الملهم: ۴۹/۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې سره ددې خبرې تعيين اوشو چې په قوم(ډله) کښې خبره چا شروع کړې وه[1]
فقال الرهط عثمان و أصحابه کښې عثمان واصحابه د محذوف مبتدا دپاره خبر دې،ای:هم عثمان واصحابه المذکورون.

البته دا د الرهط نه بدل یا عطف بیان هم کیدې شي[2]

وارح د امر صیغه ده.د اراحة(افعال)نه او واو عاطفه دې.مطلب دادې چې دا دواړه په کومه جهګړه کښې دی،ددې نه ورته آرام ورکړئ[3]

قال عمر:تیدکم: حضرت عمر اوفرمائيل،لږ صبر اوکړئ.

د تیدکم ضبط او معنی: تیدکم د تاء مثناة د فتحې او د کسرې سره او یاء ساکنه ده او دال مفتوحه یا مضمومه.یعنی تَیْدَکُم،دا اسم فعل دې د روید په شان،ددې معنی ده صبر اوکړئ.

د ابوذر په روایت کښې دا کلمه تَئِدکم.بفتح المثناة وکسر التحتانیة مهموز وفتح الدال.مروی ده.

ابن التین فرمائی چې ددې اصل تیدکم دې چې د التؤدة مصدر نه مشتق دې.ددې معنی نرمی ده.ابن الاثیر هم دا خبره اختیار کړې ده[4]

**قوله: أنشدکم بالله الذی بأذنه تقوم السماء والارض،هل تعلمون أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال:لانورث،ماترکنا صدقة؟یرید رسول الله صلی الله علیه وسلم نفسه. قال الرهط:قد قال ذلك:** زۀ ستاسو نه د هغې ذات په واسطه درکولو سره پوښتنه کوم چې د چا په حکم سره زمکې او اسمانونه قائم دی چې آیا تاسو ته پته لګی چې نبی کریم ﷺ فرمائیلي وو چې مونږ نه کومه ترکه پاتې شی نو په هغې کښې وراثت نۀ جاری کیږی،هغه خو صدقه ده؟ددې نه نبی ﷺ خپل ذات مبارک مراد اخستلې وو،حاضرینو اووئیل،بالکل،نبی کریم ﷺ دغه شان فرمائیلي وو.

أنشدکم کښې روایت د شین د ضمې سره دې،دا باء سره او د باء نه بغیر دواړو طریقو سره مستعمل دې نشدتك الله او نشدتك بالله ددې معنی ده اسئلکم بالله چې زۀ د الله تعالی په نوم مبارک سره تپوس کوم،درخواست کوم او د هغۀ واسطه درکوم.

ددې نه علاوه دا لفظ د باب افعال نه هم مستعمل دې،یعنی د همزه په ضمې او د شین په کسرې سره(مضارع متکلم)نووی ددې وضاحت کړې دې[5]

---

[1] ) فتح الباری:۲۰۵/۶)_

[2] ) عمدة القاری:۲۴/۱۵)_

[3] ) پورته حواله،و تکمله فتح الملهم:۴۹/۳)_

[4] ) عمدة القاری:۲۴/۱۵،وفتح الباری:۲۰۶/۶،والنهایة فی غریب الحدیث......:۱۷۸/۱،باب التاء مع الهمزة،مادة تئد،وشرح القسطلانی:۱۹۴/۵)_

[5] ) عمدة القاری:۲۴/۱۵،وارشادالساری: ۱۹۴/۵،وشرح النووی علی مسلم:۹۰/۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په لانورث كښې روايت د نون سره دې، يعنى د جمع متكلم صيغه ده. امام قرطبى فرمائى چې ددې نه مراد د انبياء كرامو ﷺ جماعت دې[1] لكه په يو روايت كښې دا الفاظ هم راغلې دى، "إنا معشر الانبياء لانورث"[2] ددې نه علاوه ابن عبدالبر د ابن شهاب عن مالك بن اوس عن عمر د طريق نه يو حديث نقل كړې دې، د هغې الفاظ نور هم زيات واضح دى، فرمائى، "إنا معشر الانبياء، ماتركنا صدقة"[3]

البته د حضرت حسن بصرى رحمه الله مذهب دادې چې دا د حضرت نبى كريم ﷺ سره خاص دې، په دې كښې نبى سره نور انبياء ﷺ شامل نه دى، د هغوى استدلال د قرآنى آيتونو (يرثنى ويرث من آل يعقوب)[4] او (وورث سليمان داود)[5] نه دې.

ليكن د امت جمهور علماؤ دې آيتونو لره د ميراث علم، نبوت، حكمت (يحيى عليه السلام دپاره) او د مارغانو خبرې اترې (د حضرت سليمان دپاره) باندې حمل كړې دى، لهذا راجحه خبره هم داده چې د انبياء كرامو ﷺ په مال كښې ميراث نهٔ جارى كيږى، هغه صدقه وى[6]

**انبياء وارثان كيدې شى؟** پورته تفصيل په دې باره كښې وو چې د انبياء كرامو ﷺ څوك وارث كيدې شى يا نهٔ، د هغوى په مال كښې وراثت جارى كيږى يا نهٔ. اوس سوال دادې چې آيا انبياء كرام ﷺ هم وارثان نهٔ شى كيدې چې د خپل مورثينو د ميراث نه مال اومومى؟

په دې مسئله كښې زمونږ د حضراتو احنافو . كثرالله سوادهم. اقوال دوه قسمه دى:

علامه شامى په خپلو رسائلو كښې فرمائيلي دى چې نبوت د ارث نه مانع دې البته دا د وارثيت يا موروثيت دواړو نه مانع دې يا صرف د موروثيت نه؟ نو د شوافعو حضراتو ميلان دويم طرفته دې چې نبوت صرف د موروثيت نه مانع دې د وارثيت نه مانع نهٔ دې.....ليكن په دې مسئله كښې زمونږ د امامانو اقوال مختلف دى:

لكه د ابن نجيم د عبارت نه دا معلوميږى چې انبياء كرام ﷺ نهٔ وارثان جوړيدې شى او نه مورثين، فرمائى، "كل إنسان يرث ويورث، الا الانبياء عليهم السلام لا يرثون ولا يورثون" دغه شان فرمائى چې دا خبره چې منقول ده چې نبى د حضرت خديجه د مال وارث جوړ شوې وو نو دا خبره صحيح نهٔ ده، بلكه هلته خو داسې شوې وه چې هغې خپل ټول مال د صحت په وخت كښې نبى ته هبه كړې وو[7]

---

[1]) عمدة القارى: ۱۵/ ۲٤، والمفهم للقرطبى: ۸۵/۱۱، باب مايصرف فيه الفئ......)_

[2]) وتمامه: ماتركنا فهو صدقة "انظر سنن النسائى الكبرى، كتاب الفرائض، باب ذكر مواريث الانبياء، رقم (٦۳۰۹) وفتح البارى: ۸/۱۲، كتاب الفرائض)_

[3]) التمهيد لابن عبدالبر: ۱۷۵/۸، حديث ثامن لابن شهاب عن عروة)_

[4]) مريم/٦)_

[5]) النمل/١٦)_

[6]) عمدة القارى: ۱۵/ ۲٤_۲۵، وارشاد السارى: ۵/ ۱۹٤، والتمهيد لابن عبدالبر: ۸/ ۱۷٤_۱۷۵)_

[7]) الاشباه والنظائر مع شرحه للحموى: ۲/ ٤۹٦، الفن الثانى، كتاب الفرائض، رقم (۱۷۸۲))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بل طرفته د ابن الکمال او سکب الانهر د عبارتونو نه معلومیږی چې انبیاء کرام ﷺ هم د عوامو په شان وارثان جوړیدې شی[۱]

**د شوافعو او موالکو مذهب:** پورته د علامه شامی په عبارت کښې تیر شو چې شافعیه د انبیاء کرامو د پاره وارثیت صحیح ګڼړی، صاحب د "الاقناع" علامه شربینی فرمائی:

"....... أن الناس فی الارث اربعة أقسام: منهم من یرث و یورث، و عکسه فیهما، و منهم من یورث ولا یرث، وعکسه..... والرابع الانبیاء علیهم السلام، فانهم یرثون ولا یورثون"[۲]

د موالکو مذهب هم په دې مسئله کښې د شوافعو په شان دې، د هغوی په نزد هم دا راجحه ده چې انبیاء کرام ﷺ وارثان کیدې شی، علامه دردیر په الشرح الکبیر کښې د نبی ﷺ په خصوصیاتو کښې لیکلې دی: "و بان لا یورث، وکذا غیره من الانبیاء"[۳] ددې په وضاحت کښې علامه دسوقی فرمائی چې ددې عبارت تقاضه داده چې هغوی وارثان کیدې شی، ځکه چې دردیر دلته په "لایورث" باندې اقتصار کړې دې چې ددې مقتضی "یرث" ده. هم دا راجحه هم ده ځکه چې دا خبره ثابته ده چې نبی کریم ﷺ ته د خپل والد محترم په میراث کښې ام ایمن برکة حبشه ملاؤ شوې وه، او دې سره سره څۀ چیلئ وغیره هم ملاؤ شوې وې[٤]

ابن سعد د ام ایمن په باره کښې فرمائی:

"قالوا: وکان رسول الله صلی الله علیه وسلم ورثها عن ابیه......، فاعتق رسول الله صلی الله علیه وسلم ام ایمن حین تزوج خدیجة........ رضی الله عنها"[۵]

**د حضرت ګنګوهی رائې:** زمونږ په مشائخو کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله هم په دې مسئله کښې د شوافعو او موالکو په شان ددې خبرې قائل دی چې انبیاء کرام ﷺ وارثان کیدې شی، مورث کیدې نۀ شی، فرمائی:

"اختلف العلماء فی توریث الانبیاء من غیرهم، فقال بعضهم: لا یَرِثون کما لا یُورَثون، و رووا نحن معاشر الانبیاء، لانرث ولانورث، والصحیح ان هذه اللفظة غیر ثابتة......"[٦]

---

[۱] ) رسائل ابن عابدین: ۲۰۲/۲، الرحیق المختوم شرح قلائد المنظوم، فصل فی موانع الارث، وردالمختار، کتاب الفرائض، (تتمه): ۵٤۳/۵، جملة الموانع حینئذ ستة......)_

[۲] ) الاوجز: ۵٤٤/۱۷، والاقناع: ۲۸۵/۲، کتاب بیان احکام الفرائض، القول فی موانع الارث الحقیقیة)_

[۳] ) الشرح الکبیر مع الدسوقی: ۵٤۱/۲، باب الخصائص)_

[٤] ) پورته حواله، والاوجز: ۵٤٤/۱۷، وفی السیرة الحلبیة: ۵۲/۱، باب وفاة والده صلی الله علیه وسلم: وترک عبدالله خمسة اجمال، وقطعة من غنم، فورث ذلک رسول الله صلی الله علیه وسلم من ابیه")_

[۵] ) الطبقات الکبری لابن سعد: ۲۲۳/۸، ذکرام ایمن، والاصابة: ٤۳۲/٤، فصل فیمن عرف بالکنیة من النساء، الا ان فیه ورثها عن امه")_

[٦] ) الکوکب الدری: ۱۰۳/۳_۱۰٤، کتاب الفرائض، تحت رقم(۲۱۰۵))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې عبارت کښې د هذه اللفظة نه مراد "لانورث" دې، دا غیرثابت دې او عام روایات د دې لفظ د اضافې نه خالی دی، په عامو روایاتو کښې صرف د لانورث کلمات موندلې کیږی[1]
دغه شان علامه گنگوهی د حدیث نبوی "سلونی من مالی" په تشریح کښې فرمائی:
"والایراد بانه صلی الله علیه وسلم لم یکن له مال سیما بمکة توهم، أفلم یکن له صلی الله علیه وسلم مافیه اکله وشربه، والترکة التی أصابه من أبیه؟ وما اشتهرمن "إنا لانرث، ولانورث" فالکلمة الاولی منهالم تثبت"[2]
خلاصه دا شوه چې د حضرت گنگوهی موقف په دې مسئله کښې هم هغه دې چې کوم موقف د شوافعو او د موالکو دې چې انبیاء کرام ﷺ وارثان کیدې شی[3]
**یو سوال او د هغې جواب:** په دې پورته مذکوره موقف باندې سوال اعتراض کیږی چې د نبی کریم ﷺ د دریو لونړو مبارکو حضرت زینب، حضرت رقیه او حضرت ام کلثوم ﷺ وفات خو د نبی ﷺ په ژوند مبارک کښې شوې وو لیکن په روایاتو کښې دا خبره چرته هم نشته چې نبی کریم ﷺ د هغوی په میراث کښې څۀ حصه اخستلې وی.
نو علماو د سیرت ددې جواب دا ورکړې دې چې اول خو دا خبره تسلیمه نۀ ده چې نبی کریم ﷺ د هغوی په میراث کښې څۀ حصه نۀ ده اخستلې.
دویمه دا چې که دا دعوی تسلیمه هم کړې شی چې نبی د هغوی میراث نۀ وو اخستلې نو کیدې شی چې د استغناء په طور ئې نۀ وی اخستلې لیکن بهرحال په دې سره د وارثیت نفی نۀ شی کیدې[4] والله اعلم بالصواب

**د "صدقة" اعراب:** حدیث نبوی "لا نورث ما ترکنا صدقة" کښې لفظ د صدقة مرفوع دې، ملاعلی قاری فرمائی، دا رفعې سره دې او جمله مستانفه ده، گویا که نبی ﷺ چې کله اوفرمائیل، "لا نورث" نو قدرتی طور باندې دا سوال پیدا شو چې بیا به ستاسو د ترکې څۀ کیږی؟ نو جواب اوکړې شو چې "ماترکنا صدقة" چې مونږ څۀ پریږدو نو هغه صدقه ده.
دا لفظ د نصب سره هم مروی دې، په دې صورت کښې به د عبارت تقدیر داسې شی "ماترکناه مبذول صدقة" نو خبر (مبذول) حذف کړې شو او صدقه (د نصب په صورت کښې) حال شو او د خبر په عوض کښې باقی پاتې شو......
د شیعه شنیعه دا وینا چې په دې جمله کښې ما نافیه ده او لفظ د صدقة د ترکنامفعول به

---

[1] ) تعلیقات الکوکب الدری للکاندهلوی: ۱۰۴/۳، وکذا انظر اوجزالمسالک: ۵۴۵/۱۷)_
[2] ) الکوکب الدری: ۲۲۹/٤، کتاب التفسیر، سورة الشعراء، تحت قوله صلی الله علیه وسلم: سلونی من مالی")
[3] ) تعلیقات الکوکب: ۲۲۹/٤، والاوجز: ۵٤۵/۱۷)_
[4] ) تعلیقات الکوکب: ۲۳۰/٤، والبذل: ۷۳/۱۰، کتاب الفرائض، باب: فی میراث ذوی الارحام، رقم(۲۹۰۲)، والاوجز: ۵٤٦/۱۷، والسیرة الحلبیة: ۵۲/۱، باب وفاة والده صلی الله علیه وسلم)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کيدو په وجه منصوب دي نو دا بهتان او افتراء ده،د هغوی د رد دپاره دا هم کافي ده چې په اکثرو رواياتو کښې ترکناه د ضمير منصوب سره راغلې دې چې ضمير عائد دې او ددې مرجع ما موصوله ده.

ددې نه علاوه په بعضې روايتونو کښې "فهو صدقة" راغلي دي[1] ددې خو په مرفوع کيدو کښې څۀ شک نشته چې هوضمير مبتداء ده او صدقة ئې خبر دې.

دغه شان هغه احاديث چې په هغې کښې ددې قسمه صراحت راغلې دې "إنا معشر الانبياء لا نورث" ددې ټولو خلاصه داده چې دلته لفظ د صدقة اکثرو روايتونو کښې مرفوع دې او ماموصوله ده،نۀ چې مانافيه ده[2].

**قوله: فأقبل عمر على علي وعباس،فقال:أنشدكما الله،أتعلمان أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قد قال ذلك؟قالا:قد قال ذلك...:** بيا حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عباس رضي الله عنه طرفته متوجه شو او وې فرمائيل،زۀ ستاسو دواړو نه د الله تعالى په نامه سره تپوس کوم چې آيا تاسو دواړو ته معلومه ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مذکوره خبره ارشاد فرمائيلې وه؟هغوی دواړو اوفرمائيل، بالکل ئې ارشاد فرمائيلې وه

اول حضرت عمر رضي الله عنه د سفارشيانو وړاندې مذکوره سوال کيخودو چې آيا تاسو د نبي صلى الله عليه وسلم دا فرمان اوريدلې وو چې "لا نورث،ماترکنا صدقة؟" چې هرکله هغوی د اوريدلو اقرار اوکړو نو هم دا سوال ئې د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عباس رضي الله عنه نه هم اوکړو،چې د هغې جواب دې دواړو حضراتو هم دا ورکړو چې مونږ دا خبره د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلې ده،مونږ ددې تصديق کوو . دا د وړاندې خبرې دپاره يوقسمه تمهيددې د ذلك مشاراليه حديث "لا نورث،ماترکنا صدقة"[3] ده.

**قوله: قال عمر:فإني احدثكم عن هذا الامر: إن الله قد خص رسوله صلى الله عليه وسلم في هذا الفئ بشئ لم يعطه احدا غيره،ثم قرء(وما افاء الله على رسوله منهم- الى قوله- قدير)فكانت هذه خالصة لرسول الله صلى الله عليه وسلم :** حضرت عمر اوفرمائيل،زۀ تاسو ته په دې معامله کښې وايم،الله تعالى د خپل

[1]) انظر الموطا،كتاب الكلام،باب ماجاء في تركة النبي صلى الله عليه وسلم،رقم(١٨٠٨))_

[2]) مرقاة المفاتيح:١١/١٢٩-١٣٠،كتاب الفضائل والشمائل،رقم(٥٩٧٦)،وشرح الطيبي: ١١/١٩٥، والاوجز:١٧/٥٣٥،والتعليق الممجد:٣١٩)_

[3]) عمدة القاري:١٥/٢٥،وارشادالساري:٥/١٩٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رسول پاک ﷺ دپاره په دغه مال فئ کښې څۀ مخصوص حصه مقرر کړې وه.چې په هغې کښې هغوی چاته هم ورکړې نۀ وه په دې وجه دا صرف اوصرف د نبی کریم ﷺ سره خاص وه. په عبارت کښې ذکر کړې شوې آیت پوره دغه شان دې.

«وما افاء الله علی رسوله منهم فما أوجفتم علیه من خیل ولا رکاب ولکن الله یسلط رسله علی من یشاء، والله علی کل شئ قدیر»[1]

"او کوم مال چې الله تعالی خپل رسول پاک ﷺ ته د دوی نه ورکړې دې،په دې باندې تاسو نۀ اسونو ته منډه ورکړې ده او نۀ اوښانو ته.لیکن خپلو رسولانو ته په چا باندې چې اوغواړی غلبه ورکوی او الله پاک ته په هر هر څیز باندې پوره قدرت حاصل دې".

پورته آیت کریمه چې څنګه د مال فئ تعریف ته شامل دې نو دغه شان په دې کښې ددې خبرې وضاحت هم راغئ چې دا مال به د نبی کریم ﷺ دپاره خالص وو او په دې کښې د هیچا څۀ حق نۀ وو ،نبی ﷺ چې دا مال څنګه صرف کوی نو هغوی ته ددې اختیار وو او په هغوی باندې دا منحصر وه،د باب د حدیث د جملې "فکانت هذه خالصة لرسول الله صلی الله علیه وسلم" مطلب هم دا دې[2]

اوس دا خبره ذهن ته راځی چې نبی کریم ﷺ به په دې مال باندې څۀ کول؟نو ددې جواب دادې چې دا مال به د هغوی په نان نفقه او د هغوی د اهل و عیال په نان نفقه کښې استعمالیدۀ او څۀ به چې باقی پاتې شو نو هغه به ئې د مسلمانانو په مصلحتونو کښې خرچ کوو لکه څنګه چې وړاندې روایت کښې راځی.

والله ما احتازها دونکم، ولا استاثربها علیکم، قد اعطاکموها، وبثها فیکم

لیکن په الله قسم،نبی کریم ﷺ دا مال صرف د خپل ځان دپاره جمع کړې نۀ وو او نۀ ئې خپل ذات ته په تاسو باندې ترجیح ورکړې وه،بلکه دا مال هغوی هم تاسو ته درکړو او په تاسو کښې ئې تقسیم کړو.

**د مختلفو الفاظو ضبط او معنی:** احتاز کښې دوه روایتونه دی:

① حاء مهمله او زاء معجمه سره ددې مصدر حیازة دې،ددې معنی ده جمع کول. د اکثرو روایت هم دادې.

② د کشمیهنی په روایت کښې دا لفظ خاء معجمه او راء مهمله سره دې،یعنی اختار،ددې معنی ده اختیارول[3]

د استاثرمعنی ده خپل ځان ته ترجیح ورکول[4]

---

[1] ) الحشر /۶)_

[2] ) عمدة القاری:۲۵/۱۵)_

[3] ) پورته حواله،وفتح الباری:۲۰۶/۶،وارشادالساری:۱۹۵/۵)_

[4] ) عمدة القاری:۲۵/۱۵،وارشادالساری:۱۹۵/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په اعطاکموها کښې هم دوه روایتونه دی:

① اعطاکموها، په دې صورت کښې به د ضمیر مرجع اموال الفئ وی.

② اعطاکموه، په دې صورت کښې به مرجع فئ وی[1] په دواړو صورتونو کښې څۀ قباحت نشته.

د بثها معنی ده فرقها یعنی تقسیم ئې کړل، چې د بث یبث بثا (ثاء مثلثه مشدده سره) نه دې[2] او مطلب دادې چې دا اموال فئ اګرچه د نبی کریم د ذات اقدس سره خاص وو لیکن په دې سره به نبی کریم درشته دارو اوغیررشته دارودواړه قسمه خلقو معاونت او امداد فرمائیلو. د نسائی شریف[3] د عکرمه بن خالد عن مالک بن اوس د طریق نه ددې تائید کیږی[4]

**قوله: حتی بقی منها هذا المال، فکان رسول الله صلی الله علیه وسلم ینفق علی أهله نفقة سنتهم من هذا المال، ثم یأخذ ما بقی، فیجعله مجعل مال الله:** تردې چې په هغې کښې دا موجوده مال (زمکې) باقی پاتې شوې دی، په دې کښې به نبی کریم ﷺ د اهل عیال دپاره د ټول کال نفقه ویستله، بیا به چې څۀ باقی پاتې شو نو هغه به ئې د الله تعالی د مال په طور باندې ساتلو.

**یو اشکال او د هغې جواب:** پورته عبارت بالکل واضح دې، لیکن د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په یو حدیث کښې "توفی رسول الله صلی الله علیه وسلم ودرعه مرهونة عند یهودی بثلاثین صاعاً من شعیر"[5] وارد شوې دې چې د نبی ﷺ د وفات په وخت د هغوی مبارک یو زره د یهودی سره د دیرش صاعو اوربشو په بدله کښې ګانړه کیخودلې شوې وه.

سوال دا دې چې هرکله خپل ذاتی مال دومره فراخه وو چې د کور والاد خرچ د جدا کولو نه پس به هم ډیر مال بچ پاتې شو، کوم به چې بیا په بیت المال کښې جمع کیدې شو نو د حضرت عائشه صدیقه ددې حدیث څۀ مطلب دې او د قرض (هغه هم زرعه په رهن کښې کیخودل) اخستلو ضرورت ولې پیښ شو؟

ددې جواب دادې چې عام معمول خو دا وو چې د ټول خرچ به ئې جدا کوو لیکن کال تیریدلو سره سره نبی کریم ﷺ نور د خیر کارونو او خارجی ضروریاتو کښې به هم ددې نه صرف کوو، دغه شان د کال په پوره کیدو باندې به مقرره نفقه ختمه شوه او د قرض اخستلو ضرورت به پیښ شو، علامه قسطلانی فرمائی:

---

[1] ) ارشادالساری: (۱۹۵/۵)_

[2] ) پورته حواله. و عمدة القاری: (۲۵/۱۵)_

[3] ) سنن النسائی، أول کتاب قسم الفئ، رقم (۴۱۵۳))_

[4] ) فتح الباری: (۲۰۶/۶)_

[5] ) انظر صحیح البخاری، کتاب الجهاد والسیر، باب ماقیل فی درع النبی صلی الله علیه وسلم...... رقم (۲۹۱۶)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وهذا لا يعارضه حديث عائشة أنه صلى الله عليه وسلم توفي ودرعه مرهونة على شعير، لأنه يجمع بينهما بأنه كان يدخر لأهله قوت سنتهم، ثم في طول السنة يحتاج لمن يطرقه إلى إخراج شئ منه، فيخرجه، فيحتاج إلى تعويض ما أخذ منها، فلذلك استدان" (١)

"مجعل مال الله" کښې مجعل د میم د فتحې سره د ظرف صیغه ده، بیت المال ترینه مراددې چې په هغې سره به اسلحه وغیره اخستې کیده او د مسلمانانو په نورو مصلحتونو باندې به دغه مال خرچ کولې شو (٢)

**قوله: فعمل رسول الله صلى الله عليه وسلم بذلك حياته، أنشدكم بالله، هل تعلمون ذلك؟ قالوا: نعم:** نو د نبی کریم ﷺ په خپل ژوند مبارک کښې هم دغه معمول وو، تاسو خلقو ته د الله تعالی واسطه درکولو سره ستاسو نه تپوس کوم چې آیا تاسو خلقو ته ددې علم شته؟ جماعت اووئیل، بالکل، مونږ ته ددې معلومات شته.

په عمل کښې میم مکسور دې، دا دلته د باب سمع نه مستعمل دې (٣)

**قوله: ثم قال لعلي وعباس: أنشدكما بالله، هل تعلمان ذلك؟:** بیا حضرت عمر رضی الله عنه حضرت علی رضی الله عنه او حضرت عباس رضی الله عنه طرفته متوجه کیدو سره اوفرمائیل ...... آیا تاسو دواړو ته هم ددې خبرې معلومات شته؟

دلته په روایت کښې سوال خو مذکور دې لیکن دې دواړو حضراتو په جواب کښې څه اوفرمائیل ددې تذکره نشته، نو د کتاب الفرائض د عقیل په روایت (٤) کښې ددې نه پس دا اضافه هم روایت شوې ده، "قالا: نعم" (٥)

**قال عمر: ثم توفى الله نبيه صلى الله عليه وسلم، فقال أبوبكر: أنا ولي رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقبضها أبوبكر، فعمل فيها بما عمل رسول الله صلى الله عليه وسلم، والله يعلم أنه فيها لصادق، بار، راشد، تابع للحق، ثم توفى الله أبابكر، فكنت أنا ولي أبي بكر، فقبضتها سنتين من إمارتي، أعمل فيها بما عمل رسول الله صلى الله عليه وسلم وما عمل فيها أبوبكر، والله يعلم أني فيها لصادق، بار، راشد، تابع للحق**

حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل، بیا الله تعالی خپل نبی پاک ﷺ پورته کړو نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوفرمائیل چې زهٔ د رسول الله مبارک ﷺ نائب یم، نو دغه مال هغوی په خپل

---

(١) ارشاد الساری: ۱۹۵/۵، وایضاً فی الفتح: ۲۰۶/۶، والعمدة: ۱۲۵/۱۵

(٢) پورته حواله جات)_

(٣) ارشاد الساری: ۱۹۵/۵)_

(٤) صحیح البخاری، کتاب الفرائض، باب قول النبی......: لانورث.......رقم (۶۷۲۸))_

(٥) ارشاد الساری: ۱۹۵/۵، وفتح الباری: ۲۰۶/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تصرف کښې واخستۀ. او هغوی په دې کښې هم په دغه معمول باندې روان وو. کوم معمول چې د نبی کریم ﷺ وو. الله تعالی ته ښۀ علم دی چې هغوی ددې مال په معامله کښې رښتونی، نیک، هدایت یافته او د حق تابع وو. بیا الله تعالی حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خپل ځان ته اوغوښتلو نو زۀ د ابوبکر صدیق رضی الله عنه ولی او نائب جوړ شوم، ما د خپل خلافت(ابتدائی) دوو کالو پورې دا مال په خپل تصرف کښې اوساتلو، ما هم په دې کښې خپل هغه معمول اوساتلو کوم چې د نبی کریم ﷺ او د هغوی نه پس د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وو، الله تعالی ته ښۀ معلومه ده چې زۀ ددې مال په معامله کښې رښتونې، نیک، هدایت یافته او د حق تابع یم.

"بار" راء مشدده سره، د بریر نه دې، ددې معنی ده نیک.

"إمارتی" د همزه کسرې سره، خلافت او حکومت ته وائی، یو بل لفظ دې أمارة د همزه د فتحې سره، د هغې معنی ده علامت او نشانی[1]

د کتاب الاعتصام په روایت، چې د عقیل ابن شهاب د طریق نه دې، کښې "فقال ابوبکر: أنا ولی......فعمل فیها بما عمل رسول الله صلی الله علیه وسلم" الفاظو نه پس دا کلمات هم موندلې شی، "وانتما حینئذ. واقبل علی علی وعباس. تزعمان أن أبابکر کذا وکذا"[2] او د مغازی د شعیب بن ابی حمزه په روایت کښې د "تذکران أن أبابکر فیه کما تقولان"[3] الفاظ دی. ددې دواړو روایتونو نه واضح روایت هغه دې کوم چې په مسلم شریف کښې دې، په هغې کښې په دې دواړو روایتونو کښې مذکور د مبهم کلماتو وضاحت هم کړې شوې دې چې د "کذا وکذا" او "کما تقولان" مراد څۀ دې، په دې روایت کښې مذکوره اضافه لاندې ذکر کولې شی.

"فجئتما، تطلب میراثك من ابن أخیك، ویطلب هذا میراث امراته من أبیها، فقال أبوبکر: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: "ما نورث، ماترکنا صدقة"، فرایتماه کاذبا آثما غادرا خائنا"[4]

ددې درې واړو طرق نه دا لاندې فائدې مستنبط شوې:

① ددې حدیث مدار چونکه امام زهری دې نو په دې سلسله کښې د هغوی کار دادې چې هغوی د مذکوره کلماتو، کوم چې د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په باره کښې اووئیلې شو، روایت به کله صراحةً کوو، کله به ئې مبهم کلمات استعمالول، هم دا حال د حضرت مالک ابن اوس هم دې چې کله صراحت کوی او کله کنایه کوی.

② هم دا روایت اسماعیلی وغیره هم درج کړې دې، د هغوی د بشر بن عمر په طریق کښې دا کلمات بالکل نشته، محذوف دی، ددې مثال هم هغه دې کوم چې د روایت په ابتداء کښې

---

[1] ) ارشاد الساری:۵/۱۹۵)_

[2] ) صحیح البخاری، کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة، باب مایکره من التعمق......رقم(۷۳۰۵))_

[3] ) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب حدیث بنی النضیر، ومخرج رسول الله......رقم(۴۰۳۳))_

[4] ) صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب حکم الفیء، رقم(۴۵۷۷))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې چې حضرت عباس رضی الله عنه حضرت علی رضی الله عنه ته بد رد وئیلې وو، په دې کښې تاویل هم هغه دې چې غوره او بهتره خبره هم ددې کلماتو حذف کول دی.[1]

**قوله:** ثم جئتمانى تكلمانى، وكلمتكما واحدة، وامركما واحد، جئتنى يا عباس تسالنى نصيبك من ابن اخيك، وجاءنى هذا - يريد عليا - يريد نصيب امراته من ابيها: بيا تاسو دواړه ماته په دې معامله کښې ماسره خبره کولو دپاره راغلئ، ستاسو دواړو خبره يوه وه او معامله هم يوه وه، ائې عباس! ته ماته د خپل وراره (صلى الله عليه وسلم) حصه اخستلو دپاره راغلې او دې (علی) هم ماته راغئ چې دوی ته د خپلې بی بی حصه ورکړې شی.

**د باب حديث او امام عبدالرزاق:** علامه عقيلى[2] نقل کړې دی چې امام عبدالرزاق بن همام، چې مشهور محدث، صاحب د مصنف او د اصحاب سته راوی دې، هغوی دې مقام ته رارسيدو باندې يوه ډيره بې مناسبه جمله استعمال کړه، اګرچه دا وئيلې کيږی چې دا جمله هغوی د حضوراقدس صلى الله عليه وسلم د محبت نه د مجبوره کيدو په وجه وئيلې ده ليکن بهرحال د حضرت عمر رضی الله عنه په باره چونکه دا جمله استعمال شوې ده او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه چې د حضوراقدس سره کوم تعلق او د زړۀ تړون وو نو هغه معلوم او مشهور دې، په دې وجه د امام عبدالرزاق په دې جمله باندې د افسوس د اظهار نه سوا بله څۀ لاره نشته.

هغه حضرت عمرفاروق باندې تنقيد کښې ليکی: "انظرالى هذا الانوك، يقول: من ابن أخيك، من أبيها، لايقول: رسول الله صلى الله عليه وسلم" (اللفظ للذهبى)[3]

پورته چې کوم روايت تير شو، په هغې کښې حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د نبی کريم ذکر حضرت عباس سره اوکړو نو أبن اخيك ئې اوفرمائيل او حضرت علی سره ئې اوکړو نو يريد نصيب امراته من أبيهائې اوفرمائيلو، په دې باندې امام عبدالرزاق خفه شوې دې چې دې بيوقوف ته اوګوره! حضور اقدس په من ابن اخيك او من ابيها سره رابلی او د رسول الله الفاظ نۀ لولی.

أنوك بيوقوف ته وئيلې شی، په دې کلام کښې ددې نه مراد حضرت عمر رضی الله عنه دې دا لفظ نوك د ينوك نوكا ونواكا (س) نه مشتق دې، د أنوك جمع نوك او نوكیٰ راځی.[4]

علی بن عبدالله بن مبارک صنعانی وائی چې زيد بن المبارک به د امام عبدالرزاق د حديث

---

1) فتح البارى: ۶/۲۰۶)_
2) الضعفاء الكبير: ۳/۱۱۰)_
3) ميزان الاعتدال: ۲/۶۱۱)_
4) القاموس الوحيد، باب النون، مادة نوک، والنهاية للجزرى: ۵/۱۲۹، باب النون والواو......وغريب الحديث للخطابى: ۲/۱۴۹، وتاج العروس: ۲۷/۳۷۸، مادة (ن و ک))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په مجلسونو کښې پابندئ سره شرکت کوو او د هغهٔ نه به ئې ښهٔ روايتونه نقل کول ليکن بيا د عبدالرزاق نه نقل کړې شوې تول کتابونه زيد بن المبارک اوسيزل او د محمد بن ثور حلقو ته به تلو، چا ترينه د وجې تپوس اوکړو نو وې فرمائيل چې مونږ يو ځل د هغهٔ په درس کښې شريک وو چې هغهٔ د ابن الحدثان حديث(د باب حديث)روايت کړو، چې کله د حضرت عمر رضی الله عنه دې کلماتو فجئت أنت تطلب ميراثك من ابن اخيك......ته راؤرسيدهٔ نو پورته ذکر کړې شوې کلمات ئې اووئيل أنظر إلى هذا الانوك....زيد بن المبارک فرمائی چې زهٔ د هغهٔ د مجلس نه پاسيدم او دوباره د هغهٔ طرفته لانهٔ رم او نهٔ اوس د هغهٔ نه روايت کوم[1]

حافظ شمس الدين ذهبی په ميزان الاعتدال کښې ددې حکايت نقل کولو نه پس دا وئيلې دی چې اول خو دا کلام مرسل دې،ددې په ثبوت کښې اشکال دې چې عبدالرزاق دا خبره کړې هم ده که نه

که أومنلې شی چې دا خبره هغوی کړې ده نو بيا د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه له طرفه حافظ ذهبی په جواب کښې فرمائی چې حضرت عمر رضی الله عنه دلته د اصحاب الميراث په ژبه کښې خبره کړې ده لکه د هغوی مقصد "من ابن أخيك" وئيلو سره هغه د ميراث تعلق ښکاره کول وو ځکه چې حضرت عباس رضی الله عنه په عصبه کښې داخل وو او "من ابيها" وئيلو سره د حضرت فاطمة الزهرا رضی الله عنها د نيمې حصې ذکر مقصود وو، چې کله لور يواځې وی نو هغه د پلار په ميراث کښې د نيمې وارثه وی. په دې وجه هغوی د اصحاب الميراث په ژبه کښې "من ابن أخيك" او "من أبيها" وئيلې دی. خدانخواسته تحقير خو ترې نه هډو هم نهٔ دې مقصود.

"قلت: في هذه الحكاية إرسال، والله أعلم بصحتها، ولا اعتراض على الفاروق رضى الله عنه فيها، فانه تكلم بلسان قسمة التركات"[2]

په ميزان الاعتدال کښې خو ذهبی د امام عبدالرزاق څهٔ حده پورې دفاع کړې ده ليکن په سير کښې هغوی امام عبدالرزاق لره هم په دغه مذکوره کلماتو باندې د سخت تنقيد نشانه کړې دې، د هغې وجه ښکاره ده ځکه چې حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په دې حديث کښې هر ځائې د حضور اکرم صلی الله عليه وسلم عظمت او توقير سره ذکر کړې دې او موقع په موقع ئې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د تقليد او د اتباع ذکر کړې دې، په دې وجه دا ولې په بې ادبئ او ګستاخئ باندې حمل کولې شی؟او مونږ دا هم وايو چې چا دا په بې ادبئ باندې حمل کړې ده هغه يا خو په خپله مغلوب الحال دې يا هغهٔ په خپله د بې ادبئ ارتکاب کړې دې.

لکه حافظ ذهبی په سير کښې ليکی: "قلت: هذه عظيمة، وما فهم قول أمير المؤمنين عمر، فانك ياهذا، لوسكت، لكان أولى بك، فان عمر انما كان في مقام تبيين العمومة والبنوة، والا فعمر رضى الله عنه أعلم بحق

---

[1] ) کتاب الضعفاء الکبير للعقيلی:۳/۱۱۰،وميزان الاعتدال:۳/۶۱۱،وسير اعلام النبلاء:۹/۵۷۲)_

[2] ) ميزان الاعتدال:۳/۶۱۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

المصطفى و بتوقيره و تعظيمه من كل متحذلق(١)، متنطع(٢)، بل الصواب أن نقول عنك: انظروا إلى هذا الانوك الفاعل. عفا الله عنه. كيف يقول عن عمر هذا، ولا يقول: قال أمير المؤمنين الفاروق؟! وبكل حال فنستغفر الله لنا ولعبد الرزاق، فانه مامون على حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم، صادق"(٣)

تقلت لكما: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: لانورث ماتركنا صدقة

هغه وخت ما تاسو دواړو ته وئيلي وو چې نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی چې زمونږ په ترکه کښې ميراث نهٔ جاری کيږی، مونږ چې کومه ترکه پريږدو نو هغه صدقه ده.

د نبی کريم د فرمان"لا نورث ماتركنا صدقة"څهٔ تشريح خو مونږ ددې باب د حديث په شروع کښې بيان کړې وه چې په دې مسئله کښې د اهل سنت مسلک دادې چې دا حکم صرف د نبی ﷺ سره خاص نهٔ دې بلکه ټول انبياء کرام ددې حکم په عموم کښې داخل دی. صرف حسن بصری رحمه الله او ورسره ابن عليه رحمه الله (٤) دې لره د نبی ﷺ سره خاص کوی.

او د شيعه اماميه(عليهم لعائن الله والملائكة والناس اجمعين)عقيده داده چې د عامو خلقو په شان د انبياء کرامو ﷺ په مال کښې هم ميراث تقسيميږی او په حديث شريف کښې مختلف قسم لرې لرې تاويلات کوی، مونږ لاندې د اهل علم دپاره يو واقعه ذکر کوو، چې د خوند سره سره د لوې فائدې نه هم خالی نهٔ ده.

**د ابن شاذان او د ابن المعلم مناظره:** علامه باجی د ابوجعفر سمنانی په حوالې سره ليکلی دی چې ابوعلی بن شاذان چې لوئې عالم او امام وو ليکن هغوی ته په عربی علومو باندې مهارت حاصل نهٔ وو، هغوی په دې پورته مسئله باندې د اماميه يو عالم ابوعبدالله بن المعلم سره مناظره اوکړه چې د خپل وخت د اماميه د امام کيدو سره سره ورته په عربی علومو باندې هم لوې مهارت حاصل وو.

ابن شاذان په خپل موقف باندې د نبی کريم ﷺ دا حديث مبارک پيش کړو:

"إنا معاشر الانبياء، لانورث، ماتركنا صدقة"(٥)

---

(١) دا لفظ د تحذلق نه مشتق دی، ددې معنی ده پوتې ايشتل(يعنی لوئې لوئې خبرې کول.مترجم)،د المتحذلق معنی شوه پوتې ايشتونکې: القاموس الوحيد، باب الحاء، مادة حذلق")_

(٢) ددې لفظ معنی ده غالی، د حد نه تجاوز کوونکې وغيره، د نبی کريم د حديث هلک المتنطعون" [مسلم، رقم(٦٧٢٥)، وابوداود، رقم(٤٦٠٨)په شرح کښې علامه ابن الاثير جزری فرمائی

هم المتعمقون، المغالون فی الكلام، المتكلمون باقصى حلوقهم، ماخوذ من النطع، وهو الغار الاعلى من الفم، ثم استعمل فی كل تعمق، قولا وفعلا". انظر النهاية: ٧٤/٥، باب النون مع الطاء)_

(٣) سير أعلام النبلاء: ج ٩ص ٥٧٢-٥٧٣)_

(٤) المنتقى: ٩/٥٠٠-٥٠١، تلخيص الحبير: ٢٨٥/٢، كتاب النكاح، الواجبات، رقم (١٤٥٩)، دارالكتب، والاوجز: ٥٣٥/١٧، والتعليق الممجد: ٣١٩، كتاب الفرائض، باب النبی صلى الله عليه وسلم هل يورث؟)_

(٥) سنن النسائی الكبرى، كتاب الفرائض، ذكر مواريث الانبياء، رقم(٦٣٠٩)، والكامل لابن عدی: ٨٦/٢، رقم(٣٠٧)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې باندې ابن المعلم په جواب کښې اووئیل چې دا کلمه د "صدقة" منصوب ده د حال واقع کېدو په وجه، چې ددې تقاضه داده چې نبی کریم کوم څیزونه د صدقې په طور پرېخودلې وو نو په هغې کښې به میراث نۀ جاری کیږی، د هغې به څوک وارث نۀ وی، ددې نه مونږ هم منع نۀ کوو، البته کوم څیزونه چې ئې د صدقې په طور نۀ دی پرېخودلې نو په هغې کښې به میراث جاری کیږی.

ابن المعلم دا استدلال دې دپاره کړې وو چې هغۀ ته دا خبره معلومه وه چې ابن شاذان په عربی علومو باندې ډېر نۀ پوهیږی او په دې کښې ډېر مهارت نۀ لری او نۀ د حال او د غیرحال فرق باندې پوهیږی، لیکن ددې هرڅۀ باوجود ابن شاذان ابن المعلم لره لاجواب کړو. هغه داسې چې ابن شاذان ابن المعلم ته اووئیل ستا ګمان دادې چې دا لفظ د "صدقة" منصوب دې او تۀ دا وائې چې کوم څیزونه نبی کریم ﷺ د صدقې په طور پرېخودلې وی په هغې کښې مونږ هم تاسو سره موافق یو چې په هغې کښې میراث نۀ جاری کیږی لیکن واؤره! ماته د نصب او د رفع فرق معلوم نۀ دې دغه شان په دې مسئله کښې د نصب او د رفع په فرق باندې د ځان پوهولو ضرورت هم نۀ محسوسوم البته یو خبره ده چې نۀ په هغې کښې ماته څۀ قسم شک شته او نۀ تا ته چې حضرت فاطمه رضی الله عنها افصح العرب وه، دغه شان "صدقة" منصوب دې یا مرفوع، په دې باندې هم د ټولو نه زیاته پوهېدله، هم دا صورت د حضرت عباس رضی الله عنه هم دې هغه هم په میراث کښې مستحق وو، که نبی موروث وو، هم دغه حال د حضرت علی رضی الله عنه هم دې ځکه چې د هغوی شمار هم د قریشو په فصیحو علماؤ کښې کیږی بلکه د هغوی نه هم په مرتبه کښې اوچت او لوئې وو.

او واؤره! چې کله حضرت فاطمه رضی الله عنها د خپلې حصې طلب کولو دپاره حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته تشریف راؤړلو نو هغوی چې حضرت فاطمة الزهرا رضی الله عنها ته کوم جواب ورکړو، ددې نه هغوی هم دا اوګنړل چې د نبی ﷺ په میراث کښې هغوی دپاره هیڅ هم نشته او د خپلې دعوې نه وروستو شوه، هم دغه شان حضرت عباس رضی الله عنه هم دا اوګنړل، هم دغه شان حضرت علی رضی الله عنه او نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم هم اوګنړل، په هغوی کښې چا هم دا اعتراض اونکړو کوم اعتراض چې تاسو کوئ. دغه شان حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې ددې حدیث نه کوم استدلال کوی نو هغوی هم ددې حدیث دا مفهوم نۀ اخلی کوم چې تاسو اخلئ، بلکه د هغوی مقصد هم د ممانعت تقاضه ښکاره کول دی، حال دادې چې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په اهل عربو کښې دفصیح اولوئې عالم کېدو کښې دچا هم څۀ اختلاف نشته، که دحدیث کلماتو په ممانعت باندې دلالت نۀ کوو نو دا به هغوی هیڅکله په دلیل کښې پېش کړې نۀ وو.

اوس دوه صورتونه دی، صدقة منصوب دې لکه څنګه چې ستاسو دعوی ده لیکن ددې نه هغه مفهوم او مطلب چاهم نۀ دې اخستلې کوم چې تاسو اخلئ، حالانکه دغه ټول حضرات د عربو فصیح خلق وو لهذا د نصب تقاضه هم هغه ده چې کومه دغې حضراتو ګنړلې وه چې میراث نۀ جاری کیږی، په دې وجه ستاسو دعوی باطله ده.

یا دا لفظ مرفوع دې، داسې کېدل پکار هم دی او هم دغه شان مروی هم دې په دې وجه په

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې کښې د نصب دعوی باطله ده......(۱)

فلما بدا لي أن أدفعه إليكما،قلت:إن شئتما دفعتها إليكما،على أن عليكما عهدالله وميثاقه لتعملان فيها بما عمل فيها رسول الله صلى الله عليه وسلم وبما عمل فيها أبوبكر، وبما عملت فيها منذ وليتها،فقلتما:ادفعها ألينا،فبذلك دفعتها إليكما،فأنشدكم بالله،هل دفعتها إليهما بذلك؟قال الرهط:نعم

چې هرکله زما سینه په دې خبره کهلاؤ شوه چې دا مال تاسو دواړو ته حواله کړم نو ما تاسو ته وئیلې وو چې که تاسو دواړه غواړئ نو دا مال تاسو ته حواله کوم په دې شرط چې د الله تعالی د عهد او د وعدې پابندی به په تاسو باندې لازم وی چې تاسو دواړه به ددې زمکو په خدمت کښې هغه معمول اختیاروئ کوم معمول چې د نبی کریم ﷺ وو،کوم چې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وو او کوم معمول او طریقه چې زما راروانه ده د کوم وخت نه چې ما ددې ذمه داری قبوله کړې ده ـ نو(هغه وخت)تاسو دواړو وئیلې وو چې(په دې شرط باندې)دا زمکې مونږ ته حواله کړه لهذا ما په دې شرط باندې تاسو دواړو ته دا زمکه حواله کړې وه،زۀ تاسو ته د الله تعالی واسطه درکولو سره ستاسو نه تپوس کوم چې آیا ما دا زمکې دې دواړو(حضرت علی و عباس)ته په دې شرط باندې حواله کړې وې؟د صحابه کرامو رضی الله عنهم جماعت اووئیل،آوجی!هم دغه شان وه.

مطلب دادې چې دا زمکې ددې دواړو حضراتو په حواله باندې د تملیک په غرض سره نۀ وې شوې بلکه د تصرف او د فائدې په غرض سره ورته حواله کړې شوې وې چې تاسو دواړه په دې کښې تصرف کولې شئ او څومره چې ستاسو دواړو حق دې د هغې په اندازه ددې زمکو نه فائده هم حاصلولې شئ ځکه چې ددې صدقو تملیک په هیڅ طریقې سره نۀ شی کیدې،دا حرام دی(۲)

ثم أقبل على علي وعباس،فقال:أنشدكما بالله،هل دفعتها إليكما بذلك؟قالا:نعم،قال:فتلتمسان مني قضاء غير ذلك؟فوالله الذي بإذنه تقوم السماء والارض،لا اقضي فيها قضاء غير ذلك،فإن عجزتما عنها فادفعاها الي،فاني اكفيكماها.

بیا حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت علی رضی الله عنه او حضرت عباس رضی الله عنه طرفته متوجه شو،وې فرمائیل زۀ تاسو ته د الله تعالی واسطه درکولو سره ستاسو نه تپوس کوم چې آیا دا زمکې ما تاسو دواړو ته په دې شرط باندې حواله کړې نۀ وې؟دواړو حضراتو اووئیل،او جی!حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل،اوس تاسو د تیرې شوې فیصلې نه اوړئ او ما باندې بله څۀ فیصله کول غواړئ؟نو واؤرئ!قسم دې د هغه ذات چې د هغۀ په حکم سره زمکې او آسمانونه قائم دی،زۀ به په دې زمکو کښې ددې نه علاوه هیڅ فیصله نۀ کوم که تاسو دواړه

---

(۱) أوجز المسالک:۱۷/۵۳۵ـ۵۳۶،والمنتقی:۹/۵۰۰،کتاب الجامع من الموطا)ـ

(۲) ارشادالساری:۵/۱۹۵)ـ

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې زمکو په خدمت او خیال کولو باندې تنګ شوې نې نو دا ماته واپس کړئ.زهٔ به ستاسو دواړو له طرفه ددې زمکو دپاره یواځې کافي شم.

**یو اشکال او د هغې جواب** دلته اشکال دا کیږي چې د حضوراقدس ﷺ ارشاد دې "لا نورث، ما ترکنا صدقة" نو حضرت عباس رضی الله عنه و حضرت علی رضی الله عنه دا کلام د حضوراقدس ﷺ نه اوریدلې وو یا د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه.دې دواړو د نبی ﷺ دا حدیث اوریدلې وو .لکه څنګه چې هغوی په خپله د باب په حدیث کښې د اوریدلو تصدیق کړې دې که دا اوونیلې شي چې د نبی کریم ﷺ نه ئې دا حدیث اوریدلې وو نو حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته د میراث د طلب کولو دپاره ولې ورغلې وو او که دا اوونیلې شي چې د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه ئې دا حدیث اوریدلې وو نو حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته د میراث د طلب دپاره ولې ورغلل څکه چې دا خو د حدیث شریف خلاف ورزی ده؟

ددې جواب دا دې چې دې حضراتو دا حدیث مبارک اوریدلې وو .په دې باندې د دوی عمل هم وو لیکن ددې حضراتو موقف او نقطه نظر دا وه چې د حضوراقدس ﷺ میراث به په منقولی څیزونو کښې نهٔ جاری کیږی البته په غیرمنقولی څیزونو کښې به جاری کیږی.نو په دې وجه اول دا حضرات حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته ورغلل او هغوی انکار اوکړو چونکه د هغوی رائې دا وه چې دا حکم عام دې.منقولی او غیر منقولی دواړو او ټولو پریخودلې شوې څیزونو ته شامل دې نو چې کله د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه انتقال اوشو او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دور راغئ نو د دوی خیال شو چې دوی طرفته به رجوع اوکړو .ممکنه ده چې د دوی مؤقف هم هغه وی کوم مؤقف چې زمونږ دې لیکن حضرت عمر فاروق رضی الله عنه هم د "لا نورث،ماترکنا صدقة" په عموم باندې عمل اوکړو او دې حضراتو ته ئې د میراث نه د څهٔ ورکولو نه انکار اوکړو.[1]

**یو سوال او د هغې جواب:** البته دلته دویم سوال ذهن کښې دا پیدا کیږی چې حضرت عمر رضی الله عنه هرکله دا دواړه حضرات یوځل منع کړې وو چې زهٔ دا پریخودلې شوې څیزونه د میراث په طور تقسیمولې نهٔ شم نو دوباره دا حضرات د حضرت عمر رضی الله عنه دربار ته ولې راغلل؟

ددې جواب امام دارقطنی د قاضی اسماعیل په حوالې سره دا ورکړې دې چې دا دوباره راتلل د میراث دپاره نهٔ وو .بلکه ددې مقصد ددې جهګړې دفع کول وو چې کومه جهګړه ددې دواړو حضراتو(حضرت علی رضی الله عنه و حضرت عباس رضی الله عنه )مینځ کښې ددې زمکو په تصرف او ولایت کښې شوې وه.[2]

واقعه اصل کښې داده چې دا دواړه حضرات کله د حضرت عمر رضی الله عنه خوا ته په اول ځل باندې راغلل نو حضرت عمر رضی الله عنه دوی د میراث ورکولو نه خو منع کړې وو لیکن د صدقاتو

---

[1]) فتح الباری:۶/۲۰۷)_

[2]) فتح الباری:۶/۲۰۷.وبمثله قال الخطابی ایضاً.انظر اعلام الحدیث:۲/۱۴۴۰ـ۱۴۴۱،وعمدة القاری: ۱۵/۲۵،والتمهید لابن عبدالبر:۸/۱۶۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دغه زمکې ئې د تصرف او د خیال ساتلو په غرض سره دوی ته حواله کړې وې چې ددې انتظام به دا ترۀ او وراره کوی او دا زمکې به سمبالې کړی،ترۀ حضرت عباس رضی الله عنه وو او وراره حضرت علی رضی الله عنه وو لیکن په مزاج کښې اختلاف وو،حضرت علی رضی الله عنه سخی سړې وو او د ضرورت او حاجت دپاره د مال د جمع کولو به ئې څۀ اهتمام او پرواه نه کوله او حضرت عباس رضی الله عنه مدبر او د سوچ خاوند وو او دنیا ئې لیدلې وه،هغوی به بې ځایه د مال خرچ کول نۀ خوښول نو څو څو ځله دغه شان اوشو چې یوځائې حضرت علی رضی الله عنه خرچ کول غواړی او حضرت عباس رضی الله عنه مزاحمت کوی،یوځائې حضرت عباس رضی الله عنه مال محفوظ کول غواړی او حضرت علی رضی الله عنه په خرچ کولو باندې اصرار کوی.

ددې اختلاف په وجه باندې دا حضرات بیا حضرت عمر رضی الله عنه ته راغلل او د هغوی په وړاندې ئې خپله مسئله پیش کړه او وې وئیل چې تاسو نیمې نیمې زمکې مونږ ته راکړئ، حضرت عمر فاروق رضی الله عنه انکار اوکړو.

**د انکار څۀ وجه وه؟**:اوس سوال دا پیدا کیږی چې ددې دواړو حضراتو مطالبه خو په ظاهره معقوله وه چې دا زمکې دې د تصرف دپاره نیمې نیمې تقسیم کړې شی.ددې باوجود حضرت عمر رضی الله عنه ولې انکار اوکړو؟

ددې جواب امام ابوداؤد ورکړې دې چې اصل کښې د حضرت عمر رضی الله عنه په وړاندې دا خبره وه چې دا زمکه تقسیمیدل پکار نۀ دی ځکه چې دا څوک اونۀ وائی چې نیمه خو ئې حضرت عباس رضی الله عنه ته ورکړه او نیمه ئې حضرت علی رضی الله عنه ته ورکړه او زمکه ئې تقسیم کړه،چونکه په دې باندې د تقسیم اطلاق اوشی نو خلق به صبا وائی چې هغه خو په میراث کښې تقسیم شوې وه او حضرت عمر رضی الله عنه د تقسیم د لفظ اوریدلو دپاره بالکل تیار نۀ وو،په دې وجه دوی صفا انکار اوکړو اوقسم ئې اوخوړلو چې داسې نۀ شی کیدې،که تاسو ددې خدمت او خیال نۀ شئ ساتلې نو واپس ئې کړئ،دا معاملات به زۀ جاری ساتم،تاسو خپل کار کوئ[1]

د عمر بن شبه د روایت په آخره کښې دا الفاظ راغلې دی، "فاصلحا أمرکما،والا لم یرجع.والله. الیکما،فقاما و ترکا الخصومة،و امضیت صدقة"[2] چې حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چې "خپل معاملات صحیح ساتئ،ورنه په خدائې قسم دا به تاسو دواړو ته حواله نۀ کړې شی". ددې په اوریدلو سره دواړه حضرات پاسیدل،جهګړه ئې ختمه کړه او ددې زمکې د صدقې والا حیثیت برقرار پاتې شو.

---

[1] ) قال ابوداود: إنما ان یکون یصیره بینهما نصفین،لا أنهما جهلان أن النبی صلی الله علیه وسلم قال: لا نورث،ما ترکنا صدقة"فانهما کانا لا یطلبان الا الصواب،فقال عمر: لا أوقع علیه اسم القسم،أدعه علی ماهو علیه".انظر سننه،کتاب الخراج......باب فی صفایا رسول الله صلی الله علیه وسلم،رقم۲۹۶۳)،دغه شان اوګوری: عمدة القاری:۲۵/۱۵، وفتح الباری:۲۰۷/۶، ارشاد الساری:۱۹۵/۵،وتحفة الباری:۵۳۴/۳)_

[2] ) فتح الباری:۲۰۷/۶،واخبارالمدینة لابن شبة:۱۳۰/۱،خصومة علی والعباس......رقم(۵۷۱))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وروستو بيا[1] دا زمکه حضرت علی رضی الله عنه ته راغلې وه، د هغوی نه پس د حضرت حسن رضی الله عنه، بیا د حضرت حسین رضی الله عنه، بیا د حضرت علی بن الحسین (زین العابدین) رحمه الله بیا د حسن بن حسن رحمه الله، بیا د زید بن حسن رحمه الله په تصرف کښې راغلې وه، دې حیثیت سره چې دا د صدقې زمکه ده[2] معمر فرمائی چې د زید بن حسن نه پس دا زمکه د عبدالله بن حسن په تصرف کښې راغلې وه تردې چې دا خلق یعنی بنوالعباس امیران جوړ شو نو هغوی په دې باندې قبضه اوکړه[3]

د عمر بن شبه د قول مطابق دا زمکه نن صبا د خلیفه په تصرف کښې ده، هم هغه ددې دپاره نګران مقرروی او د مدینې منورې په حاجتمندو کښې ددې پیداوار تقسیموی، ددې کار دپاره هغهٔ جدا وکیلان مقرر کړې دی[4]

حافظ فرمائی چې عمر بن شبه د کومو ورځو خبره کوی نو هغه د دویمې صدئ هجرئ آخری ورځې دی، بیا معاملات خراب شو.

**قوله: "کان ذلك علی راس المأتین، ثم تغیرت الامور، والله المستعان":**[5]

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ترجمة الباب سره ددې حدیث په مناسبت کښې هم هغه تفصیل دې کوم چې مونږ وړاندې د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په حدیث کښې بیان کړو چې په کومو زمکو او صدقاتو کښې دې حضراتو د میراث مطالبه کوله، په هغې کښې د خیبر خمس هم شامل وو، دغه شان ترجمة الباب سره ددې حدیث مناسبت هم موجود دې[6]

**یو اهمه فائده:** د بعضې خلقو خیال دې چې امام زهری ددې حدیث په روایت کښې متفرد دې، د هغوی نه علاوه د بل چا نه دا روایت منقول نهٔ دې، علامه ابوعلی کرابیسی فرمائی یو قوم ددې روایت انکار کړې دې، د هغې خلقو دا وینا ده چې دا روایت د ابن شهاب په مستنکر روایتونو کښې دې البته دا خبره صحیح نهٔ ده، ددې وجې نه دلته دوه صورتونه دی:

① دې مغترضینو ته که چرته دا خبره معلومه ده چې زهری دلته متفرد نهٔ دې نو دا ممکن نهٔ ده (بلکه دوی ته بنهٔ معلومه ده چې متفرد نهٔ دې).

② که دوی ته معلومه نهٔ ده نو دا جهل دې، د جاهل سړی اعتراضات معتبر نهٔ وی.

---

[1] ) دا د عثمانی دور خبره ده، قاله اسماعیل القاضی، فتح الباری: ۲۰۷/۶)_

[2] ) فکانت هذه الصدقة بید علی، منعها علی عباسا، فغلبه علیها، ثم کان بید حسن بن علی، ثم بید حسن بن علی، ثم بید علی بن حسین، وحسن بن حسن، کلاهما کانا یتداولانها، ثم بید زید بن حسن...... (انظر صحیح بخاری، کتاب المغازی، باب حدیث بنی النضیر......، رقم (۴۰۳۴))_

[3] ) مصنف عبدالرزاق: ۳۲۷/۵، کتاب المغازی، خصومة علی والعباس، رقم (۹۸۳۵)، واخبارالمدینة: ۱/ ۱۳۰، رقم (۱۷۲))_

[4] ) فتح الباری: ۲۰۷/۶، وکتاب اخبار المدینة: ۱۳۵/۱، رقم (۵۸۰))_

[5] ) فتح الباری: ۲۰۸/۶)_

[6] ) عمدة القاری: ۲۳/۱۵، وفتح الباری: ۲۰۸/۶، وشرح ابن ابطال: ۲۵۲/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بيا امام كرابيسى د هغه حضراتو نومونه شمارلي دى كومو چې دا حديث د حضرت مالک بن اوس نه روايت كړې دې يعنى عكرمه بن خالد، ايوب بن خالد، محمد بن عمرو بن عطاء رحمهم الله وغيره وغيره.

په دې وجه بالكل د روايت انكار كول او امام زهرى لره نښه ګرځول بالكل صحيح نۀ دہ[1] والله اعلم بالصواب

**د حديث شريف نه مستنبطې فائدې:** ① د حديث نه يو دا خبره معلومه شوه چې د هيڅ يو قبيلې يا جماعت يا ډلې د معاملاتو وغيره ذمه دارى د هغوى سردارانو يا د حيثيت خاوندانو ته حواله كول پكار دى، ځكه چې هغوى دغه ټول كسان پيژنى كوم كسان چې د هغوى ماتحت وى، دغه شان د هر سړى څومره حق دې نو دا هم د هغوى په علم كښې وى.

② دغه شان د حديث شريف ددې خبرې جواز هم معلوميږى چې كه امام يو سړى ته ذمه دارى حواله كړى نو په نرم كلامئ سره دا ذمه دارى د خپل ځان نه د جدا كولو كوشش كوى، په دې كښې هيڅ قباحت نشته په دې شرط چې د ذمه دارئ اهل بل څوک موجود وى، ورنه بيا صحيح نۀ دہ.

③ سړې خپل تعريف او صفات بيانولې شى په دې شرط چې رښتيا وى.

④ دا خبره هم معلومه شوه چې سړې د خپل ځان او خپل اهل وعيال دپاره غله ذخيره كولې شى اګرچه هغه د ټول كال دپاره وى، دا كار د توكل خلاف نۀ دې ځكه چې ښكاره خبره ده چې د نبى كريم ﷺ نه زيات نور څوک متوكل كيدې شى!

په دې كښې د هغه جاهل صوفيانو رد اوشو چې مذكوره عمل لره د توكل خلاف منى، علامه ابن ابطال فرمائى:

"وفيه جواز ادخار الرجل لنفسه واهله قوت السنة، وان ذالك كان من فعل الرسول حين فتح الله عليه من النضير وفدك وغيرهما، وهو خلاف قول جهلة الصوفية، المنكرة للادخار، الزاعمين: أن من ادخر فقد اساء الظن بربه، ولم يتوكل عليه حق توكله"[2]

⑤ د حديث نه دا هم معلومه شوه چې كه په واقعه او معامله كښې په حاكم باندې د هغې حقيقت واضح او كهلاؤ شى چې حق دادې نو هغۀ ته په هغې باندې عمل كول پكار دى، د هغې تقاضې ته كتل پكار دى، د بل چانه په دغه معامله كښې د رائې اخستلو ضرورت نشته[3]. والله اعلم بالصواب

---

[1] ) فتح البارى: ۶/ ۲۰۴)_

[2] ) شرح ابن ابطال: ۵/ ۲۵۴، وعمدة القارى: ۱۵/ ۲۶)_

[3] ) العمدة: ۱۵/ ۲۶، والفتح: ۶/ ۲۰، وابن ابطال: ۵/ ۲۵۴-۲۵۵، والتمهيد لابن عبدالبر: ۸/ ۱۷۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ②باب: اَدَاءُ الخُمُسِ مِنَ الدِّينِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاري دا فرمائي چې د خمس ادا کول د دين يو حصه ده او د دين په شعبو کښې يو اهمه شعبه ده(۱)

**د ترجمې د تکرار اشکال او د هغې جواب:** مصنف په کتاب الايمان کښې يو ترجمه قائمه کړې وه، "باب اداء الخمس من الايمان"(۲) او دلته ترجمه د "اداء الخمس من الدين" ده، دغه شان دا خبره هم په کتاب الايمان کښې تيره شوې ده چې امام بخاري د ايمان، اسلام او د دين وغيره د ترادف قائل دې(۳) ددې وجې نه دلته د ترجمې د تکرار اشکال کيږي چې ايمان او دين يو څيز دې؟

د اشکال جواب دادې چې دلته د حيثيتونو فرق دې، په کتاب الايمان کښې ئې چې کومه ترجمه قائمه کړې وه د هغې غرض د ايمان امور بيانول وو، هلته د ايمانياتو د بحث په ضمن کښې مذکوره ترجمه قائمه کړې شوې وه، ددې خائې ترجمه د مال غنيمت احکامات بيانولو دپاره ذکر کړې شوې ده چې د غنيمت د مال په تقسيم کښې خمس ويستل هم شامل دی او دا اهمه معامله ده، لکه شيخ الحديث صاحب فرمائي:

"ولايتوهم التکرار، لان المقصود هناك بيان امور الايمان، والغرض ههنا بيان اداء الخمس اهتماماله"(۴)

حيثيت چونکه بدل شوې دې، ددې وجې نه د تکرار اشکال پاتې نۀ شو.

۲۹۲۸: (۵) حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ الضُّبَعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- يَقُولُ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا هَذَا الْحَيَّ مِنْ رَبِيعَةَ، بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ، فَلَسْنَا نَصِلُ إِلَيْكَ إِلاَّ فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ، فَمُرْنَا بِأَمْرٍ نَأْخُذُ مِنْهُ وَنَدْعُو إِلَيْهِ مَنْ وَرَاءَنَا. قَالَ «آمُرُكُمْ بِأَرْبَعٍ، وَأَنْهَاكُمْ عَنْ أَرْبَعٍ، الإِيمَانِ بِاللَّهِ شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ -وَعَقَدَ بِيَدِهِ- وَإِقَامِ الصَّلاَةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَصِيَامِ رَمَضَانَ، وَأَنْ تُؤَدُّوا لِلَّهِ خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ، وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالنَّقِيرِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ». [ر: ۵۳]

## رجال الحديث

① **ابوالنعمان:** دا ابوالنعمان محمد بن الفضل السدوسی دې د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: الدين النصيحة......" کښې تيره شوې ده(۶)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۵/ ۲۶)_

(۲) صحيح البخاری: ۱/ ۱۳، قديمی کتب خانه کراچی)_

(۳) کشف الباری: ۱/ ۶۰۹)_

(۴) الابواب والتراجم: ۱/ ۲۰۵)_

(۵) قوله: ابن عباس رضی الله عنهما": الحديث، مر تخريجه فی الايمان، کشف الباری: ۲/ ۶۹۶)_

(۶) کشف الباری: ۲/ ۷۶۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲ **حماد**:دا حماد بن زيد دې.د دوى حالات په کتاب الايمان، "باب وان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا.....الخ" کښې بيان شوې دى [1].

۳ **ابوحمزه**:دا ابوحمزه نصر بن عمران ضبعى دې.د دوى ترجمه په کتاب الايمان، "باب اداء الخمس من الايمان" کښې تيره شوې ده [2].

۴ **ابن عباس**:د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات د"بدء الوحى" لاندې تير شوې دى [3].

**خبردارې**:د حضرت ابن عباس د وفد عبدالقيس سره متعلق د باب د حديث مکمل تشريح په کتاب الايمان کښې تيره شوې ده [4].

**ترجمة الباب سره مناسبت**:ترجمې سره د حديث مناسبت په دې جمله کښې دې، "وان تؤدوا لله خمس ماغنمتم" [5].

## ۳ باب: نَفَقَةِ النبی صلی الله علیه وسلم بَعْدَ وَفَاتِهِ

**د ترجمة الباب مقصد**:دلته امام بخارى د نبى کريم ﷺ د وفات نه پس د هغوى د بيبيانو د نفقې مسئله بيانوى [6] تفصيل وړاندې راځى.

۲۹۲۹ :[7] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضی الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- قَالَ «لاَ يَقْتَسِمُ وَرَثَتِي دِينَارًا، مَا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَائِي وَمَئُونَةِ عَامِلِي فَهُوَ صَدَقَةٌ». [ر: ۲۶۲۴]

## رجال الحديث

۱ **عبدالله بن يوسف**:دا عبدالله بن يوسف تنيسى دې.

۲ **مالک**:دا امام دارالهجرة حضرت امام مالک بن انس دې.ددې دواړو حضراتو تذکره د"بدء الوحى" په اولنى حديث کښې تيره شوې ده [8].

۳ **ابوالزناد**:دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان دې.

---

[1] ) کشف البارى:۲/۲۱۹)_
[2] ) کشف البارى:۲/۷۰۱)_
[3] ) کشف البارى:۱/۴۳۵،و۲/۲۰۵)_
[4] ) کشف البارى:۲/۷۰۴_۷۲۹)_
[5] ) عمدة القارى:۱۵/۲۶)_
[6] ) عمدة القارى:۱۵/۲۷)_
[7] ) قوله: عن ابى هريرة رضى الله عنه".الحديث،مر تخريجه فى الوصايا،باب نفقة القيم للوقف.)_
[8] ) کشف البارى:۱/۲۸۹_۲۹۰، امام مالک دپاره مزيد اوګورئ: ۲/۸۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ **الاعرج**: دا امام عبدالرحمن بن هرمز الاعرج دي. ددې دواړو حضراتو حالات په كتاب الايمان، "باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان" كښې تير شوي دي[1]

⑤ **ابوهريره**: د ابوهريره حالات په كتاب الايمان، "باب أمور الايمان" كښې تير شوي دي[2]

**قوله**: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: لا يقتسم ورثتي دينارا: د حضرت ابوهريره نه روايت دې چې رسول الله فرمائيلې دى چې زما وارثان به هيڅ دينارنۀ تقسيموى. مطلب دادې چې زما په پريخودلې شوې مال كښې به وراثت نۀ جارى كيږى، لكه څنګه چې عموماً د نورو خلقو په وفات باندې د هغوى په متروكه مال كښې وراثت جارى كيږى.

د صحيحينو دا روايت چې د مالک عن ابى الزناد د طريق نه روايت دې، په دې كښې صرف لفظ د "دينارا" راغلې دې[3] او د مسلم شريف په يو روايت چې د ابن عيينه عن ابى الزناد د طريق نه مروى دې، هغې كښې "دينارا ولا درهما" دي[4]

د مالک عن ابى الزناد والا روايت په اعتبار سره به د حديث معنى دا شى چې كه زما مال متروكه يو دينار هم وى نو بيا هم په هغې كښې به ميراث نۀ جارى كيږى، چې ددې نه زيات وى نو بيا خو په طريقه اولى به په كښې نۀ جارى كيږى، ددې وجې نه دا د "تنبيه بالادنى على الاعلى" د قبيل نه دې، ددې په شان د الله تعالى دا فرمان هم دې چې ﴿ومنهم من إن تأمنه بدينار......﴾ [5] چې په دې يهوديانو كښې داسې بدبخت هم دى چې كه تاسو هغوى سره يو دينار هم د امانت په طور باندې كيږدئ نو هغوى ئې نۀ واپس كوى. دلته هم تنبيه الادنى بالاعلى [6] ده چې كوم كس يو دينار واپس كولو ته تيار نۀ وى، نو هغه به ددې نه زيات مال څنګه واپس كړې شى؟[7]

---

[1] ) كشف البارى:۲/۱۰-۱۱_

[2] ) كشف البارى:۱/۶۵۹)_

[3] ) اوګورئ، صحيح بخارى، كتاب الوصايا، باب نفقة القيم للوقف، رقم(۲۷۷۶) وكتاب الفرائض، باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: لا نورث، رقم(۶۷۲۹)، ومسلم، كتاب الجهاد والسير، باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: لا نورث......رقم(۴۵۸۳))_

[4] ) هذا ما قاله الحافظ رحمه الله، ولكنى لم أجد هذا اللفظ عند مسلم. والله أعلم، ثم وجدته فى التمهيد لابن عبدالبر:۸/۱۷۳)_

[5] ) آل عمران:۷۵)_

[6] ) شرح التلويح على التوضيح ۲۶۳، فصل: مفهوم المخالفة، والتقرير والتحبير:۱/۱۴۸، انقسام المفهوم إلى مفهوم موافقة......ورفع الحاجب عن مختصر ابن الحاجب:۳/۴۹۲، المطلق والمقيد)_

[7] ) فتح البارى:۶/۲۰۹، وعمدة القارى:۱۵/۲۷، والاوجز للكاندهلوى:۱۷/۵۴۸، والتمهيد لابن عبدالبر: ۱۸/۱۷۱، وشرح الكرمانى:۱۳/۸۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د مسلم د ابن عیینه عن ابی الزناد والا روایت په باره کښې حافظ صاحب فرمائی چې دا زیاتوالې غوره دهٔ[1] دا أبلغ فی النفی ده چې مال متروکه خواه درهم وی یا دینار، په هغې کښې وراثت نهٔ جاری کیږی. او ددې زیاتوالی متابعت هم په شمائل ترمذی کښې موجود دې[2]

**قوله: ماترکت بعد نفقة نسائی، ومؤنة عاملی، فهو صدقة:** زما د بیبیانو او زما د خلیفه د خرچ نه علاوه چې کوم مال زهٔ پریږدم هغه به صدقه وی.

**د نفقهٔ نسائی وضاحت:** د حضور اکرم ﷺ د وفات نه پس د هغوی په مال کښې د بیبیانو نفقه واجب وه، ددې څهٔ وجه وه، په دې کښې مختلف اقوال دی:

① ځکه چې ازواج مطهرات د نبی ﷺ په حق کښې محبوس (بندې) وې، هغوی د معتداتو په حکم کښې وې، ښکاره خبره ده چې هغوی نکاح خو کولې نهٔ شوه[3] نو کوم سړې چې د چا په حق کښې محبوس (بندی) وی په هغهٔ باندې ددهٔ نفقه واجبه وی.

② دغه شان دا خبره هم ده چې حضور اقدس په خپل قبر کښې ژوندې دې. "إن الله حرم علی الارض ان تأکل اجساد الانبیاء، فنبی الله حی یرزق"[4] نو ددې وجې نه هم د سرکار دو عالم ﷺ د بیبیانو نفقه د دوی په ذمه باندې واجبه وه[5]

دلته بیا په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې لفظ د "نفقة" د ژوند ټولو ضروریاتو او لوازماتو ته شامل دې، هم دا وجه وه چې د نبی ﷺ د وفات نه مخکښې ازواج مطهرات ﷺ په کومو کورونو کښې مقیمې وې، د وفات نه پس هم هغه د هغوی په ملکیت کښې وو[6] والله أعلم بالصواب

**د عامل نه څهٔ مراد دې؟:** په دې کښې پنځهٔ اقوال دی:

① ددې نه د نبی پاک ﷺ خلیفه مراد دې، حافظ ابن حجر فرمائی "وهذا هو المعتمد، و هو الذی یوافق ما تقدم فی حدیث عمر"[7]

---

[1] فتح الباری: ۶/۲۰۹)_

[2] پورته حواله، والشمائل المحمدیة، باب ماجاء فی میراث رسول الله صلی الله علیه وسلم، رقم(۴۰۴))_

[3] قال الله تعالی: (ولا ان تنکحوا ازواجه من بعده ابداً، إن ذلکم کان عندالله عظیماً) الاحزاب/۵۳)_

[4] سنن ابن ماجه، کتاب الجنائز، باب ذکر وفاته و دفنه صلی الله علیه وسلم، من روایة ابی الدرداء رضی الله عنه، رقم (۱۶۳۷) والحدیث صحیح، کما نبه علیه ابن حجر الامام فی التهذیب: ۳/ ۳۱۸، ترجمة زید بن ایمن)

[5] الکرمانی: ۱۳/۸۲، والعمدة: ۱۵/۲۷، والفتح: ۶/۲۰۹، والاوجز: ۱۷/۵۴۸، والدیباج علی مسلم: ۲/۷۲۴، دغه شان اوګورئ، خصائل نبوی اردو: ۲۵۲)_

[6] قاله السبکی والحافظ، انظر فتح الباری: ۱۲/۸، مزید تفصیل د باب ماجاء فی بیوت ازواج النبی ....... لاندې راځی)_

[7] فتح الباری: ۶/۲۰۹، وعمدة القاری: ۱۵/۲۷، والاوجز: ۱۷/۵۴۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې هم دا معتمد او صحيح خبره ده، وړاندې چې کوم حديث تير شو د هغې موافق هم ده.

④ ددې نه عامل على النخل مراد دې، يعنى کوم کس چې به د نبى کريم ﷺ د کهجورو د باغونو خيال ساتلو. په دې باندې ابن أبطال او امام طبرى يقين کړې دې[1]

③ د نبى ﷺ قبر مبارک کنستونکى ترينه مراد دې، دا احتمال حافظ لرې ګرځولې دې.

④ د نبى پاک ﷺ خادم ترې نه مراد دې، دا د ابن دحيه قول دې.

⑤ عامل على الصدقات ترينه مراد دې[2]

**په طاعاتو(عباداتو) باندې اجرت اخستل جائز دى:** امام طبرى فرمائى چې ددې حديث نه دا فائده معلومه شوه چې هيڅ يو سړې هم چې په کوم نيک کار کښې مشغول وى او د هغې په ذريعې سره د مسلمانانو په مشقت او تکليف کښې سپکوالې او کمې راځى، په هغوى باندې لازمه شوې ذمه وارى کميږى نو په دې باندې دې انسان ته اجرت او معاوضه اخستل جائز دى، لکه مؤذن ته په اذان وئيلو باندې اجرت اخستل او معلم ته د تعليم اجرت اخستل جائز دى..

دې سره چې کوم خلق په اعمالو باندې اجرت اخستلو ته حرام وائى د هغوى د قول بطلان هم ددې حديث نه کيږى.

ددې وجه داده چې نبى کريم ﷺ د باب په حديث کښې خپل پريخودلې شوې مال د هغې کار ولى ته د حواله کولو حکم کړې دې، چې کوم کس به د نبى پاک ﷺ نه پس د مسلمانانو د ټولو کارونو نګران وى، هم دغه نګرانى او مصروفيت دۀ لره د مال متروکه حقدار جوړوى، ددې وجې نه اوس دا خبره واضحه شوې ده چې هر هغه سړې چې د مسلمانانو د څۀ معاملې ذمه دار وى، چې د هغې نفع ټولو خلقو ته رسيږى نو دۀ دپاره به هم هغه لاره اختيارولې شى چې کومه د نبى د عامل(ولى الامر) دپاره اختيار کړې شوې وه چې دۀ وظيفه وغيره به هم د بيت المال نه وى ترڅو چې دا کس دا ذمه وارى سر ته رسوى، لکه عالمان، قاضيان، د سلطنت اميران او نور ديرهغه حضرات چې د عامومسلمانانو په کارونو کښې مشغول دى[3]

**مالونه جمع کول جائز دى:** ددې نه علاوه د حضرت ابوهريره د باب په حديث کښې ددې خبرې هم واضح دلالت دې چې الله تعالى مسلمانانو دپاره دومره قدرې مال و دولت جمع کول حلال ګرځولې دى چې د دوى او د دوى د اهل وعيال د رزق و خوراک دپاره کافى وى، چې ددې په ذريعې سره دوى د مختلف قسمه حوادثو او آفاتو مقابله کولې شى او د دوى د ضرورياتو نه زياتى وى، د نبى کريم ﷺ خپل فعل مبارک هم دا وو چې د خپل کوروالو وغيره دپاره به ئې د يو کال خرچ جمع ساتلو، دې سره سره خپله نفقه او مصرفونه هم.....او

---

[1]) شرح ابن ابطال:۲۵۹/۵، ددې قول نسبت د حافظ طبرى طرفته حافظ رحمه الله کړې دې، او په شرح ابن ابطال کښې ددې برخلاف(ولى الامر) قول د حافظ طبرى طرفته منسوب دې. والله أعلم.)_

[2]) الفتح:۲۰۹/۶، والعمدة:۲۷/۱۵، والديباج على مسلم للسيوطى:۷۲٤/۲، والکرمانى:۸۲/۱۳)_

[3]) شرح ابن ابطال:۲۵۹/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

څۀ به چې بچ پاتې کيدل نو هغه به ئې د مسلمانانو په نفع کښې استعمالول.اسلحه وغيره به ئې اخستله،ښکاره خبره ده چې دا ټول هرڅۀ يوځائې شی نو د مال ومتاع يو لويه مجموعه ده او په دې باندې بيشکه د "مال کثير" اطلاق کيدې شی.
ددې ټول تفصيل نه دا خبره ښۀ معلومه شوه چې مال جمع کول جائز دی ليکن چې نيت د نورو خلقو په وړاندې د سوال د لاس خورولو نه ځان بچ کول،د نفس عزت لره برقرار ساتلو سره د نبی کريم ﷺ اقتداء وی.(1)
**مال جمع کول د نهرې لوږې اختيارولو نه غوره دې:** د باب د حديث نه دا خبره هم معلومه شوه چې د مال ومتاع جمع کول د نهرې لوږې اختيارولو نه غوره دې،په دې شرط چې بنده په مال کښې هغه حقوق هم ادا کوی کوم چې د الله تعالی حقوق دی.
که نهره لوږه غوره وې نو نبی کريم ﷺ به کله هم مال و سامان وغيره جمع کړې نۀ وو،بلکه ورسره به چې څۀ وو نو هغه به ئې په خپلو ملګرو خصوصاً په ضرورتمندو کښې تقسيمول،په خپل ملکيت کښې به ئې هيڅ هم نۀ ساتل حالانکه حديث مبارک ددې برخلاف دې.
ددې وجې نه ابن ابطال فرمائی:
"وان ذلک(أی اتخاذ الاموال واقتناؤها)افضل من الفقر والفاقة اذا ادی حق الله منها،ولو کان الفقر افضل لما کان الرسول يختار اخس المنزلتين عند الله علی ارفعهما،بل کان يقسم امواله واصوله علی اصحابه،ولا سيما بين ذوی الحاجة منهم"(2)
**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت واضح دې(3)چې ترجمه د ازواج مطهرات د نفقې وه،په حديث شريف کښې هم دا مضمون دې چې د نبی پاک ﷺ په متروکه مال کښې به د ازواج مطهرات ﷺ حصه د نفقې په طور باندې وی.والله اعلم

۲۹۳۰:(4) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-وَمَا فِي بَيْتِي مِنْ شَيْءٍ يَأْكُلُهُ ذُو كَبِدٍ،إِلاَّ شَطْرُ شَعِيرٍ فِي رَفٍّ لِي،فَأَكَلْتُ مِنْهُ حَتَّى طَالَ عَلَيَّ،فَكِلْتُهُ فَفَنِيَ.[۶۰۸۶]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن ابی شيبه:** دا ابوبکر عبد الله بن محمد بن ابی شيبه دې(5)

---

(1) شرح ابن ابطال:۵/۲۵۹-۲۶۰.
(2) شرح ابن ابطال:۵/۲۶۰)_
(3) عمدة القاری:۱۵/۲۷)_
(4) قوله:عن عائشة رضی الله عنها":الحديث،اخرجه البخاری،کتاب الرقاق ايضاً،باب فضل الفقر،رقم(۶۴۵۱)،ومسلم،اوائل کتاب الزهد،رقم(۷۴۵۱)،والترمذی،کتاب صفة القيامة،باب حديث عائشة:توفی رسول الله......"،رقم(۲۴۶۷)،وابن ماجه،الاطعمة،باب خبز الشعير،رقم(۳۳۴۵))_
(5) د دوی حالات کتلو دپاره اوګورئ:کتاب العمل فی الصلوة،باب لا يرد السلام فی الصلوة_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

②**ابواسامه**:دا ابو اسامه حماد بن اسامه دې.د دوی تذکره په كتاب العلم، "باب فضل من علم وعلم" كښې تيره شوې ده[1]

③**هشام بن عروه**:دا مشهور محدث حضرت هشام بن عروه دې.

④**ابيه**: د اب نه مراد حضرت عروه بن الزبير بن العوام دې.

⑤**عائشه**:دا حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها بنت صديق اكبر رضي الله عنه ده.ددې درې وارو حضراتو تذكره د"بدء الوحی"د"الحديث الاول"لاندې تيره شوې ده[2]

**قوله: قالت:توفي رسول الله صلى الله عليه وسلم ومافي بيتي من شئ يأكله ذوكبد،الا شطر شعير في رف لي:** حضرت عائشه فرمائی چې كله رسول الله ﷺ مبارك وفات شو نو زما په كور كښې داسې څۀ هم نۀ وو چې هغه څۀ ساه لرونكې څيز اوخوری. سوا د لږو شان اوربشو نه چې زما په يو تاخ كښې پرتې وې.

"ذوكبد" نه مراد ساه لرونكې ذی روح دې،خواه انسان وی يا بل يو ځناور[3]

د "شطر"نه مراد د حافظ بن حجر د قول مطابق بعض دې.البته ددې اطلاق په نيم يا په معين جهت باندې هم كيږی ليكن دلته آخری دواړه معنې مرادې نۀ دی[4]

او قاضی عياض د شطر تفسير "نيم وسق"بيان كړې دې.ددې نه علاوه ددې كلمې په تفسير كښې نوراقوال هم دی[5]ددې ټولو خلاصه داده چې دغه اوربشې په ډير كم مقدار كښې وې.

"رف"په ديوال كښې دننه تاخ ته وئيلې شی او ديوال سره لګيدلې تختې ته هم وائی چې په هغې باندې د كور سامان كيخودلې كيږی،حافظ فرمائی:

"قال الجوهری:"الرف:شبه الطاق في الحائط".وقال عياض:"الرف:خشب يرتفع عن الارض في البيت، يوضع فيه مايراد حفظه".قلت:والاول أقرب للمراد"[6]

ددې جمع رفوف او رفاف راځی[7]

**يو اشكال او د هغې جواب**:د كتاب الوصايا يو حديث چې د حضرت عمرو بن الحارث مصطلقی دې(چې د هغې بعضې حصه هم د باب حديث دې)په هغې كښې راغلې دی:

---

[1] ) كشف الباري:۳/٤١٤)_

[2] ) كشف الباري:۱/۲۹۱،هشام او عروه دپاره مزيد اوګورئ،كشف الباری:۲/۴۳۲-٤٤٠)_

[3] ) فتح الباري:۱۱/ ۲۸۰، وعمدة القاري:۲۸/۱۵)_

[4] ) فتح الباري:۱۱/۲۸۰)_

[5] ) پورته حواله،وعمدة القاري:۲۸/۱۵،واكمال المعلم للقاضي:۸/۲۶۶،كتاب الزهد،رقم(۲۷))_

[6] ) فتح الباري:۱۱/ ۲۸۰،والصحاح للجوهري:٤١٩،مادة رفف")_

[7] ) عمدة القاري:۱۵/۲۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"ماترك رسول الله صلى الله عليه وسلم عند موته دينارا، ولا درهماً، ولا عبداً، ولا أمة، ولا شيئاً، إلا......."[1]
چې نبي كريم ﷺ د خپل وفات په وخت كښې نۀ څۀ دينار په تركه كښې پريخودلې وو نۀ درهم، نۀ ئې غلام پريخودلې وو او نۀ وينزه، نه بل څۀ څيز، سواء د يو سپينې خچرې، أسلحې او زمكې نه چې هغه ئې په صدقه كښې جمع كړې وو.
او د باب په حديث شريف كښې حضرت عائشه ﷜ دا فرمائى چې هغوى لږې اوربشې هم پريخودلې وې نو پورته د "شئ" نفى وه او دلته د "شئ" د وجود اثبات دې.
ددې سوال جواب ډير آسان دې، هغه دا چې د حضرت عمرو بن الحارث په حديث كښې د هغې څيزونو ذكر دې چې كوم د نبي كريم سره خاص وو چې په هغې كښې پيغمبر پاك هيڅ يو څيز هم پرينخودو او د حضرت عائشه صديقه ﷜ په حديث كښې د هغې څيز ذكر دې چې كوم د هغې د نفقې حصه وه او هغې سره خاص وو او چونكه مورد جدا جدا دې، ددې وجې نه د اشكال هيڅ وجه نۀ شى كيدې[2].

**قوله: فأكلت منه حتى طال علي:** نو ما د هغې نه خوراک كوو تردې چې معامله په ما باندې اوږده شوه.
يعنى حضرت عائشې ﷜ د دغې اوربشو نه خوراک كوو تردې چې په دې كښې څۀ موده تيره شوه ليكن هغه اوربشې ختمې نۀ شوې.

**فكلته ففنى:** نو ما د هغې وزن اوكړو ددې وجې نه هغه ختمې شوې.
"كلتُه" د كاف په كسرې سره[3] د كال يكيل نه د ماضى واحد متكلم صيغه ده.
**د اوربشو د ختميدلو وجه:** علامه ابن ابطال فرمائى چې حضرت عائشې سره كومې اوربشې وې هغه چونكه وزن كړې شوې نۀ وې، ددې وجې نه په هغې كښې بركت هم وو، ځكه چې هغې ته د هغې د وزن علم نۀ وو، د هغې كمى طرفته كتلو سره به حضرت عائشې ﷜ روزانه دا خيال كوو چې دا اوربشې به ډيرې زر ختمې شى ددې وجې نه هغې ته دا معامله اوږده ښكاره شوه ليكن هركله چې هغې وزن اوكړو نو د باقى پاتې كيدو مدت معلوم شو نو د هغه مودې په پوره كيدو باندې هغه اوربشې هم ختمې شوې[4] والله اعلم
**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** د حضرت عائشې ﷜ د حديث مناسبت ترجمة الباب سره په دې جمله كښې دې "فاكلت منه حتى طال علي، فكلته ففنى" او حضرت عائشې ﷜ دلته دا اونۀ فرمائيل چې هغې دا اوربشې په خپله حصه كښې اخستلې وې، ځكه چې كه په نفقه كښې د هغې استحقاق نۀ وو نو موجوده اوربشې به ئې په بيت المال كښې جمع كړې وې يا

---

[1]) صحيح البخارى، كتاب الوصايا، وقول النبى صلى الله عليه وسلم .......رقم(۲۷۳۹))_
[2]) فتح البارى:(۱۱/ ۲۸۰)_
[3]) فتح البارى:(۱۱/ ۲۸۰)_
[4]) شرح ابن ابطال:(۵/ ۲۶۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

به ئې د وارثانو مينځ کښې تقسيم کړې وي،په وارثانو کښې هغه هم وه او داسې اونۀ شو نو معلومه شوه چې دا نفقه وه،ميراث نۀ وو.

لکه ابن المنير فرمائی: "وجه مطابقة الترجمة لحديث عائشة، قولها: "فاكلت منه حتى طال علی، فكلته ففنی" ولم تذكر أنها أخذته فی نصيبها، إذ لو لم تكن لها النفقة لكان الشعير الموجود لبيت المال، أو مقسوما بين الورثة، وهی إحداهن"[1]

۲۹۳۱[2] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِلاَّ سِلاَحَهُ وَبَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ، وَأَرْضًا تَرَكَهَا صَدَقَةً. [ر: ۲۵۸۸]

## رجال الحديث

① **مسدد**: دا مسدد بن مسرهد بن مسربل دې. د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب من الايمان أن يحب لاخيه....." کښې تيره شوې ده[3].

② **يحيی**: د امام يحيی بن سعيد تذکره هم د "کتاب الايمان" مذکوره باب کښې تيره شوې ده[4].

③ **سفيان**: دا امام المحدثين حضرت سفيان ثوری دې. د دوی حالات په کتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې تير شوې دی[5].

④ **ابواسحاق**: دا ابواسحاق عمروبن عبدالله السبيعی دې. د دوی حالات په کتاب الايمان، "باب الصلوة من الايمان" کښې تير شوې دی[6].

⑤ **عمروبن الحارث**: دا د نبی ﷺ نسبتی ورور حضرت عمرو بن الحارث خزاعی مصطلقی دې[7].

**د حديث شريف ترجمه**: دا حديث چونکه اوس نزدې په کتاب الوصايا کښې تير شوې دې، ددې وجې نه دلته صرف په ترجمه باندې اکتفاء کولې شی.

---

[1] ) المتواری: ۱۸۵، وفتح الباری: ۲۰۹/۶، وعمدة القاری: ۲۷/۱۵، وقال القاضی فی إکمال المعلم (۲۶۶/۸): وفی هذا أن البركة أكثر ماتوجد فی المجهولات والمبهمات، واما ما حصر بالعدد أو بالكيل فمعرف قدره")_

[2] ) قوله: عمروبن الحارث رضی الله عنه": الحديث، مر تخريجه فی کتاب الوصايا، باب الوصايا.....)_

[3] ) کشف الباری: ۲/۲)_

[4] ) پورته حواله)_

[5] ) کشف الباری: ۲۷۸/۲)_

[6] ) کشف الباری: ۳۷۰/۲)_

[7] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الزکوة، باب الزکاة علی الزوج والايتام......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عمروبن الحارث فرمائی چې نبی کریم ﷺ د وفات په وخت کښې دا لاندینی څیزونه پریخودلې وو:
اسلحه، سپینه خچره او څۀ زمکې چې دا نبی د صدقې په طور باندې پریخودلې وو.
**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت په دې معنی کښې دې چې نبی کریم ﷺ کومې زمکې د صدقې په طور پریخودلې وې، د هغې نه به د ازواج مطهرات ﷺ نفقه ورکولې شوه. دا روایت صراحتاً خو د مصنف مدعی نۀ ثابتوی لیکن د مصنف عادت دې چې هغوی داسې کوی چې بعضې داسې روایات نقل کوی چې صراحتاً د مدعی دپاره مفید وی او بعضې روایات داسې وی چې هغه په خپله خو مدعی نۀ ثابتوی لیکن نورو روایتونو سره چې ملاؤشی اوبیا ورته اوکتلې شی نوبیا ترینه دمدعی اثبات کیږی، دلته هم دغه شان ده، نورو روایتونو سره د ملاویدلو نه پس ددې نه د مدعی اثبات کیږی.
علامه ابن المنیر فرمائی: "ووجه مطابقتها للحدیث......قوله: "وارضا ترکها صدقة"، لانها الارض التی أنفق علی نسائه منها بعد وفاته صلی الله علیه وسلم، علی ما هو مشروح فی الحدیث"[1]
او علامه عینی فرمائی:
"مطابقته للترجمة تؤخذ من قوله: "وارضا ترکها صدقة" وذلك، لان نفقة نسائه صلی الله علیه وسلم بعد موته کانت مما خصه الله به من الفیء، ومنه فدك، وسهمه من خیبر"[2] والله اعلم بالصواب.
**د حدیث سند سره متعلق یو خبرداری:** امام قابسی دا حدیث د"حدثنا یحیی عن سفیان......" د طریق نه نقل کړې دې، دغه شان د هغوی نه د بخاری د شیخ حضرت مسدد نوم پاتې شوې دې حالانکه ددې نوم نه بغیر بله څه لاره نشته ځکه چې یحیی بن سعید القطان د امام بخاری شیخ نۀ دې، نۀ د هغوی نه د مصنف سماع ثابته ده، امام جیانی په دې باندې خبرداری کړې دې.
البته د امام قابسی وینا که صحیح هم اوګرځولې شی نو د یحیی نه به مراد ابن موسی یا ابن جعفر وی او د سفیان نه به ابن عیینه، چونکه ابن موسی او ابن جعفر دواړه د امام بخاری شیخان دی[3] لیکن دا خبره د احتمال د حده پورې ده، صحیح خبره هم هغه ده کومه چې جیانی کړې ده. والله اعلم

...

[1] ) المتواری:۱۸۵)_
[2] ) عمدة القاری:۲۸/۱۵، وبه قال القسطلانی، انظر ارشاد الساری: ۵/ ۱۹۷)_
[3] ) فتح الباری:۶/ ۲۱۰، وعمدة القاری:۲۸/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑦ باب: ما جاء في بيوت ازواج النبي صلى الله عليه وسلم وما نُسِبَ من البيوت اليهن

وقول الله تعالى: "وقرن في بيوتكن" /الاحزاب:٣٣. و: "لاتدخلوا بيوت النبي الا ان يؤذن لكم" /الاحزاب:٥٣

**د ترجمة الباب مقصد:** حضرت امام بخاري دلته دا فرمائي چې څنګه د حضور اقدس د وفات نه پس د هغوي په مال کښې د هغوي د ازواج مطهرات ﷺ نفقه واجبه وه، دغه شان د نبي ﷺ د وفات نه پس د هغوي د ازواج مطهرات ﷺ دپاره اوسيدل هم د نبي ﷺ په کورونو کښې واجب وو، ځکه چې دا ټولې بيبياني د نبي ﷺ په حق کښې محبوسې (قيد) وې، ددې وجې نبي اکرم ﷺ چې په کومو کورونو کښې دا ازواج مطهرات ساتلې وې نو د نبي ﷺ د وفات نه پس هم دوی په دغه کورونو کښې اوسيدلې.

دغه شان دا ازواج مطهرات ﷺ څنګه چې په ژوند کښې د نفقې مستحقې وې نو دغه شان د اوسيدلو (د مکان) هم مستحقې وې[1]

**د ازواج مطهراتو قيام د اوسيدلو په حيثيت سره وو يا د ملکيت په حيثيت سره؟:** اصل مسئلې طرفته د تللو نه وړاندې په دې باندې ځان پوهه کړئ چې امام بخاري دلته د ترجمة الباب لاندې دوه آيتونه ذکر کړې دی، يو (وقرن في بيوتكن)[2] او دويم (لا تدخلوا بيوت النبي الا ان يؤذن لكم)[3] په اولنی آيت کښې د بيوت نسبت ازواج مطهرات ﷺ طرفته او په دويم آيت کښې د نبي کريم ﷺ طرفته دې.

امام بخاري غالباً ددې په ذريعې سره هغه اختلاف طرفته اشاره کړې ده کوم چې په دې عنوان کښې ذکر دې چې د ازواج مطهرات ﷺ په مذکوره کورونو کښې قيام صرف د اوسيدلو په حيثيت سره وو يا د ملکيت په حيثيت سره، يا داسې اووايئ چې دا کورونه دوی ته صرف د اوسيدلو دپاره ورکړې شوې وو يا دوی ددې کورونو مالکان جوړ کړې شوې وو.

د قرآن پاک مشهور مفسر علامه جمل د آيت کريمه (لا تدخلوا بيوت النبي الا ان يؤذن لكم) تفسير کښې فرمائي:

په دې آيت کښې ددې خبرې دليل دې چې کور د سړي وی او هغهٔ دپاره به ددې فيصله کولې شی ځکه چې الله تعالى په خپله د کور نسبت د سړي (نبي کريم ﷺ) طرفته کړې دې.

ليکن په دې باندې اعتراض دادې چې په يو بل آيت (واذكرن ما يتلى في بيوتكن)[4] کښې خو د

---

[1] ) المتواري: ١٨٦، وفتح الباري: ٦/٢١١، وعمدة القاري: ١٥/٢٩، وتعليقات اللامع: ٧/٢٩٤)_

[2] ) الاحزاب: ٣٣)_

[3] ) الاحزاب: ٥٣)_

[4] ) الاحزاب: ٣٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كورونو نسبت د ښځو(ازواج مطهرات ﷺ) طرفته كړې شوې دې،ددې وجې نه دا وينا خو صحيح نهٔ شوه چې كور د سړي وي.

ددې جواب دادې چې د بيوت(كورونو)اضافت د نبى ﷺ طرفته د ملكيت په اعتبار سره دې او د ازواج مطهرات ﷺ طرفته د محل په اعتبار سره دې چې دا د دوى د اوسيدلو ځايونه دى. ددې دليل دادې چې په آيت كريمه كښې د داخليدو اجازت د نبى ﷺ فعل ښودلې شوې دې او اجازت صرف د مالک حق وى.

بيا په دې ځان پوهه كړئ چې د نبى ﷺ په كورونو كښې د علماؤ اختلاف دې،او په دې مسئله كښې د هغوى دوه اقوال دى:

① د يو جماعت وينا ده چې دا كورونه د ازواج مطهرات ﷺ ملكيت وو،هغوى په دې كښې د ملكيت په اعتبار سره اوسيدل.ددې خبرې دليل ددې حضراتو د وينا مطابق دا دې چې د نبى ﷺ د وفات نه پس هم ازواج مطهرات ﷺ په دغه كورونو كښې اوسيدل ترديې چې وفاتې شوې،ددې وجه داوه چې نبى ﷺ په خپل ژوند مبارک كښې دا كورونه ازواج مطهرات ﷺ ته هبه كړې وو.

② او يو بل جماعت دا وائى چې دا اوسيدل وو،هبه نهٔ وه او ازواج مطهرات ﷺ د ژوند پورې دغلته اوسيدل ځكه چې دا د هغې"مؤنة"حصه وه كوم چې نبى كريم ﷺ مستثنى كړځولې وه،لكه څنګه چې ئې د هغوى نفقه مستثنى كړځولې وه چې"ماتركت بعد نفقة أهلى و مؤنة عاملى فهو صدقة"[1] هم دا د اهل علمو قول دې او هم دې لره امام ابن عبد البر[2] او ابن العربى وغيره غوره كړې دې.

ددې دليل دادې چې ازواج مطهرات ﷺ په كومو كورونو كښې مقيمې وې،د هغوى د وفات نه پس دغه كورونه د هغوى د وارثانو طرفته منتقل نهٔ شو،ددې وجې نه دا ددې خبرې واضحه دليل دې چې دا كورونه د دوى په ملكيت كښې نهٔ وو،صرف مسكن(د اوسيدلو دپاره)وو چې كله دوى وفات شوې نو دغه كورونه د مسجد نبوى ﷺ حصه او كړځولې شو او ددې كورونو په ذريعې سره د مسجد نبوى توسيع اوكړې شوه[3]

**د امام بخارى او د حضرت كنګوهى رائې:** د حضرت شيخ الحديث د قول مطابق د امام بخارى رائې دا معلوميږى چې هغوى ددې كورونو د ملكيت قائل وو چې ازواج مطهرات ﷺ په دې كورونو كښې د ملكيت په حيثيت سره مقيمې وې،لكه مصنف"وما نسب اليهن من البيوت"

---

[1] الحديث،مر تخريجه فى الباب السابق عن أبى هريرة رضى الله عنه)۔

[2] التمهيد لابن عبدالبر:۸/۱۷۲ـ۱۷٤،واحكام القرآن لابن العربى:۳/٦۱۲ـ٦۱۳،المسئلة الثالثة،سورة الاحزاب،الآية:۵۳)۔

[3] انتهى ما قاله سليمان الجمل رحمه الله مختصراً،نقلا عن تعليقات اللامع:۷/۲۹۵،والابواب والتراجم للشيخ الكاندهلوى:۱/۲۰۵،وحاشية الجمل على الجلالين:٦/۱۹۲ـ۱۹۳،سورة الاحزاب/۵۳، دغه شان اوګورئ، ابن ابطال:۵/۲٦۳،والديباج للسيوطى:۲/۲۲٤)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وئيلو سره غالباً ددې خبرې طرفته اشاره كړې ده۔

ليكى: "وقول البخارى فى الترجمة:"ومانسب إليهن"لعله إشارة إلى ترجيح ملكهن"(۱)

او هم دا رائې د حضرت گنگوهى هم ده،ارشاد فرمائى:

"يعنى بذلك أن إضافتها إليهن تمليكة،واليه صلى الله عليه وسلم لادنى ملابسة،فكان قد ملكهن إياها قبل الموت،فلا يعترض على قوله:"لانورث،ماتركناه صدقة""(۲)

او ابن المنير ددې خلاف رائې اختياره كړې ده او فرمائى چې امام بخارى دلته دا وئيل غوارى چې دې كورونو كښې ازواج مطهرات ﷺ ته د اوسيدلو اختيار وو،مالكانه اختيارات ورته نۀ وو،فرمائى:

"وساق البخارى الاحاديث التى تنسب إليهن البيوت فيها تنبيها على أن هذه النسبة تحقق دوام استحقاقهن للبيوت مابقين"(۳)

**يو اهم خبرداري:** حافظ ابن حجر،علامه قسطلانى او شيخ الاسلام زكريا انصارى وغيره په كتاب الوضوء(۴)كښې پورته ذكر شوې اولنې احتمال چې نبى كريم ﷺ دا كورونه ازواج مطهرات ﷺ ته هبه كړې وو او د دغه كورونو ئې مالكانې جوړې كړې وې،ذكر كړې دې او دا قول ئې هلته اختيار كړې دې،او دلته كتاب الخمس ته رارسيدلو سره دې حضراتو دلته ددې خبرې وضاحت كړې دې چې حضور اكرم ﷺ كوم كورونه ازواج مطهرات ﷺ ته وركړې وو نو هغه د هغوى ملكيت نۀ وو بلكه هلته د هغوى قيام صرف د اوسيدلو په حيثيت سره وو،لكه څنګه چې ښځې ته نفقه وركولې شى او د اوسيدلو دپاره ورته كور وركولې شى نو هغه د هغې مالكه نۀ وى او دې حضراتو دا وضاحت هم كړې دې چې هم دا وجه ده چې د هغوى د وارثانو طرفته دغه كورونه منتقل نۀ شو(۵)

په حافظ صاحب،علامه قسطلانى او شيخ زكريا انصارى ټولو باندې دا اعتراض كيږى چې هلته په كتاب الوضوء كښې مو څۀ وئيل او دلته په كتاب الخمس كښې څۀ وائې،ليكن دا اشكال په علامه عينى(۶)باندې نۀ كيږى ځكه چې هغوى دا احتمال په كتاب الوضوء كښې نۀ دې ذكر كړې چې د ازواج مطهرات ﷺ قيام په دغه كورونو كښې په مالكانه حيثيت سره وو(۷)

---

۱) تعليقات اللامع:۷/۲۹۵،والابواب والتراجم:۱/۲۰۵)_

۲) لامع الدرارى:۷/۲۹٤،والابواب والتراجم:۱/۲۰۵)_

۳) المتوارى:۱۸۶-۱۸۷)_

٤) فتح البارى للعسقلانى،كتاب الوضوء،باب من تبرز على لبنتين،رقم(۱٤۵)،وشرح القسطلانى: ۱/۲۳۸، باب التبرز فى البيوت،وتحفة البارى:۱/۱۵۸،باب التبرز فى البيوت)_

۵) فتح البارى:۶/۲۱۱،وتحفة البارى:۳/۵۳۷،وشرح القسطلانى:۵/۱۹۷)_

۶) عمدة القارى:۲/۲۸۶،كتاب الوضوء،باب التبرز فى البيوت)_

۷) عمدة القارى:۱۵/۲۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې نه پس خان په دې پوهه کړئ چې امام بخاری د ترجمة الباب لاندې اووه احادیث ماركه ذكر كړې دی، اولنې حدیث د حضرت عائشې صدیقې رضي الله عنها دې.

۲۹۳: (۱) حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى وَمُحَمَّدٌ قَالَا أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَيُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - اسْتَأْذَنَ أَزْوَاجَهُ أَنْ يُمَرَّضَ فِي بَيْتِي فَأَذِنَّ لَهُ. [ر: ۱۹۵]

## رجال الحديث

① **حبان بن موسى**: دا د امام بخاری شیخ حبان بن موسی السلمی المروزی دې[۲]

② **محمد**: د محمد نه مراد ابن المقاتل مروزی دې، د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب ما يذكر في المناولة، وكتاب أهل العلم......." کښې بیان شوې ده[۳]

③ **عبدالله**، ④ **معمر**، ⑤ **یونس**: د عبدالله نه مراد ابن المبارک، د معمر نه ابن راشد او د یونس نه مراد ابن یزید ایلی دې - ددې ټولو حضراتو ترجمه د "بدء الوحی" د "الحدیث الخامس" لاندې تیره شوې ده[۴].

⑥ **الزهری**: دا امام محمد بن مسلم ابن شهاب الزهری دې - د دوی حالات د "بدء الوحی" په "الحدیث الاول" کښې تیر شوې دی[۵].

⑦ **عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود**: دا د مدینې منورې مشهور فقیه حضرت عبید الله بن عبد الله بن عتبه بن مسعود ې - د دوی حالات هم د "بدء الوحی" په "الحدیث الخامس" کښې تیر شوې دی[۶]

⑧ **عائشه**: د حضرت عائشې صدیقې رضي الله عنها حالات د "بدء الوحی" په اولنی حدیث کښې تیر شوې دی[۷]

**قوله: أن عائشة زوج النبي صلى الله عليه وسلم قالت: لما ثقل رسول الله..:**

---

[۱] ) قوله: عائشة رضی الله عنها.....": مر تخریجه فی الوضوء، باب الغسل والوضوء فی المخضب......)_

[۲] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان، باب یسلم حین یسلم الامام)_

[۳] ) کشف الباری: ۲۰۶/۳)_

[۴] ) کشف الباری: ۴۶۲/۱ - ۴۶۶، د یونس بن یزید دپاره مزید اوګورئ: کشف الباری: ۲۸۲/۳)_

[۵] ) کشف الباری: ۳۲۶/۱)_

[۶] ) کشف الباری: ۴۶۶/۱ و: ۱۳۷۹/۳)_

[۷] ) کشف الباری: ۲۹۱/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عبیدالله بن عبدالله فرمائی چې حضرت عائشه اوفرمائیل چې کله د رسول الله مبارک طبیعت ناساز شو نو دوی د نورو بیبیانو نه ددې خبرې اجازت واخستلو چې دوی به دبیمارئ په ورځو کښې زما په کور کښې او سیږی نو ازواج مطهرات ﷺ ورته اجازت ورکړو.

دویم حدیث هم د حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها دې.

۲۹۳۳ (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا نَافِعٌ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ- رضى الله عنها تُوُفِّيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فِي بَيْتِي، وَفِي نَوْبَتِي، وَبَيْنَ سَحْرِي وَنَحْرِي، وَجَمَعَ اللَّهُ بَيْنَ رِيقِي وَرِيقِهِ. قَالَتْ دَخَلَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بِسِوَاكٍ، فَضَعُفَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْهُ، فَأَخَذْتُهُ فَمَضَغْتُهُ ثُمَّ سَنَنْتُهُ بِهِ. [ر: ۸۵۰]

## رجال الحدیث

① ابن ابی مریم: دا ابومحمد سعید بن الحکم بن ابی مریم الجمحی دې. د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب من سمع شیئا فراجع حتی یعرفه" کښې تیره شوې ده(۲)

② نافع: دا نافع بن یزید مصری دې(۳)

③ ابن ابی ملیکه: دا عبیدالله بن ابی ملیکه دې. د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله......" کښې تیر شوې دي(٤)

④ عائشه: د حضرت عائشه صدیقه تذکره په "بدء الوحی" کښې تیره شوې ده(۵)

**قوله:** قالت عائشة رضی الله عنها: توفی النبی صلی الله علیه وسلم فی بیتی.....: حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چې د نبی کریم ﷺ انتقال زما په کور کښې، زما د نمبر والا ورځ، زما په سینه باندې (داسې چې د نبی کریم ﷺ سر مبارک زما په سینه باندې پروت وو)، اوشو او الله تعالی زما لاړې او د نبی کریم ﷺ لاړې مبارکې جمع کړې هغه داسې چې حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه چې راغې نو مسواک ورسره وو، نبی ﷺ کښې دومره طاقت نۀ وو چې هغه ئې چوپلې وو، نو ما مسواک واخستلو، هغه مې په خلۀ کښې نرم کړو، بیا مې ورله مسواک اوکړو.

او د حدیث پوره تفصیلی تشریح وړاندې په کتاب الجمعه کښې تیره شوې ده(٦)

---

[1]) قوله: قالت عائشة رضی الله عنها": الحدیث، مر تخریجه فی کتاب الجمعة، باب من تسوک........)_

[2]) کشف الباری : ٤/١٠٦)_

[3]) د دوی حالات کتلو دپاره اوګورئ، کتاب الجنائز، باب الدخول علی المیت بعد الموت اذا......)_

[4]) کشف الباری :٢/٥٤٨)_

[5]) کشف الباری :١/٢٩١)_

[6]) صحیح البخاری، کتاب الجمعة، باب من تسوک........رقم (٨٩٠))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د باب دریم حدیث د ام المؤمنین حضرت صفیه دې.

۲۹۳۴ (۱) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ أَنَّ صَفِيَّةَ زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - تَزُورُهُ، وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فِي الْمَسْجِدِ فِي الْعَشْرِ الأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ ثُمَّ قَامَتْ تَنْقَلِبُ فَقَامَ مَعَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى إِذَا بَلَغَ قَرِيبًا مِنْ بَابِ الْمَسْجِدِ عِنْدَ بَابِ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - مَرَّ بِهِمَا رَجُلاَنِ مِنَ الأَنْصَارِ، فَسَلَّمَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، ثُمَّ نَفَذَا فَقَالَ لَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «عَلَى رِسْلِكُمَا». قَالاَ سُبْحَانَ اللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ. وَكَبُرَ عَلَيْهِمَا ذَلِكَ. فَقَالَ «إِنَّ الشَّيْطَانَ يَبْلُغُ مِنَ الإِنْسَانِ مَبْلَغَ الدَّمِ، وَإِنِّي خَشِيتُ أَنْ يَقْذِفَ فِي قُلُوبِكُمَا شَيْئًا». [ر: ۱۹۳۰]

## رجال الحدیث

①**سعید بن عفیر:** دا سعید بن کثیر بن عفیر دې. د دوی تفصیلی تذکره کتاب العلم، "باب من یرد الله به....." کښې تیره شوې ده(۲)

②**اللیث:** دا مشهور محدث لیث بن سعد فهمی دې. د دوی حالات د "بدء الوحی" په "الحدیث الاول" کښې تیر شوې دی(۳)

③**عبدالرحمن بن خالد:** دا عبد الرحمن بن خالد دې. د دوی ترجمه تفصیل سره د کتاب العلم، په "باب السمر فی العلم" کښې تیره شوې ده(۴)

④**ابن شهاب:** د ابن شهاب الزهری مختصر حالات د "بدء الوحی" په "الحدیث الاول" کښې تیر شوې دی(۵)

⑤**علی بن حسین:** دا امام زین العابدین علی بن حسین بن علی دې(۶)

⑥**صفیه:** دا ام المؤمنین حضرت صفیه بن حیی رضی الله عنها ده(۷)

---

(۱) قوله: ان صفية ...... "الحديث، مر تخريجه فى الاعتكاف، باب هل يخرج المعتكف الى.....؟)_

(۲) کشف الباری :۲۷٤/۳)_

(۳) کشف الباری :۳۲٤/۱)_

(۴) کشف الباری :٤۰۵/٤)_

(۵) کشف الباری :۳۲۶/۱)_

(۶) د دوی حالات کتلو دپاره اوګورئ: کتاب الغسل، باب الغسل بالصاع ونحوه)_

(۷) د دوی حالات کتلو دپاره اوګورئ: کتاب الحیض، باب المراة تحیض بعد الافاضة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حديث شريف ترجمه:** حضرت صفيه رضي الله عنها فرمائى چې دا يو ځل د رسول الله مبارك ﷺ د ملاقات دپاره مسجد نبوى ته حاضره شوه، چرته چې نبى كريم ﷺ د رمضان المبارك په آخرى عشره كښې معتكف وو، د ملاقات نه پس د رخصتيدو دپاره اودريده نو نبى ﷺ ورسره هم اودريدلو او ورسره روان شو، تردې چې كله د مسجد دروازې ته اورسيدل كوم چې د باب ام سلمه سره متصله وه، هغې ته نزدې اورسيدل نو ددې دواړو خوا ته دوه انصارى صحابه تير شو، هغوى نبى كريم ﷺ ته سلام اوكړو، بيا وړاندې تير شو نو نبى ﷺ دغې دواړو ته اوفرمائيل چې آرام سره ځائې (څۀ داسې خبره نشته) هغې دواړو حضراتو اووئيل، يا رسول الله! سبحان الله! (دا جمله هغوى د تعجب د وجې نه اووئيل) او په دې دواړو باندې د نبى ﷺ خبره ډيره سخته اولګيده، نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې بيشكه شيطان د انسان په بدن كښې داسې ګرځى لكه څنګه چې وينه ګرځى. او ماته دا ويره شوه چې شيطان ستاسو دواړو په زړونو كښې د بدګمانئ څۀ تخم اونۀ كرى.

**مختصر تشريح:** علامه قسطلانى په لفظ د قيل سره نقل كړې دى چې دا دواړه حضرات حضرت اسيد بن حضير او عباد بن بشر وو[1]

حضرت امام شافعى فرمائى چې په نبى ﷺ باندې د بهتان د تړلو نتيجه چونكه د كفر نه سوا بل څۀ نۀ ده، په دې وجه نبى كريم ﷺ ته دا ويره شوه چې دا دواړه هسې نۀ د كفر ارتكاب اونكړى، لهذا نبى ﷺ وړاندې والې اوكړو او اصل خبره ئې ورته اوښودله او شيطان ته ئې دا موقع ورنكړه چې ددې دواړو په زړونو كښې څۀ وسوسه واچوى، څۀ غلط تصور په كښې واچوى چې د هغې د وجې نه دوى هلاک او برباد شى.

علامه قسطلانى فرمائى: قال إمامنا الشافعى (رحمه الله): خاف عليهما الكفر إن ظنا به تهمة، فبادر إلى إعلامهما نصيحةً لهما قبل أن يقذف الشيطان في قلوبهما شيئاً يهلكان به"[2]

د باب څلورم حديث د حضرت ابن عمر دې.

۲۹۳۵ (۳) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنْ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ ارْتَقَيْتُ فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ، فَرَأَيْتُ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقْضِى حَاجَتَهُ، مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ، مُسْتَقْبِلَ الشَّأْمِ. [ر: ۱۴۵]

---

[1]) شرح القسطلانى :۱۹۸/۵، وفتح البارى :۲۸۰/۴، الاعتكاف، وتهذيب تاريخ دمشق الكبير:۴۲۹/۶، وشرح ابن ماجه، كتاب الصوم، باب المعتكف يزوره اهله فى المسجد، رقم (۱۷۷۰))_

[2]) شرح القسطلانى :۱۹۸/۵)_

[3]) قوله: عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما": الحديث، مر تخريجه فى الضوء، باب التبرز فى البيوت)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

① ابراهيم بن المنذر: دا ابراهيم ابن المنذر القرشى الحزامى دې. د دوى تذكره په كتاب العلم، "باب من سئل علما وهو....." كښې تيره شوې ده[1].

② انس بن عياض: دا انس بن عياض ابوضمره ليثى دې.

③ عبيدالله: دا عبيد الله بن عمر بن حفص بن خطاب دې[2]

④ محمد بن يحيى بن حبان: دا محمد بن يحيى بن حبان دې.

⑤ واسع بن حبان: دا د پورتنى راوى تره واسع بن حبان دې[3]

⑥ عبدالله بن عمر: مشهور صحابى حضرت ابن عمر حالات په كتاب الايمان، "باب الايمان، وقول النبى صلى الله عليه وسلم......" كښې تير شوې دى[4].

**قوله: عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما قال: ارتقيت فوق بيت......:**

حضرت ابن عمر فرمائى چې زۀ د خپلې خور بى بى حضرت حفصه رضي الله عنها د كور په چت باندې اوختلم نو اومې كتل چې نبى كريم ﷺ د قبلې طرفته شا كړې او د شام ملک طرفته ئې مخ كړې خپل حاجت پوره كوى.

د كتاب الوضوء په روايت كښې "فوق ظهر بيت حفصة"[5] دې. مقصود د دواړو روايتونو يو دې يعنى د كور په چت باندې ختل مراد دى او هلته ددې خبرې هم وضاحت دې چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د خپل څۀ ضرورت دپاره په چت باندې ختلې وو[6]

پنځم حديث د حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها دې.

٢٩٣٦[7]: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَائِشَةَ-رضى الله عنها-قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-يُصَلِّى الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ لَمْ تَخْرُجْ مِنْ حُجْرَتِهَا.[ر: ٥١٩]

---

[1] ) كشف البارى :(٣/٥٨)_

[2] ) ددې دواړو حالات كتلو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء ،باب التبرز فى البيوت)_

[3] ) ددې دواړو حالات كتلو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء ،باب من تبرز على لبنتين)_

[4] ) كشف البارى :(١/٦٣٧)_

[5] ) كتاب الوضوء ،باب التبرز فى البيوت،رقم (١٤٨))_

[6] ) د حديث مزيد وضاحت دپاره اوګورئ (كشف البارى)،كتاب الوضوء ،باب التبرز فى البيوت ،وباب من تبرز على لبنتين)_

[7] ) قوله: ان عائشة رضى الله عنها":الحديث ،مر تخريجه فى مواقيت الصلاة، باب مواقيت الصلاة.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

① ابراهيم بن المنذر، ② انس بن عياض: ددې دواړو دپاره سابقه سند اوګورئ.

③ هشام: دا مشهور محدث حضرت هشام بن عروه بن زبير دې.

④ ابيه: د اب نه مراد حضرت عروه بن زبير بن العوام دې.

⑤ عائشة: دا حضرت عائشه ده. ددې درې واړو حضراتو تذکره د "بدء الوحی" په "الحديث الاول" کښې تيره شوې ده[1]

**قوله:** أن عائشة رضي الله عنها قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم

...... : حضرت عائشه فرمائي چې رسول الله مبارک به د مازيګر مونځ ورکوو او هغه وخته پورې به نمر د حضرت صديقې ﷺ د حجرې نه وتلې نۀ وو.

شپږم حديث د حضرت ابن عمر ﷺ دې.

۲۹۳۷: [2] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنه. قَالَ قَامَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - خَطِيبًا فَأَشَارَ نَحْوَ مَسْكَنِ عَائِشَةَ فَقَالَ «هُنَا الْفِتْنَةُ - ثَلَاثًا - مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ» [۴۹۹۰، ۳۳۲۰، ۳۱۰۵، ۶۶۷۹، ۶۶۸۰، وانظر: ۹۹۰]

## رجال الحديث

① موسى بن اسماعيل: دا موسى بن اسماعيل تبوذکی بصری دې. د دوی تذکره د "بدء الوحی" په "الحديث الرابع" کښې تيره شوې ده[3]

② جويريه: دا جويريه بن اسماء الضبعی البصری دې[4]

③ نافع: دا نافع مولی ابن عمر دې. د دوی حالات په کتاب العلم، "باب ذکر العلم والفتيا فی المسجد" کښې تير شوې دی[5].

---

[1] ) کشف الباری: ۲۹۱/۱، هشام او عروه دپاره مزيد اوګورئ، کشف الباری: ۴۳۲/۲ _ ۴۴۰)_

[2] ) قوله: عن عبدالله رضی الله عنه": الحديث، اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق ايضا، باب صفة ابليس وجنوده، رقم (۳۲۷۹)، وکتاب المناقب، باب بلا ترجمة، بعد باب نسبة اليمن الى اسماعيل، رقم (۳۵۱۱)، وکتاب الطلاق، باب الاشارة فی الطلاق والامور، رقم (۵۲۹۶)، وکتاب الفتن، باب قول النبی صلی الله عليه وسلم: (الفتنة من قبل المشرق)، رقم (۷۰۹۲_۷۰۹۳)، ومسلم فی صحيحه، کتاب الفتن......باب الفتنة من المشرق من حيث.....رقم(۷۲۵۲_۷۲۶۷)، ولترمذی فی سننه، ابواب الفتن، باب فی العمل فی الفتن...... رقم (۲۲۶۸)

[3] ) کشف الباری: ۴۳۳/۱)_

[4] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الغسل، باب الجنب يتوضا ثم.....)_

[5] ) کشف الباری: ۶۵۱/۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

(۳) عبدالله: د حضرت ابن عمر حالات په کتاب الایمان، "باب الایمان، وقول النبی صلی الله علیه وسلم ......." کښې تیر شوې دی[1]

**قوله: قال: قام النبی صلی الله علیه وسلم خطیباً، فأشار نحو مسکن عائشة، فقال: هنا الفتنة ـ ثلاثاً ـ من حیث یطلع قرن الشیطان:** حضرت ابن عمر فرمائی چې نبی کریم د خطبې (تقریر) کولو دپاره اودریدو نو د حضرت عائشې صدیقې مسکن طرفته ئې اشاره اوفرمائیله او وې فرمائیل، دلته فتنه ده، دا خبره ئې درې ځله ارشاد اوفرمائیله، د چرته نه چې د شیطان ښکر ښکاره کیږی.

دا خودحدیث ترجمه شوه، په دې حدیث کښې څو مباحث دی، چې هغه مونږ لاندې ذکر کوو.

**نبی دا خبره چرته ارشاد اوفرمائیله؟** پورته دا خبره بیان کړې شوه چې نبی ﷺ د حضرت عائشې ؓ د کور طرفته اشاره کولو سره پورته خبره ارشاد اوفرمائیله لیکن دغه وخت نبی ﷺ په خپله چرته موجود وو، په دې حوالې سره روایت کښې څۀ صراحت نشته.

په دې سلسله کښې درې قسمه روایتونه دی، د مسلم په یو روایت[2] کښې د "قام عند باب حفصة" الفاظ دی او په دویم [3] کښې د "عند باب عائشة" او په یو بل روایت کښې چې د جامع ترمذی [4] دې، کښې د "قام رسول الله صلی الله علیه وسلم علی المنبر....." کلمات دی.

امام زرقانی ددې ټولو روایتونو مینځ کښې تطبیق کولو سره فرمائی چې ممکنه ده چې نبی ﷺ د مذکوره دواړو بیبیانو په دروازو کښې د یوې د دروازې نه راوتلې وی او ددې دواړو دروازې نزدې وې، لکه یو ځل اشاره نبی ﷺ هغه وخت اوفرمائیله کوم وخت چې نبی ﷺ د دواړو دروازو مینځ کښې ولاړ وو چې د هغې تعبیر کله په "باب حفصه" سره شوې دې او کله په "باب عائشه" سره شوې دې، بیا د منبر طرفته لاړل او دویم ځل باندې ئې اشاره اوفرمائیله، بیا په منبر باندې اودریدل او په دریم ځل باندې ئې اشاره اوفرمائیله[5]

دا یو ښۀ تطبیق دې، ددې نه علاوه بل څۀ د تطبیق صورت ښکاره په نظر هم نۀ راځی او دا روایت د واقعې په تعدد باندې هم محمول کیدې نۀ شی ځکه چې مخرج یو دې یعنی ابن عمر، لکه زرقانی فرمائی:

"فان ساغ هذا، والا فیطلب جمع غیره، ولا یجمع بتعدد القصة، لاتحاد المخرج، وهو ابن عمر" [6]

---

[1] ) کشف الباری: ۱/۶۳۷)_

[2] ) صحیح مسلم، کتاب الفتن، باب الفتنة من المشرق من حیث یطلع.....رقم(۷۲۵۳))_

[3] ) پورته حواله، رقم(۷۲۵۴))_

[4] ) جامع الترمذی، ابواب الفتن، باب فی العمل فی الفتن، رقم(۲۲۶۸))_

[5] ) شرح الزرقانی علی المؤطا: ۴/۳۸۴، والاوجز: ۱۷/۳۵۲، وفتح الباری: ۱۳/۴۶)_

[6] ) شرح الزرقانی علی المؤطا: ۴/۳۸۴ـ۳۸۵، ماجاء فی المشرق، رقم(۱۸۹۰)، والاوجز: ۱۷/۳۵۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

البته حضرت شیخ الحدیث د امام زرقانی سره اختلاف کوی او فرمائی چې دې روایتونو لره د واقعې په تعدد باندې حمل کولو کښې هیڅ مانع نشته چې دا روایات د واقعې په تعدد باندې حمل کړې شی ځکه چې د روایتونو په سیاق و سباق کښې ډیر زیات اختلاف دې لکه نبی ﷺ د فتنې متعلق مضمون طرفته څو ځله تنبیه کړې وه او دې لره حضرت ابن عمر رضی الله عنهما او نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم د خپلې خپلې سماع مطابق روایت کړې دی[1]

**نبی اشاره کوم طرفته کړې وه؟**: د باب په حدیث شریف کښې خو دا راغلې دی چې نبی کریم د حضرت عائشې کور او مسکن طرفته اشاره اوفرمائیله او وې فرمائیل چې فتنه دلته ده.

او ددې روایت په نورو طرقو کښې لفظ د "مشرق" راغلې دې چې پیغمبر د مشرق طرفته اشاره اوکړه، ددې ټولو طرقو طرفته نظر کولو نه پس به هم دا وئیلې کیږی چې عائشې د مسکن نه د مشرق طرف مراددې او د "هنا" مشارالیه مشرق دې[2]

د حضرت عائشې کور ترینه هیڅکله مراد نهٔ دې لکه څنګه چې د روافضو او د شیعه ګانو خیال دې، هغوی دې حدیث لره بنیاد جوړوی او په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې الزامات لګوی چې نبی پاک ﷺ د هغې کور لره د فتنو سرچشمه ګرځولې ده. العیاذبالله. لیکن څنګه چې تاسو اوکتل او وړاندې به هم خبره راځی چې دلته د هنا نه مراد د مشرق طرف دې.

**د مشرق نه څهٔ مراد دې؟**: په دې کښې د علماؤ مختلف اقوال دی:

د اکثرو عالمانو رائې داده چې د مشرق نه مراد نجد دې، ددې په دلیل کښې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما یو روایت پیش کړې شوې دې چې:

"ذکر النبی صلی الله علیه وسلم: اللهم بارك لنا فی شامنا، اللهم بارك لنا فی یمننا، قالوا: یا رسول الله، وفی نجدنا؟ قال: اللهم بارك لنا فی شامنا، اللهم بارك لنا فی یمننا، قالوا: یا رسول الله، وفی نجدنا! فاظنه قال فی الثالثة: هناك الزلازل والفتن، وبها یطلع قرن الشیطان[3]

"نبی ﷺ یوه ورځ د شام او د یمن ذکر کولو کښې ددې دواړو دپاره د برکت دعا اوفرمائیله، صحابه کرامو رضی الله عنهم درخواست اوکړو چې دا دعا د نجد دپاره هم اوکړئ، لیکن نبی کریم ﷺ هغه اولنۍ خبره دوباره ارشاد اوفرمائیله، صحابه کرامو بیا درخواست اوکړو چې د نجد دپاره هم دعا اوکړئ، غالباً په دریم ځل باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په نجد کښې خو به زلزلې او فتنې وی، د هغې ځائې نه به د شیطان ښکر ښکاره کیږی".

ددې حدیث شریف نه استدلال کولو سره بعضې حضراتو د مشرق نه نجد مراد اخستلو لره

---

[1]) أوجزالمسالک: ۱۷/۳۵٤)_

[2]) پورته حواله)_

[3]) الحدیث، اخرجه البخاری، کتاب الفتن، باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: الفتنة من قبل المشرق، رقم(۷۰۹٤)، وکتاب الاستسقاء، باب ماقیل فی الزلازل......رقم(۱۰۳۷)، والترمذی، کتاب المناقب، باب فی فضل الشام والیمن، رقم(۳۹۵۳))

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راجح ګرځولې دي[1]
او بعضې نور عالمان د مشرق نه مراد عراق اخلي،د هغوی استدلال د حضرت سالم بن عبدالله بن عمر ددې روايت نه دې،ابن فضيل د خپل والد صاحب نه نقل کوی
"سمعت سالم بن عبد الله بن عمر يقول: يا اهل العراق، ما اسئلكم عن الصغيرة، وار كبكم للكبيرة؟! سمعت أبي عبدالله بن عمر يقول: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "إن الفتنة تجيئ من ههنا" و اوما بيده نحو المشرق "من حيث يطلع قرنا الشيطان" وانتم يضرب بعضكم رقاب بعض....."[2]
چې حضرت سالم اهل عراق ته د خطاب کولو دوران کښې اوفرمائيل چې تاسو څومره عجيبه خلق ئې،د ورو ګناهونو په باره کښې خو ښۀ تپوسونه کوئ او د لوئې ګناهونو نه ځان نۀ ساتئ؟ما د خپل والد عبدالله رضی الله عنه او هغوی د رسول الله مبارک ﷺ نه اوريدلي دی چې "فتنه به ددې ځائې نه اوچتيږی"او نبی ﷺ د لاس مبارک په اشارې سره د مشرق طرفته اشاره اوکړه،"د کوم ځائې نه به چې د شيطان دواړه ښکرونه ښکاره کيږی"او تاسو خلق(اهل عراق)د يو بل سرونه وهئ......"
نو په دې حديث کښې د مشرق نه عراق او د اهل مشرق نه اهل عراق مراد دی[3]
د مؤطا مالک او د کنزالعمال وغيره روايت دې چې حضرت عمر دا عزم اوکړو چې هغه به د ټولو اسلامی ښارونو دوره کوی نو حضرت کعب احبار هغوی د خپل عزم نه منع کړل او ورته ئې اوفرمائيل:"لاتات العراق،فان فيه تسعة اعشار الشر"[4]
دې ټولو روايتونو ته په نظر کولو سره ډيرو عالمانو د مشرق نه عراق مراد اخستلې دې.
**د دواړو قولونو مينځ کښې تطبيق:** څنګه چې تاسو پورته اوکتل چې بعضې حضراتو د مشرق نه مراد نجد او بعضو عراق مراد اخستلې دې ليکن ددې دواړو مينځ کښې هيڅ منافات نشته،اوس چې د نجد په حوالې سره کوم روايت تير شوې دې په هغې کښې د نجد څۀ مخصوص علاقه مراد نۀ ده،د حديث شارحينو دلته نجد په لغوی معنی باندې محمول کړې دې او عموم يئ مراد اخستلې دې،د نجد لغوی معنی "ما ارتفع من الارض" ده،يعنی هغه علاقه چې د زمکې د سطحې نه اوچته وی،دغه شان به په دې حديث کښې عراق هم داخل شی،علامه خطابی رحمه الله فرمائی چې نجد په مشرقی طرف کښې دې او د اهل مدينه چې کوم نجد دې هغه د عراق ديهات او د هغې طرفونه دی،هم دا د اهل مدينه مشرق دې،ځکه چې د نجد لغوی معنی "ما ارتفع من الارض" ده.[5]

---

[1] ) تکملة فتح الملهم:۱۶۲/۶،وفتح الباری:۴۷/۱۳)_
[2] ) صحيح مسلم،کتاب الفتن،باب الفتنة من المشرق،من حيث يطلع.....رقم،(۷۲۵۷))_
[3] ) تکمله فتح الملهم:۱۶۲/۶،وشرح الابی علی مسلم:۱)_
[4] ) المؤطا:۹۷۵/۲،کتاب الاستئذان،باب ماجاء فی المشرق،رقم(۳۰)،وکنزالعمال:۱۷۳/۱۴،مسند عمر،رقم(۳۸۲۷۹)،و المصنف لابن ابی شيبة:۱۶۸/۲۱،کتاب الفتن،من کره الخروج فی الفتنة،رقم(۳۸۵۶۱))_
[5] ) قال الحموی: نجد:بفتح اوله،وسکون ثانيه،قال النضر:النجد:قفاف الارض وصلابها،وما غلظ منها واشرف،والجماعة النجاد......".انظر معجم البلدان:۲۶۱/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وقال الخطابي رحمه الله: نجد: ناحية المشرق، ومن كان بالمدينة كان نجده بادية العراق ونواحيها، وهي مشرق أهلها، وأصل النجد: ما ارتفع من الارض........"[1]

**د فتنې نه څهٔ مراد دی؟**: د باب په حديث شريف کښې چې د مشرق د فتنې کومه پيشن گوئی ده، يو بل حديث چې د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنهما نه روايت دې، په هغې کښې دا پيشن گوئی د مدينې منورې سره متعلق ده چې په مدينه منوره کښې به دا فتنه ښکاره کيږی، نبی عليه السلام فرمائی: "فاني لارى الفتن تقع خلال بيوتكم كوقع القطر"[2] چې "زهٔ ستاسو کورونو کښې راتلونکې فتنې داسې وينم لکه څنګه چې باران راځی".

دغه شان يو حديث کښې راغلې دی، کوم چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې:

"ستكون فتن، القاعد فيها خير من القائم"[3]

په دې حديث شريف کښې د ډيرو فتنو د ښکاره کيدو پيشن گوئی ده. ددې ټولو احاديثو مينځ کښې تطبيق دادې چې د باب د حديث شريف او د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنهما په حديث کښې د فتنې نه مراد د دريم خليفه حضرت عثمان رضي الله عنه قتل دې، او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت او نور هغه ټول روايتونه چې په هغې کښې "فتن" د جمعې صيغې سره راغلې دې، په دې کښې د حضرت عثمان رضي الله عنه د قتل نه پس ښکاره کيدونکې نور واقعات او احوال دی.

ددې اجمال تفصيل دادې چې د حضرت عثمان رضي الله عنه قتل د ټولو فتنو او د حوادثو بنياد وو، کوم چې په مدينه منوره باندې اوشو، ددې نه پس فتنه په نورو ښارونو کښې هم ښکاره شوه، د صفين او د جمل جنګونه اوشو، په نهروان کښې چې کوم جنګ اوشو د هغې سبب د صفين واقعه اوګرځيده، ددې وجې نه دا وئيلې کيدې شی چې په اولنۍ صدۍ هجرۍ کښې چې کومې فتنې ښکاره شوې، ددې ټولو وجه او سبب، بنياد د حضرت عثمان رضي الله عنه مظلومانه شهادت وو.

حافظ صاحب رحمه الله فرمائی: "وانما اختصت المدينة بذلك لان قتل عثمان رضى الله عنه كان بها، ثم انتشرت الفتن في البلاد بعد ذلك، فالقتال بالجمل والصفين كان بسبب قتل عثمان رضى الله عنه، والقتال

---

[1]) شرح الخطابي، (اعلام الحديث): ۲۳۳۰/۴، وفتح الباري: ۴۷/۱۳، ددې تعيين وجه داده چې که د نجد نه مطلقاً څهٔ مخصوص علاقه مراد کړې شی نو بيا به مشکل شی، لکه د نجد اطلاق د عرب په ډيرو علاقو باندې کيږی. مثلاً: نجد تهامه، نجد برق، نجد العقاب، نجد مريع او نجد اليمن وغيره وغيره. اوګورئ، معجم البلدان: ۲۶۲/۵_۲۶۵)_

[2]) الحديث، اخرجه البخاري في كتاب الفتن، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم، ويل للعرب......رقم (۷۰۶۰)، وانظر جامع الاصول وتعليقاته: ۳۸/۱۰، ومسند الحميدي: ۲۴۸/۱، احاديث اسامة بن زيد، رضي الله عنهما، رقم (۲۵۲))_

[3]) الحديث، اخرجه البخاري، كتاب احاديث الانبياء، باب علامات النبوة في الاسلام، رقم (۳۶۰۱)، وكتاب الفتن، باب تكون فتنة القاعد فيها خير من القائم، رقم (۷۰۸۱_۷۰۸۲)، ومسلم، كتاب الفتن، باب نزول الفتن كمواقع القطر، برقم (۷۲۴۷_۷۲۴۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بالنهروان كان بسبب التحكيم بصفين، وكل قتال وقع في ذلك العصر إنما تولد عن شئ من ذلك أوعن شئ تولد عنه"[1].

دا تفصيل د هغې حديث شريف وو كوم چې د مدينې منورې سره متعلق وو.

تاريخ كۀ لږ وړاندې اوكتلې شى نو معلومه به شى چې د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت سبب عراق وو، لكه په دريم خليفه باندې چې كوم اعتراضات شوې وو، په هغې كښې يو اعتراض د ښارونو اميران او گورنران وو چې هغوى په مختلفو علاقو باندې كوم گورنران او اميران مقرر كړې وو، په هغې كښې د ټولو نه مخكښې د عراق په امير باندې اعتراض شوې وو، هم دا وروستو د لوئې فتنې سبب اوگرځيدۀ.آخر د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت واقعه پيښه شوه او عراق په مشرقى طرف كښې دې[2].

بيا وروستو اسلامى دنيا د لويو لويو فتنو او حوادثو سره مخامخ شوه، قيامت پورې به دا سلسله جارى وى. أعاذنا الله من جميع الفتن ظاهرها وباطنها.

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى: "فالمراد عندي في هذه الاحاديث مبدأ الفتن، وهو قتل عثمان رضى الله عنه، ومبدؤه كان من العراق......"[3] چون كفر از كعبه برخيزد......

مزيد فرمائى: "كوم سړې چې د حضرت عائشې رضي الله عنها حجرې باندې د فتنې د خائې گمان اوكړې، هغه وخت كله چې ورته د بصرې سفر پيښ شو نو دې بيشكه كافر دې، ځكه چې دا خو د اهل ايمان د سردار محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم ټهكانه ده.چې د هغوى په نوم اوريدو سره كفر او فتنې تختى او د مزې خبره داده چې حضرت عائشه رضي الله عنها ددې حجرې نه د حج ادا كولو دپاره روانه شوې وه نۀ چې د فتنې پيدا كيدو دپاره، كه حضرت عائشه رضي الله عنها فتنه انگيزه اوگرځولې

---

[1]) فتح البارى:۱۳/۱۳،رقم (۶۶۵۱)،وايضا انظر الاستذكار:۵۲۹/۷،والاوجز:۳۴۵/۱۷)_

[2]) فتح البارى:۴۷/۱۳،والاوجز:۳۵۴/۱۷)_

[3]) الاوجز:۳۵۴/۱۷،قال الامام ابو عمر ابن عبد البر رحمه الله : روينا عن حذيفة رضي الله عنه،انه قال: لول الفتن قتل عثمان،وآخرها الدجال"

ومعلوم ان اكثر البدع انما ظهرت و ابتدات من المشرق،و ان كان الذين اقتتلوا بالجمل وصفين منهم كثير من اهل الحجاز والشام،فان الفتنة وقعت فى ناحية المشرق،وكانت سببا الى افتراق كلمة المسلمين ومذاهبهم، و فساد نيات كثير منهم الى اليوم،والى ان تقوم الساعة،والله اعلم".الاستذكار:۵۲۹/۷

او شاه عبدالعزيز محدث دهلوى رحمه الله فرمائى: "په دې امت مرحومه كښې چې كومه لويه فتنه هم پورته شوه، ددغه طرف نه پورته شوه.د ټولو نه اولنۍ فتنه د مالک بن اشتر خروج وو چې هغه او د هغۀ ملگرى د حضرت عثمان شهيد خلاف د كوفې نه راووتل او كوفه د مدينې منورې نه د مشرق په طرف ده. دويمه فتنه د عبيدالله بن زياد ده، كومه چې د حضرت حسين د شهادت سبب اوگرځيده.ددې نه پس د نبوت دعوى كوونكې د مختارثقفى فتنه ښكاره شوه.بيا هم ددې طرفنه اكثر بدعتونه او باطل عقيدې ښكاره كيدې، ددې وجې نه د "روافضو"چشمه هم كوفه ده او د معتزله د پيدا كيدو ځائې بصره ده.واصل بن عطاء بصرى دې.قرامطه د كوفې دعلاقې پيداوارې.خوارج د نهروان نه راووتل او دجال به داصفهان نه راوځى"ملخص از:تحف اثنا عشريه فارسى،مطاعن ام المؤمنين رضي الله عنها طعن نهم، ص :۳۳۷)

شي نو بیا دا حقیقت هم د نظر لاندې ساتل پکار دی چې حضرت عائشه رضي الله عنها مکې مکرمې نه بصرې د پاره روانه شوې وه، بیا خو د حضرت عائشې رضي الله عنها حجرې په ځائې مکې معظمې ته د فتنې ځائې وئیل پکار دی!

چون کفر از کعبه بر خیزد کجا ماند مسلمانی

او چې هرکله د کعبې نه کفر راوخې نو اسلام به چرته باقي شي "

پورته حواله، دغه شان اوګورئ، احکام القرآن لابن العربي: ۳/۵۶۹_۵۷۰، سورة الاحزاب: ۳۲_۳۳، الاية الثامنة، المسالة الخامسة)_ والله اعلم بالصواب.

**د قرن معنی او مراد:** قرن د قاف فتحې او د راء سکون سره ښکر ته وئیلې شي.

علامه داودي رحمه الله فرمائي چې په حقیقت کښې د شیطان ښکر وی.او دا احتمال هم شته چې د قرن نه مراد د شیطان طاقت وی او هغه څیزونه چې د هغې په ذریعې سره هغه خلق ګمراه کوی.حافظ ابن حجر رحمه الله دا راجح ښودلې ده.(۱).

او علامه سیوطي رحمه الله لیکلي دی چې د قرن الشیطان نه مراد د هغۀ ډله او ملګری دی او مطلب دادې چې ددې نه د شیطان ملګری راوخی(۲).

**قرن الشیطان به کله ښکاره کیږی؟:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائي چې زما په نزد د قرن الشیطان د ظهور نه مراد د دجال ښکاره کیدل دی، ځکه چې د دجال ښکاره کیدل د امت محمدیه فتنه ده او داسې فتنه ده چې ددې نه لویه فتنه نشته.مزید فرمائي چې زما ددې قول تائید د حضرت سالم بن عبدالله رضي الله عنه د هغه روایت نه کیږی کوم چې اوس تیر شو، هلته ترتیب دا وو چې اول "الفتنة تجئ من ههنا" فرمائیلې شوې وو ،بیا "من حیث یطلع قرن الشیطان" د حدیث ظاهر سیاق په دې خبره باندې دلالت کوی چې "مجئ الفتنة" جدا څیز دې او "طلوع القرن" جدا څیز دې، دغه شان د طلوع نه مراد خروج دې لکه څنګه چې د ترمذی په یو روایت(۳) کښې هم د "یطلع" په ځائې "یخرج" راغلې دې(۴).والله اعلم بالصواب

**یوه فائده:** په اکثرو روایتونو کښې قرن الشیطان راغلې دې،او د بخاری شریف(۵) په یو روایت کښې شک سره قرن الشیطان او قرن الشمس ذکر دې، دغه شان د مسلم شریف (۶) په یو روایت کښې د قرن تثنیه "قرنا الشیطان" راغلې دې، لیکن راجحه صیغې د مفرد سره د

---

[1] ) وفیه اقوال اخر ایضا،انظر فتح الباری:۱۳/۴۶،وعمدة القاری: ۲۴/۹۹ )_

[2] ) مرقاة المفاتیح:۱۱/۴۰۴)_

[3] ) انظر الجامع للترمذی،ابواب المناقب،باب فی فضل الشام والیمن،رقم (۳۹۵۳))_

[4] ) اوجز المسالک:۱۷/۳۵۵)_

[5] ) صحیح البخاری،کتاب الفتن،باب قول النبی a ؟؟:الفتنة من.......رقم (۷۰۹۲))_

[6] ) صحیح مسلم،کتاب الفتن،باب الفتنة من المشرق......رقم (۷۲۹۷))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شک نه بغیر قرن الشیطان ده (۱).

د باب اووم حدیث شریف د حضرت عمرة بنت عبد الرحمن رحمهما الله تعالی دي.

۲۹۳۸ (۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ عَنْ عَمْرَةَ ابْنَةِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَخْبَرَتْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ عِنْدَهَا، وَأَنَّهَا سَمِعَتْ صَوْتَ إِنْسَانٍ يَسْتَأْذِنُ فِي بَيْتِ حَفْصَةَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَذَا رَجُلٌ يَسْتَأْذِنُ فِي بَيْتِكَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أُرَاهُ فُلَانًا، لِعَمِّ حَفْصَةَ مِنَ الرَّضَاعَةِ، الرَّضَاعَةُ تُحَرِّمُ مَا تُحَرِّمُ الْوِلَادَةُ». [ر: ۲۵۰۳]

## رجال الحدیث

①**عبدالله بن یوسف**: دا عبدالله بن یوسف تنیسی رحمه الله دي.

②**مالک**: دا امام دارالهجرة حضرت مالک بن انس رحمه الله دي.ددې دواړو تذکره د"بدء الوحی"په اولنی حدیث کښې راغلې ده (۳).

③**عبدالله بن ابی بکر**: دا عبدالله بن أبوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم انصاری رحمه الله دي (۴).

④**عمرة**: دا عمرة بنت عبد الرحمن بن سعد رحمهما الله تعالی ده (۵).

⑤**عائشة**: د حضرت عائشې رضي الله عنها تذکره د"بدء الوحی"په اولنی حدیث کښې تیره شوې ده (۲).

**د حدیث شریف ترجمه**: حضرت عمرة فرمائی چې حضرت عائشې رضي الله عنها ماته اووئیل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ماسره وو چې هغوی د یو سړی آواز واوریدهٔ، کوم چې د حضرت حفصه رضي الله عنها کورته د داخلیدو دپاره اجازت غوښتهٔ، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی: نو ما اووئیل یا رسول الله! څوک سړې دې، چې ستاسو کور ته راتلل غواړی. نبی علیه السلام اوفرمائیل زما په خیال دا فلانې دې. دا ئې د حضرت حفصه رضاعی ترهٔ یاد کړو. رضاعت سره هم هغه رشتې حرامیږی کومې چې ولادت سره حرامیږی.

ددې حدیث تشریح په ابواب الرضاع کښې راغلې ده.(۶)

**د باب د حدیثونو ترجمة الباب سره مناسبت**: د باب ټول احادیث مبارکه ترجمة الباب سره واضح مناسبت لری. تفصیل لاندې ذکر کولې شی:

---

(۱) انظر فتح الباری: ۲٤۰/٤، والاوجز: ۳۵۳/۱۷)_

(۲) قولها. "ان عائشة......": الحدیث، مر تخریجه فی کتاب الشهادات، باب الشهادة علی الانساب.....)_

(۳) کشف الباری: ۲۸۹/۱_ ۲۹۰، دغه شان اوګورئ، کشف الباری: ۸۰/۲)_

(٤) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب الوضوء مرتین مرتین)_

(۵) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الحیض، باب عرق الاستحاضة)_

(۶) کشف الباری: ۲۹۱/۱)_

(۷) کشف الباری، کتاب النکاح، ابواب الرضاع: ۱۸۷_۱۸۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

① د اولنی حدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله کښې دې "فی بیتی" چې دلته حضرت عائشې رضی الله عنها د بیت نسبت خپل طرفته کړې دې[1]
② د دویم حدیث شریف مناسبت هم واضح او ښکاره دې.لکه د حضرت عائشې رضی الله عنها په دې جمله "توفی النبی صلی الله علیه وسلم فی بیتی....." کښې مطابقت موجود دې[2]
③ دریم حدیث، چې د حضرت حفصه رضی الله عنها دې، د هغې مطابقت ترجمة الباب سره په دې الفاظو کښې دې، "عند باب أم سلمة...." ځکه چې د دروازې ذکر کول کور ته لازم او مستلزم دی[3]
④ څلورم حدیث، کوم چې د ابن عمر رضی الله عنهما وو، د هغې مناسبت هم ښکاره دې، د هغې الفاظو "فی بیت حفصة" کښې مناسبت موجود دې[4].
⑤ د پنځم حدیث مناسبت "من حجرتها" کښې دې، چې حجره او کور یو څیز دې[5]
⑥ د شپږم حدیث مبارک مطابقت ترجمة الباب سره په دې جمله کښې دې، "فاشار نحو مسکن عائشة" ځکه چې د حضرت عائشې رضی الله عنها مسکن هم د هغې کور وو[6]
⑦ د آخری او د اووم حدیث شریف مناسبت ترجمة الباب سره په "فی بیت حفصة" کښې دې[7]

## ⑤ باب: مَا ذُكِرَ مِن دِرعِ النبیِ صلی الله علیه وسلم وعصاهُ وسیفهِ وقَدَحِه وخاتَمِه،

**ومَا استَعمَلَ الخُلَفَاءُ بعدَهُ مِن ذلكَ مِمَّا لَم تُذكَر قِسمَتُهُ، ومِن شَعرِهِ ونَعلِه وآنِيَتِه ممّا يَتَبَرَّكُ به أصحابُه وغيرُهم بعدَ وفاتِه.**

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د متروکاتو تذکره فرمائیلې ده، دا تذکره ئې ولې فرمائیلې ده؟ دې سره د امام بخاری رحمه الله څهٔ غرض دې؟ په دې سلسله کښې دوه خبرې شوې دی:
① یو خبره خو شوې ده چې اصل کښې د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چې ولاة الامور (حکمرانانو) ته د دې څیزونو په استعمال کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم اتباع او اقتداء کول پکار

---

[1] ) عمدة القاری:۲۹/۱۵، وارشاد الساری:۱۹۷/۵)_
[2] ) پورته حواله جات)_
[3] ) عمدة القاری:۲۹/۱۵، وفتح الباری:۲۱۱/۶)_
[4] ) عمدة القاری:۳۰/۱۵، وارشاد الساری:۱۹۸/۵)_
[5] ) پورته حواله جات)_
[6] ) عمدة القاری:۳۰/۱۵، وفتح الباری:۲۱۱/۶)_
[7] ) عمدة القاری:۳۱/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دی ددې طرفته امام بخاری رحمه الله توجه پیدا کول غواړي.دا قول د علامه مهلب رحمه الله دې(۱)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې په دې کښې نظر او اشکال دې او دا خبره پوهه کښې نهٔ راځی، فرمائی: "وأما قول المهلب: إنه إنما ترجم بذلك ليتاسى......ففيه نظر، وما تقدم أولى، وهو الاليق لدخوله في أبواب الخمس(۲)
حافظ رحمه الله په خپله د ترجمة الباب غرض دا بیان کړې دې چې امام بخاری دا وئیل غواړي چې د رسول الله ﷺ په متروکاتو کښې کوم مال موجود وو او کوم څیزونه چې موجود وو نو په هغې کښې وراثت جاری نهٔ شو،نهٔ هغه خرڅ کړې شو.بلکه هغه د نبی کریم ﷺ متروکات او تبرکات اوګرځولې شو او باقی اوساتلې شو،دې دپاره چې خلق ددې نه تبرک حاصل کړی،هم دا رائې هغوی الیق او غوره ګرځولې ده(۳)
شیخ الاسلام زکریا انصاری چې د ابن حجر رحمهما الله شاګرد دې،هغوی په دې غرض کښې د حافظ صاحب تقلید کړې دې(۴).او هم دا غرض واقعی ډیر زیات صحیح او غوره هم دې.او حضرت ګنګوهی رحمه الله د باب د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې فرمائی:
"يعني أن ما تركه النبي صلى الله عليه وسلم وقت موته كان حقاً مشتركاً بين المسلمين أجمعين،لكونه صدقة،إلا أن يكون ملكه أحداً من أصحابه قبل موته،وإذا ثبت فيه اشتراك الكل،فيد الصحابي الذي هو عنده يد تولية وحفظ،لايد استبداد بالتصرف وتملك"(۵)
مطلب دادې چې نبی کریم ﷺ د خپل وفات په وخت کوم څیزونه پریخودلې وو په هغې کښې د ټولو مسلمانانو مشترکه حق وو،ځکه چې دا صدقات وو(ددې وجې نه دا په بیت المال کښې داخل کړې شو)سوا د هغه څیزونو نه،چې د وفات نه مخکښې نبی علیه السلام څوک د هغې مالګان جوړ کړې وو،هرکله چې دا ثابته شوه چې په دې کښې د ټولو مسلمانانو مشترکه حق وو نو کوم صحابی سره هم چې څهٔ متروکه څیزونه وو،هغه صحابی د هغې څیزونو مالک نهٔ وو،نهٔ ورته په دغه څیزونو کښې د تصرف کولو اختیار وو،بلکه دا قبضه صرف د حفاظت او د تولیت وه ځکه چې د هغوی په کورونو کښې دغه څیزونه حفاظت سره وو.
غالباً په دې پورتنی عبارت کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله د هغه اشکال جواب ورکړې دې چې د نبی کریم ﷺ پریخودلې شوې څیزونه په صدقاتو کښې داخل وو نو په هغې کښې بعضې

---

(۱) شرح ابن بطال:(۲۶۵/۵)_
(۲) فتح الباری:(۲۱۳/۶)_
(۳) پورته حواله.وتعلیقات لامع الداری:(۲۹۶/۷)_
(۴)قال الانصاری رحمه الله: قال شیخنا: الغرض من هذه الترجمة تثبیت انه ﷺ لم یورث،ولا بیع موجوده ......".انظر تحفة الباری:۵۳۹/۳، د حافظ نه مخکښې هم دا مقصد ابن المنیر اسکندرانی رحمه الله هم بیان کړې دې.انظر المتواری:۱۸۹.او ابن بطال رحمه الله هم، انظر شرح ابن بطال:(۲۶۵/۵)_
(۵) لامع الدراری:(۲۹۶/۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ځیزونه د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په ملکیت کښې ولې وو؟ددې جواب هم حضرت په ترجمة الباب کښې بیان کړو چې دا تصرف مالکانه نهٔ وو بلکه دا ځیزونه د هغوی په قبضه کښې د حفاظت له جهته وو، وړاندې به د حدیث شریف په تشریح کښې ددې تفصیل راشي.
ددې نه پس ځان په دې پوهه کړئ چې امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب کښې شپږ حدیثونه او یو تعلیق ذکر کړې دې، دا ټول به مونږ لاندې ترتیب سره ذکر کوو.
اولنې حدیث د حضرت انس رضی الله عنه دې.

۲۹۳۹ :(۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ - رضى الله عنه - لَمَّا اسْتُخْلِفَ بَعَثَهُ إِلَى الْبَحْرَيْنِ ، وَكَتَبَ لَهُ هَذَا الْكِتَابَ وَخَتَمَهُ، وَكَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلاَثَةَ أَسْطُرٍ مُحَمَّدٌ سَطْرٌ، وَرَسُولُ سَطْرٌ، وَاللَّهِ سَطْرٌ. [۵۵۴۰]

## رجال الحدیث

دا حدیث بعنیه هم دې سند سره په کتاب الزکوة[۲] کښې تیر شوې دې، هلته اوګورئ.
**د حدیث شریف ترجمه:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چې کله حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه خلیفه مقرر کړې شو نو هغوی زهٔ (حضرت انس) د بحرین طرفته واستولم او دا خط ئې راکړو او په دې باندې ئې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په ګوتمه باندې مهر اولګوو، د هغې ګوتمې چې کوم مضمون وو، هغه په دریو لکیرو باندې مشتمل وو، یو لکیره کښې لفظ د محمد (صلی الله علیه وسلم)، په دویمه لکیره کښې لفظ د رسول او په دریمه لکیره کښې لفظ د الله وو.

د "هذا الکتاب" نه مراد هغه کتاب دې، په کوم کښې چې د صدقاتو تفصیل وو، ددې مضمون په کتاب الزکوة[۳] کښې تیر شوې دې، چونکه دا کتاب د هغوی په نزد ډیر مشهور وو، ددې وجې نه ئې دا مطلق بیان کړو اوددې طرفته ئې "هذا الکتاب" وئیلو سره اشاره اوکړه[۴].
د باب حدیث شریف سره متعلق نور تفصیلات په کتاب اللباس کښې راغلي دی[۵].
**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف مناسبت د ترجمة الباب یو جزء "وخاتمه" سره دې[۶]. او حافظ وائی چې په دې حدیث شریف کښې د نبی علیه السلام د ګوتمې ذکر دې، کومه چې حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه وغیره هم استعمال کړه نو

---

[۱]) قوله: انس رضی الله عنه: "الحدیث، مر تخریجه فی کتاب الزکاة، باب العرض فی الزکاة_
[۲]) صحیح البخاری، کتاب الزکاة، باب العرض فی الزکاة، رقم (۱۴۴۸)_
[۳]) صحیح البخاری، کتاب الزکاة، باب زکاة الغنم، رقم (۱۴۵۴)_
[۴]) عمدة القاری: ۳۱/۱۵، وشرح القسطلانی: ۱۹۹/۵)_
[۵]) کشف الباری، کتاب اللباس: ۲۳۵_۲۳۸)_
[۶]) عمدة القاری: ۳۱/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ترجمة الباب سره مطابقت "وما استعمل الخلفاء بعده من ذلك" سره دې[1].

د باب دويم حديث شريف هم د حضرت انس رضي الله عنه دې

۲۹۴۰: [2] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَسَدِيُّ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ طَهْمَانَ قَالَ أَخْرَجَ إِلَيْنَا أَنَسٌ نَعْلَيْنِ جَرْدَاوَيْنِ لَهُمَا قِبَالاَنِ، فَحَدَّثَنِي ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ بَعْدُ عَنْ أَنَسٍ أَنَّهُمَا نَعْلاَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-. [۵۵۱۹، ۵۵۲۰]

## رجال الحديث

① عبدالله بن محمد: دا عبدالله بن محمد بن ابى شيبه رحمه الله دې[3]

② محمد بن عبدالله الاسدى: دا ابو احمد محمد بن عبدالله الاسدى الزبيرى رحمه الله دې[4]

③ عيسى بن طهمان: دا ابوبكر يا ابوليث عيسى بن طهمان بن رامه جُشمي كوفي بصري رحمه الله دې[5]

په وړوكو تابعينو كښې وو، اصل كښې د بصرې دې، بيا ئې وروستو په كوفه كښې استوګنه اختيار كړه او آخره پورې دلته اوسيدلو[6]

دې د حضرت انس بن مالک، ثابت البنانى، مساور مولى ابى برزه او ابوصادق الازدى (رضى الله عن الجميع) وغيره نه حديث روايت كوى. او ددوى نه د حديث په روايت كوونكو كښې عبدالله بن مبارك، وكيع، ابواحمد زبيرى، يحيى بن آدم، ابوقتيبه، ابوالنضر، خالد بن عبدالرحمن خراسانى، قبيصه بن عقبه، خلاد بن يحيى او ابونعيم رحمهم الله وغيره شامل دى[7]

امام احمد رحمه الله فرمائى: "شيخ، ثقة"[8] دغه شان فرمائى: "ليس به باس"[9]

---

[1]) فتح البارى: ۲۱۳/۶)_

[2]) قوله: انس": الحديث، اخرجه البخارى ايضا فى كتاب اللباس، باب قبالا فى نعل......رقم (۵۷۵۸_۵۸۵۸)، وابو داود فى سننه، ابواب اللباس، باب فى الانتعال، رقم (٤١٣٤)، والترمذى فى جامعه، ابواب اللباس، باب ما جاء فى نعل النبى صلى الله عليه وسلم، رقم (۱۷۷۲_۱۷۷۳)، وفى الشمائل المحمديه، باب ما جاء فى نعل رسول الله......رقم (۷۸)، والنسائى فى سننه، كتاب الزينة، باب صفة نعل رسول الله......رقم (۵۳۶۹))_

[3]) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب العمل فى صلاة، باب لا يرد السلام فى الصلاة)_

[4]) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الاذان، باب المكث بين السجدتين)_

[5]) تهذيب الكمال: ۶۱۷/۲۲_۶۱۸، وكتاب المجروحين لابن حبان: ۹۸/۲، وتاريخ بغداد: ۱٤٣/۱۱، رقم (۵۸٤۱)، وتاريخ الاسلام للذهبى: ۲۶۳/٤، رقم (۳۳۹۸))_

[6]) هدى السارى، حرف العين: ۶۰۶، وتهذيب الكمال: ۶۱۸/۲۲)_

[7]) د استاذانو او شاګردانو دپاره اوګورئ، تهذيب الكمال: ۶۱۸/۲۲)_

[8]) الجرح والتعديل: ۳۶۰/۶، رقم (۱۵۵۲/۱۰۸۰۲)، وتهذيب الكمال: ۶۱۸/۲۲)_

[9]) تهذيب الكمال: ۶۱۸/۲۲، وتاريخ بغداد: ۱٤٤/۱۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يحيى بن معين رحمه الله فرمائي: "بصري، صار إلى الكوفة، ثقة....."[1]
ابوحاتم رحمه الله فرمائي: "لاباس به، يشبه حديثه حديث أهل الصدق، مابحديثه باس"[2]
ابو داؤد رحمه الله فرمائي: "لاباس به، أحاديثه مستقيمة"[3]
ذهبي رحمه الله فرمائي: "ثقة"[4]
ددې حضراتو نه علاوه د جرح او تعديل نورو ډيرو علماء كرامو هم ددوى توثيق كړې دې[5]
ليكن علامه عقيلي او ابن حبان په دوى باندې كلام كړې دې، بلكه ابن حبان خو ډير سخت الفاظ استعمال كړې دى، لكه عقيلي فرمائي: "ولا يتابع على حديثه"[6] ليكن دې سره سره هغوى عيسى بن طهمان ددې الزام نه هم برى كړې دې او فرمائيلې ئې دى چې په احاديثو كنبې د عدم متابعت كوم الزام دې د هغې وجه خالد بن عبدالرحمن دې، كوم چې د عيسى نه روايت كوى، هم دا خبره صحيح هم ده چې دلته د عدم متابعت الزام په عيسى باندې نهٔ دې، بلكه د خالد بن عبدالرحمن په ذمه باندې دې، حافظ رحمه الله فرمائي:

"وقال العقيلي: "لايتابع، ولعله أتي من خالد بن عبدالرحمن" يعني: الراوي عنه، وهو كما ظن العقيلي"[7]
د عيسى بن طهمان په باره كنبې د ابن حبان رحمه الله كلام دادې:

"ينفرد بالمناكير عن أنس، ويأتي عنه بما لا يشبه حديثه، كأنه كان يدلس على أبان بن أبي عياش ويزيد الرقاشي عنه، لايجوز الاحتجاج بخبره، وإن اعتبر بما وافق الثقات من حديثه فلا ضير....."[8]
په دې عبارت كنبې په عيسى بن طهمان باندې دا اعتراضات شوې دى چې د حضرت انس رضي الله عنه نه منكر روايتونه نقل كوى او د هغوى نه داسې روايتونه نقل كوى چې د هغوى د حديثونو سره مشابهت نهٔ لرى، گويا چې عيسى بن طهمان مدلس هم دې، ددې وجې نه د دوى د مروياتو نه استدلال كول صحيح نهٔ دى، البته كه د دوى روايات د ثقاتو د روايتونو موافق وى نو بيا هيڅ باك نشته.
او د دليل په طور ابن حبان رحمه الله دا حديث پيش كړې دې:

"......عن أنس بن مالك، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ارحموا من الناس ثلاثة:

---

[1] ) تهذيب الكمال:٦١٩/٢٢، وتاريخ بغداد:١٤٤/١١، وتهذيب التهذيب:٢١٦/٨)_
[2] ) الجرح والتعديل:٣٦٠/٦، رقم (١٠٨٠٢/١٥٥٢)، وتهذيب الكمال:٦١٩/٢٢)_
[3] ) تهذيب الكمال:٦١٩/٢٢، وتهذيب التهذيب:٢١٦/٨)_
[4] ) المغني في الضعفاء:١٦٧/٢، رقم (٤٨٠٥))_
[5] ) مثلاً يعقوب بن سفيان، ابن حجر او دارقطني وغيره، اوگورئ، هدى الساري:٦٠٦، وتهذيب الكمال وتعليقاته: ٦١٩/٢٢-٦٢٠، والمعرفة والتاريخ، الكنى والاسامي.....٢٧٠/٣)_
[6] ) الضعفاء الكبير للعقيلي:٣٨٥/٣، رقم(١٤٢٥)، وتعليقات تهذيب الكمال:٦١٩/٢٢، وهدى الساري:٦٠٦)
[7] ) هدى الساري: حرف العين:٦٠٦)_
[8] ) پورته حواله، وكتاب المجروحين:٢/ وتعليقات تهذيب الكمال:٦١٩/٢٢، وتهذيب التهذيب٢١٥/٨)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عزیز قوم ذل، وغنی قوم افتقر، وعالماً بین الجهال.[1]

لیکن یاد ساتئ چې د عیسی بن طهمان په باره کښې د ابن حبان دا مذکوره کلام هیڅ کله نقصان نهٔ دې اول خو ددې وجې نه چې د ابن حبان کلام په جرح کښې معتبر نهٔ دې، ځکه چې دې په متشددینو کښې دې[2] دویم ددې وجې نه چې حافظ رحمه الله فرمائی چې ابن حبان د خپلې دعوې "لایجوز الاحتجاج به" دپاره د دلیل په طور صرف یو روایت پیش کړې دې، په دې کښې هم د عیسی قصور نشته بلکه د دوی نه پس د یو بل راوی قصور دې، لیکی چې:

"ثم لم یسق له إلا حدیثا واحداً، والآفة فیه ممن دونه"[3]

دریم ددې وجې نه چې امام بخاری رحمه الله د دوی صرف دوه حدیثونه په خپل صحیح کښې نقل کړې دی، یو خو د باب دا حدیث، چې د هغې دویم طریق په کتاب اللباس[4] کښې دې، دویم په کتاب التوحید[5] کښې، او دواړو ځایونو کښې هغوی د سماع او د تحدیث وضاحت کړې دې، ددې وجې نه د بخاری پورې د تدلیس الزام هم صحیح نهٔ دې[6] والله اعلم بالصواب

عیسی بن طهمان رحمه الله د صحیح بخاری نه علاوه د ترمذی (فی الشمائل) او د نسائی راوی هم دې[7]. د حافظ ذهبی رحمه الله د قول مطابق ددوی انتقال په ۱۲۰ هجرئ کښې اوشو[8] دې د امام بخاری د یو دریم روایت هم راوی دې[9]

④انس رضی الله عنه: د حضرت انس حالات په کتاب الایمان، "باب من الایمان أن یحب لاخیه...." کښې تیر شوی دی[10]

⑤ثابت البنانی: د حضرت ثابت بن اسلم البنانی رحمه الله حالات په کتاب العلم، "باب القراءة والعرض علی المحدث" کښې راغلې دی[11]

---

[1]) کتاب المجروحین: ۲/۹۸. د حدیث ترجمه دا ده: "په خلقو کښې درې قسمه کسانو باندې رحم اوکړئ، یو د قوم معزز او سردار کوم چې ذلیل شوې وی، دویم د قول مالدار کوم چې محتاج شوې وی، او دریم هغه عالم چې د جاهلانو مینځ کښې وی".

[2]) قواعد فی علوم الحدیث للعثمانی، لا یؤخذ بقول کل جارح.....: ۱۷۸-۱۷۹)_

[3]) هدی الساری: حرف العین: ۶۰۶، وتهذیب التهذیب: ۸/۲۱۶)_

[4]) صحیح البخاری، کتاب اللباس، باب قبالان فی نعل، رقم (۵۸۵۸))_

[5]) صحیح البخاری، کتاب التوحید. باب (وکان عرشه علی الماء)، رقم (۷۴۲۱))_

[6]) هدی الساری: ۶۰۶)_

[7]) تهذیب الکمال: ۲۲/۶۲۰)_

[8]) تهذیب التهذیب: ۸/۲۱۶)_

[9]) صحیح البخاری، کتاب التوحید، باب (وکان عرشه علی الماء) رقم (۷۴۲۱) وتاریخ الاسلام للذهبی: ٤/۲۶۳، الطبقة السادسة عشرة، رقم (۳۳۹۸))_

[10]) کشف الباری: ۲/٤)_

[11]) کشف الباری: ۳/۱۸۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حديث شريف ترجمه**: عيسى بن طهمان رحمه الله وائي چې حضرت انس رضي الله عنه څپلئ اوباسلې او مونږ ته ئې اوښودلې، چې د هغې پورته ويختهٔ د د زړيدو د وجې نه پريوتې وو، د هغې دوه تسمې وې عيسى بن طهمان وائي چې بيا وروستو ماته ثابت البناني رحمه الله اووئيل چې دا دواړه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم څپلئ دي.

**د جرداوين تحقيق**: جرداوين د جرداء تثنيه ده، دا د اجرد مؤنث دې، ددې دوه معنې بيان كړې شوې دي (۱) چې ويختهٔ پرې نهٔ وي (۲) زوړ مونږ چې پورته كومه ترجمه كړې ده هغه د علامه عيني رحمه الله د كلام مطابق ده او حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله اوله معنى اختيار كړې ده او دويمه معنى ئې قيل سره بيان كړې ده[1] او دواړه معنې صحيح دي.

**د قبالان معنى**: قبالان د قبال تثنيه ده، د څپلئ هغې تسمې ته وئيلې شى كومه چې د پورته نه د خپې غټې ګوتې او دې سره يوځائې ګوتې مينځ كښې پيوست شوې وي[2]

**د فحدثني ثابت البناني بعد...... مقصد**: حضرت انس رضي الله عنه چې دوى ته كومې څپلئ ښودلې وې نو دا د چا وې؟ دا معلومه نهٔ وه، بيا وروستو حضرت ثابت بناني رحمه الله ددې وضاحت اوكړو چې دا څپلئ د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دي او ښكاره خبره ده چې حضرت ثابت به هم دا خبره د خپل طرفنه نهٔ وي كړې بلكه د حضرت انس رضي الله عنه نه به ئې اوريدلې وي، قسطلاني رحمه الله فرمائي:

"وكأنه رأى النعلين مع أنس، ولم يعلم أنهما نعلا النبي صلى الله عليه وسلم، فحدثه بذلك ثابت عن أنس"[3]

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت**: ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت ددې جزء "ونعله" سره دې ځكه چې په دې كښې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د څپلو تذكره ده[4]

د باب دريم حديث شريف د حضرت عائشه رضي الله عنها دې.

۲۹۴۱: [5] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ أَخْرَجَتْ إِلَيْنَا عَائِشَةُ - رضى الله عنها - كِسَاءً مُلَبَّدًا وَقَالَتْ فِي هَذَا نُزِعَ رُوحُ

---

[1]) عمدة القاري:۳۲/۱۵،وخصائل نبوى شرح شمائل ترمذى مع عربى حواشى للكاندهلوى:۴۷،وقال الخطابى رحمه الله: جردوابن:يريد،خلقين،وثوب جرد،اى:خلق."اعلام الحديث: ۱۴۴۲/۲)_

[2]) كشف البارى،كتاب اللباس:۲۱۵،وعمدة القارى:۳۲/۱۵)_

[3]) شرح القسطلانى:۲۰۰/۵،وايضا انظر فتح البارى:۲۱۴/۶)_

[4]) عمدة القارى:۳۲/۱۵)_

[5]) قوله: اخرجت الينا عائشة......":الحديث،اخرجه البخارى ايضا،كتاب اللباس،باب الاكسية والخمائص، رقم (۵۸۱۸)،ومسلم،كتاب اللباس والزينة،باب التواضع فى اللباس،رقم (۵۴۴۲_۵۴۴۴)،و ابو داود،ابواب اللباس،باب لباس الغليظ،رقم (۴۰۳۶)،والترمذى،ابواب اللباس،باب ماجاء فى لبس الصوف،رقم (۱۷۳۳)، وابن ماجه،ابواب اللباس،باب لباس رسول الله صلى الله عليه وسلم،رقم (۳۵۵۱))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

النَّبِي - صلی الله علیه وسلم - . وَزَادَ سُلَيْمَانُ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ أَخْرَجَتْ إِلَيْنَا عَائِشَةُ إِزَارًا غَلِيظًا مِمَّا يُصْنَعُ بِالْيَمَنِ، وَكِسَاءً مِنْ هَذِهِ الَّتِي يَدْعُونَهَا الْمُلَبَّدَةَ. [۵۴۸۰]

## رجال الحديث

①**محمد بن بشار**: دا محمد بن بشار عبدی رحمه الله دې. د دوی تفصیلی تذکره په کتاب العلم، "باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم...." کښې راغلې ده[1]

②**عبدالوهاب**: دا عبدالوهاب بن عبدالمجید ثقفی رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الایمان" کښې تیره شوې ده[2]

③**ایوب**: د ایوب سختیانی رحمه الله تذکره هم د کتاب الایمان مذکوره باب کښې راغلې ده[3]

④**حمید بن هلال**: دا حمید بن هلال عدوی رحمه الله دې[4]

⑤**ابو برده**: دا ابوبرده حارث بن ابی موسی اشعری دې. د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب أی الاسلام افضل" کښې تیر شوې دی[5]

⑥**عائشة**: د حضرت عائشه رضی الله عنها حالات په "بدء الوحی" کښې بیان کړې شوې دی[6]

**قوله**: قال: أخرجت إلینا عائشة رضی الله عنها کساء ملبدا: حضرت ابوبرده رحمه الله فرمائی چې حضرت عائشې رضی الله عنها مونږ ته یو پلن (پیړ) څادر اوښودلو.

**د کساءً ملبداً معنی**: نن صبا خو کساء مطلقاً څادر ته وئیلې شی لیکن مخکښې به ددې اطلاق صرف د وړئ په څادر باندې کیدلو، قال العینی: "الکساء معروف، لکن الظاهر أنه لایطلق إلا علی ما کان من الصوف"[7]

او ملبد د تلبید نه د اسم مفعول صیغه ده، ددې اصل لبد یا لبدة دې، لبده نمده ته وئیلې شی یعنی هغه کپړه چې وړئ یا ویختهٔ په اوبو کښې خوشتولو نه پس جوړولې شی او د اس د زین نه لاندې کیخودلې شی، دې دپاره چې خوله زین لره متاثره نهٔ کړی، اوس د کساء ملبد معنی دا شوه چې هغه څادر چې د هغې مینځ سخت وی، د مختلفو کپړو د لمدولو نه پس، په

---

[1]) کشف الباری: ۲۵۸/۳)_

[2]) کشف الباری: ۲۶/۲)_

[3]) پورته حواله)_

[4]) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة، باب یرد المصلی من مربین یدیه)_

[5]) کشف الباری: ۶۹۰/۱)_

[6]) کشف الباری: ۲۹۱/۱)_

[7]) عمدة القاری: ۳۲/۱۵، والقاموس الوحید، مادة "لبد")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يو بل باندې قط په قط ايخودلو نه وروستو تيار كړې شوې وي[1]

**نبى عليه السلام به دا څادر ولې استعمالوو؟** نبى كريم ﷺ به كساء ملبد ولې استعمالوو، په دې سلسله كښې مختلف خبرې شوې دي.

① ددې استعمال به ئې د عاجزۍ د وجې نه كوو. ② ددې نه غوره څادر چونكه نبى عليه السلام سره نۀ وو، ددې وجې نه به ئې دا استعمالوو. ③ د څۀ قصد او ارادې نه بغير اتفاقى طور به ئې استعمالوو، چې څۀ به ملاؤ شو نو هغه به ئې اغوستل.

ليكن په دې ټولو كښې اولنې احتمال غوره دې، علامه نووى او علامه عينى دغه احتمال غوره كړې دې[2]

**قوله: وقالت: في هذا نزع روح النبي صلى الله عليه وسلم:** حضرت عائشې رضي الله عنها مزيد اوفرمائيل چې هم په دې څادر كښې د نبى كريم ﷺ روح وتلې وو.

مطلب دا دې چې د وفات په وخت هم نبى عليه السلام دا څادر اغوستې وو.

**وزاد سليمان عن حميد عن أبي بردة قال: أخرجت إلينا عائشة.....**

او سليمان بن مغيره د حميد عن ابى برده د طريق نه دا اضافه هم ښودلې ده چې ابوبرده اوفرمائيل چې حضرت عائشې رضي الله عنها د يمن جوړ كړې شوې يو پلن ازار (لنګ) او يو څادر مونږ ته اوښودل، كوم ته چې تاسو ملبده وائې.

د سليمان نه ابوسعيد سليمان بن مغيره قيسى بصرى رحمه الله مراد دې[3]

**د مذكوره تعليق مقصد:** غالباً ددې تعليق مقصد دادې چې د ايوب عن حميد په روايت كښې اختصار دې، او د حميد نه د باب د حديث په روايت كولو كښې يو بل راوى د سليمان بن مغيره په روايت كښې د ازار تذكره هم شته، اوس د حديث مطلب دا شو چې د وفات په وخت د نبى كريم ﷺ په بدن مبارك باندې دوه كپړې وې، يو ازار چې د يمن جوړ كړې شوې وو او دويم كساء ملبد. والله اعلم

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې "شيبان بن فروخ، عن سليمان بن المغيرة، عن حميد، عن أبي بردة" طريق سره موصولاً نقل كړې دې، هلته پوره روايت دغه شان دې، حضرت ابوبرده فرمائى:

"دخلت على عائشة، فأخرجت إلينا إزاراً غليظاً، مما يصنع باليمن، وكساء من التى تسمونها الملبدة، قال: فأقسمت بالله أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قبض فى هذين الثوبين[4]

---

[1] ) پورته حواله جات. وشرح النووى على مسلم: ٢/ ١٩٤. والنهاية لابن الاثير: ٤/ ٢٢٤)_

[2] ) عمدة القارى: ١٥/ ٣٢. وشرح النووى: ٢/ ١٩٣)_

[3] ) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كشف البارى: ٣/ ١٨١. كتاب العلم، باب القراءة والعرض......)_

[4] ) صحيح مسلم. كتاب اللباس والزينة، باب التواضع فى اللباس، والاقتصار......رقم (٥٤٤٢). وتغليق التعليق: ٣/ ٤٦٨. وفتح البارى: ٦/ ٢١٤. وعمدة القارى: ٣٢)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** د علامه عينى رحمه الله د قول مطابق ددې حديث شريف مناسبت ترجمة الباب سره د ترجمة الباب جزء "وما استعمل الخلفاء....." سره دې[1] د باب څلورم حديث د حضرت انس رضي الله عنه دې.

۲۹۴۲:[2] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضي الله عنه - أَنَّ قَدَحَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - انْكَسَرَ، فَاتَّخَذَ مَكَانَ الشَّعْبِ سِلْسِلَةً مِنْ فِضَّةٍ. قَالَ عَاصِمٌ رَأَيْتُ الْقَدَحَ وَشَرِبْتُ فِيهِ. [۵۳۱۵]

## رجال الحديث

①**عبدان**: دا عبد الله بن عثمان بن جبله رحمه الله دي چې ملقب په "عبدان" سره دې. د دوی تذکره په "بدء الوحی" کښې تیره شوې ده[3]؛

②**ابوحمزه**: دا ابوحمزه محمد بن میمون سکری مروزی رحمه الله دې[4]

③**عاصم**: دا عاصم بن سلیمان الاحول رحمه الله دې[5]

④**ابن سيرين**: دا مشهور محدث او تعبیر کوونکې محمد بن سيرين رحمه الله دې. د دوی حالات په کتاب الایمان "باب اتباع الجنائز من الایمان" کښې راغلې دی[6]

⑤**انس بن مالک**: د حضرت انس رضي الله عنه تذکره په کتاب الایمان، "باب من الایمان....." کښې راغلې ده[7]

**د حديث شريف سند سره متعلق يو اهم خبرداري**: ددې حديث شريف په سند کښې اختلاف دې. ابوحمزه دا د عاصم عن ابن سيرين عن انس طريق سره نقل کړې دې. او شريک د عاصم عن انس د طريق سره. يعنى هغوی په کښې د ابن سيرين واسطه نۀ ده ذکر کړې. هم دا حديث امام بزار رحمه الله هم د امام بخاری رحمه الله په واسطې سره په خپل مسند کښې ذکر کړې دې او فرمائی چې "لانعلم من رواه عن عاصم هکذا إلا أبا حمزة"[8] او امام دارقطنى رحمه الله فرمائی، "والصحيح الاول"

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/۳۲)_

[2]) قوله: انس بن مالک": الحديث، اخرجه البخاری ايضا، کتاب الاشربة، باب الشرب من قدح النبی صلى الله عليه وسلم وآنيته، رقم (۵۶۳۸)، ولم يخرجه غيره، انظر تحفة الاشراف: ۱/۲۴۸ و: ۱/۳۷۳)_

[3]) کشف الباری: ۱/۴۶۱)_

[4]) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الغسل، باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة)_

[5]) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب الماء الذی يغسل به شعر الانسان)_

[6]) کشف الباری: ۲/۵۲۴)_

[7]) کشف الباری: ۲/۴)_

[8]) مسند الامام البزار: ۱۳/۲۳۷، مسند انس بن مالک، رقم (۶۷۳۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

(۱)چې د ابوحمزه والا سند صحيح دې.البته علامه جياني رحمه الله فرمائي چې دلته يو سند ته د صحيح وئيلو او دويم ته د غلط وئيلو ضرورت نشته،په دې سلسله کښې زما په نزد تحقيقي خبره داده چې ددې حديث بعضې حصه عاصم د انس په واسطې سره او بعضې حصه ابن سيرين د عن انس د طريق نه نقل کړې ده.لکه امام بخاري رحمه الله چې د ابوعوانه د طريق نه کوم روايت په کتاب الاشربه کښې ذکر کړې دې،هغه تفصيلي هم دې او په دې مسئله کښې واضح هم دې.ددې په آخره کښې عاصم فرمائي: "قال ابن سيرين: "إنه كانت فيه حلقة من حديد......فقال له أبوطلحة:لا تغيرن فيه شيئاً..... (۲)" ددې وجې نه د ابوحمزه او د شريک والا دواړه روايتونه صحيح دی،هر يو د حديث شريف بعضې حصه نقل کړې ده او د ابوعوانه روايت دواړو ته جامع دې او واضح هم دې(۳).والله اعلم بالصواب

**قوله:أن قدح النبي صلى الله عليه وسلم انكسر،فاتخذ مكان الشعب سلسلة من فضة:** د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم پيالئ ماته شوې وه نو د اصلاح په غرض متاثره ځائې باندې هغوی د چاندئ يو زنځير اولګوو.

"شعب" د شين فتحه او د عين سکون سره،شليدلو ته وئيلې شی،دغه شان د شليدلی او مات شوې ځائې اصلاح او سمولو ته هم شعب وئيلې شی(۴)

د باب په حديث شريف کښې چې د کومې پيالئ ذکر دې،ددې متعلق د کتاب الاشربه(۵) په روايت کښې راغلې دی چې دا د يو خاص قسم لرګی نُضار جوړه کړې شوې وه،شارحينو د نضار مختلف تفسيرونه کړې دی،مثلاً خالص عود،نبع وغيره،ابوحنيفه دينوري رحمه الله وئيلې دی چې د لوښو دپاره د ټولو نه غوره لرګې هم داوی.

ددې نه علاوه ددې په صفت کښې د "عريض" لفظ راغلې دې يعنی پلنه،ددې پلنوالې څومره وو؟تحقيقاً خو معلومه نهٔ ده البته امام احمد رحمه الله د حجاج بن حسان تابعی رحمه الله حديث نقل کړې دې،هغوی فرمائي چې مونږ حضرت انس رضي الله عنه سره وو،هغوی يو لوښې طلب کړو،د هغې درې واړه لاسکی د اوسپنې وو،حلقه هم د اوسپنې وه،هغوی دا د يو تورې کپړې نه رابهر کړو نو ددې وزن د يو ربع نه کم او د نصف ربع(۶)نه زيات وو،د حضرت

---

(۱) العلل للدار قطني،رقم السوال(۲۶۲۸)_

(۲) صحيح البخاري،كتاب الاشربة،رقم (۵۶۳۸)_

(۳) عمدة القاري:۳۳/۱۵،وفتح الباري:۲۱۴/۶،و:۱۰۰/۱۰،كتاب الاشربة)_

(۴) عمدة القاري:۳۳/۱۵،وفتح الباري:۱۰۰/۱۰)_

(۵) صحيح البخاري،كتاب الاشربة،باب الشرب من قدح......رقم (۵۶۳۸)_

(۶) ربع يو پيمانه ده چې د جديد پيمائش په حساب سره ۳،۲۳کيلن جوړيږی،يعنی د ربع ګنجائش به دومره وو،ددې جمع ارباع ده،اوګورئ القاموس الوحيد،مادة ربع")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

انس رضي الله عنه په حکم سره په دې کښې اوبۀ واچولې شوې،بیا دا زمونږ وړاندې پیش کړې شو نو مونږ هغه اوبۀ اوڅکلې،په خپلو سرونو او مخونو مو واچولې او په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې مو درود اولوستلو(۱)صلی الله علیه وسلم

کیدې شی په دې حدیث شریف کښې د اناء نه مراد هم دغه پیالۍ وی،د کومې پیالۍ تذکره چې د باب په حدیث شریف کښې ده.

**پیالۍ چا صحیح کړې وه؟**:د باب په حدیث شریف کښې چې د "فاتخذ"کوم فعل دې،نو ددې فاعل څوک دې؟په دې کښې دوه اقوال دی،یو خو دادې چې د فاتخذ فاعل نبی کریم صلی الله علیه وسلم دې چې نبی علیه السلام دا پیالۍ ټهیک کړې وه او دویم قول دادې چې ددې فاعل حضرت انس رضي الله عنه دې، د حدیث شریف د ظاهر نه اولنۍ رائې صحیح معلومیږی او د کتاب الاشربه(۲) د روایت د ظاهر نه دویمه رائې صحیح معلومیږی،د هغې الفاظ دادی:"رایت قدح النبی صلی الله علیه وسلم عند انس بن مالك،وكان قد انصدع فسلسلة بفضة....."لیکن د باب د حدیث ددې طریق چې کوم الفاظ امام بیهقی رحمه الله (۳) نقل کړې دی،د هغې نه دا معلومیږی چې ددې فاعل حضرت انس رضي الله عنه دې،په هغې کښې دی:"ان قدح النبی صلی الله علیه وسلم انصدع،فجعلت مكان الشعب سلسلة،يعنى أن أنسا جعل مكان الشعب سلسلة"ددې نه پس امام بیهقی رحمه الله فرمائی چې حدیث دغه شان روایت دې،اوس دا معلومه نۀ ده چې ددې قائل کوم راوی دې،آیا هغه موسی بن هارون دې یا بل څوک دې(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله د امام بیهقی په دې روایت باندې تبصره کولو کښې فرمائی چې ددې روایت نه دا معلومه نۀ شوه چې ددې قائل څوک دې؟او ددې بنیاد دادې چې په"جعلتُ" کښې تاء د متکلم اومنلې شی او دا مضمومه وی،دغه شان حضرت انس رضي الله عنه ددې فاعل کیدې شی.دا هم کیدې شی چې د"جُعلتْ"جیم مضموم شی او دا فعل مجهول شی نو دغه شان به داحدیث د باب دحدیث سره یوشان شی اودنبی کریم صلی الله علیه وسلم فاعل کیدل به متعین شی.

هغوی لیکی: "وجزم بعض الشراح بالثاني(أي الضمير لانس)واحتج برواية بلفظ"فجعلتُ مكان الشعب سلسلة"ولا حجة فيه لاحتمال أن يكون فجعلت بضم الجيم على البناء للمجهول،فرجع إلى الاحتمال لابهام الجاعل"(۵)

---

(۱) مسند احمد:۱۸۷/۳،مسند انس بن مالک،رقم (۱۲۹۷۹)،وعمدة القاری:۳۳/۱۵)_

(۲) البخاری،کتاب الاشربة،باب الشرب من قدح النبی صلی الله علیه وسلم .......رقم (۵۶۳۸))_

(۳) السنن الکبری للبیهقی:۳۰/۱،کتاب الطهارة،باب النهی عن الاناء المفضض،رقم (۱۱۵))_

(۴) پورته حواله)_

(۵) فتح الباری:۲۱٤/۶،و:۱۰۰/۱۰،وتحفة الباری:۵۳۹/۳)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: قال عاصم: رأیت القدح، وشربت فیه:** حضرت عاصم الاحول فرمائی چې ما هغه پیالئ لیدلې ده او هغې باندې مې اوبۀ هم څکلې دی.
دلته د تحدیث بالنعمت په طور او د فخر په طور حضرت عاصم دا فرمائی چې ماته دغې پیالئ باندې د اوبو څکلو شرافت هم حاصل شوې دې.
ددې نه علاوه بیا وروستو دا شرافت نورو ډیرو حضراتو ته هم حاصل شوې دې، لکه حافظ ابونعیم د علی بن حسن بن شقیق عن ابی حمزه د طریق نه هم دا حدیث نقل کړې دې، په هغې کښې دی: "قال علی بن الحسین: وأنا رأیت القدح، وشربت منه"[1] په خپله د امام بخاری رحمه الله نه هم په دې پیالئ باندې څکل منقول دی، علامه قرطبی رحمه الله په "مختصر البخاری" کښې لیکلي دی چې هغوی د صحیح بخاری په بعضې زړو (قدیمو) نسخو کښې دا عبارت لیکلې شوې اولیدۀ چې: "قال أبوعبدالله البخاری: رأیت هذا القدح بالبصرة، وشربت منه، وکان اشتری من میراث النضر بن أنس بثمان مائة ألف"[2]
یعنی "امام بخاری فرمائی چې دا پیالئ ما په بصره کښې اولیده او دې سره مې اوبۀ څکلې دی، دا د نضر بن انس رحمه الله د میراث نه په اتۀ لکهه کښې اخستلې شوې وه".
**د سرو زرو او د چاندئ د جوړ او د زنځیر لګولو حکم:** د باب د حدیث شریف نه د چاندئ د جوړ کړې شوې لاسکی، زنځیر (کړا) او د حلقې وغیره د استعمالولو جواز ثابتیږی، لیکن په دې مسئله کښې اختلاف دې.
امام ابوحنیفه رحمه الله دا مطلقاً جائز ګرځوی، البته صاحب هدایه علامه مرغینانی رحمه الله دا مطلق حکم یو شرط سره مقید کوی، هغه دا چې د سرو زرو او د چاندې ځائې خلې سره اونۀ لګوی، ددې نه ځان بچ اوساتی[3]
د امام مالک رحمه الله نه دواړه قسمه اقوال نقل دی، یعنی حلال والې او حرموالې. وروستنو ائمه مالکیه مثلاً دردیر، دسوقی او ابن الحاجب رحمهم الله وغیره حرمت غوره بښودلې دې[4]
د شوافعو مذهب د امام نووی رحمه الله د قول مطابق دادې چې دسته وغیره که لویه وی او د زینت دپاره وی نو حرام ده او که وړوکې وی او د ضرورت دپاره وی نو بیا جائز ده، د دوی دویم قول د مطلق حرمت دې چې دا کار جائز نۀ دې[5]

---

[1]) فتح الباری: ۱۰/۱۰۰)_
[2]) پورته حواله)_
[3]) بدائع الصنائع: ۶/۵۲۴_۵۲۵، کتاب الاستحسان، واما الاناء المضبب.....والهدایة مع البنایة: ۱۲/۷۰_۷۲، کتاب الکراهی، ومؤطا محمد: ۳۷۵، ابواب السیر، باب الشرب فی آنیة الفضة)_
[4]) حاشیة الدسوقی مع الشرح الکبیر: ۱/۱۰۹، باب احکام الطهارة، فصل الطاهر)_
[5]) المجموع شرح المهذب: ۱/۲۵۴_۲۵۸، کتاب الطهارة، حکم الاوانی المضببة.....وشرح النووی علی

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او حنابله ددې څیزونو استعمالول دریو شرطونو سره مقید کوی، یعنی لږ (کم) وی، صرف چاندی وی او د ضرورت دپاره وی یعنی څۀ فائده په کښې وی لکه چې د دوی په نزد په دې غرض سره سرۀ زرا استعمالول بالکل ناجائزدی او د چاندئ استعمال شرطونو سره مقید دې[1]

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت په دې جمله کښې دې، "أن قدح النبی صلی الله علیه وسلم انکسر" څکه چې په دې کښې د نبی کریم ﷺ د پیالئ تذکره ده، کومه چې د ترجمة الباب جزء "قدحه" سره مطابق ده[2]

د باب پنځم حدیث شریف د حضرت مسور بن مخرمه رضی الله عنه دې.

۲۹۴۳: ([3]) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجَرْمِيُّ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِي أَنَّ الْوَلِيدَ بْنَ كَثِيرٍ حَدَّثَهُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ الدُّؤَلِيِّ حَدَّثَهُ أَنَّ ابْنَ شِهَابٍ حَدَّثَهُ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ حُسَيْنٍ حَدَّثَهُ أَنَّهُمْ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ مِنْ عِنْدِ يَزِيدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ مَقْتَلَ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَيْهِ لَقِيَهُ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ فَقَالَ لَهُ هَلْ لَكَ إِلَيَّ مِنْ حَاجَةٍ تَأْمُرُنِي بِهَا فَقُلْتُ لَهُ لاَ. فَقَالَ لَهُ فَهَلْ أَنْتَ مُعْطِيَّ سَيْفَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَغْلِبَكَ الْقَوْمُ عَلَيْهِ، وَايْمُ اللَّهِ، لَئِنْ أَعْطَيْتَنِيهِ لاَ يُخْلَصُ إِلَيْهِمْ أَبَدًا حَتَّى تُبْلَغَ نَفْسِي، إِنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ خَطَبَ ابْنَةَ أَبِي جَهْلٍ عَلَى فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلاَمُ فَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَخْطُبُ النَّاسَ فِي ذَلِكَ عَلَى مِنْبَرِهِ هَذَا وَأَنَا يَوْمَئِذٍ مُحْتَلِمٌ فَقَالَ «إِنَّ فَاطِمَةَ مِنِّي، وَأَنَا أَتَخَوَّفُ أَنْ تُفْتَنَ فِي دِينِهَا». ثُمَّ ذَكَرَ صِهْرًا لَهُ مِنْ بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ، فَأَثْنَى عَلَيْهِ فِي مُصَاهَرَتِهِ إِيَّاهُ قَالَ «حَدَّثَنِي فَصَدَقَنِي، وَوَعَدَنِي فَوَفَى لِي، وَإِنِّي لَسْتُ أُحَرِّمُ حَلاَلاً وَلاَ أُحِلُّ حَرَامًا، وَلَكِنْ وَاللَّهِ لاَ تَجْتَمِعُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَبِنْتُ عَدُوِّ اللَّهِ أَبَدًا». [ر: ۸۸۴]

## رجال الحديث

① **سعيد بن محمد الجرمی:** دا سعيد بن محمد بن سعيد الجرمی رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الجهاد، "باب قتال الترك" کښې تیره شوې ده[4]

② **يعقوب بن ابراهيم:** دا يعقوب بن ابراهيم قرشي زهری رحمه الله دې. د دوی ترجمه په کتاب العلم "باب ما ذكر فی ذهاب موسی...." کښې تیره شوې ده[5]

---

[1]) المغنی: ۹۱٤۷/، کتاب الاشربة، رقم (۷۳۷۰)، والموسوعة الفقهیة: ۱۶۵/۳۲_۱۶۶، مادة فضة)_
[2]) عمدة القاری: ۳۳/۱۵)_
[3]) قوله: المسور بن مخرمة": الحديث، مر تخریجه فی الجمعة، باب من قال فی الخطبة بعد......)_
[4]) کشف الباری، کتاب الجهاد: ۷۰۳/۱)_
[5]) کشف الباری: ۳۳۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

③ابی: د اب نه مراد ابراهیم بن سعد قرشی زهری رحمه الله دې. د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب من کره أن یعود فی الکفر......" کښې راغلې دی[1]

④الولید بن کثیر: دا الولید بن کثیر مخزومی رحمه الله دې[2]

⑤محمد بن عمرو بن حلحله الدؤلی: دا محمد بن عمرو بن حلحله الدؤلی بضم الدال وفتح الهمزة رحمه الله[3] دې[4]

⑥ابن شهاب: د محمد بن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله تذکره د "بدء الوحی" په اولنی حدیث کښې تیره شوې ده[5]

⑦علی بن حسین: دا امام زین العابدین علی بن حسین بن علی رحمه الله دې[6]

**قوله:** أن علی بن حسین حدثه أنهم حین قدموا المدینة من عند یزید بن معاویة مقتل حسین بن علی رضی الله عنه لقیه مسور بن مخرمة: ابن شهاب رحمه الله فرمائی چې ماته امام زین العابدین علی بن حسین رحمه الله اوفرمائیل چې دا حضرات کله د خلیفه یزید بن معاویه د خوا نه د حضرت حسین بن علی رضی الله عنه د شهادت نه پس مدینې منورې ته راغلل نو دوی سره مسور بن مخرمه ملاؤ شو. د حضرت مسور بن مخرمه او د امام زین العابدین د ملاقات دا واقعه د ۶۱هجرئ ده، ځکه چې په دغه کال باندې د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت واقعه پیښه شوې وه[7]

دې پورتنی عبارت کښې د یزید بن معاویه نه مراد مشهور اموی خلیفه[8]، د حسین بن علی نه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نوسې[9] او د مسور بن مخرمه نه مراد مشهور صحابی دې[10]

**قوله:** فقال له: هل لك إلی من حاجة تأمرنی بها؟ فقلت له: لا: حضرت مسور بن مخرمه د امام زین العابدین نه تپوس اوکړو چې که ستاسو څۀ ضرورت ماسره متعلق وی

---

[1] ) کشف الباری:۲/۱۲۰)_
[2] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة،باب الحلق والجلوس فی المسجد)_
[3] ) عمدة القاری:۱۵/۳۳،وتحفة الباری:۳/۵۳۹)_
[4] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان،باب جهر الامام بالتامین)_
[5] ) کشف الباری:۱/۳۲۶)_
[6] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الغسل،باب الغسل بالصاع ونحوه)_
[7] ) عمدة القاری:۱۵/۳۳)_
[8] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب التهجد،باب صلاة النوافل جماعة)_
[9] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب التهجد،باب تحریض النبی صلی الله علیه وسلم علی صلاة.....)_
[10] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء،باب استعمال فضل وضوء الناس)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو ماته حکم اوکړئ چې زۀ ئې پوره کړم؟ما ورته اووئیل چې نه،حضرت مسور رضی الله عنه چې وړاندې امام زین العابدین ته کومې خبرې او کوم گزارش وړاندې کول غواړې نو دا پورته چې څۀ تیر شو دا د هغې دپاره تمهید وو.

**قوله**: فقال له: فهل أنت معطي سيف رسول الله صلى الله عليه وسلم؟: نو مسور رضی الله عنه زین العابدین رحمه الله ته اوفرمائیل چې ایا تاسو به ماته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم توره (تلوار) راکړئ؟

معطي د یاء تشدید سره دې،دویمه یاء د متکلم ده(۱)

او د "سیف رسول الله" نه مراد په ظاهره د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مشهوره توره "ذوالفقار" ده،دا توره نبی کریم صلی الله علیه وسلم د غزوۀ بدر په موقع باندې د نفل په طور اخستلې وه او دا هغه توره ده چې ددې باره کښې نبی علیه السلام د غزوۀ احد په موقع باندې خوب لیدلې وو چې د دوی په توره باندې دوه غاښونه لگیدلې دی(۲)

انظر سیرة ابن هشام:۳/۶۲،غزوة احد،رؤیا رسول الله .....،وایضا الروض الانف:۲/۱۲۷)_نبی علیه السلام سره تولې لس تورې وې چې په هغې کښې یو توره "ذوالفقار" ده(۳)

اوس سوال دادې چې د نبی علیه السلام دا توره د حضرت علی رضی الله عنه خاندان ته څنگه راغله؟ ددې په جواب کښې علامه عینی رحمه الله دوه احتمالات ذکر کړې دی:

① غالباً دا توره نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپل ژوند کښې حضرت علی رضی الله عنه ته هبه کړې وه،چې وروستو بیا حضرت زین العابدین رحمه الله ته راورسیده.

② یا حضرت ابوبکرصدیق حضرت علی رضی الله عنهما ته ورکړې وه چې وروستو بیا د دوی خاندان ته منتقل شوه(۴).

**قوله**: فاني أخاف أن يغلبك القوم عليه: ځکه چې ماته ویره ده چې دا قوم به د طاقت په زور سره ستاسو نه دا توره واخلی.دلته د قوم نه مراد بنو امیه دی،ځکه چې د ساداتو حضراتو اختلاف هم دوی سره وو.

**قوله**: وأيم الله،لان أعطيتنيه لايخلص إليهم أبداً حتى تبلغ نفسي: په خدائې قسم!

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/۳۳،وارشاد الساری:۵/۲۰۰)_

[2]) د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مذکوره خوب لاندې ذکر کولې شی،ابن هشام رحمه الله فرمائی: فلما سمع بهم رسول الله صلی الله علیه وسلم والمسلمون قد نزلوا حیث نزلوا،قال رسول الله صلی الله علیه وسلم للمسلمین: انی قد رایت والله خیرا،رایت بقرا، ورایت فی ذباب سیفی ثلما،ورایت انی ادخلت یدی فی درع حصنیة،فاولتها المدینة")_

[3]) قال العینی: والظاهر ان هذا السیف هو ذوالفقار،لان سبط ابن الجوزی ذکر فی تاریخه:ولم یزل ذوالفقار عنده صلی الله علیه وسلم ،حتی وهبه لعلی رضی الله عنه قبل موته،ثم انتقل الی آله،وکانت به عشرة اسیاف؛ منها: ذوالفقار، تنفله یوم بدر".انظر عمدة القاری:۱۵/۳۳)_

[4]) عمدة القاری:۱۵/۳۳،وفتح الباری:۶/۲۱۴،وعمدة القاری:۱۵/۳۴،وشرح القسطلانی:۵/۲۰۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كه تاسو دا توره ماته راكړئ نو بنو اميه به هيڅكله دا حاصله نه كړى يا دا چې زما ساه لاړه شى،زۀ پرې وفات شم،مطلب دا دى چې زۀ به ددې تورې په خاطر خپل ځان قربان كړم[1]

**يو سوال او د هغې جواب** حافظ رحمه الله د باب د حديث په بنياد باندې د تعجب په طور يو سوال نقل كړې دې،هغه دا چې حضرت مسور رضي الله عنه فرمائى چې زۀ ددې تورې د حفاظت دپاره د خپل ځان قربانئ ته تيار يم،دلته حضرت مسور رضي الله عنه صرف او صرف د حضرت فاطمه رضي الله عنها د نوسى،زين العابدين،د زړۀ ساتلو دپاره خپل خواهش د هغوى وړاندې كوى.ليكن بل طرفته چې حضرت حسين بن على رضي الله عنهما چې د حضرت فاطمه رضي الله عنها ځوئې دې،د هغوى دپاره د خپل ځان قربانى نه وركوى،نه ئې څۀ داسې د خپل خواهش اظهار اوكړو،تردې چې حضرت حسين رضي الله عنه د ظالمانو حكمرانانو دلاسه شهيد شو او دا لويه واقعه پيښه شوه.

ددې په جواب كښې د حضرت مسور رضي الله عنه له طرفه په عذر كښې دا وئيلې كيدې شى چې حضرت حسين رضي الله عنه كله عراق ته روان شو نو د اهل حجاز او د حضرت مسور رضي الله عنه په ذهن كښې هم دا خبره نۀ وه چې د حضرت حسين رضي الله عنه معامله به دا رخ اختيار كړى او هلته به د خپلو ملګرو سره مظلومانه شهادت بيا مومى[2]والله اعلم

**قوله: إن على بن ابى طالب خطب ابنة أبى جهل على فاطمة رضي الله عنها:** حقيقت كښې حضرت على په حضرت فاطمه رضي الله عنها باندې بن راوستلو دپاره د ابوجهل هشام بن مغيره لور ته د نكاح پيغام وركړو.

د حضرت على رضي الله عنه تذكره تفصيل سره په كتاب العلم،"باب إثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم"كښې تيره شوې ده[3]

**د ابنة ابى جهل نه څوک مراد دى؟** دا د دين مشهور دشمن د ابوجهل لور حضرت جويريه بنت هشام بن مغيره مخزوميه رضي الله عنها ده.ددې نوم جميله ښودلې شوې دې،ليكن د حافظ رحمه الله په قول حضرت على رضي الله عنه چې كومې ښځې ته د نكاح پيغام وركول غوښتل نو هغه جويريه وه.[4] چې كله نبى كريم صلى الله عليه وسلم د خپل خفګان اظهار اوكړو او حضرت على رضي الله عنه دې سره نكاح اونكړې شوه نو عتاب ابن اسيد ورسره نكاح اوكړه چې د نبى عليه السلام په عهد كښې د مكې مكرمې امير وو،ددې نه ئې اولاد هم اوشو،تاريخ ئې د يو ځوى نوم محفوظ كړې دې چې د هغۀ نوم عبد الرحمن وو،دې په جنګ جمل كښې شهيد شو[5].

---

[1]) فتح البارى:۲۱٤/۶،وعمدة القارى:۳٤/۱۵،وشرح القسطلانى:۲۰۱/۵)_

[2]) فتح البارى:/۹۳۲۷)_

[3]) كشف البارى،كتاب العلم:۱٤۹/٤،دغه شان د حضرت فاطمه رضي الله عنها د حالاتو دپاره اوګورئ:كتاب الوضوء،باب غسل المراة اباها الدم.....)_

[4]) الاصابة:۲۶۵/٤،وعمدة القارى:۳٤/۱۵،ددې په نوم كښې نور اقوال هم دى،اوګورئ: فتح البارى: ۸۶/۷،والطبرانى فى الكبير:۲۱۰/۲٤)_

[5]) الاصابة:۲۶۵/٤،وفتح البارى:۸۶/۷،وعمدة القارى:۲۳۰/۱۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت جويريه رضي الله عنها د نبى عليه السلام نه د حديث روايت هم كوى(۱). فرمائى چې يوځل نبى كريم عليه السلام زمونږ كور سره تير شو او اوبۀ ئې طلب كړې نو ما ورته پيالئ راوړه او اوبۀ مې ورته پيش كړې دې دوران كښې يو سړى د نبى عليه السلام نه څۀ تپوس اوكړو چې دوه د زيږ رنګ څادرونه پرې پراتۀ وو ،نبى عليه السلام په جواب كښې اوفرمائيل. "تعبد الله،لاتشرك به شيئاً،وتقيم الصلوة،وتؤدى الزكوة،وتصل الرحم" بيا ئې اوفرمائيل "خيرامتى قرنى،ثم الذين يلونهم"(۲)

**د نبى كريم عليه السلام د خطبې سبب څۀ وو؟**:د باب په حديث شريف كښې چې د نبى كريم عليه السلام كومه خطبه او تقرير نقل كړې شوې دې ددې وجه څۀ وه؟په دې كښې دوه قولونه دى:

①د كتاب النكاح د روايت نه معلوميږى كوم چې د ابن ابى مليكه نه روايت دې(۳)چې د بنو هشام بن مغيره اجازت غوستل د خطبې سبب وو،چې كله بنو هشام بن مغيره د خپلې جينئ نكاح حضرت على رضي الله عنه سره كول غوښتل او د نبى عليه السلام نه ئې اجازت طلب كړو نو نبى عليه السلام خطبه ارشاد اوفرمائيله(۴).

②او د امام زهرى چې كوم طريق دې،په هغې كښې يو بل سبب بيان كړې شوې دې،په صحيح ابن حبان كښې دى:

"أن علياً خطب بنت أبى جهل،فبلغ ذلك فاطمة،فاتت رسول الله صلى الله عليه وسلم،فقالت:إن الناس يزعمون أنك لاتغضب لبناتك،وهذا على ناكح بنت أبى جهل!......"(۵)

"حضرت على رضي الله عنه د ابوجهل لور ته د نكاح پيغام وركړو ،دا خبر حضرت فاطمه رضي الله عنها ته اورسيدو نو هغه نبى عليه السلام ته راغله او وې فرمائيل چې د خلقو خيال دادې چې تاسو د خپلو لونړو د حمايت او ملګرتيا دپاره نۀ غصه كيږئ، دې على ته اوګورئ چې هغه د ابوجهل لور سره نكاح كوونكې دې!......."

نبى عليه السلام د حضرت فاطمه په خبرې اوريدو سره مسجدنبوى ته تشريف راوړلو او خطبه ئې ارشاد اوفرمائيله.ددې روايت نه د نبى عليه السلام د خطبې لوستلو سبب معلوميږى چې ددې خطبې سبب حضرت فاطمه رضي الله عنها وه(۶)

**د دواړو قولونو مينځ كښې تطبيق**:اوس د دواړو قولونو مينځ كښې تطبيق دادې چې د نبى عليه السلام د تقرير سبب دا دواړه خبرې كيدې شى چې بنى هشام بن مغيره د خپلې جينئ په سلسله

---

(۱) الاصابة:۴/۲۶۲،ومعرفة الصحابة:۵/۲۰۴،باب الجيم)_

(۲) پورته حواله جات،والطبرانى فى الكبير:۲۴/۲۵۸،رقم (۶۵۸)،باب الدال،درة بنت ابى لهب.....)_

(۳) صحيح البخارى،كتاب النكاح،باب ذب الرجل عن ابنته فى الغيرة والانصاف،رقم (۵۲۳۰))_

(۴) فتح البارى:/۹۳۲۸)_

(۵) الاحسان بترتيب صحيح ابن حبان،مناقب على بن ابى طالب،ذكر البيان بان على بن ابى طالب.....رقم (۶۹۱۸)، وروى بعضه البخارى فى صحيحه،كتاب فضائل الصحابة،باب ذكر اصهار النبى صلى الله عليه وسلم.....رقم (۳۷۲۹)

(۶) فتح البارى:/۹۳۲۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې نبى ﷺ سره رابطه اوكړه چې نكاح كيدل پكار دى يا نۀ؟ او چې كله ددې معاملې خبر حضرت فاطمه رضي الله عنها ته اوشو نو هغې هم خپل والدمحترم ته شكايت اوكړو چې على زما بن راوستل غواړى.بهرحال په دواړو سببونو كښې څۀ منافات نشته.

**د نكاح پيش كش د چاله طرفه وو؟** د روايتونو د تلاش نه هم دا معلوميږى چې د ابوجهل لور سره د نكاح كولو فيصله د حضرت على رضي الله عنه خپله فيصله وه،په خپله د جينئ والو له طرفه په دې كښې څۀ حركت نۀ وو،ددې وجې نه په اكثرو روايتونو كښې د خطبې نسبت د حضرت على رضي الله عنه طرفته دې،په خپله چې د حضرت فاطمه رضي الله عنها په حوالې سره پورته كوم حديث مبارك تير شو،په هغې كښې هم د "ناكح"لفظ حضرت فاطمه رضي الله عنها استعمال كړې دې،حالانكه دغه وخت پورې نكاح شوې نۀ وه،ددې وجه ښكاره ده چونكه د حضرت على رضي الله عنه اراده وه او اراده ئې مضبوطه هم وه چې كه ممانعت اونكړې شو نو چې نن نۀ وى چې صبا نكاح خامخا اوشى،ددې وجې نه حضرت فاطمه رضي الله عنها د "ناكح"لفظ استعمال كړو.[1] په بعضې روايتونو كښې راځى چې په خپله حضرت على رضي الله عنه هم په دې سلسله كښې نبى كريم ﷺ سره مشوره كړې وه او د نكاح اجازت ئې غوستلې وو.په مستدرك حاكم كښې د حضرت سويد بن غفله مخضرمى رضي الله عنه روايت دې،فرمائى:

"خطب على ابنة أبي جهل إلى عمها الحارث بن هشام،فاستشار النبى صلى الله عليه وسلم،فقال: أعن حسبها تسئلنى؟قال على: قد أعلم ما حسبها،ولكن أتامرنى بها؟فقال: لا،فاطمة بضعة منى،ولا أحسب إلا وأنها تحزن وتجزع،فقال على: لا آتى شيئاً تكرهه"[2]

يعنى:"حضرت على رضي الله عنه د ابوجهل لور سره د نكاح كولو دپاره د هغې ترۀ حارث بن هشام ته پيغام واستوو او په دې معامله كښې ئې نبى كريم ﷺ سره مشوره اوكړه،نبى ﷺ اوفرمائيل،آيا تۀ ما نه ددغه ښځې د حسب نسب تپوس كول غواړې؟نو حضرت على رضي الله عنه اووئيل چې د هغې حسب نسب ماته ښۀ معلوم دې ليكن آيا تاسو ماته هغې سره د نكاح كولو مشوره راكوئ؟نبى ﷺ اوفرمائيل،فاطمه زما حصه ده او زما خيال دادې چې ستا په دې نكاح كولو سره به هغه غمژنه او پريشانه شى.نو حضرت على رضي الله عنه اووئيل چې زۀ به داسې هيڅ يو كار اونكړم چې تاسو ته ناخوښه وى"

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې غالباً حضرت على رضي الله عنه د نبى ﷺ دخطبې لوستلو نه پس اجازت غوستلې وو او په خپله د خطبې دوران كښې موجود نۀ وو،ددې وجې نه ئې مشوره هم اوكړه ليكن هركله چې نبى ﷺ منع كړو نو حضرت على رضي الله عنه ددې معاملې نه وروستو،لكه په يو حديث كښې دا الفاظ راغلې دى كوم چې د "شعيب عن الزهرى" د طريق نه روايت دې چې: "فترك على الخطبة"[3]

---

[1] ) پورته حواله)_

[2] ) المستدرك للحاكم:۳/۱۷۳،كتاب معرفة الصحابة،ذكرمناقب فاطمة بنت رسول الله ﷺ،رقم (٤٧٤٩)

[3] ) صحيح البخارى،كتاب فضائل الصحابة،باب ذكر اصهار النبى ﷺ ......رقم (۳۷۲۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د ابوداؤد شريف روايت(۱) چې د "معمرعن الزهري عن عمروة" نه دې، هغې كښې دا الفاظ راغلي دى: "فسكت على عن ذلك النكاح"(۲) والله اعلم بالصواب

**قوله: فسمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يخطب الناس فى ذلك على منبره هذا:** نو ما د نبى عليه السلام نه واوريدل چې هغوى خلقو ته په دې معامله كښې خطاب كوو په خپل منبر باندې.

مطلب دادې چې كله نبى عليه السلام دا واوريدل چې حضرت على رضي الله عنه د حضرت فاطمه رضي الله عنها بن راوستل غواړى او د ابوجهل لور سره نكاح كول غواړى نو نبى عليه السلام د خپل منبر نه دا راتلونكې خطبه ارشاد اوفرمائيله، دې دپاره چې خلق هم د اصل واقعې نه خبردار شى او خلقو ته هم پته اولګى چې د نبى د لور او د الله تعالى د دشمن د لور اجتماع نۀ شى كيدې(۳)

**وانايومئذ محتلم:** او زۀ دغه ورځو كښې بالغ ووم.

ددې جملې نه د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه مقصود دادې چې وړاندې به زۀ د نبى كريم صلى الله عليه وسلم كوم الفاظ نقل كوم نو هغه غيريقينى نۀ دى بلكه ماته ښۀ ياد دى چې زۀ هغه وخت بالغ ووم او د واقعاتو د تول مې صلاحيت او قابليت لرلو(۴)

**د حضرت مسور رضي الله عنه عمر دغه وخت څومره وو؟:** ددې نه پس ځان په دې پوهه كړئ چې ابن سيد الناس د باب د حديث دې الفاظو "وانايومئذ محتلم" ته د حقيقت نه خلاف او غلط وئيلې دى او فرمائى چې صحيح لفظ "كالمحتلم" دې مطلب دا چې د بالغانو په شان وو. دا د اسماعيلى روايت دې ددې وجه دا ده چې حضرت مسور رضي الله عنه د نبى په ژوند مبارک كښې بالغ شوې نۀ وو ځكه چې دوى د حضرت عبدالله بن زبير نه پس پيدا شوې وو. ددې وجې نه د حضرت مسور عمر مبارک به د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د وفات نه پس اتۀ كاله وى(۵) ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن سيدالناس ددې رائې سره اختلاف كړې دې او فرمائى چې د ابن سيدالناس له طرفه د باب حديث ته غلط وئيل صحيح نۀ دى، ځكه چې د صحيح قول مطابق د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه ولادت د هجرت نه مخكښې كال باندې شوې وو، ددې وجې نه به د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د وفات په وخت د دوى عمر نهه كاله وى، لهذا دا خبره بالكل ممكن ده ځكه چې دا د بلوغ اقل مدت (كمه مده) ده يعنى نهه كاله، په دې كښې به بالغ شوې وى، يا به

---

(۱) سنن ابى داود، كتاب النكاح، باب ما يكره ان يجمع بينهن من النساء، رقم (۲۰۷۰))_

(۲) فتح البارى: ۹۳۲۸/، دغه شان اوګورئ، شرح مشكل الآثار للامام الطحاوى: ۵۱۱/۱۲_۵۱۹، باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم من قوله: ان بنى هشام بن المغيرة..... "، الباب: (۷۸۸))_

(۳) فتح البارى: ۸۶/۷)_

(۴) فتح البارى: ۹۳۲۷/)_

(۵) پورته حواله)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د حضرت مسور قول "محتلم" په مبالغه باندې حمل کولې شي، ددې نه مراد به تشبيه وي، دغه شان دواړه روايتونه يعنې "محتلم" او "کالمحتلم" د معنې په لحاظ سره به موافق شي، يو ته صحيح وئيل او دويم لره د غلط ګرځولو به هيڅ ضرورت پاتې نۀ شي.

ددې تول تفصيل ضرورت دې دپاره محسوس کړې شو او ددې وجه دا شوه چې د اتو کالو ماشوم ته چرته هم محتلم يا کالمحتلم نۀ دې وئيلې شوې، مګر دا چې تشبيه مراد واخستلې شي او دا اووئيلې شي چې په فهم او حفظ کښې او د اخذ په معامله کښې حضرت مسور د بالغ په شان وو[1] والله اعلم بالصواب.

**قوله: فقال: ان فاطمة مني، وانا اتخوف ان تفتن في دينها:** نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل، فاطمه رضي الله عنها زما نه ده او ما ته دا ويره ده چې ددې معاملې د وجې نه به د فاطمې رضي الله عنها دين متاثره شي.

مطلب دادې چې حضرت فاطمه رضي الله عنها به د طبعي غيرت په وجه سره صبر اونکړې شي او په دې سره به د هغې ذاتي او خانګي ژوند متاثره شي[2]

**قوله: ثم ذكر صهرا له من بني عبد شمس، فاثنى عليه في مصاهرته اياه، قال: حدثني فصدقني ووعدني فوفى لي:** بيا نبي کريم ﷺ د بنو عبد شمس سره تعلق لرونکې يو خپل زوم (د ابوالعاص بن الربيع) تذکره اوفرمائيله نو هغۀ سره ئې د خپلې رشتې او تعلق تعريف اوکړو، وې فرمائيل هغۀ ماسره خبره اوکړه او هغه ئې رښتونې کړه، ماسره ئې وعده اوکړه او هغه ئې پوره کړه.

**حضرت ابوالعاص بن الربيع:** دا حضرت ابوالعاص بن الربيع رضي الله عنه بن عبدالعزى بن عبدمناف بن قصي بن کلاب قرشي عبشمي دې[3]

د دوی د مور نوم هاله بن خويلد ده چې د ام المؤمنين حضرت خديجة الکبرى رضي الله عنها خور وه، دغه شان حضرت ابوالعاص رضي الله عنه د حضرت خديجه رضي الله عنها حقيقي خورئې شو[4]

د دوی نوم څۀ وو، په دې کښې د سيرت د عالمانو اختلاف دې، بعضو لقيط، بعضو زبير، بعضو هشيم، بعضو مهشم او بعضو ياسر ښودلې دې.

د ابن عبد البر رحمه الله د قول مطابق اکثر حضراتو لقيط اختيار کړې دې[5]

---

[1] ) پورته حواله)_

[2] ) عمدة القارى:۱۵/۳٤)_

[3] ) سير اعلام النبلاء:۱/۳۳۰،والاصابة: ٤/۱۲۱،والاستيعاب:۲/٤۳۰،باب العين من الکنى)_

[4] ) سير اعلام النبلاء:۱/۳۳۱،والاصابة:٤/۱۲۱،والاستيعاب:۲/٤۳۰،والمستدرک للحاکم:۳/٦۳۸ كتاب معرفة الصحابة،ذکر ابى العاص......رقم (٦٦۹۳))_

[5] ) الاستيعاب:۲/٤۳۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د دوی لقب جرو البطحاء وو ،دغه شان په امین سره به هم رابللې کیدو[1]

د غزوه حدیبیه نه پنځه میاشتې مخکښې دوی اسلام قبول کړو[2]

د نبی کریم ﷺ د ټولو نه مشره لور حضرت زینب رضي الله عنها د دوی په عقد کښې وه،د بدر په موقع باندې د مکې مکرمې د مشرکینو چې کوم کسان ګرفتار شوې وو،په هغوی کښې حضرت ابو العاص بن الربیع هم وو،مسلمانانو چې کله د دغه کسانو په بدله کښې د فدیې د وصولولو فیصله اوکړه نو د قیدیانو متعلقینو او وارثانو د مکې مکرمې نه پیسې راواستولې،حضرت زینب چې دغه وخت مکه مکرمه کښې وه،هغې هم د خپل خاوند د آزادئ دپاره فدیه راواستوله،کوم څیز چې هغې راواستوو د هغې په لیدلو سره د نبی کریم ﷺ زړهٔ مبارک نرم شو ،هغه د حضرت خدیجة الکبری رضي الله عنها هار وو[3]،چې ددې دواړو د وادهٔ په موقع باندې حضرت خدیجة الکبری رضي الله عنها حضرت زینب رضي الله عنها ته په غاړه کښې اچولې وو،د هار په لیدلو سره نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائیل چې که تاسو مناسب ګنړئ نو د زینب قیدی پریږدئ چې دې هغې ته واپس لاړ شي.صحابه کرامو رضي الله عنهم دا خبره اومنله او هغه ئې آزاد کړو.

مکې مکرمې ته د روانیدو نه مخکښې نبی کریم ﷺ د حضرت ابوالعاص نه وعده واخستله چې دې واپس لاړ شي نو حضرت زینب رضي الله عنها به د نبی کریم ﷺ خدمت ته راؤلیږي او نبی کریم ﷺ دهٔ ته ددې خبرې د پټ ساتلو دپاره هم اوفرمائیل.

بل طرفته رسول الله مبارک ﷺ حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه(چې د نبی علیه السلام متبنی وو)او یو بل انصاری راؤبللو او ورته ئې اوفرمائیل چې تاسو دواړه بطن یاجج[4]ته روان شئ او هلته اودریږئ،تردې چې حضرت زینب رضي الله عنها تاسو ته راشي نو تاسو دواړه به د هغې د سفر ملګری ئې او هغه خپل ځان سره راولئ،دا د بدر نه څو میاشتې پس واقعه ده.

حضرت ابوالعاص چې د آزادیدو نه پس کله مکې مکرمې ته اورسیدو نو حضرت زینب ته ئې اووئیل چې خپل والد محترم ته د تلو دپاره تیاری اوکړه نو هغوی تیاره مکمل کړه او د هغې لیور کنانه چې د ترور ځوې ئې هم وو،یو اوښ ئې راوستو چې په هغې باندې حضرت زینب رضي الله عنها سوره شوه او کنانه هم غشی او کمان ځان سره کړل او د ورځې په رڼرا کښې روان شو، په دې باندې د مکې مکرمې والا ډیر غصه شو او د حضرت زینب رضي الله عنها په تلاش کښې

---

[1] ) پورته حواله،والاصابة:۱۲۱/٤،وسیر اعلام النبلاء:۳۳۱/۱)_

[2] ) سیر اعلام النبلاء:۳۳۱/۱)_

[3] ) سیر اعلام النبلاء:۳۳۲/۱،والمستدرک:۲۳٦/۳،کتاب معرفة الصحابة،ذکر مناقب ابی العاص.....،رقم (۵۰۳۸)،والسیرة النبویة لابن هشام:٦۵۳/۲،ومسند احمد،مسند عائشة،رقم (۲٦۸۹٤)،وابو داود،کتاب الجهاد،باب فی فداء الاسیر بالمال،رقم (۲٦۹۲)،من روایة رضي الله عنها،والاصابة:۱۲۱/٤)_

[4] ) قوله: یاجج":هو بفتح الیاء،وبعدها همزة،وجیم مکسورة:موضع علی ثمانیة امیال من مکة.انظر تعلیقات سیر اعلام النبلاء:۳۳۳/۱،ومعجم البلدان:٤۲٤/۵،باب الیاء والالف وما یلیهما)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راووتل نو كنانه په يو مقام "ذوطوى" كښې اوښ اودرولو او خپل تركش ئې خور كړو، دلته يو مشرک هبار بن الاسود حضرت زينب رضي الله عنها ته نيزه اوښودله او وې ويروله، ددې معاملې په ليدلو سره كنانه اووئيل چې څوک هم نزدې راغې نوزۀ به دهغۀ په بدن كښې دا غشې ښخ كړم.
دې خلقو كښې ابوسفيان هم وو، هغۀ كنانه ته اووئيل، ائې سړيه!دا غشي زمونږ نه لرې كړه، مونږ تاسره څۀ خبره كول غواړو نو كنانه صبر شو او د ابوسفيان خبره ئې واؤريده، ابوسفيان وئيل چې دا تا ښۀ اونكړل چې د ورځې په وخت كښې اود سردارانو او اميرانو په موجودګۍ كښې راووتلې، حالانكه اوس نزدې مونږ په بدر كښې چې كومې رسوايئ او ذلت سره مخامخ شو او د محمد ﷺ نه چې مونږ ته كوم تكليف راؤرسيدۀ د هغې تاته ښۀ پته ده، دا تۀ چې د ورځې په رڼا كښې دا ښځې بولې، خلق به دا ګنړى چې دا هم د بدر د ذلت يو حصه ده. په خدائې قسم!دوى دلته د حصاړولو مونږ ته هيڅ ضرورت نشته، ددې وجې نه اوس دا زينب واپس بوځه، چې كله حالات پرسكون او د امن شي او خلقو كښې دا خبره مشهوره شي چې مونږ دوى واپس كړې دى نو پټه ئې بيا بوځه او پلار ته ئې حواله كړه.
نو كنانه د ابوسفيان په خبره باندې عمل اوكړو او حضرت زينب رضي الله عنها ئې واپس كړه، څو ورځې پس دوباره اووتل او دا ئې حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه او د هغوى ملګرى ته حواله كړه، دې دواړو حضراتو حضرت زينب رضي الله عنها مدينې منورې ته اورسوله.
د فتح مكه نه څۀ وخت مخكښې خبره ده چې حضرت ابوالعاص د تجارت په غرض سره د شام قصد اوكړو، د قريشو هم ورسره ډير مال وو، واپسئ كښې د مسلمانانو يو لښكر سره مخامخ شو، مسلمانانو ترينه ټول مال واخستۀ ليكن دې يئ ګرفتار نۀ كړې شو، دې د هغه ځائې نه اوتختيدۀ، د شپې مدينې منورې ته راغئ او حضرت زينب رضي الله عنها ته راؤرسيدۀ، د هغې نه ئې پناه طلب كړه، حضرت زينب رضي الله عنها ورته پناه وركړه او شپه ئې هلته تيره كړه.
سحر چې كله نبى كريم ﷺ او صحابه كرام رضي الله عنهم د مانځه نه فارغ شو نو د ښځو د ډلې نه حضرت زينب رضي الله عنها په اوچت آواز سره اوفرمائيل: "ايها الناس! قد اجرت ابا العاص بن الربيع" چې ائې "خلقو! ابوالعاص بن الربيع زما په پناه كښې دې".
بل طرفته نبى كريم ﷺ هغه لښكر ته پيغام اوليږو كوم لښكر چې د ابوالعاص مال اخستلې وو: "ان هذا الرجل منا حيث قد علمتم، وقد اصبتم له مالا، فان تحسنوا وتردوه، فانا نحب ذلك، وان ابيتم، فهوفئ الله، فانتم احق به"
يعنى: "څنګه چې تاسو ته هم معلومه ده چې دا زمونږ د خاندان كس دې او تاسو ددۀ مال اخستلې دې، نو كه تاسو دۀ سره ښۀ سلوک اوكړئ او ددۀ مال واپس كړئ نو دا مونږ ته خوښه ده او كه تاسو انكار اوكړئ نو دا غنيمت دې، چې تاسو ئې ډير حقدار يئ"
په دې باندې حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم اوفرمائيل، دغه مال به ورته مونږ واپس كړو، نو د وعدې مطابق صحابه كرامو رضي الله عنهم د هغۀ اخستلې شوې ټول مال واپس كړو.
حضرت ابوالعاص د خپل تجارت مال او سامان واخستلو او مكې مكرمې ته روان شو، هلته په رسيدلو سره چې څومره مال وو، هغه ئې حواله كړو او بيا ئې وفرمائيل ائې د

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مکې والو! آیا په تاسو کښې په ما باندې د چا څۀ حق شته؟ هغوی په جواب کښې اووئیل، نه! الله تعالی دې تا ته جزاء خیر درکړی، په دې باندې حضرت ابوالعاص اوفرمائیل:

"اشهد ان لا اله الا الله و ان محمدا عبده ورسوله" په الله تعالی قسم! ما مدینه منوره کښې د نبی کریم ﷺ خوا کښې اسلام ددې وجې نه قبول نۀ کړو چې هسې نۀ تاسو دا خیال اونکړئ چې زۀ ستاسو مال خوړل غواړم، اوس چې هرکله ما تاسو ته ستاسو مالونه واپس کړل او په ما باندې د چا څۀ حق پاتې نۀ شو نو ددې وجې نه زۀ د اسلام د قبلولو اعلان کوم.

ددې نه پس دوی مدینې منورې ته د نبی ﷺ خوا ته تشریف راوړلو او نبی کریم ﷺ حضرت ابوالعاص او د حضرت زینب نکاح خپل مینځ کښې برقرار اوساتله، دغه شان شپږ کاله فراق او جدائی ددې دواړو ترمینځه تیره شوه[1]

د باب د حدیث شریف په الفاظو "حدثنی فصدقنی، و وعدنی، فوفی لی" کښې دې پورتنۍ ذکر شده واقعې طرفته اشاره ده چې حضرت ابوالعاص رضی الله عنه د خپل ډېر زیات محبت باوجود (کوم چې ئې حضرت زینب رضی الله عنها سره وو) هغه د خپل پلار طرفته روانه کړه او نبی ﷺ سره ئې چې کومه وعده کړې وه نو هغه ئې پوره کړه، په دې کښې نبی ﷺ د ابوالعاص ددې کار تعریف او ستائینه کړې ده[2] د حضرت ابوالعاص رضی الله عنه د اولاد په سلسله کښې تاریخ صرف د یو لور تذکره کوی[3] امامه بنت ابوالعاص چې ددې مور حضرت زینب رضی الله عنها وه. دا هغه امامه ده چې نبی ﷺ به دا اوچته کړې وه او مونځ به ئې کوو، دې نه د دوی خپل مینځ کښې هغه ډېر زیات مینه محبت ښۀ طریقې سره معلومیږی، د صحیح بخاری وغیره روایت دې کوم چې د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه نه روایت دې چې:

"أن رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یصلی وهو حامل بنتَ زینب بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم، ولابی العاص بن الربیع، فاذا قام حملها، واذا سجد وضعها؟......"[4] (اللفظ للبخاری)

---

[1] ) للاستزادة انظر: سیر الذهبی: ۳۳۲/۱_۳۳۴، والاصابة: ۱۲۲/٤، والمعجم الکبیر: ۴۲۶/۲۲_۴۳۱. ما اسندت ام سلمة رضی الله عنها رقم (۱۰۵۰)، والسیرة النبویة لابن هشام: ۶۵۱/۲_۶۵۹ اسر ابی العاص بن الربیع رضی الله عنه ....)

[2] ) سیر اعلام النبلاء: ۳۳۱/۱)_

[3] ) دا د مشهور قول مطابق خبره ده. البهت حاکم په مستدرک (۲۳۶/۳) کښې او حافظ په فتح الباری (۸۵/۷) کښې او عینی په عمدة القاری (۲۳۰/۱۶) کښې د یو خوی ذکر هم کړې دې چې د هغۀ نوم علی وو. دې په ماشوموالی کښې وفات شوې وو، غالباً ددې وجې نه عام طور سره د دوی ذکر نۀ کیږی. او حضرت امامه رضی الله عنها ډېر وخت ژوندۍ وه. اول د حضرت علی ابن ابی طالب رضی الله عنه په نکاح کښې وه، د هغوی د وفات نه پس د حضرت مغیره بن نوفل په نکاح کښې راغله او د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه په دور کښې دا وفات شوه. رضی الله عن الجمیع اوګورئ سیر اعلام النبلاء: ۳۳۵/۱، والاصابة: ۱۲۳/٤)_

[4] ) الحدیث اخرجه البخاری، ابواب سترة المصلی، باب اذا حمل جاریة صغیرة علی عنقه فی الصلاة، رقم (۵۱۶)، وکتاب الادب، باب رحمة الولد وتقبیله، رقم (۵۹۹۶)، ومسلم، کتاب المساجد، باب جواز حمل الصبیان...... رقم (۱۲۱۲_۱۲۱۵)، وابو داود، کتاب الصلاة، باب العمل فی ....[بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې ”نبی ﷺ به امامه اوچته کړې وه او مونځ به يې کولو .د قيام په حالت کښې به ئې اوچته کړې وه او د سجدې په وخت به ئې په زمکه کيخودله“(۱) په شپږو کتابونو کښې د حضرت ابوالعاص رضي الله عنه نه څۀ حديث منقول نۀ دې(۲) دوی د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه په زمانه کښې په ۱۲ هجرئ او د ذی الحجې په مياشت کښې وفات شو(۳) رضی الله عنه وارضاه

**قوله: وإني لیست أحرم حلالاً، ولا أحل حراماً، ولكن والله، لا تجتمع بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم وبنت عدو الله أبداً:** او زۀ يو حلال څيز لره حرام او حرام څيز لره حلال نۀ ګرځوم، ليکن په خدائې قسم! د رسول الله ﷺ او د الله تعالی د دشمن لور په يو ځائې کښې جمع کيدې نۀ شي. د باب د حديث شريف الفاظ خو تاسو اوکتل او په کتاب النکاح کښې دا الفاظ راغلې دی:

”فلا آذن، ثم لا آذن، إلا أن يريد ابن أبي طالب أن يطلق ابنتي، وينكح ابنتهم“(۴)

چې ”زۀ اجازت نۀ ورکوم، بيا نۀ ورکوم، البته يو صورت دې هغه دا چې علی زمونږ لور ته طلاق ورکړی او د هغوی جينئ سره نکاح اوکړی“.

په دې روايت کښې چې نبی ﷺ درې ځله کوم لفظ د ”لا آذن“ اوفرمائيلو نو دا د تاکيد په طور وو، دغه شان په دې کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چې دا ممانعت هميشه دپاره وو، هسې نۀ چې څوک دا خيال اوکړی چې دا ممانعت عارضی دې، د څو ورځو دپاره دې، نو ددې احتمال د بالکل ختمولو دپاره نبی ﷺ په خپله خبره کښې زور او تاکيد پيدا کړو او دا مذکوره پورتنې کلام ئې درې ځله ارشاد اوفرمائيلو(۵) او هرچه د نبی ﷺ دا الفاظ ”إلا أن يريد ابن أبي طالب أن يطلق“ دی نو دا غالباً په دې خبره باندې محمول دی چې چا نبی ﷺ ته چغلی کړې وی چې حضرت علی رضي الله عنه د ابوجهل لور سره د نکاح کولو مضبوطه اراده کړې

...بقيه ازحاشيه گذشته] الصلاة، رقم (۹۱۷_۹۲۰)، والنسائی، کتاب المساجد، باب ادخال الصبيان المساجد، رقم (۷۱۲)، وکتاب السهو، باب حمل الصبيان فی الصلاة، ووضعهن فی الصلاة، رقم (۱۲۰۵_۱۲۰۶))_

(۱) سير اعلام النبلاء: ۳۳۱/۱)_

(۲) علامه نابلسی د دوی يو روايت ذکر کړې دې، ليکن په دې کښې د دوی نه تسامح شوې ده، نابلسی رحمه الله چې د سنن نسائی د کوم روايت حواله ورکړې ده نو هغه د حضرت عثمان بن أبی العاص رضي الله عنه نه روايت دې نۀ چې د ابوالعاص بن الربيع رضي الله عنه نه، اوګورئ ذخائر المواريث: ۹۷/۳، حرف العين، رقم (۷۳٤۷)، وسنن النسائی، کتاب الاستعاذة من الهرم، رقم (٥٤٨٩)، وتحفة الأشراف: ۲۳۹/۷ (۹۷٦۸)، عثمان بن ابی العاص رضي الله عنه)_

(۳) الاصابة: ۱۲۳/٤، وسير اعلام النبلاء: ۳۳٥/۱، والطبقات الکبری لابن سعد: ۱۸/۲، ومنهم من اغرب فی تاريخ وفاته (هو العلامة العينی)، وقال: انه قتل يوم اليمامة)_

(٤) صحيح البخاری، کتاب النکاح، باب ذب الرجل ابنته فی الغيرة والانصاف: رقم (٥۲۳۰))_

(٥) فتح الباری: ۳۲۸/۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ده.ددې وجې نه ئې اوفرمائیل چې صرف په دې صورت کښې علی نکاح کولې شی چې حضرت فاطمه رضي الله عنها ته طلاق ورکړی ورنه د حضرت علی رضي الله عنه په شان شخصیت نه داسې توقع څنګه کیدې شی چې هغه د نبی علیه السلام د منع کولو باوجود د خپلې نکاح اراده اولری؟(۱)

**د منع کولو وجه څۀ وه؟** پورتنی حدیث کښې نبی علیه السلام فرمائیلې دی چې د نبی لور او د الله تعالی د دشمن لور د یو سړی په عقد کښې جمع کیدې نۀ شی.اوس سوال دا پیدا کیږی چې ددې منع کولو وجه څۀ وه؟

ابن التین رحمه الله فرمائی چې ددې واقعې صحیح ترین محمل دادې چې نبی علیه السلام د خپلې لور او د ابوجهل د لور جمع کیدل حرام ګرځولې دی.ځکه چې نبی علیه السلام په خپله ددې علت او وجه هم بیان کړې ده چې ددې کار د وجې نه به ماته تکلیف وی او دا خبره اتفاق سره واضحه ده چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته تکلیف رسول یا په دې کار کښې اخته کیدل حرام دی.او د نبی علیه السلام د قول مبارک "لا أحرم حلالاً" مطلب دادې چې د ابوجهل لور د حضرت علی رضي الله عنه دپاره حلاله ده،نکاح ورسره کولې شی لیکن د حضرت فاطمه رضي الله عنها په موجودګئ کښې ورسره نکاح نۀ شی کولې ځکه چې ددې دواړو ښځومینځ کښې جمع والې به دحضرت فاطمه رضي الله عنها د تکلیف سبب جوړ شی او د هغې تکلیف به د نبی علیه السلام د تکلیف سبب اوګرځی. "ویؤذینی ما أذاها"(۲)

او حافظ ابن حجر رحمه الله دا د نبی علیه السلام په خصوصیاتو کښې شمار کړې دی چې یو سړی سره د نبی علیه السلام لور په نکاح کښې وی نو هغه دویمې ښځې سره نکاح نۀ شی کولې.دغه شان دا هم کیدې شی چې دا د حضرت فاطمه رضي الله عنها خصوصیت وی،حافظ صاحب فرمائی:

"والذی یظهرلی أنه لایبعد أن یعد فی خصائص النبی صلی الله علیه وسلم أن لایتزوج علی بناته،ویحتمل أن یکون ذلك خاصاً بفاطمة....."(۳)

**یو سوال او د هغې جواب:** البته دلته یو سوال دا پیدا کیږی چې د نبی علیه السلام یو بل زوم حضرت عثمان ذوالنورین رضي الله عنه هم وو،لیکن په خپل تقریر کښې نبی علیه السلام د حضرت ابوالعاص بن الربیع ذکر اوکړو،د هغۀ تعریف او ستائینه ئې اوکړه او د حضرت علی رضي الله عنه د پوهولو دپاره ئې د دوی حواله ورکړه او د حضرت عثمان رضي الله عنه تذکره ئې اونۀ کړه،ددې څۀ وجه وه؟

شارحینو ددې مختلف جوابونه ذکر کړې دی:

① غالباً نبی علیه السلام حضرت علی او حضرت ابوالعاص رضي الله عنهما دواړو سره دا شرط لګولې وو چې دوی به د حضرت زینب او حضرت فاطمه رضي الله عنهما په موجودګئ کښې دویمه نکاح نۀ کوی نو حضرت ابوالعاص خو ددې شرط موافق څۀ داسې قدم پورته نۀ کړو او حضرت علی رضي الله عنه دا اقدام اوکړو ددې وجې نه نبی علیه السلام د حضرت ابوالعاص رضي الله عنه تعریف بیان کړو او حضرت

---

(۱) پورته حواله)_

(۲) پورته حواله ،وعمدة القاری:۱۵/ ۳٤،وشرح الکرمانی:۱۳/ ۸۸)_

(۳) فتح الباری:/۹۳۲۹،وتحفة الباری:۳/ ۵٤۰،وارشاد الساری:۵/ ۲۰۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

علی رضی الله عنه ته يې تنبيه او کړه(۱).

③ دا هم کيدې شی چې مذکوره شرط د حضرت علی رضی الله عنه نه هير شوې وی،ددې وجې نه ئې دا قدم اوچت کړو.

④ دا داسې څۀ شرط خو نۀ وو څکه چې ددې وضاحت چرته نشته ليکن ددې باوجود مناسب دا وه چې حضرت علی رضی الله عنه ددې خبرې خيال ساتلې وې او داسې څۀ قدم ئې پورته کړې نۀ وو چې هغې سره حضرت فاطمه رضی الله عنها او نبی علیه السلام ته تکليف وو،ددې وجې نه حضرت علی رضی الله عنه ته تنبيه اوکړې شوه حالانکه نبی علیه السلام به ډير کم چاته غصه کيدو(۲) والله اعلم بالصواب

**د حضرت فاطمه رضی الله عنها خصوصيت ولې بيان کړې شو؟** ليکن دلته دا سوال پيدا کيږی چې په دې معامله کښې د حضرت فاطمه رضی الله عنها تخصيص ولې اوکړې شو چې د هغې په موجودګۍ کښې حضرت علی رضی الله عنه د دويمې نکاح نه منع کړې شو؟

ددې جواب هم د باب په حديث شريف کښې موجوددې ،يعنی"وأنا أتخوف أن تفتن في دينها"،ددې اجمال تفصيل دادې چې حضرت فاطمه رضی الله عنها د خپلې مور بی بی حضرت خديجه الکبری او نورو درې واړو خويندو زينب،رقيه او د ام کلثوم رضی الله عنها د وفات نه پس يواځې شوې وه،داسې څۀ هستی د هغې دپاره موجوده نۀ وه چې هغې له ئې تسلې ورکړې وې،چې هغوی ته حضرت فاطمه رضی الله عنها تلې وې او خپل غم ئې سپک کړې وې،څکه چې دا خبره واضحه ده چې د بن وجود هيڅ يو ښځه هم برداشت کولې نۀ شی،ددې وجې نه که څۀ داسې خبره وه او حضرت فاطمه رضی الله عنها د غيرت د وجې نه څۀ کار کړې وې چې هغه د حضرت علی رضی الله عنه د خفګان سبب جوړ شوې وو نو د حضرت فاطمه رضی الله عنها ذاتی او کورنې ژوند او دينی کارونه به هم متاثره شوې وو حالانکه د هرې ښځې دپاره د ټولو نه لوئې او اهم څيز د خپل خاوند خوشحالی وی،چونکه ددې معاملې طرفته د نبی علیه السلام نظر مبارک وو نو ددې وجې نه هغوی حضرت علی رضی الله عنه د دويمې نکاح نه منع کړو او هغوی هم د نبی علیه السلام د تابعدارۍ کولو د وجې نه منع شو(۳) والله اعلم بالصواب

**يو اشکال او د هغې جوابونه:** دلته يو اشکال داکيږی چې نبی علیه السلام دحضرت فاطمه رضی الله عنها د وجې نه حضرت علی رضی الله عنه د دويمې نکاح نه منع کړو چې هغه غيرت کښې راتلو سره هر څۀ کولې شی ليکن په خپلې حوالې سره ئې ددې اصولو طرفته خيال اونۀ کړو او ډير نکاحونه ئې اوکړل، هغه هم په يو وخت ئې ټول اوکړل،څکه چې په يو وخت کښې د نبی علیه السلام په نکاح کښې څو څو امهات المؤمنين موجودې وې او د هغوی مينځ کښې به کله کله د خفګان

---

(۱) فتح الباری:۸۶/۷،وعمدة القاری:۲۳۱/۱۶_

(۲) فتح الباری:۸۶/۷_

(۳) فتح الباری:/۹۳۲۹،و :۸۶/۷_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

واقعات هم پیښیدل[۱] لیکن ددې باوجود نبی علیه السلام د دغه امهات المؤمنین په باره کښې ددې خبرې لحاظ اونه ساتلو، د کومې خبرې خیال چې ئې د حضرت فاطمه رضی الله عنها په باره کښې اوساتلو؟ ددې اشکال دوه جوابونه دی:

① لکه څنګه چې اوس پورته تیر شو چې د حضرت فاطمه رضی الله عنها حالت دغه وخت دا وو چې هغه د داسې قسمه هستئ نه محرومه وه چې د هغې په وړاندې خپل غم پیش کړی. مور بی بی او نورې خویندې ئې وفات شوې وې، د غم او د خفګان لرې کولو څۀ ذریعه نۀ وه، په خلاف د نورو امهات المؤمنین رضی الله عنهن، ځکه چې په هغوی کښې تقریباً د هرې یوې مور یا خویندې موجود وې، چې د هغوی د وجې نه یئ خپل غم او خفګان لرې کولې شو.

② ددې نه علاوه د هغوی خاوند نبی کریم صلی الله علیه وسلم وو، نبی علیه السلام به چې هغوی سره څنګه د نرمئ، محبت او د زړۀ د راښکلو وغیره کومه معامله ساتله نو دا د بل انسان د طاقت خبره نۀ ده، ددې وجې نه ټول ازواج مطهرات به د هغوی نه په هرحالت کښې خوشحاله او راضی وو، دغه شان نبی علیه السلام ته چې کوم ښائسته اخلاق، او ظاهری او باطنی حسن وجمال ورکړې شوې وو، نو ددې وجې نه که څۀ واقعه به هم پیښه شوه نو هغه به د نبی علیه السلام په نزدیکت سره ختمیده[؟]. په دې باندې د ټولو نه زیات واضح دلیل د سورة احزاب والا واقعه ده، چې کله د تخییر آیتونه[۳] نازل شو او ازواج مطهرات رضی الله عنهن ته اختیار ورکړې شو چې یا خو رسول الله صلی الله علیه وسلم اختیار کړئ یا د دنیا لذتونه اختیار کړئ نو هغوی نبی کریم صلی الله علیه وسلم اختیار کړو[۴].
اوګورئ! بیبیانو ته چې کوم اختیار ورکړې شوې وو نو د هغې باوجود هم هغوی د نبی علیه السلام نه جدا کیدل او فراق خوښ نۀ کړو. ښکاره خبره ده چې هغوی په هرحال کښې نبی علیه السلام سره راضی او خوشحاله وې او د حضرت فاطمه رضی الله عنها په باره کښې هغوی مبارک په خپله حضرت علی رضی الله عنه ته شکایت کوی. ددې وجې نه نبی علیه السلام منع اوفرمائیله. والله اعلم بالصواب

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** علامه کرمانی رحمه الله ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف د مناسبت واضح کولو دپاره درې مناسبتونه ذکر کړې دی:

① غالباً امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دا حکایت او مکالمه ددې وجې نه ذکر کوی چې نبی علیه السلام به د هرهغه کار نه ځان ساتلو چې دهغې د وجې نه د رشته دارانو مینځ

---

[۱]) مثلاً په سورة تحریم کښې بیان شوې واقعه د عسل، تفصیل دپاره اوګورئ: کشف الباری، کتاب التفسیر: ۶۸۴)_

[۲]) فتح الباری: ۹۳۲۹/)_

[۳]) د تخییر آیتونو نه مراد دا آیتونه دی: یاأیهاالنبی قل لازواجک إن کنتن تردن الحیوة الدنیا وزینتها فتعالین أمتعکن وأسرحکن سراحاً جمیلاً، وإن کنتن تردن الله و رسوله والدار الآخرة فان الله أعد للمحسنات منکم اجراً عظیماً. الاحزاب: ۲۹_۲۹)

[۴]) تفصیلی واقعې دپاره اوګورئ: کشف الباری، کتاب النکاح، باب موعظة الرجل ابنته...... ۳۲۸_۳۳۸، کتاب التفسیر: ۵۱۸_۵۱۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كنبې څۀ غم او خفګان پيدا شي دلته هم حضرت مسور رضي الله عنه حضرت علي بن حسين رضي الله عنه ته دا وئيل غواړي چې تاسو هم ددې نه ځان اوساتئ او دا تلوار ماته راکړئ.ددې وجې نه چې ددې تلوار دوجې نه ستاسو او ستاسو د نورورشته دارانو مينځ کښې څۀ خفګان پيدا نۀ شي(١).

④ يا دا مناسبت دې چې نبی عليه السلام به څنګه د عبشمي ورونړو خيال ساتلو نو دغه شان تاسو هم د خپلو نوفلي ورونړو خيال اوساتئ او دا تلوار ماته راکړئ ځکه چې حضرت مسور رضي الله عنه نوفلي دې(٢)،ليکن د علامه کرماني دا آخري خبره صحيح نۀ ده چې دې نوفلي دې بلکه دې زهري دې(٣)

③يا دا چې نبی عليه السلام به څنګه د حضرت فاطمه رضي الله عنها د زړۀ د ساتلو کوشش خيال ساتلو،ددې خبرې اهتمام به ئې کوو،دغه شان زۀ هم ستاسو زړۀ ساتل غواړم ځکه چې تاسو د حضرت فاطمه رضي الله عنها خوئى يئ،ددې وجې نه دا تلوار ماته راکړئ چې زۀ ددې حفاظت اوکړم(٤) حافظ ابن حجر رحمه الله هم د عسقلاني په حوالې سره دا درې واړه مناسبتونه ذکر کړې دی او آخري مناسبت ئې معتمد ښودلې دې،فرمائي:

"وهذا الأخير هو المعتمد،وماقبله ظاهر التكلف"(٥)

او حافظ صاحب رحمه الله هم ترجمة الباب سره ددې حديث د مناسبت ښکاره کولو دپاره دې دريم مناسبت سره لګ يوشان کلام ذکر کړې دې،ليکي:

"أمرسيف النبى صلى الله عليه وسلم،وأراد المسور بذلك صيانة سيف النبى صلى الله عليه وسلم لئلا ياخذه من لايعرف قدره"(٦)

ليکن دلته مزيداره خبره هغه ده کومه چې علامه عيني رحمه الله په خپله مختصر جمله کښې وئيلې ده.-مطابقته لجزء الترجمة الذى هو قوله: وسيفه"(٧)چې ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت د ترجمة الباب جزء"وسيفه"سره دې،په دې حديث کښې هم د سيف النبي صلى الله عليه وسلم ذکر دې،چې په هغې کښې وراثت جاري شوې نۀ وو او هم دومره قدرې تفصيل د ترجمة الباب د ثابتولو دپاره کافي ده.

**د حديث شريف نه مستنبط شوې فائدې:** د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه په دې حديث شريف

---

[1]) شرح الکرماني:۱۳/۸۸)_
[2]) پورته حواله)_
[3]) فتح الباري:۶/۲۱٤)_
[4]) شرح الکرماني:۱۳/۸۸_۸۹)_
[5]) فتح الباري:۶/۲۱٤)_
[6]) پورته حواله)_
[7]) عمدة القاري:۱۵/۳۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې مختلف او قسم قسم فوائد او نکات دی، چې د هغې طرفته د حدیث شارحینو ښودنه کړې ده، په هغې کښې بعضې دلته لاندې درج کولې شی.

①دې حدیث شریف نه یو دا خبره معلومه شوه چې څنګه نبی ﷺ ته تکلیف او او اذیت رسول حرام دی، خواه هغه تکلیف لږ وی یا ډیر، نو د غه شان هغه خلقو ته هم تکلیف ورکول حرام دی چې کومو ته د تکلیفونو رسولو په وجه نبی ﷺ ته هم تکلیف وی، په دې حدیث کښې نبی ﷺ یقین سره اوفرمائیل چې کوم څیز سره حضرت فاطمه رضي الله عنها ته تکلیف وی نو د هغې د وجې نه به ماته هم تکلیف وی، "یؤذینی ما آذاها".

اوس اوګورئ!ددې حدیث په رڼا کښې دا خبره معلومه شوه چې د حضرت فاطمه رضي الله عنها په حق کښې که د یو سړی نه څهٔ څیز صادر شوې وی او د هغې د وجې نه ورته تکلیف هم وی نو د هغې د وجې نه به نبی ﷺ ته هم تکلیف وی، بیا په دې ځان پوهه کړئ چې ددې نه به زیات تکلیف څهٔ وی چې د حضرت فاطمه رضي الله عنها خوئې مبارک شهید کړې شی، ددې نه ښهٔ طریقې سره اندازه کیدې شی چې په دې کار سره به حضرت فاطمه رضي الله عنها او د هغې والد محترم نبی کریم ﷺ ته څومره تکلیف رسیدلې وی؟ددې نتیجه هم د حضرت حسین قاتلانو ته ښهٔ ملاو شوه، په دنیا کښې خو خوار او ذلیل شو ولعذاب الآخرة أشد وأبقی.(١)

② د فقهې یو اصطلاح ده، "سد ذریعه" ددې خلاصه داده چې یو کار د مباح او جائز کیدو باوجود صرف ددې وجې نه منع کړې شی چې مستقبل کښې د هغې د وجې نه د ضرر او د نقصان خطره وی، دا حدیث شریف د هغې خلقو دلیل دی څوک چې د سدذریعه قائل دی. ددې تفصیل دادې چې څلور نکاحونه د سړی دپاره کول جائز دی، ددې نه زیات کول جائز نهٔ دی، ددې باوجود نبی کریم ﷺ حضرت علی رضي الله عنه د دویمې نکاح نه منع کړو، ځکه چې ددې د وجې نه په مستقبل کښې نقصان واقع کیدهٔ، حافظ صاحب لیکی:

"وفیه حجة لمن یقول بسد الذریعة لان تزویج ما زاد علی الواحدة حلال للرجال مالم یجاوز الاربع، ومع ذلك فقد منع من ذلك فی الحال، لما یترتب علیه من الضرر فی المآل"(٢)

③ددې حدیث شریف نه دا فائده هم معلومه شوه چې د پلار نیکهٔ رسوائی او ذلت د هغوی نسلونو کښې هم منتقل کیږی، یا داسې اووایئ چې د وینې اثر په هرحال کښې وی، لکه نبی ﷺ د ابوجهل لور ته "بنت عدو الله" فرمائیلې دی، ددې نه دا معلومیږی چې نبی ﷺ چې حضرت علی رضي الله عنه منع کړې وو نو په هغې کښې ددې صفت هم څهٔ نا څهٔ اثر وو، اګرچه په خپله دغه ښځه یو نیکه او ښهٔ مسلمانه وه لیکن د "بنت عدو الله" کیدل د هغې دپاره یو پیغور جوړ شو(٣)

---

(١) فتح الباری: ٩/٣٢٩)_

(٢) پورته حواله. وفی الموسوعة: ومعنی سد الذریعة: حسم مادة وسائل الفساد دفعالها، اذا کان الفعل السالم من المفسدة وسیلة الی مفسدة"(٢٤/٢٧٩) سد الذرائع)_

(٣) پورته حواله)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**شريف مرتضى او د حضرت مسور بن مخرمه حديث:** مشهور شيعه عالم شريف مرتضى موسوى[1] دې د نورو ډيرو كتابونو مصنف هم دې، د دوى انتقال په ۴۳۶ هجرئ كښې اوشو. د تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ، الاعلام للزركلى: ۲۷۸/۴، وميزان الاعتدال: ۱۲۴/۲، رقم (۵۸۲۷)، ولسان الميزان: ۵۲۹/۵، رقم (۵۳۷۵)، وتاريخ بغداد: ۴۰۲/۱۱ ـ په خپل كتاب "غرر" كښې د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه دې حديث ته موضوع وئيلې دى ځكه چې په دې كښې يو قسم د حضرت على رضي الله عنه نقصان بيان شوې دې او دليل ئې دا پيش كړې دې چې ددې حديث راوى حضرت مسور رضي الله عنه دې چې حضرت على رضي الله عنه سره به ئې بغض ساتلو. ددې وجې نه د خپل بغض اظهار كولو سره ئې دا حديث او دا واقعه د خپل طرفه جوړه كړې ده. دغه شان دا روايت د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه نه هم روايت شوې دې[2] چې د حضرت على رضي الله عنه په بغض كښې د حضرت مسور رضي الله عنه نه هم ډير زيات سخت وو[3] ليكن د دوى دا كلام باطل او مردود دې ځكه چې د صحاح سته اصحاب ددې حديث شريف په تخريج باندې بالاجماع متفق دى، كه دا حديث موضوعى وو نو دې حضراتو به هيڅكله په خپلو كتابونو كښې نقل كړې نه وو حالانكه د دوى په صحت باندې د امت اتفاق دې[4]

۲۹۴۴: (۵) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوقَةَ عَنْ مُنْذِرٍ عَنِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ لَوْ كَانَ عَلِيٌّ - رضى الله عنه - ذَاكِرًا عُثْمَانَ - رضى الله عنه - ذَكَرَهُ يَوْمَ جَاءَهُ نَاسٌ فَشَكَوْا سُعَاةَ عُثْمَانَ، فَقَالَ لِي عَلِيٌّ اذْهَبْ إِلَى عُثْمَانَ فَأَخْبِرْهُ أَنَّهَا صَدَقَةُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، فَمُرْ سُعَاتَكَ يَعْمَلُونَ فِيهَا. فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَالَ أَغْنِهَا عَنَّا. فَأَتَيْتُ بِهَا عَلِيًّا فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ ضَعْهَا حَيْثُ أَخَذْتَهَا.

---

[1] ) دا مشهور شيعه عالم ابوالقاسم على بن حسين بن موسى بن محمد بن ابراهيم دې، په ۳۵۵ هجرئ كښې پيدا شوې وو، نسلاً حسينى دې، د شيعيت او د اعتزال دواړو قائل وو، د حضرت على رضي الله عنه طرفته منسوب كتاب "نهج البلاغة" جمع كوونكې هم دادې، چې حقيقت كښې د دوى خپل تاليف دې ليكن د حضرت على رضي الله عنه طرفته ئې منسوب كړې دې، حافظ ذهبى ليكى: وهو المتهم بوضع كتاب نهج البلاغة.....ومن طالعه جزم بانه مكذوب على امير المؤمنين رضي الله عنه ؛ففيه:السب الصراح، والحط على السيدين:ابى بكر و عمر، رضي الله عنهما وفيه التناقض والاشياء الركيكة والعبارات التى من له معرفة بنفس القرشيين الصحابة وبنفس غيرهم ممن بعدهم من المتاخرين جزم بان الكتاب اكثرة باطل". ميزان الاعتدال: ۱۲٤/۲ـ

[2] ) انظر الجامع للترمذى، كتاب المناقب، باب ماجاء فى فضل فاطمة رضي الله عنها رقم (۳۸۶۹))ـ

[3] ) غررالقلائد و دررالفوائد نومې كتاب د ډير زيات تلاش كولو باوجود مونږ ته ملاؤ نه شو.

[4] ) فتح البارى: ۸۶/۷، وعمدة القارى: ۲۳۱/۱۶)ـ

[5] ) قوله: عن ابن الحنفية": الحديث، تفرد بتخريجه البخارى رحمه الله، وهو فى هذا الباب فقط)ـ

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

①**قتيبه بن سعيد**:دا مشهور محدث حضرت قتيبه بن سعيد رحمه الله دې.د دوى تذكره په كتاب الايمان،"باب إفشاء السلام......"كښې راغلې ده.[1]

②**سفيان**:دا مشهور محدث حضرت سفيان بن عيينه رحمه الله دې.د دوى مختصر تذكره د"بدء الوحى"په اولنى حديث كښې راغلې ده.[2]

③**محمد بن سوقه**:دا ابوبكر محمد بن سوقه غنوى كوفى رحمه الله دې.[3]

④**منذر**:دا ابويعلى منذر بن يعلى ثورى كوفى رحمه الله دې.

⑤**ابن الحنفيه**:دا محمد بن على بن ابى طالب ابن الحنفيه رحمه الله دې.ددې دواړو حضراتو تذكره كتاب العلم،"باب من استحياء فامرغيره........"لاندې تيره شوې ده.[4]

⑥**على**:د حضرت على ابن ابى طالب رضي الله عنه تذكره په كتاب العلم،"باب كتابة العلم"كښې راغلې ده.[5]

⑦**عثمان**:دا حضرت عثمان بن عفان ذوالنورين رضي الله عنه دې.[6]

**قال: لوكان على رضى الله عنه ذاكرا عثمان رضى الله عنه ذكره يوم جاءه ناس فشكوا سعاة عثمان**

محمد ابن الحنفيه رحمه الله فرمائى چې كه چرته حضرت على د حضرت عثمان رضي الله عنه تذكره نامناسب الفاظو كښې كوله نو هغه ورځ به ئې خامخا كړې وه چې په كومه ورځ ورته څۀ خلق راغلل او د هغوى په وړاندې ئې د حضرت عثمان رضي الله عنه له طرفه د زكوة دپاره مقرر كړه عاملينو باندې شكايت اوكړو.

**د حديث پس منظر**:امام ابن ابى شيبه رحمه الله په خپل مصنف كښې دا روايت د محمد بن دسوقه نه يو بل طريق سره نقل كړې دې،په هغې كښې راغلې دى،منذر بن يعلى فرمائى:

**"كنا عند ابن الحنيفة، فنال بعض القوم من عثمان، فقال: مه، فقلنا له: أكان أبوك يسب عثمان؟ فقال: ماسبه، ولوسبه يوماً لسبه يوم جئته......"**[7]

---

[1] ) كشف البارى:۱۸۹/۲)_

[2] ) كشف البارى:۲۳۸/۱،تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ، ۱۰۲/۳)_

[3] ) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب العيدين،باب مايكره من حمل السلاح فى العيد والحرم)_

[4] ) كشف البارى: ۶۳۷/۴_۶۴۰)_

[5] ) كشف البارى: ۱۴۹/۴)_

[6] ) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء ثلاثا ثلاثا)_

[7] ) المصنف لابن ابى شيبة:۳۲۶/۲۱،كتاب الفتن،باب ما ذكر فى عثمان.....رقم (۳۸۸۶۲))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې "مون ډ خلق محمد بن الحنفیه رحمه الله سره ناست وو چې په مجلس کښې چا د حضرت عثمان رضي الله عنه خلاف څه نامناسب خبره اوکړه، په دې باندې هغوی اوفرمائیل چې خاموش شه، نو مون ډ اووئیل چې آیا ستا سو والد حضرت علي په حضرت عثمان رضي الله عنهما ته بد رد وئیل؟ محمد ابن الحنفیه اووئیل چې زما والد صاحب ورته کله هم بد رد نه دې وئیلي، که هغوی چرته بد رد وئیلي نو په هغه ورځ به یې وئیلي وو چې کله زه ورغلم......."

ددې روایت نه هم معلومه شوه چې د باب په حدیث شریف کښې د ذکر نه مراد ذکربالسوء دې، لکه د حدیث شریف په بعضې طرقو کښې ددې ذکر موجود دې، یعنی "ذاکرا عثمان بسوء......"[1]

بیا په دې ځان پوهه کړئ چې په حدیث کښې ناس او سعاة مطلق دې، دې سره دا تعیین نه کیږي چې شکایت کوونکې خلق څوک وو، نه دا خبره متعین کیدې شي چې د کوم عامل شکایت کړې شوې وو، ددې وجې نه حافظ صاحب لیکي:

"ثم اقف علی تعیین الشاکی، ولا المشکو"[2]

او سعاة د ساع جمع ده، د زکوة عامل ته وئیلې شي، کوم چې د مالدارانو نه زکوة وصولوي او د وخت امام ته ئې حواله کوي[3]

**قوله: فقال لی علی: اذهب إلی عثمان، فأخبره أنها صدقة رسول الله صلی الله علیه وسلم، فمر سعاتك یعملون فیها:** نو حضرت علي رضي الله عنه ما ته اووئیل چې حضرت عثمان رضي الله عنه ته لاړ شه، ورته دا اووایه چې دا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د صدقاتو کتاب دې، لهذا تاسو خپلو عاملینو ته دا اولیږئ او ورته اووایئ چې په دې باندې عمل اوکړئ.

حضرت علي رضي الله عنه چې حضرت عثمان رضي الله عنه ته کوم څیز لیږلې وو دا غالباً څه کتاب یا صحیفه وه لکه د باب په راروان روایت کښې "خذ هذا الکتاب" الفاظ هم دي، دغه شان دا هم دي "فان فیه أمر النبی صلی الله علیه وسلم فی الصدقة" او د ابن ابی شیبه[4] د روایت الفاظ دادي: "خذ کتاب السعاة، فاذهب به إلی عثمان"[5]

**قوله: فأتیته بها، فقال: أغنها عنا:** نو هغه صحیفه ما واخستله او د هغوی په خدمت

---

[1] فتح الباری:۲۱٤/٦، دغه شان اوګورئ ،عمدة القاری:۳٤/۱۵، وابن بطال: ۲٦۷/۵، والقسطلانی: ۲۰۱/۵، وکشف المشکل من حدیث الصحیحین:۱٤۰/۱، مسند ابی الحسن، ومسند الامام احمد:۳۹۵/۱، رقم (۱۱۹٦) مسند علی.....)_

[2] فتح الباری:۲۱۵/٦)_

[3] پورته حواله، وعمدة القاری:۳٤/۱۵)_

[4] المصنف لابن ابی شیبة:۳۲٦/۲۱، کتاب الفتن، باب ما ذکر فی عثمان.....رقم (۳۸۸٦۲))_

[5] فتح الباری:۲۱۵/٦، وعمدة القاری:۳٤/۱۵، واعلام الحدیث للخطابی:۱٤٤۳/۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې حاضر شوم نو هغوى اوفرمائيل چې دا زما نه لرې ساته.

د أغنها لغوى او صرفى تحقيق: دا د باب افعال نه د امرحاضرمعروف صيغه ده.ضمير د مفعول دې.د أغنِ عن كذا معنى ده اړول.ګرځول أغنِ وجهك عنى،أى:اصرفه.ددې په شان د الله تعالى دا قول دې لكل امرئ منهم يومئذ شان يغنيه"(١)أى:يصده ويصرفه عن غيره(٢)

ددې كلمې په ضبط كښې دويم قول دادې چې د مجرد نه د باب سمع نه د امرحاضر معروف صيغه ده.ددې معنى ده پريخودل،اعراض كول او بې پرواه كيدل.ابن الانبارى نحوى رحمه الله فرمائى چې ددې نه مشتق د الله تعالى دا قول دې:"وتولوا واستغنى الله" المعنى تركهم،ځكه چې كله يو سړې د يو څيز نه استغنا ښكاره كوى نو هغه پريږدى.

قال الخطابى رحمه الله:"وقوله:"أغنها عنا".كلمة معناها:الترك والاعراض.

قال ابن الانبارى:"ومن هذا قوله سبحانه:"فكفروا وتولوا واستغنى الله"(٣)المعنى تركهم،لان كل من استغنى عن شئ تركه"(٤)

حضرت عثمان رضی الله عنه ددې صحيفې نه ولې اعراض اوكړو؟

دلته سوال دا پيدا كيږى چې حضرت عثمان رضی الله عنه حضرت محمدبن الحنفيه رحمه الله ته دا ولې اوفرمائيل:"أغنها عنا"او ددې صحيفې يا ددې كتاب نه ئې ولې اعراض اوكړو؟حالانكه پورته دا خبره ذكر شوه چې صحيفه د نبى عليه السلام مرتب كړې شوې وه؟

علامه داؤدى او ابن بطال رحمهما الله ددې اشكال په جواب كښې فرمائى چې حضرت عثمان رضی الله عنه دا خبره ددې وجې نه اوكړه چې هغوى سره ددې مثال موجود وو.هغوى ددې نه بې خبره او ناواقف نۀ وو بلكه ددې د ليكلې شوې خبرو نه ښۀ طريقې سره خبردار وو.دې سره سره ئې په خپلو عاملينو باندې په دې باندې عمل هم كوو.ددې وجې نه د حضرت عثمان رضی الله عنه ددې صحيفې رد كول مقصد نۀ وو البته هغوى دا وئيل غوښتل چې ماته ددې ضرورت نشته او دا خبره څۀ د عقل نه لرې هم نۀ ده.دويم مطلب چې كوم مراد اخستلې كيږى د هغې مقصد د حضرت عثمان رضی الله عنه نه توقع هم نۀ شى كيدې چې هغوى دا د سپک والى د وجې نه رد كړې وى.

"وأما رد الصحيفة وقوله:"أغنها عنا"فذلك لانه كان عنده نظير منها،ولم يجهلها،لا أنه ردها وليس عنده علم منها،ولانه قد كان أمربها سعاته،فلايجوز على عثمان غيرهذا"(٥)

---

(١) عبس:٣٧_

(٢) فتح البارى:٢١٥/٦،وعمدة القارى:٣٤/١٥)_

(٣) التغابن:٦)_

(٤) اعلام الحديث:١٤٤٣/٢_١٤٤٤،وعمدة القارى:٣٤/١٥،وفتح البارى:٢١٥/٦)_

(٥) شرح ابن بطال:٢٦٧/٥،وعمدة القارى:٣٤/١٥،وشرح القسطلانى:٢٠١/٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هم دا خبره د ابن عيينه رحمه الله نه هم بعضې شاګردانو نقل کړې ده.[1]
وقال الكنكوهى رحمه الله: "قوله: "اغنها عنا" لانا انما نعمل بها، لاغير". وقال الكاندهلوى رحمه الله: "يعنى عملنا موافق لهذه الصحيفة، فلا حاجة لنا اليها". لامع الدرارى وتعليقاته: ۷/۲۹۱_ حافظ ابن حجر رحمه الله د لته نور احتمالات هم ذکر کړې دی:

① کیدې شی چې حضرت عثمان رضي الله عنه دا مذکوره صحیفه ددې وجې نه رد کړې وی چې د هغوی په عاملینو باندې کوم الزام لګیدلې وو نو دا د هغوی په نزد هډو ثابت شوې نه وو.

② الزام خو ثابت شوې وو لیکن تدبیر ددې خبرې تقاضه کوله چې څۀ تاخیر سره کارروائی اوکړې شی.

③ حضرت علی رضي الله عنه چې کوم اعتراض کړې وو نو ممکنه ده چې د هغې تعلق مستحباتو سره وو او واجباتو سره نۀ وو، غالباً هم دا وجه وه چې حضرت علی رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه عذر قبول کړو او د هغوی په شان کښې ئې څۀ نامناسب خبره اونۀ کړه.[2]

د حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله رائې: دا خو ددې حضراتو رائې شوه یعنی د ابن عیینه، ابن بطال، داؤدی، عینی، ابن حجر عسقلانی، قسطلانی او د ګنګوهی رحمهم الله وغیره. لیکن شیخ الحدیث صاحب د دوی د رائې نه جدا یوه بله خبره ارشاد فرمائیلې ده هغه دا چې حضرت عثمان رضي الله عنه به د صدقاتو په سلسله کښې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په کتاب باندې عمل کوو ددې وجې نه هغوی د حضرت علی رضي الله عنه د صحیفې متعلق دا اوفرمائیل چې مونږ ته ددې ضرورت نشته. ددې اجمال تفصیل دادې چې د صدقاتو په سلسله کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه درې قسمه صحیفې منقول دی:

۱. صحیفه د ابوبکر، ۲. صحیفه د عمر او ۳. صحیفه د آل عمرو بن حزم رضي الله عنهم.[3]

علامه زرقانی رحمه الله په شرح المواهب کښې فرمائی چې نبی علیه السلام د مختلفو احکاماتو متعلق څۀ صحیفې تیارې کړې وې. په هغې کښې یو کتاب الصدقات وو کوم چې د حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه سره وو، دوی چې کله حضرت انس رضي الله عنه د بحرین والی جوړ کړو او هلته ئې واستولو نو د هغې یوه نسخه یې هم ورکړه.[4] په هغې کښې دویمه صحیفه حضرت عمر رضي الله عنه

---

[1] ) الجمع بين الصحيحين للحميدى: ۱/۱۶۶، رقم (۱۳۹)، افراد البخارى.....عن على رضي الله عنه. وتاريخ مدينة دمشق: ۳۹/۲۶۶، ذكر من اسمه عثمان، وفتح البارى: ۶/۲۱۵)_

[2] ) فتح البارى: ۶/۲۱۵)_

[3] ) قال ابن العربى فى كتابه المسالك شرح مؤطا مالك "ثبت عن النبى صلى الله عليه وسلم فى الماشية ثلاث كتب: كتاب ابى بكر، وكتاب آل عمرو بن حزم، وكتاب عمربن الخطاب، وعليه عول مالك ..." انظر الاوجز: ۵/۶۵۲، وتعليقات لامع الدرارى: ۷/۲۹۸)_

[4] ) الحديث اخرجه البخارى فى صحيحه، كتاب الزكاة، باب العرض فى الزكاة، رقم (۱۴۴۸)، وباب لا يجمع بين متفرق.....رقم (۱۴۵۰) وباب ما كان من خليطين.......رقم (۱۴۵۱) وباب من بلغت...[بقيه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سره وه (۱)یاد ساتئ دا هغه صحیفه نهٔ ده کومه چې حضرت ابوبکر حضرت انس رضی الله عنهما ته ورکړه،ددې دواړو کتابونو د الفاظو په خپل مینځ کښې کوم مغایرت او فرق دې نو د هغې نه هم دا معلومیږی چې دا دواړه یو صحیفه نهٔ وه بلکه جدا جدا صحیفې دی.هر چه د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت دې چې "نبی علیه السلام کتاب الصدقه تیار کړو لیکن د حکومت عاملینو ته ئې هغه صحیفه اونهٔ ښودله او هغه ئې خپلې تورې سره اوتړله،تردې چې وفات شو،د دوی مبارک نه پس حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د خلافت د مودې پورې په دې باندې عمل جاری اوساتلو،د هغوی نه پس حضرت عمر رضی الله عنه په خپل ژوند کښې په دې باندې عمل کوو"(۲)نو ددې روایت نه ددې دواړو صحیفو(صدیقی او عمری)یو کیدل لازم نهٔ راځی چې دا دواړه یو قسم صحیفې وی(۳)

لیکن شیخ الحدیث کاندهلوی رحمه الله د زرقانی د کلام آخری حصه رد کوی او فرمائی چې د صحیفې د ابوبکر او د عمر د دواړو صحیفو بعضې ځایونو کښې موجود اختلاف ددې خبرې نه مانع نهٔ دې چې په دې باندې عمل ممکن نهٔ وی.شاید حضرت عثمان رضی الله عنه د هغې مطابق عمل ددې وجې نه کوو چې د شیخینو عمل هم په دې باندې وو او دا د هغوی مشهور عادت دې چې هغوی به د شیخینو عمل ته ترجیح ورکوله او د هغوی په رائې باندې به ئې چلیدل خوښول(۴)

**قوله: فأتيت بها عليا،فأخبرته،فقال: ضعها حيث أخذتها:** نو ما هغه حضرت علی رضی الله عنه ته واپس راوړله او تفصیل مې ورته بیان کړو نو هغوی اوفرمائیل چې دا صحیفه دې د کوم ځائې نه اخستلې وه نو هم هلته ئې کیده.

د حدیث نه مستنبط یو فائده: امام ابن عیینه رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث نه دا فائده حاصله شوه چې امیرانو او والیانو ته نصیحت کول پکار دی،د هغوی لاندې کسانو کښې

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] عنده صدقة......رقم (۱۴۵۳)، وباب زكاة الغنم،رقم (۱۴۵۴).وباب لا تؤخذ فى الصدقة هرمة......رقم (۱۴۵۵).وكتاب الشركة،باب ما كان من خليطين.....رقم (۲۴۸۷).وكتاب فرض الخمس،باب ما ذكر من درع النبى صلى الله عليه وسلم ......رقم (۳۱۰۶).وكتاب اللباس،باب هل يجعل نقش الخاتم.....؟رقم (۵۸۷۸).وكتاب الحيل،باب فى الزكاة.....رقم (۶۹۵۵).وابو داود فى سننه،كتاب الزكاة،باب فى زكاة،باب اذا اخذ المصدق سنا دون سن،رقم (۱۸۰۰))_

[1]) والحديث عند مالك فى المؤطا،كتاب الزكاة،باب صدقة الماشية،رقم (۲۳/۶۵۹).وابى داود فى سننه،كتاب الزكاة،باب زكاة السائمة،رقم (۱۵۷۰).والترمذى فى جامعه،كتاب الزكاة،باب ماجاء فى زكاة الابل والغنم،رقم (۶۲۱))_

[2]) اخرجه الترمذى،كتاب الزكاة،باب فى زكاة الابل والغنم،رقم (۶۲۱).وابو داود،كتاب الزكاة،باب زكاة السائمة،رقم (۱۵۶۸_۱۵۶۹).وابن ماجه،كتاب الزكاة،باب صدقة الابل،رقم (۱۷۹۸))_

[3]) شرح المواهب تعليقات لامع الدرارى:۲۹۸/۷)_

[4]) تعليقات لامع الدرارى:۲۹۸/۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

که څۀ قسم فساد وی نو د هغوی په وړاندې ددې وضاحت کول پکار دی او د وخت امام ته هم د دوی په حقله د شکایاتو تحقیق او تفتیش کول پکار دی(١)

قَالَ الْحُمَيْدِي حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُوقَةَ قَالَ سَمِعْتُ مُنْذِرًا الثَّوْرِي عَنِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ(٢) قَالَ أَرْسَلَنِي أَبِي، خُذْ هَذَا الْكِتَابَ فَاذْهَبْ بِهِ إِلَى عُثْمَانَ، فَإِنَّ فِيهِ أَمْرَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فِي الصَّدَقَةِ.

**د مذکوره تعلیق مقصد:** امام حمیدی د امام بخاری رحمه الله شیخ دې، امام بخاری په فقه او حدیث دواړو کښې د دوی شاګردی کړې ده، د قتیبه بن سعد د روایت ذکر کولو نه پس دوی تعلیقاً د امام حمیدی روایت هم نقل کړې دې. ددې وجه او مقصد دادې چې د حمیدی په روایت کښې د قتیبه د روایت په نسبت د سفیان بن عیینه د تحدیث وضاحت کوی. دغه شان په دې کښې محمد بن سوقه هم د منذر بن یعلی نه د سماع وضاحت کوی(٣)

د مذکوره تعلیق تخریج: د امام حمیدی دا تعلیق د دوی په تالیف "کتاب النوادر" کښې هم دې سند سره موصولاً موجود دې(٤)

د مذکوره صحیفې مضمون څۀ وو؟ د باب حدیث شریف امام بخاری رحمه الله دوو طُرُقو سره موصولاً او تعلیقاً نقل کړې دې لیکن په دې کښې د مذکوره صحیفې مضمون ذکر نۀ دې چې په دې کښې څۀ لیکلې شوې وو؟ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ماته ددې حدیث په هیڅ یو طریق کښې دا خبره معلومه نۀ شوه چې په دې صحیفه کښې څۀ مضمون لیکلې شوې وو؟ البته امام خطابی رحمه الله په "غریب الحدیث" کښې د عطیه عن ابن عمر رضی الله عنهما د طریق نه یو حدیث نقل کړې دې چې:

"بعث علی إلی عثمان بصحیفة، فیها: لا تأخذوا الصدقة من الزخة، ولا من النخة"(٥)

یعنی: "حضرت علی حضرت عثمان رضی الله عنهما ته یوه صحیفه واستوله چې د هغې مضمون دا وو چې په زکوٰة کښې د چیلئ بچې او د اوښ بچې مۀ اخلئ". ددې حدیث سند اګر چه ضعیف دې لیکن ددې مضمون احتمال کیدې شی(٦) والله اعلم بالصواب

(١) فتح الباری: ٦/٢١٥_

(٢) د امام حمیدی رحمه الله حالات په کشف الباری، بدء الوحی (١/٢٣٧) کښې تیر شوې دی. او د نورو حضراتو راویانو د ترجمو نشاندهی په تیر شوې سند کښې کړې شوې ده_

(٣) فتح الباری: ٦/٢١٥، وارشاد الساری: ٥/٢٠١_

(٤) فتح الباری: ٦/٢١٥، وتغلیق التعلیق: ٣/٤٦٩_

(٥) غریب الحدیث: ٢/١٧٦_١٧٧، حدیث ابن عمر رضی الله عنهما، وتلخیص الحبیر: ٢/١٥٦، رقم (٨٢٠)، کتاب الزکاة، باب زکاة النعم، الشرط الثالث: الحول، ولسان العرب: ٣/٢١، مادة زخخ، "وفیه عثمان بن حنیف غیر عثمان بن عفان)_

(٦) فتح الباری: ٦/٢١٥. دا هم کیدې شی چې حضرت علی رضی الله عنه کومه صحیفه لیږلې وه [بقیه بر صفحه آئنده

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت: ترجمة الباب سره ددې حدیث د دواړو طرقو په دې جمله کښې مطابقت موجود دې "فاخبره انها صدقة رسول الله صلی الله علیه وسلم" داسې چې دلته د صدقه رسول الله نه مراد هغه صحیفه ده په کومه کښې چې د صدقاتو احکامات وو. امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې یو جمله "وما استعمل الخلفاء بعده" هم ذکر کړې ده، دې جملې سره به ددې حدیث مناسبت وی چې دا صحیفه وروستنی خلیفه ګانو په خپل استعمال کښې اوساتله او د هغې په احکاماتو ئې عمل کوو. علامه عینی رحمه الله فرمائی:

"مطابقته للترجمة یمکن ان تؤخذ من قوله: "فاخبره انها صدقة رسول الله ﷺ، و اراد به الصحیفة التی کانت فیها أحکام الصدقات ویکون هذا مطابقاً لقوله فی الترجمة: وما استعمل الخلفاء بعده" (۱)

**ترجمة الباب سره متعلق یو بحث:** امام بخاری رحمه الله چې کومه ترجمه ذکر کړه نو دا په نهه جزونو باندې مشتمله ده، یعنی درع، همسا، توره، پیالئ، ګوتمه، وما استعمل الخلفاء بعده من ذلك، شعر، نعل او آنیة. او په ترجمه کښې چې کوم احادیث ذکر کړې شوې دی نو د هغې تعداد شپږ دې. په اولنی کښې د ګوتمې، په دویم کښې د نعل، په دریم کښې د کساء ملبد، په څلورم کښې د پیالئ، په پنځم کښې د تورې او په شپږم کښې د صحیفې ذکر دې. د پورته ذکر شوو شپږو احادیثو مناسبت ترجمة الباب سره څنګه دې نو ددې وضاحت مونږ وړاندې کړې دې. لیکن د څلورو څیزونو یعنی ذغره، همسا، ویختو او د لوښو مطابقت به ترجمة الباب سره څنګه وی، دا مذکور نۀ دی نۀ دې سره متعلق څۀ حدیث مصنف رحمه الله ذکر کړې دې. ددې دوه جوابونه دی:

① دې څیزونو سره متعلق حدیثونه خو د هغوی په نظر کښې وو لیکن اتفاقاً هغوی په باب کښې ذکر نۀ کړې شو.

② د مصنف رحمه الله یو عادت دا هم دې چې هغوی بعضې وخت په ترجمه کښې یو څیز ذکر کړی لیکن هغې سره متعلق څۀ حدیث ذکر نۀ کړی، بلکه یو بل مقام کښې ورته اشاره اوکړی چې د اهل علم نه پټه نۀ وی نو دلته هم دا معامله ده.

اوس تفصیل ته اوګورئ.

① ذغرې سره متعلق حدیث حضرت مصنف رحمه الله په بیوع وغیره کښې ذکر کړې دې، حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی: "توفی رسول الله صلی الله علیه وسلم و درعه مرهونة عند یهودی" (۲)

چې "د نبی علیه السلام د وفات په وخت د هغوی یو ذغره یو یهودی سره د ګانړې (رهن) په طور کیخودلې شوې وه"

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] د هغې مضمون د صدیق او د عمر رضی الله عنهما د صحیفې په شان وو، چې هغوی سره د مخکښې نه موجود وو. کما مر عن شیخ الحدیث رحمه الله آنفا)_

(۱) عمدة القاری: (۱۵/ ۳٤)_

(۲) انظر صحیح البخاری، کتاب الجهاد والسیر، ما قیل فی درع النبی......رقم (۲۹۱٦))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

② همسا سره متعلق حديث مصنف رحمه الله په كتاب الحج كښې د ابن عباس رضي الله عنهما په روايت سره نقل كړې دې "طاف النبي صلى الله عليه وسلم في حجة الوداع على بعير، يستلم الركن بمحجن" [1] دغه شان وړاندې په كتاب التفسير كښې ئې هم يو حديث د حضرت على رضي الله عنه په روايت سره ذكر كړې دې [2] چې په هغې كښې يو د مختصره (يعنى لختې، چوكې) ذكر راغلې دې [3]

③ ويختو سره متعلق حديث هغه دې كوم چې په كتاب الطهارة كښې تير شو. ابن سيرين رحمه الله فرمائى "عندنا من شعر النبى صلى الله عليه وسلم، أصبناه من قبل أنس رضي الله عنه" [4]

④ هرچه لوښى وو نو حافظ رحمه الله فرمائى چې د پيالئ نه پس ددې ذكر كول د عطف العام على الخاص د قبيل نه دې او په باب كښې هغوى صرف د پيالئ ذكر كړې دې او دا كافى دې. ځكه چې دې سره په نورو لوښو باندې هم دلالت كيږى [5] والله اعلم بالصواب

## ⑥ بَابُ الدَّلِيلِ عَلَى أَنَّ الْخُمُسَ لِنَوَائِبِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَالْمَسَاكِينِ.

وَإِيثَارِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَهْلَ الصُّفَّةِ وَالأَرَامِلَ حِينَ سَأَلَتْهُ فَاطِمَةُ وَشَكَتْ إِلَيْهِ الطَّحْنَ وَالرَّحَى أَنْ يُخْدِمَهَا مِنَ السَّبْيِ، فَوَكَلَهَا إِلَى اللَّهِ.

**د ترجمة الباب نحوى تحليل او مفهوم:** علامه عينى رحمه الله خو دا وئيلې دى "هذا باب فى بيان الدليل......" ددې مقصد دادې چې دلته مبتدا محذوف ده چې هغه هذا اسم اشاره ده. بيا د المساكين او د ايثار النبى عطف په نوائب باندې دې او اهل الصفة او الارامل د ايثار مصدر د مفعول به كيدو د وجې نه په حالت د نصب كښې دى، ددې نه علاوه حين .... ظرف دې د ايثار مصدر دپاره او جمله د "أن يخدمها" د مصدر په تاويل سره دويم مفعول دې د

---

[1] ) صحيح البخارى، كتاب الحج، باب استلام الركن بالمحجن، رقم (١٦٠٧))_

[2] ) صحيح البخارى، كتاب التفسير، باب قوله: (وكذب بالحسنى)، رقم (٤٩٤٨))_

[3] ) قال العينى فى العمدة: (٣١/١٥): و اما عصاه فقد ذكروا انه كانت له مخصرة، تسمى العرجون، وهى كالقضيب، يستعملها الاشراف للتشاغل بها فى ايديهم، ويحكون بها ما بعد من البلدن عن اليد، وكان له قضيب من شوحط يسمى الممشوق، وكان له عسيب من جريد النخل")_

[4] ) صحيح البخارى، كتاب الطهارة، باب الماء الذى يغسل به شعر الانسان، رقم (١٧٠))_

[5] ) فتح البارى: ٢١٣/٦. وقال العينى فى العمدة (٣١/١٥):
واما آنيته فكثيرة، ذكرها اصحاب السير، منها: قدر من حجارة، يدعى المخضب، يتوضا فيه، ومخضب آخر من شبه، يكون فيه الحناء والكتم، يضع على راسه اذا وجد فيه حرا، وكان له مغسل من صفر، وكانت له ركوة، تسمى الصادرة، وكان له طست من نحاس، وقدح من زجاج، وكانت له جفنة عظيمة يطعم فيها الناس، يحملها اربعة رجال، تسمى الغداء..... " وكذا انظر مجمع الزوائد: ٢٧٢/٥، كتاب الجهاد، باب آلات الحرب.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سئلته فعل دپاره[1] خلاصه دا شوه چې هذا محذوف مبتدا ده او باقی عبارت خبر دې.

او علامه سندهی رحمه الله فرمائی چې الدلیل...... مبتدا ده او حین سئلته دا جمله خبر دې، ددې دپاره به تقدیری عبارت راویستلې شی، یعنی ما فعله[2] باقی تفصیل د ما قبل په شان دې، ددې مطابق به عبارت داسې شی، الدلیل علی...... ما فعله حین سئلته فاطمة......" او د ترجمة الباب د عبارت مفهوم به دا وی:

د خمس مصرف د نبی علیه السلام نوائب او مسکینان وغیره دی، ددې دلیل د نبی علیه السلام فعل دې چې کله حضرت فاطمې رضی الله عنها د کور د کار دپاره د خادم مطالبه اوکړه نو نبی علیه السلام هغې باندې اصحاب صفه ته ترجیح ورکړه او د هغې معامله ئې الله تعالی ته اوسپارله.

**د ترجمة الباب لغوی تحقیق:** په ترجمة الباب کښې د مذکوره بعضې الفاظو وضاحت لاندې ذکر کولې شی:

① **نوائب:** دا د نائبة جمع ده، "**وهی ما کانت تنوبه**" یعنی مختلف کارونه او حادثات کوم چې به نبی علیه السلام ته پیښیدل.

② **الارامل:** دا د أرمل جمع ده، هغې سړی ته وائی چې د هغهٔ ښځه نهٔ وی او أرملة هغې ښځې ته وئیلې شی چې د هغې خاوند نهٔ وی، دلته د أرامل نه دواړه مراد دی، هرکله چې فقیران وی[3]

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د خمس مصرف ښودلې دې او په دې سلسله کښې ئې د امام مالک رحمه الله مذهب اختیار کړې دې کوم چې ددې خبرې قائل دې چې په خمس کښې د وخت حاکم او امام ته اختیار دې چې خمس په خپله مرضئ باندې چرته او څومره چې غواړی نو خرچ کولې شی. د مسئلې تفصیل وړاندې راځی.

**خمس به کومو خلقو ته ورکولې شی؟** د علماء اسلام په دې خبره کښې څهٔ اختلاف نشته چې غنیمت به پنځه حصې کولې شی، چې په هغې کښې به څلور حصې د مجاهدینو وی یعنی کوم خلق چې په غزوه کښې شریک وو. یو حصه چې هغې ته خمس وئیلې شی په دې کښې اختلاف دې چې ددې مستحق به کوم خلق وی او دا به کوم ځائې کښې خرچ کولې شی. د مذهبونو تفصیل لاندې ذکر کولې شی:

① احناف دا وائی چې خمس به درې حصې کولې شی، یوه حصه به د یتیمانانو وی، یوه حصه به د مسکینانو او یوه حصه به د مسافرو وی. البته په مسافرو کښې رشته دار هم داخل دی او په دې معامله کښې به دوی ته ترجیح ورکولې شی او په رشته دارو کښې چې کوم مالداران وی نو د هغوی به په دې کښې څهٔ حصه نهٔ وی. د وخت امام او حاکم به په دې

---

[1] ) عمدة القاری:(۳۵/۱۵)_

[2] ) حاشیة السندی علی البخاری:۴۳۹/۱،وتعلیقات اللامع:۲۹۸/۷_۲۹۹)_

[3] ) عمدة القاری:۳۵/۱۵،وشرح القسطلانی:۲۰۲/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تقسيم كښې خودمختار وى چې چاته ورکوى او چاته نۀ ورکوى۔
په ذوى القربى کښې د قرابت نه مراد قرابت د رسول ﷺ دې، يعنى د نبى کريم ﷺ رشته دار وغيره.دا د خلفاء راشدينو مذهب هم دې(١)
②شوافع او حنابله دا وائى چې خمس به پنځه حصې کړې شى او په دې خلقو باندې به تقسيم کړې شى، يتيمان، مسکينان، مسافر، رشته دار او نبى عليه السلام اوس چونکه نبى عليه السلام وفات شوې دې نو دهغوى دا حصه به د مسلمانانو په کارونو او د اسلحې وغيره په اخستلو باندې خرچ کولې شى.بيا ددې حضراتو په نزد په رشته دارو کښې د فقيرانو څۀ تخصيص نشته، په رشته دارو کښې به مالداران هم ددې حصې مستحق وى(٢) ابن قدامه فرمائى چې هم دا مذهب د عطاء، مجاهد، شعبى، نخعى، قتاده او د ابن جريج رحمهم الله وغيره هم دې(٣).
③د مالکيه په نزد د خمس، جزيه، فئ، عشر او د خراج وغيره ذدې ټولو محل بيت المال دې، د وخت امام به د خپلې رائې مطابق دا د مسلمانانو په مصلحتونو باندې خرچ کوى ليکن په دې کښې به بنوهاشم يعنى د نبى عليه السلام خاندان ته ترجيح ورکولې شى او دوى ته به ددې نه ډير مقدار کښې ورکړه کولې شى ځکه چې دوى د زکوة مال نۀ شى اخستلې، بيا به دا مال د عامومسلمانانو په خيرښيگړه کښې خرچ کولې شى لکه جماتونه، پلونه او جنګونه وغيره(٤)
ابن همام رحمه الله فرمائى: ”فعندمالك الامرمفوض إلى رائ الامام، إن شاء قسم بينهم، وإن شاء أعطى بعضهم دون بعض، وإن شاء أعطى غيرهم، إن كان أمرغيرهم أهم من أمرهم“(٥)
دا خو د ائمه اربعه د مذهبونو بيان وو، په دې مسئله کښې نور مذهبونه هم شته چې د هغې تعداد د حافظ ابن حجر رحمه الله د قول مطابق اووۀ(٦) دې او د حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله

---

(١) احکام القرآن للرازى:٨٢/٣، واعلاء السنن:٢١٠/١٢، والاوجز :٩٢٨٢/، والدر المختار:٢٥٨/٣. والهداية: ٢٤٠/٤، وفتح القدير لابن الهمام:٢٤٣/٥، وروح المعانى:١٠/ ٢٨٠_٢٨٣، سورة الانفال
په دې مسئله کښې امام نسائى رحمه الله هم د احنافو ملګرې دې، هغوى په خپل سنن کښې د مختلفو روايتونو د نقل کولو نه پس دا کلمات ارشاد فرمائيلې دى:
_وسهم لذى القربى،وهم بنو هاشم،و بنو المطلب،بينهم الغنى منهم والفقير،وقد قيل:انه للفقير منهم دون الغنى،کليتامى وابن السبيل،وهو اشبه القولين بالصواب عندى،والله اعلم“
راجع السنن الصغرى:اول کتاب قسم الفئ،تحت رقم (٤١٥٢)،والسنن الکبرى:٤٨/٣،کتاب الخمس،تفريق الخمس......قبل رقم (٤٤٥٠))_
(٢) المغنى لابن قدامة:٣١٤/٦،وکتاب الام:١٤٧/٤/٢،قسم الفئ،سن تفريق القسم،رقم (١٢٧٩٣))_
(٣) المغنى:٣١٤/٦،کتاب الزکاة،باب قسمة الفئ والغنيمة والصدقة،رقم (٥٠٧٩)،الفصل الرابع)_
(٤) الشرح الکبير مع حاشية الدسوقى:٥٠١/٢_٥٠٢،والاوجز:٩٢٨٥/،والمغنى:٣١٥/٦)_
(٥) فتح القدير:٢٤٣/٥)_
(٦) فتح البارى:٢٣٨/٦)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مطابق یو ولس[۱] دې وړاندې به هغې کښې بعضو طرفته اشاره هم کیږی.

**د مذهبونو ماخذ:** په دې مسئله کښې آئمه کرام دا آیت کریمه (واعلموا أنما غنمتم من شئ فان لله خمسه وللرسول ولذی القربی والیتامی والمساکین وابن السبیل)[۲] د ماخذ په طور منی، هم دا آیت کریمه د مذهبونو د اختلاف اصل هم دې، ددې آیت کریمه په تفسیر کښې د ملت د مفسرینو او د فقهاء کرامو اختلاف دې چې د هغې تفصیل لاندې ذکر کولې شی.

**په ایت کریمه کښې د لفظ "الله" معنی:** اولنئ اختلافی مسئله داده چې دلته په آیت کریمه کښې د لفظ "الله" څهٔ مطلب دې؟ الله تعالی ته به د حصې ورکولو څهٔ صورت وی؟ په دې سلسله کښې اولنې قول د حضرت ابو العالیه رحمه الله دې، هغه فرمائی چې خمس به شپږ حصې کړې شی ځکه چې په آیت کریمه کښې د خمس مصارف شپږ بیان کړې شوې دی، یعنی الله تعالی، رسول الله ﷺ، رشته دار، یتیمان، مسکینان او مسافر. او الله تعالی ته به سهم (د حصې) ورکولو صورت داوی چې دهغې شپږمه حصه به دبیت الله (کعبه مبارکه) دپاره استعمالیږی[۳]

د بیضاوی د قول مطابق: دوی د آیت د ظاهر نه استدلال کړې دې[۴]. دغه شان ابو العالیه رحمه الله فرمائی چې د نبی علیه السلام په وړاندې به د غنیمت مال پیش کړې شو نو هغوی به پرې لاس راښکلو، څهٔ چې به لاس کښې راغلل نو هغه به ئې د کعبې مبارکې دپاره خاص کړل. بیا به ئې باقی مال غنیمت په پنځو مصارفو کښې تقسیم کړو[۵].

او د اکثرو حضراتو رائې داده چې په آیت کریمه کښې لفظ د الله د کلام د افتتاح او د تبرک او تعظیم دپاره راغلې دې[۶]. امام رازی رحمه الله د ابو العالیه قول رد کولو سره فرمائی چې ددې هیڅ معنی نشته ځکه چې که دا خبره ثابته وه نو څلور واړه خلیفه ګان ذ نورو خلقو په مقابله کښې ددې زیات حقدار وو چې هغوی په دې باندې عمل کړې وو حالانکه دا خبره ثابته نهٔ ده نو د ابوالعالیه قول هم ثابت نهٔ دې. دغه شان ددې هیڅ مطلب نشته چې حصه د بیت الله شریف الله تعالی سره خاص اووئیلې شی ځکه چې نور مذکوره حصه جات هم د الله تعالی د قرب حاصلولو دپاره خرچ کولې شی، معلومه دا شوه چې په آیت کریمه کښې (فان لله خمسه) دا حصه د بیت الله شریف سره خاص نهٔ ده.

---

۱) الاوجز:/۹۲۷۷_۲۸۲)_

۲) الانفال:(۴۱)_

۳) الاوجز:/۹۲۷۷، وتفسیر مع حاشیة الشهاب الخفاجی:۴۷۶/۴، والتفسیر الکبیر:۱۶۵/۱۵_۱۶۶، واحکام القرآن:۷۹/۳)_

۴) تفسیر البیضاوی مع الشهاب:۴۷۶/۴، والاوجز:/۹۲۷۷)_

۵) احکام القرآن:۷۹/۳، والاوجز:/۹۲۷۸)_

۶) احکام القرآن:۷۹/۳_۸۰، والاوجز:/۹۲۸۱، والتفسیر الکبیر:۱۶۶/۱۵، والمغنی:۳۱۴/۶_۳۱۵، وتفسیر البیضاوی:۴۷۵/۴، وبذلک جزم صاحب الهدایة:۲۴۲/۴، طبع مکتبة البشری، کراتشی، وشرح ابن بطال:۲۷۴/۵)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698
https://t.me/Afghansalarlibrary

اوس چې هرکله د ابو العالیه دقول بطلان ثابت شو نو ددې دوه معنې او وجوهات کیدې شی
① اول دا چې دا لفظ د "الله" د کلام د افتتاح دپاره وی. لکه څنګه چې مونږ د مشرانو د یو جماعت (عطاء، شعبی او د قتاده) په حوالې سره وئیلې دی او مقصد زمونږ تعلیم وی چې د الله تعالی په نوم سره تبرک حاصل کړې شی او ټول کارونه د الله تعالی د باعظمت نوم نه شروع کړې شی.
دویم ددې دا معنې هم کیدې شی چې خمس ټول په ټوله په هغه لارو کښې خرچ کړې شی کوم چې د الله تعالی د رضا او د هغهٔ د قرب حاصلولو سبب وی. ددې وجې نه ئې شروع کښې لفظ د "الله" راوړلو، بیا ئې هغه وجوهات او لارې اوښودلې چې هغه لارې دادې (وللرسول ولذی القربی.....) خلاصه دا شوه چې ابتداء کښې ئې د خمس حکم مجمل اوساتلو. بیا ئې دهغې تفصیل او وضاحت ذکر کړو(۱) لیکن اشکال دا کیږی چې په دې صورت کښې ددې واو څهٔ معنی ده کوم چې د "لله وللرسوله" مینځ کښې واقع شوې دې؟
ددې په جواب کښې امام رازی رحمه الله فرمائی چې د لغت په رڼړا کښې ددې واو داخلول جائز دی لیکن ددې نه مراد الغاء ده مطلب دا چې ددې هیڅ اعتبار نشته. لکه څنګه چې د الله تعالی قول دې (ولقد آتینا موسی وهارون الفرقان وضیاء)(۲) په دې کښې واو ملغی او غیر معتبر دې ځکه چې هم فرقان ضیاء ده. دغه شان په قرآن کریم کښې دی: (فلما أسلما وتله للجبین) (۳) ددې معنی ده : (لما أسلما تله للجبین"، ځکه چې "فلما أسلما" د جواب تقاضه کوی او د هغې جواب "للجبین" دې(۴).
د سهم الرسول معنی او په دې کښې اختلاف: د پورتنی بحث نه دا خبره واضحه شوه چې په آیت کریمه کښې د لفظ "الجلالة" ذکر کولو څهٔ مقصد دې. ددې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چې نبی علیه السلام ترڅو حیات وو نو د خمس یو حصه ئې اخستله، ددې نه علاوه صفی(۵) وغیره باندې هم د نبی علیه السلام حق وو، په غنیمت کښې به هم نبی علیه السلام د یو عام لښکری په شان حصه اخستله لیکن د نبی علیه السلام د وفات نه پس په دې حصه کښې د اسلافو اختلاف شو چې ددې څهٔ حکم دې؟ په دې سلسله کښې د حنابله او د شافعیه مؤقف خو دادې چې دا حصه اوس هم باقی ده او کله چې خمس تقسیمیږی نو دا حصه به هم جدا شمارلې شی البته اوس به ددې

---

[1] ) احکام القرآن للرازی:۳/۸۰)_
[2] ) الانبیاء:۴۸)_
[3] ) الصافات:۱۰۳)_
[4] ) احکام القرآن:۳/۸۰_۸۱)_
[5] ) قال الموفق: .....الصفی،وهو شئ یختاره من المغنم قبل القسمة،کالجاریة،والعبد،والثوب والسیف [illegible] بذل المجهود:۱۳/۳۱۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مصرف داوي چې دا به د مسلمانانو په مصلحتونو كښې خرچ كولې شي يعنى په دې باندې به اسلحه اخستلې كيږي او د سرحدونو حفاظت به پرې كولې شي وغيره،

امام شافعى رحمه الله فرمائى: "اختار أن يصنعه الامام فى كل أمر حصن به الاسلام وأهله من سد ثغر، وإعداد كراع أو سلاح، أو اعطائه أهل البلاء فى الاسلام نفلاً......."[1]

او د موالكو مسلک د خمس په حوالې سره اوس وړاندې تير شو چې هغوى د هيڅ تقسيم قائل نۀ دى او دا چې ټول په ټوله خمس امام ته حواله دې چې هغه دا د مسلمانانو په مصرفونو او مصلحتونو كښې خرچ كړي[2]،او احناف دا وائى چې د نبى عليه السلام حصه د هغوى د وفات نه پس ساقطه شوې ده ځكه چې دا حصه به نبى عليه السلام ته د يو خاص قسم صفت په بنياد باندې ملاويده،يعنى د رسالت د وجې نه،ددې تصور د نبى عليه السلام نه پس ممكن هم نۀ دې[3] امام جصاص رحمه الله فرمائى:

"سهم النبى صلى الله عليه وسلم إنما كان له ما دام حيا، فلما توفى سقط سهمه كما سقط الصفى بموته، فرجع سهمه إلى جملة الغنيمة كما رجع إليها، ولم يعد للنوائب"[4]

**د رشته دارو حصه او په دې كښې اختلاف:** په آيت كښې چې كوم دريم مصرف ذكر كړې شو نو دا د رشته دارانو دې،د دوى په حصه كښې هم اختلاف دې،امام ثورى رحمه الله فرمائى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم سهم د خمس په پنځمه حصه كښې خمس دې،دا پنځه حصه او څۀ چې بچ شى نو دا به په هغه خلقو كښې تقسيميږى د كوم چې په آيت كريمه كښې ذكر دې يعنى رشته دار،يتيمان،مسكينان او مسافر.

د امام شافعى او امام احمد رحمهما الله مسلک وړاندې تير شو چې دوى د ذوى القربى د سهم او د حصې مستقل قائل دى،خواه دا خلق مالدار وى يا حاجت مند.او په دې ذوالقرابة كښې به تقسيم د للذكر مثل الانثيين د اصل مطابق وى او احناف دا وائى چې په خمس كښې د ذوالقربى مستقل څۀ حصه نشته،تقسيم به درې طبقاتو كښې كيږى،يتيمان،مسكينان او مسافر، كما مرّ قبل۔

امام مالک رحمه الله فرمائى چې د وخت حاكم به د خپلې رائې او اجتهاد مطابق د نبى عليه السلام رشته دارو ته د خمس نه وركړه كوى، كما مرّ قبل.البته د رشته دارانو په فقيرانو باندې ددې نه هم خرچ كولې شى ليكن ددې علت به فقيرى وى،د نبى عليه السلام قرابت نۀ،دغه شان به دوى په دريو

---

[1]) المغنى:۶/۳۱۵،والام:۲/۱۴۷،رقم (۱۲۸۰۲)،والاوجز:/۹۲۸۴)_

[2]) الشرح الكبير للدردير:۲/۱۹۰،والاوجز:/۹۲۸۵)_

[3]) الدر المختار:۳/۲۵۹،والهداية:۴/۲۴۲،ومعالم السنن للخطابى:۲/۲۹۱،رقم (۷۷۶)،باب المن عن الاسير بغير فداء)_

[4]) احكام القرآن:۳/۸۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

واړو طبقاتو کښې داخل شي[1]

**په خمس کښې د مستحق کیدو بنیاد څهٔ دې؟** د احنافو او شوافعو مینځ کښې د اختلاف وجه دا خبره ده چې هغوی د استحقاق وجه د نبی ﷺ رشته داری ښائی او وائی چې د نبی ﷺ رشته داری ددې استحقاق دپاره کافی ده او احناف وائی چې د استحقاق دپاره دوه څیزونه دی، د نبی ﷺ رشته داری او نصرت. ددې اجمال تفصیل دادې چې لفظ د "ذوی القربی" مجمل دې. د بیان ضرورت لری، ښکاره خبره ده چې دا لفظ د نبی ﷺ رشته داریٔ سره خاص نهٔ دې. د نورو خلقو رشته داریٔ هم وی او دا هم ښکاره خبره ده چې دلته د ټولو خلقو رشته داریٔ مراد نهٔ دی. ددې وجې نه ددې لفظ وضاحت ضروری دې. د سلف صالحینو په دې خبره کښې اتفاق دې چې په دې آیت کریمه کښې د قرابت نه مراد د نبی ﷺ رشته داری ده. اوس په دوی کښې بعضې حضرات هغه دی کوم چې دا وائی چې په دې رشته دارانو کښې د خمس حق لرونکی هغه کسان دی چې هغوی به د نبی ﷺ نصرت هم کوو. ددې وجې نه په حصه کښې د مستحق جوړیدو دپاره دوه څیزونه بنیاد اوګرځیدل، د نبی ﷺ رشته داری او نصرت کول او هغه رشته دار چې د نبی ﷺ نصرت به ئې نه کوو یعنې وروستو پیدا شوی یا ئې وروستو اسلام قبول کړو هغوی هم ددې مستحق وو لیکن ددې بنیاد فقر وو چې په دوی کښې به څوک فقیر او محتاج وو نو هغوی ته به ددې حصې نه څهٔ ورکړې کیدل. لکه څنګه چې به نورو عامو فقیرانو ته حصه ورکولې شوه او د نبی ﷺ رشته دار هم نهٔ وو.

ددې واضح دلیل د حضرت جبیربن مطعم رضی الله عنه حدیث دې، فرمائی:

**"لما قسم رسول الله صلى الله عليه وسلم سهم ذوى القربى بين بنى هاشم وبنى المطلب أتيته أنا وعثمان، فقلنا: يا رسول الله، هؤلاء بنو هاشم، لا ننكر فضلهم بمكانك الذى وضعك الله فيهم، أرأيت بنى المطلب أعطيتهم ومنعتنا، وإنما هم ونحن منك بمنزلة؟ فقال صلى الله عليه وسلم: إنهم لم يفارقونى فى جاهلية ولا إسلام؟ وإنما بنوهاشم وبنوالمطلب شئ واحد، وشبك بين أصابعه"**[2]

په دې حدیث شریف کښې نبی ﷺ د شعب ابی طالب د واقعې طرفته اشاره کړې ده چې په هغې کښې قریشو د نبی ﷺ، او د دوی حمایتی او ملګری قبیلو بنو هاشم او بنو عبدالمطلب سره بائیکاټ او مقاطعه کړې وه، هغه وخت پوره قریش د اسلام په مخالفت کښې یو طرفته وو او بنوهاشم او بنوعبدالمطلب د نبی ﷺ په ملګرتیا کښې بل طرفته

---

[1] ) احکام القرآن: ۸۱/۳، وحاشیة الدسوقی: ۵۰۲/۲، باب فی الجهاد، والاوجز: ۹۲۸۵/، والام: ۱٤۷/٤/۲، رقم (۱۲۷۹۳)، المغنی: ۹۳۱٤/، والهدایة: ۲٤۰_۲٤۲)_

[2] ) الحدیث، اخرجه البیهقی: ۵۵٤/٦_۵۵۵، کتاب قسم الفیٔ.....باب سهم ذی القربی، رقم (۱۲۹۵۱_۱۲۹۵۵)، وابن ابی شیبة: ۱۳۰/۱۸، کتاب السیر، باب سهم ذوی القربی......رقم (۳٤۱۳۳)، وکتاب المغازی، باب غزوة خیبر، رقم (۳۸۰۳۰) دغه شان اوګورئ وراندې باب(۱۷)، ومن الدلیل علی ان الخمس للامام، وانه یعطی......ک د حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه د حدیث تخریج)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وو دا حديث په دوو وجوهاتو سره په دې خبره باندې دلالت کوي چې په خمس کښې د حقدار جوړيدو دپاره صرف رشته داري کافي نهٔ ده اوله وجه خو دا ده چې بنو عبد شمس او بنو مطلب دواړه د نبي عليه السلام په رشته دارئ کښې برابر دی ليکن نبي عليه السلام بنو المطلب ته خو په خمس کښې ورکړه او بنو عبد شمس ته ئې څهٔ ورنهٔ کړل، که استحقاق د قرابت د وجې نه وو نو نبي عليه السلام به په دواړو کښې برابروالي کړې وو.

دويمه وجه داده چې په آيت کريمه کښې ذکر شوې لفظ د ذوى القربى کښې چې کوم احتمال وو نودا دنبي عليه السلام فعل سره مجمل پاتې نهٔ شوبلکه ددې وضاحت اوشو اودنبي عليه السلام کارچې چرته دبيان اجمال دپاره راشي نودا په وجوب باندې دلالت کوي. کما تقرر فی الاصول[1] چې هرکله نبي عليه السلام دا بيان اوکړو چې قرابت د نصرت سره نو دا معلومه شوه چې هم دا د الله تعالى مراد هم دې.په دوی کښې هغه خلق چې د نبي عليه السلام نصرت سره موصوف نهٔ دی که هغوی په دې خمس کښې اخلی نو د فقر او احتياج په بنياد باندې به اخلی.داسې نهٔ چې د نبي عليه السلام د رشته دارئ د وجې نه اخلی[2]

**د خلفاء راشدينو اجماع:** ددې نه علاوه د څلورو واړو خليفه ګانو هم په دې باندې اجماع ده چې په خمس کښې د حقدار جوړيدو دپاره سبب او وجه فقر دې،دليلونه لاندې ذکر کولې شی.

① محمد بن اسحاق وائی چې ما د محمد بن علی رحمه الله نه تپوس اوکړو چې کله حضرت علی رضي الله عنه خليفه جوړ شو نو هغوی د رشته دارو د حصې سره څهٔ اوکړل؟محمد بن علی رحمه الله اوفرمائيل چې په دې مسئله کښې هغوی هغه طريقه اختيار کړه کومه طريقه چې د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما وه او هغوی دا خبره ناخوښه کړه چې په ما باندې د شيخينو د رائې نه خلاف د چليدو الزام راشی[3]

امام ابوبکررازی رحمه الله فرمائی چې که د حضرت علی رضي الله عنه رائې هم هغه نهٔ وه کومه چې د حضرات شيخينو رضي الله عنهما وه نو حضرت علی رضي الله عنه به د هغې مطابق فيصله نهٔ کوله،ځکه چې بل طرفته په نورو څو مسئلو کښې حضرت علی د حضراتو شيخينو سره اختلاف کړې دې، مثلاً د نيکهٔ ميراث،ځکه چې په دې مسئله کښې د دوی شيخينو حضراتو سره اختلاف دې.اوس دا خبره پوره شوه چې د حضرت علی او د حضراتو شيخينو رضي الله عنهم رائې په دې مسئله کښې يو ده چې د رشته دارانو د حصې حقداران به فقيران وی او چې هرکله د څلورو واړو خليفه ګانو(د حضرت عثمان رضي الله عنه عمل هم په دې مسئله کښې د شيخينو موافق وو لکه څنګه چې وړاندې حديث راځی)په دې مسئله کښې اجماع اوشوه نو ددې مسئلې حجيت د دوی په دې اجماع سره ثابت شو،ځکه چې د نبي عليه السلام ارشاد دې،

---

[1] ) احکام القرآن :۳/۸۲)_

[2] ) پورته حواله وشرح معانی الآثار:۲/۱۵۳،والهداية:٤/ ۲٤۰_۲٤۲)_

[3] ) احکام القرآن:۳/۸۲،وشرح معانی الآثار:۲/۱۵۲،والسنن الکبری للبيهقی:٦/۵۵۷_۵۵۸،کتاب قسم الفئ والغنيمة،باب سهم ذی القربى من الخمس،رقم (۱۲۹٦۰))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين من بعدي"[1]

۲ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د نجدة الحروري د رشته دارئ د حصې متعلق د سوال په جواب کښې فرمائيلې وو:

"كنا نرى أنه لنا، فدعانا عمر إلى أن نزوج منه أيمنا، ونقضي منه عن مغرمنا، فأبينا أن لا يسلمه لنا، وأبى ذلك علينا قومنا"[2]

يعنى "زمونږ دا خيال وو چې دا زمونږ حصه ده ليکن حضرت عمر رضي الله عنه مونږ دې خبرې طرفته راغوښتلو چې مونږ ددې په ذريعې سره د خپلو کنډو رنډو ودونه اوکړو او په مونږ کښې چې څوک قرضدار وى، د هغوى قرض ادا کړو البته مونږ په دې باندې اصرار اوکړو چې دا دې مونږ ته راکړې شى (څۀ قسم قيددې په کښې نۀ لګولې کيږى) ليکن په دې باندې زمونږ قوم (خلفاء راشدينو او نور صحابه کرام رضي الله عنهم) راضى نۀ شو"

په دې روايت کښې ابن عباس رضي الله عنه په خپله اقرار کوى چې زمونږ د قوم يعنى د صحابه کرامو رضي الله عنهم خيال هم دا وو چې په دې کښې زمونږ د فقيرانو حصه خو شته ليکن د مالدارانو نشته. دغه شان د هغوى دا فرمائيل چې "كنا نرى أنه لنا" ددې خبرې دليل دې چې دا صرف د هغوى رائې وه، چې په سنتو او د صحابه کرامو رضي الله عنهم په موجودګئ کښې ددې هيڅ حيثيت نشته. صرف يو رائې ده[3]

۳ حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه فرمائى: "وكان أبو بكر يقسم الخمس نحو قسم رسول الله صلى الله عليه وسلم، غير أنه لم يكن يعطي قربى رسول الله صلى الله عليه وسلم ما كان النبي صلى الله عليه وسلم يعطيهم، قال: فكان عمر بن الخطاب يعطيهم منه، وعثمان بعده"[4]

يعنى "د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خمس تقسيمولو طريقه هم هغه وه کومه طريقه چې د نبى عليه السلام وه، البته هغوى به د نبى عليه السلام رشته دارانو ته دومره نۀ ورکوله، څومره قدرې چې به دوى په خپله ورکوله، بيا وروستو حضرت عمر او حضرت عثمان به رضي الله عنهما هغوى ته په دې کښې حصه ورکوله".

په دې حديث شريف کښې وضاحت دې چې اولنى خليفه به رشته دارانو ته حصه نۀ ورکوله ليکن حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهما ورکوله، ددې وجه هم تيرو شوو احاديثو کښې

---

[1] ) الحديث، اخرجه ابو داود، كتاب السنة، باب فى لزوم السنة، رقم (٤٦٠٧)، واحمد فى مسنده، مسند العرباض بن سارية، رقم (١٧٢٧٥)، وجامع المسانيد والسنن، مسند العرباض......رقم (٦٤٧٣))_

[2] ) مسند الامام احمد، مسند عبدالله بن عباس، رضي الله عنهما رقم (٢٨١٢) و(٢٩٤٣)، وسنن النسائى، اول كتاب قسم الفئ، رقم (٤١٣٨_٤١٣٩)، والمعجم الكبير للطبرانى: ٣٣٦/١٠، يزيد بن هرمز عن ابن عباس، رقم (١٠٨٣٢)

[3] ) احكام القرآن للرازى: ٨٣/٣)_

[4] ) سنن ابى داود، كتاب الخراج......باب فى بيان مواضع قسم الخمس، رقم (٢٩٧٨_٢٩٧٩))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تيره شوه چې دديې بنياد فقر او احتياج وو، داسې نۀ چې د استحقاق په بنياد باندې ئې وركول[1]. بيا پورته د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه په حديث كښې چې د حضرت عمر رضي الله عنه متعلق دا اووئيلې شو چې هغوى به حصه وركوله نو دديې دا مطلب نۀ دې چې هغوى به ټوله پوره پوره حصه د رشته دارئ هغوى ته حواله كوله بلكه دديې مطلب دا دې چې د نورو حصو نه به ئې د هغوى د حاجت مطابق وركوله، دديې دليل هم هغه نجدة الحرورى ليكلې شوې دې، د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما خط دې، په بعضې طرقو كښې د هغې الفاظ دادي:

"وقد كان عمر عرض علينا من ذلك عرضا، رأيناه دون حقنا، فرددناه عليه، وأبينا أن نقبله"[2]

په دې حديث شريف كښې حضرت سهارنپوى رحمه الله فرمائي:

"ولعل هذا مبني على أن عمر رآهم مصارف، وظن ابن عباس أنهم أهل استحقاق فيه، أفترى ينقص حقهم أولاً، ثم إذا نقص فى دوه؟ أفيظن به أنه يحرمهم منه أصلاً؟ فلم يكن إلا أنه رآهم مصارف، ورأى استغنائهم عنه، فلم يرد عليهم ثانياً"[3]

يعنى "شايد دديې وجه دا وه چې د حضرت عمر رضي الله عنه په رائې كښې رشته دار مصرف وو او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خيال كښې دا حضرات دديې مستحق وو يعنى دوى ته وركول ضرورى وو. ورنه آيا تاسو دا خيال كوئ چې حضرت عمر رضي الله عنه اول خو د دوى په حق كښې كمې كړې وو او د كمى نه پس چې كله دوى واپس كړل نو آيا دا ګمان د هغوى باره كښې صحيح كيدې شى چې هغوى به دوى لره دديې نه بالكل محروم اوساتى؟ دديې وجه هم دا وه چې هغوى دوى مصرف ګڼړل، چې كله هغوى د دوى استغناء اوكتله نو دوباره ئې ورته پيشكش اونۀ كړو".

**په مصرف او استحقاق كښې فرق:** د حضرت سهارنپوى رحمه الله د پورتنى عبارت نه د مصرف او د استحقاق مينځ كښې فرق هم واضح شو، د مصرف مطلب دادې چې خمس په آيت كريمه كښې مذكوره كسانو كښې خرچ كړې شى نو دا خرچ به په صحيح محل كښې استعمال شى، چې چاته وركړې شى او چاته ورنۀ كړې شى نو په دې كښې د اعتراض څۀ خبره نشته او د استحقاق مطلب دادې چې په دې مذكوره كسانو كښې دا فلانې متعين كول او په دۀ باندې خرچ كول ضرورى دى.

دا هم د ائمه اربعه مينځ كښې يو بنيادى اختلاف دې چې په قرآن كريم كښې د كومو خلقو ذكر دې نو دا مصرف دى يا مستحق دى؟ امام شافعى او احمد رحمهما الله د مستحق كيدو قائل دى او دا وائى چې دې ټولو ته رسول او وركول ضرورى دى، امام مالک او امام ابوحنيفه

---

[1] ) تكملة فتح الملهم: ٣/٢٥٥_٢٥٦)_

[2] ) سنن ابى داود، كتاب الخراج......باب فى بيان مواضع......رقم (٢٩٨٢))_

[3] ) بذل المجهود: ١٧١/١٠، كتاب الخراج........د احنافو د نورو دليلونو دپاره اوګورئ، تكملة فتح الملهم: ٢٥٤/٣_٢٥٨، واحكام القرآن للجصاص: ٨٣/٣، واعلاء السنن: ٢٠٩/١٢_٢٥١، باب اربعة اخماس الغنيمة....)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رحمة الله علیهما د مصرف کیدو قائل دی او استحقاق نهٔ مني.

**د بحث خلاصه:** ددې ټول تفصیلي بحث نه دا لاندینۍ خبرې ثابت شوې

①اوس به خمس درې حصې کیږی چې په یتیمانو، مسکینانو او مسافرو کښې به تقسیمولې شی.

②د استحقاق دپاره علت فقر او احتیاج دې، ددې وجې نه په دې باندې تقریباً ټول متفق دی چې په آیت کریمه کښې د یتیم نه مراد هغه یتیم دې چې د هغهٔ مورث ددې یتیم دپاره هیڅ هم پریخودلې نهٔ وی، محتاج او ضرورت مند وی، د مالدار او غنی کیدو په صورت کښې به دې یتیم ته هم نهٔ ملاویږی.[1]

③په دې باندې د خلفاء راشدینو اجماع هم ده.

**یو سوال او د هغې جواب:** دلته د احنافو په مسلک باندې دا اشکال پیدا کیږی چې که د رشته دارانو فقیران د خمس مستحق دی او مالداران نهٔ دی نو د دوی د جدا ذکر کولو څهٔ ضرورت وو؟ حالانکه دوی ددې فقیرئ د علت د وجې نه په مسکینانو کښې داخل دی؟

ددې یو جواب خو دا دې چې څنګه یتیمان او مسافر خاص طور سره ذکر کړې شو نو دغه شان د رشته دارو هم تخصیص شوې دې ورنه یتیمان او مسافر به هم ددې حصې مستحق په هغه وخت کښې وی چې کله دوی فقیران وی.

دویم جواب دادې چې په قرآن کریم کښې د الله تعالی ارشاددې: "إنما الصدقات للفقراء والمساكين والعاملين......."[2] چې د صدقاتو مستحق خو فقیران او مسکینان......وغیره دی او د نبی علیه السلام ارشاددې، "إن الصدقة لا تحل لنا......"[3] ددې نه دا معلومه شوه چې صدقات د نبی علیه السلام د آل دپاره حلال نهٔ دی. که د خمس په مستحقینو کښې د دوی نوم نهٔ وو نو چا هم دا وئیلې شو چې په خمس کښې هم رشته دارو ته ورکول جائز نهٔ دی څنګه چې ورته صدقات ورکول جائز نهٔ دی نو ددې وهم د وجې نه الله تعالی مونږ ته ددې د ښودلو دپاره ددې تذکره هم اوفرمائیله چې د خمس په معامله کښې د دوی مسئله د صدقاتو د مسئلې نه جدا او مختلفه ده، په خمس کښې د دوی دپاره اخستل جائز دی[4] والله اعلم

**یو اشکال او د هغې جوابونه:** نبی علیه السلام خپل ترهٔ حضرت عباس بن عبد المطلب رضی الله عنه ته هم د

---

[1] ) احکام القرآن:۳/۸۳،و۸۵وفتح القدیر:۵/۲۴۳)_

[2] ) التوبة:۶۰)_

[3] ) و تمامه وان موالی القوم من انفسهم". اللفظ للترمذی، من روایة ابی رافع مولی رسول الله صلی الله علیه وسلم، کتاب الزکاة، باب ما جاء فی کراهیة الصدقة......(۶۵۷)، وکذا انظر سنن ابی داود، کتاب الزکاة، باب الصدقة علی بنی هاشم، رقم (۱۶۵۰)، والنسائی، کتاب الزکاة، باب مولی القوم منهم، رقم (۲۶۱۳)، والمصنف لابن ابی شیبة:۷/۵۰، کتاب الزکاة، من قال: لاتحل الصدقة علی بنی هاشم، رقم (۱۰۸۱۰))_

[4] ) احکام القرآن:۳/۸۳،و۸۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خمس د مال نه ورکړې وو حالانکه هغه مالدار وو(۱)دې نه خو هم دا ثابته شوه چې په دې کښې د مالدارو او فقیرانو دواړو رشته دارانو حصه ده.
ددې اعتراض دوه جوابونه دی:
①دوی ته چې نبی علیه السلام څۀ ورکړل نو ددې وجه رشته داری او نصرت دواړه وو.دا علت دوی په خپله هم بیان کړې دې چې "انهم لم یفارقونی فی جاهلیة ولا إسلام" نو په دې کښې مالدار او فقیر دواړه برابر دی،په دې کښې هیڅ اختلاف نشته.اختلاف خو د نبی علیه السلام د وفات نه پس دې ځکه چې اوس نصرت باقی پاتې شوې نۀ دې.
②دا خو هم ممکنه ده چې دغه مال نبی علیه السلام حضرت عباس رضی الله عنه ته ددې دپاره ورکړې وی چې هغوی دا د بنوهاشم په فقیرانو کښې تقسیم کړی،یعنی د خپل ذات دپاره ئې نۀ وو ورکړې.(۲) والله اعلم
**د ذوی القربی نه کوم خلق مراد دی؟** د امت د عالمانو په ذوی القربی کښې هم اختلاف دې چې ددې نه څوک مراد دی؟په دې کښې علامه قرطبی رحمه الله درې قولونه ذکر کړې دی.
①ددې نه مراد د قریشو ټوله قبیله ده،دا د بعضې اسلافو قول دې.د دوی دلیل دادې چې نبی علیه السلام د بعثت په ابتداء کښې کله د صفا غر ته اوختلو نو دا آواز ئې اوکړو "یابنی فلان،یا بنی عبدمناف،یابنی عبدالمطلب،یابنی کعب بن مرة،یابنی عبدشمس،أنقذوا أنفسکم من النار....(۳)
②ددې نه مراد بنو هاشم او بنو عبد مناف دی،ددې وینا ویونکې حضرت امام شافعی، احمد، ابوثور،مجاهد ،قتاده،ابن جریج او مسلم بن خالد رحمهم الله دی.دلیل وړاندې تیر شوې دې چې "إنهم لم یفارقونی فی جاهلیة......"(۴)
③ددې نه صرف بنوهاشم مراد دی،دا قول د مجاهد (فی روایة)د حضرت عمربن عبدالعزیز

[1]) احکام القرآن:۸۴/۳،وفتح القدیر:۲۴۵/۵،په روایتونو کښې راغلې دی چې د حضرت عباس رضی الله عنه شل غلامان وو چې هغوی به کټله او دوی ته به ئې ورکوله.دغه شان نبی علیه السلام یوځل د دوی نه د دوو کالو وړاندې زکوة وصول کړې وو.دا هم د مالدارئ او د فراخئ دلیل دې.اوګورئ شرح معانی الآثار: ۱۸۴/۲،کتاب وجوه الفئ وخمس الغنائم،دغه شان اوګورئ المستدرک للحاکم:۳۶۶/۳،ذکر اسلام العباس، رقم (۵۴۰۹)،وسنن البیهقی الکبری:۵۲۴/۶،کتاب قسم الفئ......باب مفاداة الرجل منهم بالمال،رقم (۱۲۸۴۹)، والمعجم الکبیر للطبرانی:۱۷۱/۱۱،عطاء عن عباس،رقم (۱۱۳۹۸)،ومجمع الزوائد:۲۸/۷،سورة الانفال،والطبقات الکبری لابن سعد:۱۵/۴،الطبقة الثانیة من المهاجرین......رقم (ودلائل النبوة:۱۴۳/۳،غزوة بدر المعظمی،باب ما فعل رسول الله صلی الله علیه وسلم بالغنائم......وفتح الباری:۳۱۲/۸،کتاب التفسیر،رقم (۴۳۸۶)، وعمدة القاری:۹۷/۱۳،کتاب العتق،باب اذا اسراخو الرجل اوعمه هل یفادی.....؟)_
[2]) احکام القرآن:۸۴/۳)_
[3]) الحدیث اخرجه مسلم،کتاب الایمان،من روایة ابی هریرة باختصار،رقم (۵۰۱))_
[4]) سبق تخریجه آنفا)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زید بن ارقم او د علی بن الحسین(امام زین العابدین)دي،دغه شان امام مالک،ثوری او اوزاعی رحمهم الله هم ددې قائل دی.[1]

هم دا دریم قول د احنافو هم دې او د بنوهاشم نه مراد آل د علی،آل د عباس،آل د جعفر،آل د عقیل او اولاد د حارث بن عبدالمطلب دی.[2]

پورته ذکرشوې درې واړه طبقات د نبی علیه السلام د رشته دارئ حامل دی،ځکه چې کله آیت کریمه "وانذر عشیرتك الاقربین"[3] نازل شو نو نبی علیه السلام دا ټول د صفا په غر باندې جمع کړل او دوی ټولو ته ئې دعوت ورکړې وو،ددې نه دا ثابته شوه چې د رشته دارئ وصف دې ټولو ته شامل دې.

**ذوی القربی سره متعلق احکامات:** اوس ذوی القربی سره متعلق درې احکامات دی:

① د خمس د حصې استحقاق،**بقوله تعالی(ولله سول ولذی القربی)**[4] او د ذی القربی نه مراد د دوی فقیران دی.**کمامرقبل.**

② په دوی باندې صدقات حرام دی او په چا باندې چې صدقات حرام دی نو هغه آل د علی،آل د حضرت عباس،آل د حضرت جعفر،آل د حضرت عقیل او اولاد د حارث بن عبدالمطلب رضی الله عنهم دې،هم دا خلق اهل بیت دی،په دې حکم کښې بنو المطلب داخل نهٔ دی ځکه چې دوی په اهل بیت کښې نهٔ دی.که دوی په اهل بیت کښې وې نو بنو امیه به هم په اهل بیت کښې وو چونکه د بنو امیه نسبی تعلق نبی علیه السلام سره هم هغه دې کوم چې ورسره د بنو المطلب دې او د امت د عالمانو په دې باره کښې هیڅ اختلاف نشته چې بنو امیه په اهل بیت کښې داخل نهٔ دی،ددې وجې نه به په اهل بیت کښې بنو المطلب هم داخل نهٔ وی.

③ د الله تعالی خپل نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته خاص طور سره دا حکم ورکول چې هغوی خپل نزدې رشته دار د الله تعالی د عذاب نه اوویروی،دا انداز د قریشو ټولو شاخونو او قبیلو ته شامل دې چې کله دا آیت کریمه(وانذر عشیرتك الاقربین)نازل شو نو نبی علیه السلام ټولو ته خطاب کولو سره د ویرولو فریضه پوره کړه.**کما ورد به الاثر**[5] او نزدې رشته دارو لره خاص طور سره

---

[1] ) الجامع لاحکام القرآن:۱۲/۸،وفتح الباری:۲۴۵/۶_۲۴۶)_

[2] ) احکام القرآن للرازی:۸۴/۳_۸۵)_

[3] ) الشعراء:۲۱۴)_

[4] ) الانفال:۴۱)_

[5] ) روی مسلم بسنده عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:لما نزلت هذه الآیة:(وانذر عشیرتک الاقربین)دعا رسول الله صلی الله علیه وسلم قریشا،فاجتمعوا،فعم وخص،فقال:یا بنی کعب بن لؤی،انقذوا انفسکم من النار،یابنی مرة بن کعب،انقذوا......یابنی عبد شمس،انقذوا......یابنی عبد مناف انقذوا......یابنی هاشم،انقذوا......یابنی عبد المطلب: انقذوا......یا فاطمة،انقذی نفسک من النار،فانی لا املک لکم من الله شیئا،غیر ان لکم رحما،سابلها ببلالها".انظر صحیحه،کتاب الایمان،باب فی قوله تعالی:(وانذر عشیرتک......)رقم (۵۰۱))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ویرول،نو ددې یوه وجه خو دا وه چې د دین د دعوت په سلسله کښې دا کار ډیر زیات غوره او ښهٔ دې دویم دا چې د دعوت الی الله په معامله کښې دا بهترین صورت وو چې رشته دارو سره بې ځایه طرفداری اونهٔ کړې شی.دا ځکه چې کله خلقو ته دا معلومه شی چې نبی ﷺ د خپلو نزدې رشته دارو او خاندان په باره کښې هم دا برداشت نه کړه چې هغوی د غیرالله عبادت اوکړی او هغوی ئې هم د الله تعالی د عذاب نه اوویرول.د غیرالله د عبادت نه ئې منع کړل نو نبی ﷺ زیات حقدار دې چې نور خلق هم د الله تعالی نه اوویروی او د غیرالله د عبادت نه ئې منع کړی ځکه چې که په دې معامله کښې مداهنت او طرفداری جائز وه نو د نبی ﷺ نزدې رشته دار ددې زیات حقدار وو چې په دې باره کښې ورته څهٔ اونهٔ وئیلې شی لیکن ددې برعکس نبی ﷺ هغوی ته د نورو خلقو په مقابله کښې زیات دعوت ورکړو او په هغوی ئې زیاته توجه اوساتله[1] والله اعلم بالصواب

ددې نه پس د باب حدیث شریف ته اوګورئ.

٢٩٤٥:[2] حَدَّثَنَا بَدَلُ بْنُ الْمُحَبَّرِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي الْحَكَمُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى حَدَّثَنَا عَلِيٌّ أَنَّ فَاطِمَةَ - عَلَيْهَا السَّلاَمُ - اشْتَكَتْ مَا تَلْقَى مِنَ الرَّحَى مِمَّا تَطْحَنُ، فَبَلَغَهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أُتِيَ بِسَبْيٍ، فَأَتَتْهُ تَسْأَلُهُ خَادِمًا فَلَمْ تُوَافِقْهُ، فَذَكَرَتْ لِعَائِشَةَ، فَجَاءَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَذَكَرَتْ ذَلِكَ عَائِشَةُ لَهُ، فَأَتَانَا وَقَدْ دَخَلْنَا مَضَاجِعَنَا، فَذَهَبْنَا لِنَقُومَ فَقَالَ «عَلَى مَكَانِكُمَا» حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلَى صَدْرِي فَقَالَ «أَلاَ أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَاهُ، إِذَا أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا فَكَبِّرَا اللَّهَ أَرْبَعًا وَثَلاَثِينَ، وَاحْمَدَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، وَسَبِّحَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، فَإِنَّ ذَلِكَ خَيْرٌ لَكُمَا مِمَّا سَأَلْتُمَاهُ».

[٣٥٠٢، ٥٠٤٦، ٥٠٤٧، ٥٩٥٩]

## رجال الحدیث

① **بدل بن المحبر:** دا بدل بن المحبر.بتشدید الباء رحمه الله دې.[3]

② **شعبه:** دا د حدیثو مشهور امام شعبه بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله دې.د دوی حالات په

---

[1] ) احکام القرآن للرازی:۳/۸۵)_

[2] ) قوله: علی":الحدیث اخرجه البخاری ایضا،کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ ،باب مناقب علی.....رقم (۳۷۰۵)، وکتاب النفقات،باب عمل المراة فی بیت زوجها،رقم (۵۳۶۱)،وباب خادم المراة،رقم (۵۳۶۲)، وکتاب الدعوات،باب التکبیر والتسبیح.....رقم (۶۳۱۸)،ومسلم،کتاب الذکر والدعاء،باب التسبیح اول النهار.....رقم (۶۹۱۵_۶۹۱۷)،والترمذی،کتاب الدعوات،باب ما جاء فی التسبیح والتکبیر.....رقم (۳۴۰۵)، وابو داود،کتاب الخراج.....باب بیان مواضع قسم الخمس،رقم (۲۹۸۸_۲۹۸۹)،وکتاب الادب، باب التسبیح عند النوم،رقم (۵۰۶۲_۵۰۶۳))_

[3] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان،باب استواء الظهر فی الرکوع)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كتاب الايمان، "باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" كښې راغلې دى.[1]

③الحكم: دا الحكم بن عتيبه رحمه الله دې.د دوى تذكره په كتاب العلم، "باب السمر فى العلم" كښې تيره شوې ده.[2]

④ابن ابى ليلى: دا مشهور محدث عبدالرحمن بن ابى ليلى رحمه الله دې.[3]

⑤على: د څلورم خليفه حضرت على بن ابى طالب رضي الله عنه حالات په كتاب العلم، "باب كتابة العلم" كښې تير شوې دى.[4]

⑥فاطمه: دا فاطمه رضي الله عنها د نبى كريم عليه السلام لورمباركه ده.[5]

**د باب د حديث شريف ترجمه:** عبدالرحمن بن ابى ليلى وائى چې حضرت على رضي الله عنه مونږ ته اووئيل چې د حضرت فاطمه رضي الله عنها په لاسونو مباركو باندې د ميچن چلولو د وجې نه نښې جوړې شوې وې،نو هغوى ته پته اولګيده چې نبى عليه السلام ته څۀ قيديان راغلې دى نو هغه نبى عليه السلام ته راغله چې يو خادم ترينه واخلى،ليكن نبى عليه السلام سره د هغې ملاقات اونۀ شو نو دوى خپل ضرورت حضرت عائشې رضي الله عنها ته بيان كړو،كله چې نبى عليه السلام كور ته تشريف راوړلو، حضرت عائشې رضي الله عنها ورته بيان اوكړو چې حضرت فاطمه راغلې وه او خپل ضرورت ئې بيان كړو.نو نبى عليه السلام مونږ كره تشريف راوړلو په داسې حال كښې چې مونږ خپلو خپلو بسترو ته تلې وو،د نبى عليه السلام په ليدلو سره مونږ پاسيدل اوغوستل نو نبى عليه السلام منع كړو او وې فرمائيل چې دواړه په خپل ځائې اوسيږئ.تردې چې د نبى عليه السلام د قدمونو يخوالې ما په خپله سينه كښې محسوس كړو نو وې فرمائيل تاسو چې زما نه د كوم څيز مطالبه كړې ده نو د هغې نه غوره څيز زۀ تاسو ته اونۀ ښايم؟كله چې تاسو دواړه خپلو خپلو بسترو ته لاړ شئ نو څلور ديرش ځله الله اكبر،درې ديرش ځله الحمد لله او درې ديرش ځله سبحان الله وايئ،د كوم څيز چې تاسو مطالبه كړې ده نو دا عمل تاسو دپاره د هغې نه زيات غوره دې.

---

[1]) كشف البارى:(۶۷۸/۱)_

[2]) كشف البارى:(۴۱۴/۴)_

[3]) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الاذان،باب استواء الظهر فى الركوع.
ابن الاثير رحمه الله ليكلې دى چې د محدثينو په نزد د ابن ابى ليلى نه مراد عبدالرحمن وى او د فقهاؤ په نزد د ابن ابى ليلى نه مراد د عبدالرحمن ځوئې محمد بن عبدالرحمن بن ابى ليلى وى.عمدة القارى:(۳۶/۱۵)_

[4]) كشف البارى:(۱۴۹/۴)_

[5]) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ،كتاب الوضوء،باب غسل المراة اباها الدم.....)_

[6]) د مسلم شريف او ابوداؤد شريف په روايت كښې د يد يعنى د لاس وضاحت دې،چې د ميچن چلولو د وجې نه لاسونه متاثره شوې وو.صحيح مسلم،كتاب الذكر والدعاء،باب التسبيح اول النهار...... رقم (۶۹۱۵_۶۹۱۷)،وسنن ابى داود،كتاب الخراج......باب فى بيان مواضع قسم الخمس،رقم (۲۹۸۸))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حدیث د بعضې حصو تشریح:** د سبی معنی ده تختول او خلق نیول او ددې اطلاق په غلام او وینزه دواړو باندې کیږی،ددې جمع سبایا ده[1]دغه شان د خادم اطلاق هم په سړی او ښځه دواړو باندې کیږی[2]۔

د باب په روایت کښې **فاتته تسئله** راغلې دې چې حضرت فاطمه رضي الله عنها راغله آیا دې سره بل هم څوک وو ،دلته ددې خبرې وضاحت نشته امام ابوداؤد یو روایت نقل کړې دې په هغې کښې د ام الحکم بنت الزبیر یا د ضباعة بنت الزبیر رضي الله عنها دا بیان دې.

**"أصاب رسول الله صلى الله عليه وسلم سبياً،فذهبتُ أنا وأختي وفاطمة بنتُ رسول الله صلى الله عليه وسلم فشككونا إليه مانحن فيه،وسئلناه أن يامرلنا بشيئ من السبي،فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : سبقكن يتامى بدر"[3]**

چې "نبی کریم ﷺ ته څۀ قیدیان راغلل نو زۀ،زما خور او حضرت فاطمه د نبی علیه السلام لور مبارکه نبی علیه السلام ته ورغلو ،په کوم تکلیف او مشقت کښې چې مونږ اخته وو نو مونږ ورته د هغې تذکره اوکړه او دا درخواست مو اوکړو چې په قیدیانو کښې مونږ ته هم څۀ راکړې شی (د خادم په طور) نبی علیه السلام په جواب کښې اوفرمائیل چې د بدر د یتیمانو نه تاسو سبقت کړې دې"

د ابوداؤد شریف د روایت نه څنګه دا معلومه شوه چې حضرت فاطمه رضي الله عنها سره د حضرت زبیربن العوام رضي الله عنه دوه لونړه هم وې نو دا هم معلومه شوه چې دا واقعه د غزوه بدر نه پس ده.بیا د باب په حدیث شریف کښې دا راغلې دی چې نبی علیه السلام په کور کښې موجود نۀ وو نو ددې وجې نه حضرت فاطمه رضي الله عنها د خپل حاجت تذکره حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوکړه.په اکثرو روایتونو کښې دغه شان دی.البته دارقطنی رحمه الله په خپل "علل" کښې یو روایت نقل کړې دې چې په هغې کښې د حضرت ام سلمه رضي الله عنها ذکر دې.

حافظ په دواړو کښې تطبیق کولو سره فرمائی چې کیدې شی چې دواړو ازواج مطهراتو کره حضرت فاطمه رضي الله عنها راغلې وی،یعنی اول حضرت عائشه رضي الله عنها کره راغلې وی هلته نبی علیه السلام ملاو نۀ شو نو ام سلمه رضي الله عنها کره ئې تشریف راوړلو[4]

**قوله: فاتانا وقد دخلنا مضاجعنا،فذهبنا لنقوم،فقال: على مكانكما،حتى وجدت برد قدميه على صدري:** په دې عبارت کښې مختلف فائدې دی:

① کله چې نبی علیه السلام دې دواړو ته تشریف راوړلو نو دا د شپې وخت وو.لکه په یو روایت

---

[1] ) عمدة القاري:(۱۵/۳۶)_

[2] ) جامع الاصول للجزري:(۴/۲۵۶)_

[3] ) انظر سنن ابي داود.كتاب الخراج......باب في بيان مواضع قسم......رقم (۲۹۸۷))_

[4] ) العلل للدار قطني:۳/۲۸۲_۲۸۴.رقم السوال:(۴۰۶).وفتح الباري:(۱۱/۱۲۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې ددې وضاحت دې چې "اتانا النبي ﷺ ذات ليلة"(۱) چې يو شپه نبي عليه السلام مونږ ته راغلو.

④ دغه شان کله چې نبي ﷺ تشريف راوړلو نو هغه وخت دوی دواړو څادر اغوستلې وو
ځکه چې د يخنئ موسم وو، دوی دواړو چې کله نبي ﷺ اوليدو نو د اودريدلو او د کپړو
اغوستلو اراده ئې اوکړه نو نبي ﷺ منع کړل چې په خپل ځائې باندې اوسيږئ، د پاسيدلو
ضرورت نشته، په يو روايت کښې دی، "وکانت ليلة باردة، وقد دخلت هی و علی فی اللحاف، فاراد ان
يلبسا الثياب......"(۲) فقهاء کرامو ددې نه دا مسئله مستنبط کړې ده چې پلار لور کره هغه
وخت هم تلې شي چې کله دا خپل خاوند سره ملاسته وی(۳)

③ د ابوداؤد شريف په يو روايت کښې دا هم راغلې دی چې نبي ﷺ ددې دواړو د سر له
طرفه تشريف راوړلو، چې کله حضرت فاطمې رضي الله عنها خپل والدصاحب اوليدو نو د شرم او حيا
له وجې نه ئې خپل مخ مبارك په څادر کښې پټ کړو(۴).

④ هم د بخاری شريف په يو روايت کښې دا اضافه هم ده چې نبي ﷺ راغلو او ددې دواړو
مينځ کښې کيناستلو، "فجاء فقعد بيني وبينها"(۵). فقهاء کرامو ددې نه دا مسئله مستنبط کړې
ده چې پلار د خپلې لور او د هغې د خاوند مينځ کښې هم کيناستلې شي چې کله دوی دواړه
ملاست وی، اګرچه د پلار د بدن څۀ حصه د لور د بدن سره مس کيږی هم، لکه څنګه چې د
باب په روايت کښې حضرت علي رضي الله عنه د قدمونو د يخوالی په باره کښې فرمائی(۶) ليکن امام
مالك رحمه الله دا جائز نۀ ګڼړی(۷). د زيات احتياط خبره هم داده چې جائز نۀ شی، خصوصاً زمونږ
په دې زمانه کښې چې هرکله د محارمو پيژند ګلو ختميږی، نبي کريم ﷺ خو معصوم وو، د
هغوی په باره کښې داسې سوچ کول هم صحيح نۀ دی.

## الامر فوق الادب

بيا په حديث شريف کښې راغلې دی چې د نبي ﷺ په ليدلو سره حضرت علي او حضرت
فاطمه رضي الله عنهما ادباً د اودريدو اراده اوکړه ليکن نبي ﷺ حکماً اوفرمائيل، "على مكانكما" چې په
خپل ځائې باندې اوسيږئ، ددې نه پس دوی دواړه پاتۀ سيدل، په خپل زور حالت باندې
پاتې شو، ددې وجې نه چې دا د "الامر فوق الادب" د قبيل نه دې چې هرکله د نبي ﷺ حکم

---

(۱) مسند احمد: ۱/٤٤، مسند علي بن ابي طالب رضي الله عنه، عن ابن ابي ليلي، رقم (۱۲۲۹))_
(۲) عمدة القاري: ۱۵/۳۶)_
(۳) شرح ابن بطال: ۵/۲۷۳)_
(۴) سنن ابي داود، كتاب الادب، باب التسبيح عند النوم، رقم (۵۰۶۳))_
(۵) صحيح البخاري، كتاب النفقات، باب عمل المراة في بيت زوجها، رقم (۵۳۶۱))_
(۶) شرح ابن بطال: ۵/۲۷۳)_
(۷) پورته حواله)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راغلو نو ادباً چې ئې کومه د اودریدلو اراده کړې وه، هغه ئې پریخودله[1] ددې نه پس په دې خان پوهه کړئ چې حضرت گنگوهی رحمه الله د "حتی وجدت برد قدمیه" مجازی معنی مراد اخستلو سره ددې تفسیر په اطمینان او سکینې سره کړې دې، مطلب دادې چې ما یو قسم اطمینان او سکون محسوس کړو او فرمائی چې ددې نه حسی یخوالې مراد نه دې[2] لیکن حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چې د نبی ﷺ لائق خو دا خبره ده چې د "برد قدمیه" نه اطمینان او سکون مراد وی ځکه چې د نبی ﷺ ذات مبارك خو هر اعتبار سره راحت، سکون او اطمینان وو، البته د روایتونو نه ښکاره دا معلومیږی چې دلته ددې نه مراد حسی یخوالې دې، لکه د طبری په یو روایت کښې وضاحت سره دا الفاظ نقل دی، "قال علی: حتی وجدت برد قدمیه علی صدری فسخنتهما"[3] چې ما د هغوی د قدمونو مبارکو یخوالی په خپله سینه کښې محسوس کړو نو ما هغه ګرم کړل او یو روایت چې وړاندې هم تیر شو، په هغې کښې "وکانت لیلة باردة"[4] راغلې دی[5]، په دې ټولو کښې د حسی یخوالی ذکر دې، ددې نه علاوه وړاندې ذکر شوې روایت کښې د لحاف لفظ[6] هم په دې باندې دلالت کوی چې دا د یخنئ موسم وو، چونکه نبی کریم ﷺ د بهر نه تشریف راوړلې وو، ددې وجې نه ئې خپې مبارکې یخې وې. والله اعلم بالصواب

**قوله: فقال: الا ادلکما علی خیر مما سالتمانی؟:** نو نبی ﷺ اوفرمائیل چې زهٔ تاسو ته د هغې نه غوره څیز اونهٔ ښایم د کوم څیز چې تاسو زما نه تقاضه او مطالبه کړې ده؟ په اصل کښې سوال کوونکې حضرت فاطمه رضی الله عنها وه لیکن دا طلب او تقاضا چونکه د حضرت علی رضی الله عنه په رضامندئ سره وه نو ددې وجې نه د طلب نسبت نبی ﷺ دواړو طرفته اوفرمائیلو او وې فرمائیل چې، "سئلتمانی"[7] بلکه د جامع ترمذی د یو روایت نه خو دا معلومیږی چې حضرت علی رضی الله عنه په خپله، خپله بی بی مبارکه د نبی ﷺ خدمت ته لیږلې وه چې هلته څوك خادم اوګوره، حضرت علی رضی الله عنه فرمائی:

"شکت الی فاطمة مجل یدیها من الطحن، فقلت لها: لو اتیتِ اباك، فسالتیه خادماً؟......."[8]

---

[1] ) لامع الدراری:۳۰۲/۷)_

[2] ) پورته حواله)_

[3] ) فتح الباری:۱۲۰/۱۱،رقم (۶۳۱۸)،وعمدة القاری:۳۶/۱۵،طبری)_

[4] ) لم اجده فی متون الحدیث،وانما ذکره العینی فی العمدة:۳۶/۱۵)_

[5] ) تعلیقات اللامع:۳۰۲/۷)_

[6] ) انظر سنن ابی داود،کتاب الادب،باب التسبیح عند النوم،رقم (۵۰۶۳))_

[7] ) عمدة القاری:۳۶/۱۵)_

[8] ) الجامع للترمذی،کتاب الدعوات،باب ماجاء فی التسبیح والتکبیر....... ..... [بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د تلقين كړه شوو كلماتو حكمت او خاصيت:** حضرت فاطمه رضي الله عنها د نبي ﷺ نه د خادم تقاضه كړې وه په جواب كښې نبي ﷺ د هغې كلماتو تلقين اوفرمائيلو چې په حديث شريف كښې د هغې ذكر دې، دې كلماتو ته "تسبيحات فاطمي" هم وئيلې شي. امام ابن تيميه رحمه الله ليكلى دي چې كوم كس د اوده كيدو په وخت ددې كلماتو پابندي كوى او خامخا ددې ورد كوى نو هغه به كله هم ستړې نۀ شى، ځكه چې حضرت فاطمه رضي الله عنها هم ددې شكايت كړې وو چې د كار د ډيروالى او د ميچن كولو د وجې نه په لاسونو باندې پولئ راختلې دى، ددې وجې نه يو خادم راكړئ ليكن نبي كريم ﷺ د خادم په ځائې ددې كلماتو تلقين اوفرمائيلو (١)

البته د حافظ ابن حجر رحمه الله په دې كښې سوچ او فكر دې، هغوى دا وائى چې دا خبره متعين نۀ ده چې ستړې والې به بالكل نۀ وى بلكه مطلب دادې چې كوم سړې ددې كلماتو پابندي كوى نو د كار د ډيروالى د وجې نه به هغۀ ته څۀ نقصان نۀ كيږى، نۀ به دغه كار كول ددې انسان دپاره درونډ ثابتيږى، اګرچه ستړې والې هم محسوسوى (٢) ددې كلماتو د تلقين د حكمت په بيانولو كښې علامه عينى رحمه الله فرمائى چې د خادم په بدله كښې نبي ﷺ هغوى ته دا كلمات وركړل او دا ئې غوره څيز اوښودلو ځكه چې د ذكر فائده د آخرت ثواب دې او د خادم فائده خدمت وغيره دې چې يو دنيوى كار دې، ددې وجې نه دا خبره منلې شوې ده چې "الثواب اكثروابقى، فهوخير" (٣)

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** حديث شريف سره د ترجمة الباب مطابقت واضح دې، په ترجمه كښې د امام بخارى رحمه الله دعوى دا وه چې د وخت امام او حاكم ته د خمس په مالونو كښې پوره تصرف او اختيار حاصل دې چرته چې خرچ كول غواړى نو خرچ كولې شى او په دې كښې څۀ قسم تخصيص نشته. لكه د باب په حديث شريف كښې اوګورئ چې نبي ﷺ ددې باوجود حضرت فاطمه رضي الله عنها ته د خادم وركولو نه منع اوفرمائيله چې هغه ئې د ټولو نه نزدې او د زړۀ ټكړه وه او په هغې باندې ئې نورو خلقو ته ترجيح وركړه. قاله اسماعيل القاضى (٤) هم دا خبره امام طبرى رحمه الله هم فرمائيلې ده، ليكى چې:

"ولوكان قسماً مفروضاً لذوى القربى لاخدم ابنته، ولم يكن عليه السلام ليدع شيئاً اختاره الله لهم وامتن به عليهم لان ذلك حيف على المسلمين، واعتراض لما افاء الله عليهم، فاخدم منه ناساً، وتركه ابنته، ثم لم تدع

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] رقم (٣٤٠٥)، واخرجه ابو داود ايضا فى سننه، كتاب الخراج...... باب فى بيان مواضع قسم الخمس، رقم (٢٩٨٨))_

(١) فتح البارى: ١١/١٢٤_١٢٥، كتاب الدعوات، رقم (٦٣١٩)، والوابل الصيب: ٢٠٦، ذكرالله وفوائده، الحادية والستون)

(٢) فتح البارى: ١١/١٢٥)_

(٣) عمدة القارى: ١٥/٣٦، ومثله عند ابن بطال بزيادة: ٥/٢٧٣. د باب د حديث شريف د مزيد وضاحت دپاره اوګورئ، كشف البارى، كتاب الدعوات: ٢٠٤)_

(٤) فتح البارى: ٦/٢١٦، وشرح ابن بطال: ٥/٢٧٠)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فيه رضي الله عنها حقالقرابة حين وكلها الى التسبيح، ولو كان فرضاً لبينه تعالى كما بين فرائض المواريث"(۱)
هم دا خبره امام طحاوي رحمه الله هم لیکلې ده او مزید فرمائی:

"وان أبابكر وعمر أخذا بذلك، وقسما جميع الخمس، ولم يجعلا لذوي القربى منه حقاً مخصوصاً به، بل يحسب مايرى الامام، وكذلك فعل علي......"(۲)

**يو اهم خبرداري:** امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب کښې د اهل صفه او د ارامل تذکره هم کړې وه ليکن په ترجمه کښې چې کوم حديث نقل شوي دې هغې کښې دا تذکره نشته. ددې په توجيه کښې حافظ صاحب فرمائی چې امام بخاري رحمه الله د خپل مشهور عادت مطابق دلته د هغه روايتونو او د حديثونو هغه طرقو طرفته اشاره کولو باندې اکتفاء کړې ده، په کومو کښې چې ددې ذکر دې. لکه د مسند احمد(۳) په يو طريق کښې د باب حديث اوږد والی سره ذکر کړې شوي دې، په هغې کښې د نبی کريم ﷺ دا کلمات هم دی:

"والله لاأعطيكما وأدع أهل الصفة تطوى بطونهم من الجوع، لا أجد ما أنفق عليهم ولكن أبيعهم وأنفق عليهم أثمانهم"(۴)

"په خدائې قسم! زۀ تاسو ته نۀ شم درکولې په داسې حال کښې چې د اهل صفه خيټې د لوږې د وجې نه لګيدلې دی، ماسره داسې هيڅ څيز هم نشته چې په هغوی باندې خرچ کړم. ددې وجې نه زۀ دا خادمان خرڅوم او ددې قيمت به په اهل صفه باندې خرچ کوم."
د مسند احمد ددې روايت نه دا فائده معلومه شوه چې د ديني علومو طالبان به د غنيمتونو په خمس وغيره کښې مقدم کولې شی د هغې خلقو په مقابله کښې د کومو ذکر چې په آيت کريمه کښې شوي دې(۵)

## ۷ باب: قول الله تعالى: فأن لله خمسه وللرسول /الانفال:۴۱/

يعني: للرسول قسم ذلك، قال رسول الله ﷺ: (انما أنا قاسم وخازن، والله يعطي)

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاري رحمه الله دا خبره راجحه ګرځوی چې په خمس کښې د رسول اکرم ﷺ څۀ حصه نۀ وه، هغوی مبارک صرف د تقسيم ذمه دار وو، دا کار نبی کريم ﷺ ته د خمس په معامله کښې د الله تعالى له طرفه حواله کړې شوې وو چې هغوی مبارک دا حصه جات خپلو مستحقينو ته اورسوی. حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی: "أن اضافة الخمس اليه

---

۱) شرح ابن بطال:۲۷۱/۵، وفتح الباري:۲۱۶/۶)_
۲) شرح معاني الآثار للطحاوي:۲۰۱/۲، وشرح ابن بطال:۲۷۱/۵، وفتح الباري:۲۱۶/۶)_
۳) مسند الامام احمد بن حنبل:۱/مسند علي بن ابي طالب رضي الله عنه، رقم (۸۳۸))_
۴) فتح الباري:۲۱۶/۶، وعمدة القاري:۳۶/۱۵)_
۵) شرح ابن بطال:۲۷۲/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تبارك وتعالیٰ تبرك، والی النبی صلی الله علیه وسلم باعتبار أنه یقسمه، وانما هو لنوائب المسلمین"[1]

**د ایت کریمه په تفسیر کښې اختلاف:** په ترجمة الباب کښې چې کوم آیت کریمه ذکر کړې شوې دې نو د هغې په تفسیر کښې د مفسرینو حضراتو اختلاف دې، ددې څه تفصیل وړاندې باب کښې ذکر کړې شوې دې، دلته چې باب سره متعلقه کومه مسئله ده هغه دا چې "للرسول" کښې چې کوم لام دې، دا لام د تملیك دې یا بل څه لام دې؟

امام بخاری رحمه الله دویمه رائې غوره ګرځولې ده چې نبی کریم ﷺ به د خمس په حصو کښې مالك نهٔ وو بلکه هغوی ته صرف د تقسیم ذمه داری حواله کړې شوې وه چې دا په خپلو مصارفو کښې خرچ کړی. په دې مسئله کښې د شوافعو حضراتو دوه قولونه دی او مشهور قول ئې دادې چې دا لام دلته د تملیك دې، هغوی دا وائی چې نبی کریم ﷺ به په جنګ کښې حاضر وو یا حاضر نهٔ وو لیکن هغوی ته به یوه حصه خامخا ملاویدله او نبی ﷺ به د هغې مالك وو[2]

په دې سلسله کښې د موالکو حضراتو مسلك هم هغه دې کوم چې د امام بخاری رحمه الله دې[3] امام أسماعیل قاضی رحمه الله فرمائی:

"لاحجة لمن ادعی أن الخمس یملکه النبی صلی الله علیه وسلم بقوله تعالیٰ: ﴿واعلموا أنما غنمتم من شئ فان لله خمسه وللرسول﴾[4] لانه تعالیٰ قال: ﴿یسئلونك عن الانفال، قل الانفال لله والرسول﴾[5] واتفقوا علی أنه قبل فرض الخمس کان یعطی الغنیمة للغانمین بحسب ما یؤدی الیه اجتهاده، فلما فرض الخمس تعین للغانمین أربعة أخماس الغنیمة، لا یشارکهم فیها أحد، وانما خص النبی صلی الله علیه وسلم بنسبة الخمس الیه اشارة الی أنه لیس للغانمین فیه حق بل هو مفوض الی رأیه، وکذلك الی الامام بعده......"[6]

قال المهلب: "وانما خص بنسبة الخمس الیه علیه السلام، لان لیس للغانمین فیه دعوی، وانما هو الی اجتهاد الامام، فان رای رفعه بیت المال لما یخشی ان ینزل بالمسلمین رفعه، اویجعله فیما یراه، وقد یقسم منه للغانمین، کما انه یعطی من المغانم لغیر الغانمین، کما قسم لجعفر وغیره ممن لم یشهد الوقعة، فالخمس وغیره

---

[1]) لامع الدراری وتعلیقاته:۷/۳۰۲)_

[2]) فتح الباری:۶/۲۱۷_۲۱۸، وعمدة القاری:۱۵/۳۶)_

[3]) بدایة المجتهد:۳/٤٤٦، کتاب الجهاد، الفصل الاول فی حکم خمس الغنیمة)_

[4]) الانفال:٤١)_

[5]) الانفال:١)_

[6]) فتح الباری:۶/۲۱۸، وقال ابن بطال رحمه الله فی شرحه (۵/۲۷۴): وغرض البخاری فی هذا الباب ایضا الرد علی من جعل للنبی خمس الخمس ملکا، استدلالا بقوله تعالی: (واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه وللرسول) وهو قول الشافعی...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الى قسمته عليه السلام واجتهاده، وليس له فى الخمس ملك، ولا يمتلك من الدنيا الا قدر حاجته، وغير ذلك كله عائد على المسلمين، وهذا معنى تسميته بقاسم، وليست هذه التسمية بموجبه الا تكون اثرة فى اجتهاده لقوم دون قوم". (ابن بطال: ۵/۲۷۴_۲۷۵)_

په دې عبارت کښې ښکاره چې د امام شافعی رحمه الله د دلیل رد دې نو دغه شان د نبی کریم ﷺ طرفته د خمس د نسبت کولو حکمت هم دې.لکه امام شافعی رحمه الله د آیت کریمه د ظاهر نه استدلال کوی چې دلته لام د تملیك دې او نبی کریم ﷺ به د خمس مالك وو لیکن دا دلیل ددې وجې نه صحیح نهٔ دې چې د سورة انفال په اولنی آیت کښې هم﴿الانفال لله والرسول﴾ فرمائیلې شوې دې،دا آیت د خمس د فرض کیدو نه مخکښې نازل شوې دې او په دې باندې تقریباً د ټولو اتفاق دې چې د خمس د فرض کیدو نه مخکښې هم غنیمت تقسیم شوې دې او دا تقسیم به د نبی کریم ﷺ د رائې او د اجتهاد مطابق وو نو کله چې د خمس فرضیت راغلو نو دا خبره واضحه شوه چې د غنیمت په پنځو حصو کښې په څپله د لښکر څلور حصې دی چې په دې څلورو کښې دوی سره بل څوك شریکیدې نهٔ شی،او یو حصه چې هغې ته خمس وئیلې شی هغې سره متعلق تفصیل تیر شوې باب کښې تیر شو.

**د﴿وللرسول﴾د تخصیص بالذکر وجه:** اوس سوال دا پاتې شو چې بیا په آیت کریمه کښې ﴿وللرسول﴾ خاص طور سره د ذکر کولو څهٔ وجه ده؟او د خمس نسبت د نبی کریم ﷺ طرفته ولې اوکړې شو؟

ددې جواب هم په څپله قاضی اسماعیل رحمه الله ورکړې دې چې په آیت کریمه کښې د نبی کریم ﷺ ذکر ددې خبرې د بیانولو دپاره اوکړې شو چې په دې خمس کښې د مجاهدینو هیڅ حق نشته،د هغوی حق صرف څلورو حصو سره متعلق دې او ددې مصرف به څهٔ وی،دا به کوم ځائې کښې خرچ کولې شی؟نو ددې جواب دا ورکړې شو چې دا خبره د نبی ﷺ په رائې باندې موقوف ده،نبی ﷺ مبارك ته اختیار دې چې په څپله مرضئ باندې دا کوم ځائې کښې خرچ کوی،هم دا حکم د هر هغه امام او حاکم دپاره دې چې کوم وروستو زمانې والا دی.

**قوله: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم:(انما انا قاسم وخازن،والله یعطی):** نبی ﷺ فرمائیلې دی:زهٔ خو تقسیموونکې او خازن یم او ورکوونکې ذات د الله تعالی دې.

**د تعلیق مقصد:** دا تعلیق دې او امام بخاری رحمه الله ددې په ذریعې سره په خپل بیان کرده مؤقف باندې استدلال کړې دې چې نبی ﷺ په خمس کښې د خپلې حصې مالك نهٔ وو،بلکه د تقسیمولو او د هغې د حفاظت کولو ذمه دار وو او په هغه حضراتو باندې ئې رد کړې دې څوك چې ددې د ملکیت قائل دی.[1]

[1] ) عمدة القاری:۱۵/۳۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د مذکوره تعلیق موصولاً تخریج** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د امام بخاری رحمه الله دا مذکوره تعلیق دې الفاظو سره په دې یو سیاق کښې چرته هم نهٔ دې راغلې حقیقت کښې دا تعلیق د دوو مختلفو حدیثونو نه اخستلې شوې دې لکه انما أنا قاسم د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د حدیث حصه ده کوم چې وړاندې هم په دې باب[1] کښې وړاندې موصولاً راغلې. دغه شان وړاندې په کتاب العلم کښې د حضرت معاویه رضی الله عنه حدیث تیر شوې دې، په هغې کښې دا الفاظ راغلې دی "انما أنا قاسم والله یعطی"[2] هرچه دا حدیث "انما أنا خازن، والله یعطی" دې نو دا حدیث د حضرت معاویه رضی الله عنه د روایت نه وړاندې په کتاب الاعتصام......[3] کښې موصولاً راغلې[4]. دې سره یو شان الفاظ امام داؤد هم د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه نقل کړې دی[5]

د هغوی د حدیث الفاظ د امام بخاری رحمه الله په مدعی باندې زیات وضاحت سره دلالت کوی. د هغې الفاظ دا دی "ان أنا الا خازن، أضع حیث أمرت"[6]

**ترجمة الباب سره د مذکوره تعلیق مقصد:** امام بخاری رحمه الله خپله مدعا دا بیان کړې وه چې نبی ﷺ د خمس د خمس مالك نهٔ وو بلکه صرف منتظم او متولی وو، ددې د ثابتولو دپاره امام صاحب دا مذکوره پورتنې تعلیق هم نقل کړو. په کوم کښې چې نبی ﷺ خپل ځان ته قاسم او خازن وئیلې دې او الله تعالی ته ئې ورکوونکې ذات وئیلې دې. ددې نه معلومه شوه چې نبی ﷺ به د څهٔ څیز مالك نهٔ وو. حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی:

"واستدل علی مدعاه من حیث انه صلی الله علیه وسلم سمی نفسه قاسما، والله المعطی فعلم انه لم یکن یملك شیئاً، والله أعلم"[7]

ددې نه پس په دې باندې ځان پوهه کړئ چې امام بخاری رحمه الله د خپلې مدعا دپاره څلور موصول حدیثونه هم ذکر کړې دی، په هغې کښې اولنې حدیث د حضرت جابر رضی الله عنه دې، کوم چې مؤلف په مختلفو طرقو سره نقل کړې دې[8]

---

[1] ) البخاری، رقم (۳۱۱۷)_
[2] ) صحیح البخاری، کتاب العلم، باب من یرد الله به خیرا یفقه فی الدین، رقم (۷۱)_
[3] ) صحیح البخاری، کتاب الاعتصام، باب قول النبی ﷺ: لاتزال طائفة....."، رقم (۷۳۱۲)_
[4] ) تغلیق التعلیق: ۳/ ٤٧١، وفتح الباری: ۶/ ۲۱۸_
[5] ) سنن ابی داود، کتاب الخراج.....، باب فیما یلزم الامام من امر الرعیة......، رقم (۲۹٤۹)_
[6] ) عمدة القاری: ۱۵/ ۳۷، وفتح الباری: ۶/ ۲۱۸)_
[7] ) لامع الدراری: ۷/ ۳۰۳)_
[8] ) فتح الباری: ۶/ ۲۱۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲۹۴۶/۲۹۴۷ (۱) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ وَمَنْصُورٍ وَقَتَادَةَ سَمِعُوا سَالِمَ بْنَ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا مِنَ الأَنْصَارِ غُلاَمٌ، فَأَرَادَ أَنْ يُسَمِّيَهُ مُحَمَّدًا - قَالَ شُعْبَةُ فِي حَدِيثِ مَنْصُورٍ إِنَّ الأَنْصَارِيَّ قَالَ حَمَلْتُهُ عَلَى عُنُقِي فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم -. وَفِي حَدِيثِ سُلَيْمَانَ وُلِدَ لَهُ غُلاَمٌ، فَأَرَادَ أَنْ يُسَمِّيَهُ مُحَمَّدًا - قَالَ «سَمُّوا بِاسْمِي، وَلاَ تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي، فَإِنِّي إِنَّمَا جُعِلْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ». وَقَالَ حُصَيْنٌ «بُعِثْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ». قَالَ عَمْرٌو أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ سَالِمًا عَنْ جَابِرٍ أَرَادَ أَنْ يُسَمِّيَهُ الْقَاسِمَ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «سَمُّوا بِاسْمِي وَلاَ تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي».

## رجال الحديث

① **ابوالوليد**: دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى رحمه الله دې.د دوى تذكره په كتاب الايمان، "باب علامة الايمان حب الانصار" كښې راغلې ده(۲)

② **شعبه**: دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبة بن الحجاج بصرى رحمه الله دې.د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب المسلم من سلم المسلمون من......" كښې تير شوې دى(۳)

③ **سليمان**: دا سليمان بن مهران رحمه الله دې چې په اعمش باندې مشهور دې.د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" كښې تير شوې دى(۴)

④ **منصور**: دا منصور بن معتمر رحمه الله دې.د دوى تذكره په كتاب العلم، "باب من جعل لاهل العلم أياما معلومة" كښې تيره شوې ده(۵)

⑤ **قتاده**: دا قتاده بن دعامه سدوسى بصرى رحمه الله دې.د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب من

---

(۱) قوله: جابر بن عبدالله رضى الله عنه "الحديث، اخرجه البخارى فى نفس هذا الباب، رقم (٣١٥)، وكتاب الانبياء، باب كنية النبى صلى الله عليه وسلم، رقم (٣٥٣٨)، وكتاب الادب، باب احب الاسماء الى الله عزوجل، رقم (٦١٨٦)، وباب قول النبى صلى الله عليه وسلم: سموا باسمى..... "، رقم (٦١٨٧)، وباب من سمى باسماء الانبياء، رقم (٦١٩٦)، ومسلم، كتاب الادب، باب النهى عن التكنى بابى القاسم، رقم (٥٥٨٨_٥٥٩٧)، والترمذى، كتاب الادب، باب ماجاء فى كراهة الجمع بين اسم..... رقم (٢٨٤٢)، وابو داود، كتاب الادب، باب من راى ان لايجمع بينهما، رقم (٤٩٦٦)، وابن ماجه، كتاب الادب، باب الجمع بين اسم النبى..... رقم (٣٧٣٦))_

(۲) كشف البارى: ٣٨/٢)_

(۳) كشف البارى: ٦٧٨/١)_

(۴) كشف البارى: ٢٥١/٢)_

(۵) كشف البارى: ٢٧٠/٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه" کښې راغلې دی.(۱)

⑥ سالم: دا مشهور تابعی حضرت سالم بن ابی الجعد رحمه الله دې.(۲)

⑦ جابر بن عبدالله رضی الله عنهما: دا مشهور صحابی حضرت جابر بن عبد الله الانصاری رضی الله عنهما دی.(۳)

⑧ حصین: دا ابو الهذیل حصین بن عبد الرحمن کوفی رحمه الله دې.(۴)

⑨ عمرو: دا عمرو بن مرزوق رحمه الله دی.(۵)

۲۹۴۷: (۶) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيِّ قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلاَمٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقَالَتِ الأَنْصَارُ لاَ نَكْنِيكَ أَبَا الْقَاسِمِ وَلاَ نُنْعِمُكَ عَيْنًا، فَأَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وُلِدَ لِي غُلاَمٌ، فَسَمَّيْتُهُ الْقَاسِمَ فَقَالَتِ الأَنْصَارُ لاَ نَكْنِيكَ أَبَا الْقَاسِمِ وَلاَ نُنْعِمُكَ عَيْنًا. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَحْسَنَتِ الأَنْصَارُ، سَمُّوا بِاسْمِي، وَلاَ تَكَنَّوْا بِكُنْيَتِي، فَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ». [۳۳۴۵، ۵۸۳۲، ۵۸۳۳، ۵۸۳۵، ۵۸۴۳]

## رجال الحدیث

① محمد بن یوسف: دا محمد بن یوسف بیکندی رحمه الله دې. د دوی حالات په کتاب العلم، "باب متی یصح سماع الصغیر؟" کښې بیان کړې شوي دی.(۷)

② سفیان: دا مشهور محدث حضرت سفیان ثوری رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې تیره شوې ده.(۸)

**روایت دریو طرقو سره د راوړلو وجه:** ددې نه پس په دې باندې ځان پوهه کړئ چې امام بخاری رحمه الله د حضرت جابر رضی الله عنه دا حدیث د دریو شیخانو نه نقل کړې دې، د ابو الولید هشام بن عبد الملک طیالسی، عمرو بن مرزوق او د محمد بن یوسف بیکندی رحمهم الله.

د ابوالولید او د عمرو بن مرزوق شیخ شعبه دې او د محمد بن یوسف شیخ سفیان ثوری دې.

---

(۱) کشف الباری: ۲/۳۔

(۲) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب التسمیة علی کل حال وعند الوقاع)۔

(۳) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین.....)۔

(۴) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب مواقیت الصلاة، باب الاذان بعد ذهاب الوقت)۔

(۵) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الغسل، باب اذا التقی الختانان)۔

(۶) قوله: عن جابر بن عبد الله الانصاری": الحدیث، مر تخریجه فی الحدیث السابق)۔

(۷) کشف الباری: ۳/۳۸۷)۔

(۸) کشف الباری: ۲/۲۷۸)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوس سوال دادي چې مؤلف همام دا روایت دریو طرقو سره ولې نقل کړې دې؟نو ددې جواب دا دې چې امام شعبه رحمه الله دا روایت د مختلفو شیوخو نه روایت کړېدې او ددې شیوخو په الفاظو کښې اختلاف دې.ددې اختلاف د ختمولو دپاره او د امام ثوری روایت ته ترجیح ورکولو دپاره مؤلف دا طریقه اختیار کړه.لکه د امام شعبه رحمه الله هغه روایت،په کوم کښې چې د امام بخاری شیخ ابو الولید دې،په هغې کښې سلیمان،منصور او قتاده (هؤلاء شیوخ شعبة)درې واړه حضرات په دې باندې متفق دی چې انصاری،د کوم چې ځوئې پیدا شوې وو نو هغهٔ د خپل ځوی نوم محمد کیخودل غوښتل.او د عمرو بن مرزوق روایت، کوم چې امام بخاری تعلیقاً نقل کړې دې په هغې کښې شعبه د قتاده نه روایت کولو سره فرمائی چې انصاری صحابی د خپل ځوی نوم قاسم کیخودل غوښتل.دغه شان د شعبه په روایت کښې اختلاف راغئ چې مذکوره انصاری صحابی د خپل ځوی نوم محمد کیخودل غوښتل یا قاسم؟ددې اختلاف د ختمولو دپاره امام بخاری رحمه الله د سفیان ثوری روایت هم نقل کړو او ددې خبرې د ترجیح طرفته ئې اشاره او فرمائیله چې مذکوره انصاری صحابی د خپل ځوی نو محمد نهٔ بلکه قاسم کیخودل غوښتل.معنوی او عقلی اعتبار سره م د امام ثوری رحمه الله دا روایت ددې وجې نه راجح دې چې انصارو په مذکوره انصاری صحابی باندې کوم نکیر کړې وو د هغې وجه دا وه چې که هغوی د خپل ځوی نوم قاسم کیخودلې وو نو د هغهٔ کنیت به ابو القاسم شوې وو او دا خبره نورو انصارو ته ناخوښه وه.ددې ممانعت هم راغلې دې په خلاف د محمد کیخودلو،چې په دې صورت کښې به ئې کنیت ابومحمد وو. په دې کښې څهٔ باك هم نشته او ممانعت په کښې هم نشته(۱)

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف مطابقت په دې جمله کښې دې: "**انما جعلت قاسماً أقسم بینکم**" دا جمله د امام بخاری رحمه الله په مدعٰی باندې واضح دلالت کوی(۲).

دویم حدیث شریف د حضرت معاویه رضی الله عنه دې.

۲۹۴۸ (۳) حَدَّثَنَا حِبَّانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ ، وَاللَّهُ الْمُعْطِي وَأَنَا الْقَاسِمُ ، وَلاَ تَزَالُ هَذِهِ الأُمَّةُ ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ ». [ر: ۷۱]

---

(۱) فتح الباری:۶/۲۱۸،وعمدة القاری:۱۵/۳۸،وشرح القسطلانی:۵/۲۰۳)_

(۲) عمدة القاری:۱۵/۳۸)_

(۳) قوله: معاویة رضی الله عنه ":الحدیث،مر تخریجه فی کتاب العلم،کشف الباری:۳/۲۷۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

① **حبان**: دا ابومحمد حبان بن موسى مروزى رحمه الله دي.[1]

② **عبدالله**: دا مشهور محدث او امام عبدالله بن مبارك مروزى رحمه الله دي. ددوى تذكره د"بدء الوحى" په "الحديث الخامس" كښې اجمالاً تيره شوې ده.[2]

③ **يونس**: دا يونس بن يزيد الايلى رحمه الله دي. د دوى حالات په "بدء الوحى" كښې اجمالاً او په كتاب العلم، "باب من يرد الله به خيراً يفقهه...." كښې تفصيلاً تير شوي دى.[3]

④ **الزهرى**: دا محمد بن مسلم بن شهاب زهرى رحمه الله دي. د دوى تذكره په "بدء الوحى" كښې راغلې ده.[4]

⑤ **حميد بن عبدالرحمن**: دا حميد بن عبدالرحمن بن عوف قرشى رحمه الله دي. د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب تطوع قيام رمضان......" كښې تير شوي دى.[5]

⑥ **معاويه**: د حضرت معاويه بن ابى سفيان رضي الله عنه تذكره په كتاب العلم، "باب من يرد الله به خيراً يفقهه......" كښې بيان شوې ده.[6]

**د حديث شريف ترجمه**: حضرت حميد بن عبدالرحمٰن رحمه الله فرمائى چې ما د حضرت معاويه رضي الله عنه نه واوريدل چې رسول الله مبارك صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دى چې الله تعالى كوم بنده سره د خير اراده اوفرمائى نو هغهٔ ته د دين پوهه وركړى او وركوونكې ذات د الله تعالى دې او زهٔ تقسيمونكې يم. او دا امت به هميشه دپاره په خپلو مخالفينو باندې غالب وى، تردې چې د الله تعالى حكم(قيامت)راشى او هم دوى به غالب وى.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت**: دا حديث په دريو جزونو باندې مشتمل دې، ددې اولنې جزء "من يرد الله به .......الدين" دې، ددې تفصيلى تشريح په كتاب العلم كښې تيره شوې ده.[7]

ددې دويم جز "والله المعطى وأنا القاسم" دې، هم دا حصه ترجمة الباب سره مطابقت لرى، د امام

---

[1]) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الاذان، باب يسلم الامام)_

[2]) كشف البارى: ۱/ ۴۶۲)_

[3]) كشف البارى: ۱/ ۴۶۳، و ۳/ ۲۸۲)_

[4]) كشف البارى: ۱/ ۳۲۶، الحديث الاول)_

[5]) كشف البارى: ۲/ ۳۱۶)_

[6]) كشف البارى: ۳/ ۲۸۵)_

[7]) كشف البارى: ۳/ ۲۸۹ و ۲۹۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بخارى رحمه الله دعوى دا وه چې نبى ﷺ د غنيمت د مالونو تقسيموونکې دې،ددې خبرې اظهار په دې جمله کښې موجود دې.[1]

دريم جزء "ولا تزال هذه الامة......وهم ظاهرون" دې.ددې تشريح هم په كتاب العلم كښې تيره شوې ده.[2]

دريم حديث شريف د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

۲۹۴۹:[3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضي الله عنه-أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-قَالَ «مَا أُعْطِيكُمْ وَلَا أَمْنَعُكُمْ، أَنَا قَاسِمٌ أَضَعُ حَيْثُ أُمِرْتُ».

## رجال الحديث

① **محمد بن سنان،** ② **فليح،** ③ **هلال:** د فليح نه عبدالملك بن سليمان بن مغيره او د هلال نه ابن على الفهرى مراد دى.ددې درې واړو حضراتو تذكره تفصيل سره په كتاب العلم، "باب من سئل علماً وهو مشتغل...." كښې راغلې ده.[4]

④ **عبدالرحمٰن بن ابى عمرة:** دا عبدالرحمٰن بن ابى عمره الانصارى النجارى رحمه الله دې.[5]

⑤ **ابوهريره رضي الله عنه:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان، "باب أمور البيان" كښې تير شوې دى.[6]

**قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ما أعطيكم، ولا أمنعكم، أنا قاسم أضع حيث أمرت:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله مبارک ﷺ اوفرمائيل چې زۀ وركوم، منع او بندول نۀ كوم، زۀ خو صرف تقسيموونکې يم، چرته چې حكم كيږى نو هلته خرچ كوم.

په مسند احمد شريف كښې هم دا روايت د فليح نه سريج بن نعمان روايت كړې دې، په هغې كښې د "ما أعطيكم ......" نه مخكښې ددې جملې اضافه هم ده. "والله المعطى" چې وركوونکې ذات د الله تعالى دې.[7]

---

[1] ) فتح البارى:۲۱۸/۶،وعمدة القارى:۱۵/ ۴۰)_
[2] ) كشف البارى:۳/ ۲۹۱_۲۹۵)_
[3] ) قوله: عن ابى هريرة رضي الله عنه: "الحديث، تفرد به البخارى رحمه الله،انظر تحفة الاشراف:۱۰/ ۱۴۹،رقم (۱۳۶۰۶)
[4] ) كشف البارى:۳/ ۵۳_۵۸،و:۳/ ۶۳)_
[5] ) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب المساقاة،باب حلب الابل على الماء)_
[6] ) كشف البارى:۱/ ۶۵۹)_
[7] ) هذا ما ذكره الحافظ،والكننى لم اجد هذه الرواية فى مسند الامام احمد)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د حدیث شریف مطلب دادې چې ورکوونکې ذات د الله تعالی دې.زهٔ صرف په خپلې رائې سره نهٔ چا ته ورکوم او نهٔ منع کوم،ددې وجې نه که زهٔ چا ته څهٔ ورکړم نو هغه هم د الله تعالی په حکم سره او که چاته ورنهٔ کړم او منع اوکړم نو دا هم د الله تعالی په حکم سره،په دې زما ذاتی څهٔ دخل نشته،زما حیثیت صرف د یو تقسیموونکی دې چې د موقع محل په اعتبار سره ورکوی یا منع کوی.(۱) او د ابن همام عن ابی هریره رضی الله عنه طریق سره چې کوم روایت امام ابوداؤد نقل کړې دې،په هغې کښې "ان أنا الاخازن" دې.(۲)

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت بالکل واضح دې،کوم چې په دې جمله کښې دې:"**أنا قاسم ......**"(۳)ددې نه د امام بخاری رحمه الله مدعی په واضحه توګه ثابتیږی.

څلورم حدیث د حضرت خوله انصاریه رضی الله عنها دې.

۲۹۵۰:(۴) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو الأَسْوَدِ عَنِ ابْنِ أَبِي عَيَّاشٍ - وَاسْمُهُ نُعْمَانُ - عَنْ خَوْلَةَ الأَنْصَارِيَّةِ - رضى الله عنها - قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ « إِنَّ رِجَالاً يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللَّهِ بِغَيْرِ حَقٍّ ، فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ».

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن یزید:**دا ابوعبدالرحمٰن عبدالله بن یزید المقری رحمه الله دې.(۵)

② **سعید بن ابی ایوب:**دا سعید بن مقلاص ابو ایوب خزاعی مصری رحمه الله دې.(۶)

③ **ابوالاسود:**دا ابو الاسود محمد بن عبدالرحمٰن بن نوفل نوفلی رحمه الله دې.(۷)

④ **ابن ابی عیاش النعمان:**دا نعمان ابن ابی عیاش زید زرقی رحمه الله دې.د دوی تذکره په کتاب الجهاد والسیر "باب فضل الصوم فی سبیل الله" کښې تیره شوې ده.(۸)

---

(۱) فتح الباری:۲۱۸/۶،وعمدة القاری:۴۰/۱۵،وبذل المجهود:۱۲۸/۱۰)_

(۲) سنن ابی داود،کتاب الخراج......باب فیما یلزم الامام من امر الرعیة،رقم (۲۹۴۸))_

(۳) عمدة القاری:۴۰/۱۵)_

(۴) قوله: عن خولة الانصاریة....."الحدیث،اخرجه الترمذی فی کتاب الزهد،باب ماجاء فی اخذ المال بحصة،رقم (۲۳۷۵))_

(۵) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان،باب بین کل اذانین صلاة لمن شاء)_

(۶) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب التهجد،باب المداومة علی رکعتی الفجر)_

(۷) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الغسل،باب الجنب یتوضا ثم ینام)_

(۸) کشف الباری، کتاب الجهاد:۳۰۷/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑤خوله الانصاريه:دا حضرت خوله بنت قيس بن قهد بن قيس بن ثعلبه النجاريه الانصاريه رضي الله عنها ده.[1]

بعضې حضراتو ددې د پلار نوم ثامر ښودلې دې ليکن تحقيقي خبره دا ده چې ثامر ددې د پلار لقب دې، نوم ئې نه دې.ددې وجې نه کله دې ته بنت ثامر او کله ورته بنت قيس وئيلې شوې ده، په حقيقت کښې دا يو زنانه ده.

ابن المدينى رحمه الله فرمائى، "خولة بنت قيس هى خولة بنت ثامر"[2]

بعضو ددې نوم خويله-تصغير سره-هم نقل کړې دې.[3] ددې کنيت ام محمد وو.دا د نبى ﷺ د ترۀ حضرت حمزه رضي الله عنه په نکاح کښې وه.د هغوى د شهادت نه پس حضرت خوله رضي الله عنها يو انصارى صحابى حضرت حنظله رضي الله عنه سره نکاح اوکړه.بعضو د دوى نوم نعمان بن عجلان ښودلې دې،ددې تعلق د بنو زريق سره وو.[4]

دا د نبى کريم ﷺ نه روايت کوى.

او ددې نه په روايت کوونکو کښې ابوالوليد عبيد سنوطا،معاذ بن رفاعه زرقى او نعمان بن ابى عياش زرقى رحمهم الله وغيره شامل دى[5]

د دوى نه بخارى او ترمذى روايت کوى[6]ددوى نه صرف يو حديث(د باب حديث شريف) روايت دې.[7] رضى الله عنها وارضاها

**قوله: قالت: سمعت النبى ﷺ يقول: ان رجالاً يتخوضون فى مال الله بغير حق، فلهم النار يوم القيامة:** حضرت خوله رضي الله عنها فرمائى چې ما د نبى کريم ﷺ نه واوريدل چې بعضې خلق به په ناحقه د الله تعالى په مال کښې تصرف کوى،نو د داسې خلقو دپاره د قيامت په ورځ د جهنم اور دې."يتخوضون"د خوض نه مشتق دې،ددې معنى ده په اوبو کښې تلل او اوبو ته حرکت ورکول،ليکن بيا دا لفظ په دې معنى کښې مستعمل شو چې په يو څيز کښې دننه کيدل او په هغې کښې تصرف کول[8]

---

[1] ) تهذيب الكمال:۳۵/ ۱۶۴،وعمدة القارى:۱۵/ ۴۰،والاستيعاب:۲/۵۱۳و۵۱۵،وتهذيب التهذيب:۱۲ /۴۵۱ )

[2] ) تهذيب المزى:۳۵/۱۶۵،والاصابة:۴ /۲۸۹،والعمدة:۱۵/ ۴۰،وتهذيب التهذيب:۱۲/۴۱۵)_

[3] ) تهذيب الكمال:۳۵/۱۶۵،وعمدة القارى:۱۵/ ۴۰،وتهذيب التهذيب:۱۲/۴۱۵)_

[4] ) تهذيب الكمال:۳۵/۱۶۵،وعمدة القارى:۱۵/ ۴۰،والاستيعاب:۲/۵۱۵)_

[5] ) تهذيب الكمال:۳۵/۱۶۵،وتهذيب التهذيب:۱۲/۴۱۵)_

[6] ) پورته حواله جات)_

[7] ) معرفة الصحابة للاصبهانى:۵/ ۲۲۰،وقال الخزرجى: لها احاديث،روى عنها فى(خ)حديثا واحدا، وكذلك الترمذى....."خلاصة لتذهيب تهذيب الكمال: ۴۹۰،حرف الخاء،من كتاب النساء)_

[8] ) عمدة القارى:۱۵/ ۴۰،وارشاد السارى:۵/۲۰۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چې هم دا حديث امام ترمذی رحمه الله هم نقل کړې دې،په هغې کښې د حديث په الفاظو کښې څۀ اضافه هم ده،ابو الوليد عبيد سنوطا فرمائی:

"سمعت خولة بنت قيس- وكانت تحت حمزة بن عبد المطلب- تقول: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: ان هذا المال خضرة حلوة، من أصابه بحقه بورك له فيه، ورب متخوض فيما شاءت نفسه من مال الله ورسوله ليس له يوم القيامة الا النار"(۱)

او د ابن عبد البر رحمه الله چې کوم روايت دې،په هغې کښې د حديث پس منظر هم دې چې نبی ﷺ دا کلمات کله ارشاد فرمائيلي وو،په هغې کښې دی:

"أن النبى صلى الله عليه وسلم تذاكر هو و حمزة بن عبد المطلب الدنيا،فقال النبى صلى الله عليه وسلم......."(۲)

د دواړو روايتونو مطلب دادې چې نبی کريم ﷺ او د هغوی تره مبارک حضرت حمزه رضی الله عنه خپل مينځ کښې د دنيا په باره کښې مذاکره کوله چې ددې دنيا څۀ حقيقت دې؟نو نبی ﷺ اوفرمائيل چې حقيقت کښې دا دنيا ميلان پيدا کوونکې او خوږه ده،خلق ددې طرفته مائله کيږی،د ښۀ نه ښۀ څيز په تلاش کښې اخته وی ليکن په دې کښې به برکت هغه چاته وی چې څوک د خپلې حصې په اندازه باندې ددې نه واخلی،د چا مال په ناحقه اونۀ خوری او ډير خلق داسې هم دی چې د الله تعالى او د رسول په مال کښې د خپل نفس د خوښې مطابق په ناحقه تصرف کوی نو د داسې خلقو دپاره د قيامت په ورځ به صرف او صرف د جهنم اور وی،دا خلق به ددې مستحق وی.پورته په حديث شريف کښې د مال دپاره خبر مؤنث استعمال کړې شوې دې ځکه چې دلته مال د غنيمت په معنٰى کښې دې،ددې دليل د"من مال الله"الفاظ دی او د خضرة معنٰى مشتهاة ده چې خلق ددې طرفته مائله کيږی(۳)ددې نه علاوه په حديث شريف کښې په"من مال الله"کښې لفظ د الله د مظهرأقيم مقام المضمرد قبيل نه دې، يعنى"من ماله"وئيل کافی وو ليکن لفظ د الله تاکيد دپاره ظاهر کړې شو او دې خبرې طرفته اشاره اوکړې شوه چې د الله تعالى او د رسول په مال کښې د نفس او د زړۀ د خوښې مطابق تصرف کول ډير نامناسبه کار دې(۴)

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** حافظ رحمه الله فرمائی چې ترجمة الباب سره ددې حديث شريف مناسبت په"فى مال الله بغير حق"کښې دې اومطلب دادې چې دا خلق د مسلمانانو په مالونو کښې په ناحقه سره تصرف کوی او دا خبره عامه ده چې دا ناحقه

---

(۱) جامع الترمذی،کتاب الزهد،باب (٤١)ماجاء فی اخذ المال بحقه،رقم (٢٣٧٤))_

(۲) الاستيعاب فی اسماء الاصحاب:٢/٥١٥)_

(۳) فتح الباری:٦/٢١٩)_

(۴) پورته حواله)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تصرف کول په تقسیم کښې وی یا د تقسیم نه بغیر وی[1] او علامه کرمانی رحمه الله دا فرمائی چې ترجمة الباب سره ددې حدیث مناسبت پټ دې، واضح او صریح نۀ دې البته دا ممکنه ده چې ترجمة الباب سره مناسبت ددې جملې نه واخستلې شی، "یتخوضون فی مال الله بغیر حق" ای: بغیر قسمة حق. اګرچه دلته په الفاظو کښې عموم دې لیکن مونږ تخصیص اوکړو د تقسیم سره. دې دپاره چې ترجمة الباب صراحت سره فهم کښې راشی.[2] هم دا قول علامه عینی، قسطلانی او د حافظ ابن حجر شاګرد رشید شیخ الاسلام زکریا انصاری رحمهم الله هم اختیار کړې دې.[3] او علامه ابن بطال رحمه الله د حضرت خوله رضی الله عنها دا حدیث مبارک په ترجمة الباب کښې د ذکر کیدو وجه دا بیانوی چې کوم سړې هم د غنیمت وغیره نه د نبی ﷺ یا د هغوی نه پس د حاکم د تقسیم نه بغیر څۀ واخلی نو دې به د الله تعالی په مال کښې په ناحقه سره تصرف کوونکې وی او دۀ چې کوم خیانت کړې دې نو د قیامت په ورځ به دې ددې خیانت سره د الله تعالی په دربار کښې پیش کیږی.[4] والله اعلم بالصواب

**د حدیث نه مستنبطې فائدې:** ددې حدیث شریف نه یو خو دا فائده حاصله شوه چې د وخت د امام د تقسیم نه بغیر که څوك په غنیمت کښې څۀ واخلی نو دا انسان به ګناهګار وی.[5] دویمه فائده په دې حدیث شریف کښې داده چې په دې کښې د سلطنت امیرانو او بادشاهانو ته ددې خبرې خبرداری ورکړې شوې دې چې هغوی د مال غنیمت یا د بیت المال نه په ناحقه باندې څۀ وانخلی، دغه شان که څوك حقدار راشی نو هغه مۀ منع کوئ، بلکه هغۀ ته خپل حق پوره پوره ورکوئ.[6] والله اعلم بالصواب

## ⑧ باب: قول النبی ﷺ: (احلت لکم الغنائم)

وقال الله تعالی: ﴿وعدکم الله مغانم کثیرة تاخذونها فعجل لکم هذه﴾ الفتح: ۲۰/ وهی للعامة حتی یبینه الرسول ﷺ

**د نسخو اختلاف:** په اکثرو نسخو کښې "باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: احلت لکم الغنائم" دې البته د ابن التین په نسخه کښې "احلت لی....." راغلې دې. د حافظ ابن حجر رحمه الله وینا ده چې

---

[1] ) پورته حواله)_

[2] ) پورته حواله، وشرح الکرمانی: ۱۳/۹۳)_

[3] ) عمدة القاری: ۱۵/۴۰، وتحفة الباری للانصاری: ۳/۵۴۳، وارشاد الساری: ۵/۲۰۵)_

[4] ) شرح ابن بطال: ۵/۲۷۵)_

[5] ) فتح الباری: ۶/۲۱۹، قال ابن بطال رحمه الله: .....من اخذ من المقاسم شیئا بغیر الرسول او الامام بعده، فقد تخوض فی مال الله بغیر حق، ویاتی بما غل یوم القیمة". انظر شرحه: ۵/۲۷۵)_

[6] ) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د ابن التين الفاظ زيات غوره دى ځكه چې امام بخارى رحمه الله په خپله هم دې الفاظو سره په دې باب كښې حديث شريف ذكر كړې دې......[1]

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته په ترجمة الباب كښې امام بخارى رحمه الله دا وئيل غواړى چې غنيمتونه د مسلمانانو دپاره وى، الله تعالى په آيت كريمه ﴿وعدكم الله.......﴾ كښې هم دا وعده كړې ده او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك هم په دې باندې دلالت كوى چې غنيمت د مسلمانانو وى او دا د دوى دپاره حلال دې. دا خو عامو مسلمانانو سره متعلق خبره وه. په خپله د نبى كريم صلى الله عليه وسلم څۀ حيثيت وو؟ نو دا امام بخارى رحمه الله په "وهى للعامة حتى يبينه للرسول" كښې اووئيل چې غنيمت خو به اصل كښې د مسلمانانو دپاره وى ليكن ددې د استحقاق فيصله به نبى صلى الله عليه وسلم كوى چې چاته دا د غنيمت وركول پكار دى او چاته وركول پكار نۀ دى، څوك مجاهد او غانم وو او څوك نۀ وو، د غنيمت په مال كښې به چاته حصه ملاويږى او په خمس كښې به چا ته ملاويږى؟ دا ټول كارونه د نبى صلى الله عليه وسلم دى او بيا د دوى مبارك نه پس د دوى د نائب او د خليفه دى چې دا كسان به بيا په دې كارونو كښې اختيار لرى. نو قرآن پاك مجمل وو او سنت سره ددې تفسير اوشو.[2]

پورته چې امام بخارى رحمه الله په ترجمه كښې كوم آيت كريمه ذكر كړو نو د هغې دوه حصې دى، يو خو ﴿وعدكم الله مغانم كثيرة تاخذونها﴾ ده، په دې كښې د هغې غنيمتونو ذكر دې كوم چې به د قيامته پورې حاصليږى، خواه د نبى صلى الله عليه وسلم په ملګرتيا كښې حاصل شوې وى يا د هغوى نه پس د خليفه ګانو او د لښكر د اميرانو په ملګرتيا كښې حاصل شوې وى. دويمه حصه ﴿فعجل لكم هذه﴾ ده، ددې نه مراد د خيبر غنيمتونه دى.[3]

بيا په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله شپږ حديثونه ذكر كړې دى. اولنې حديث د حضرت عروه البارقى رضي الله عنه دې.

۲۹۵۱: [4] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عُرْوَةَ الْبَارِقِيِّ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « الْخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ الأَجْرُ وَالْمَغْنَمُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ». [ر: ۲۶۹۵]

---

[1] ) فتح البارى:۶/۲۲۰)_

[2] ) پورته حواله، وارشاد السارى:۵/۲۰۵، وشرح ابن بطال:۵/۲۷۷)_

[3] ) پورته حواله جات، وعمدة القارى:۱۵/۴۱، وتحفة البارى:۳/۵۴۴)_

[4] ) قوله: عروة البارقى": الحديث، مر تخريجه فى كتاب الجهاد، كشف البارى، كتاب الجهاد:۱/۳۵۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

① **مسدد**: دا مسدد بن مسرهد رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب من الایمان أن یحب لاخیه......" کښې تیره شوې ده.[1]

② **خالد**: دا خالد بن عبدالله بن عبدالرحمن الطحان رحمه الله دې.[2]

③ **حصین**: دا حصین بن عبدالرحمن سلمی رحمه الله دې.[3]

④ **عامر**: دا مشهور محدث عامر شعبی رحمه الله دې. د دوی حالات اجمالاً په "کتاب الایمان" کښې او تفصیل سره په کتاب العلم، "باب کتابة العلم" کښې راغلې دی.[4]

⑤ **عروه البارقی**: دا حضرت عروه بن ابی الجعد البارقی رضی الله عنه دې. د دوی تذکره په کتاب الجهاد، "باب الخیل معقود فی نواصیها الخیر......" کښې بیان کړې شوې ده.[5]

حضرت عروه البارقی رضی الله عنه د نبی ﷺ نه روایت کوی چې نبی ﷺ فرمائیلي دی چې د اسونو په تندو (پیشانی) کښې خیر تړلې شوې دې، یعنی د قیامته پورې په کښې اجر او غنیمت دې. ددې حدیث تفصیلی تشریح مونږ په کتاب الجهاد کښې بیان کړې ده.[6]

**ترجمة الباب سره مناسبت**: ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف مناسبت واضح دې. کوم چې په دې کلمه کښې دې "والمغنم".[7]

دویم حدیث شریف د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.

۲۹۵۲: [8] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِذَا هَلَكَ كِسْرَى فَلاَ كِسْرَى بَعْدَهُ، وَإِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلاَ قَيْصَرَ بَعْدَهُ، وَالَّذِى نَفْسِى بِيَدِهِ، لَتُنْفِقُنَّ كُنُوزَهُمَا فِى سَبِيلِ اللَّهِ». [ر: ۲۸۶۴]

## رجال الحديث

① **ابوالیمان**: دا ابو الیمان حکم بن نافع رحمه الله دې.

---

[1]) کشف الباری: ۲/۲)_

[2]) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب من مضمن.....)_

[3]) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب مواقیت الصلاة، باب الاذان بعد ذهاب الوقت)_

[4]) کشف الباری: ۱/۶۷۹، و: ۴/۲۲۹)_

[5]) کشف الباری، کتاب الجهاد: ۱/۳۶۰)_

[6]) کشف الباری، کتاب الجهاد: ۱/۳۵۴_۳۶۵، باب الخیل معقود فی نواصیها الخیر.....)_

[7]) عمدة القاری: ۱۵/۴۱، وفتح الباری: ۶/۲۲۰)_

[8]) قوله: عن ابی هریرة رضی الله عنه: الحدیث، مر تخریجه فی الجهاد والسیر، باب الحرب خدعة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

② **شعیب:** دا شعیب بن ابی حمزه رحمه الله دي.ددې دواړو حضراتو تذکره د "بدء الوحی" په "الحدیث السادس" کښې تیره شوې ده.(۱)

③ **ابوالزناد:** دا ابو الزناد عبد الله بن ذکوان رحمه الله دې.

④ **الاعرج:** دا عبد الرحمٰن هرمز رحمه الله دې چې په الاعرج باندې مشهور دې.ددې دواړو حالات په کتاب الایمان، "باب حب الرسول صلی الله علیه وسلم من الایمان" کښې راغلې دی.(۲)

⑤ **ابوهریره رضی الله عنه:** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حالات په کتاب الایمان، "باب أمور الایمان" کښې بیان کړې شوې دی.(۳)

**د حدیث شریف ترجمه:** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی چې کله کسرٰی هلاك شی نو ددهٔ نه پس به بل کسرٰی نهٔ وی.قیصر به هلاك شی نو ددهٔ نه پس به هم بل قیصر نهٔ وی او په هغه ذات قسم چې د هغهٔ د قدرت په قبضه کښې زما ساه ده تاسو خلق به ددې دواړو د خزانو نه د الله تعالٰی په لاره کښې خرچ کوئ.

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف مناسبت په دې جمله کښې دې، "لتنفقن کنوزهما فی سبیل الله"(۴) نو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د پیشن گویئ مطابق د کسرٰی او د قیصر خزانې د مال غنیمت په صورت کښې د مسلمانانو لاسونو ته راغلې او هغوی دا خزانې خرچ کړې.معلومه شوه چې غنیمت د مسلمانانو دپاره دې او دا غنیمت به د مسلمانانو په ضرورتو کښې خرچ کیږی.البته تقسیموونکې به د الله تعالٰی رسول او د دوی مبارك نه پس به د دوی نائب او خلیفه وی.ددې حدیث تفصیلی تشریح په کتاب الجهاد کښې تیره شوې ده.(۵)

دریم حدیث د حضرت جابر بن سمرة رضی الله عنه دې.

**۲۹۵۳:**(۶) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ سَمِعَ جَرِيرًا عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رضى الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِذَا هَلَكَ كِسْرَى فَلاَ كِسْرَى بَعْدَهُ، وَإِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلاَ قَيْصَرَ بَعْدَهُ، وَالَّذِى نَفْسِى بِيَدِهِ، لَتُنْفَقَنَّ كُنُوزُهُمَا فِى سَبِيلِ اللَّهِ». [۳۴۲۳، ۶۲۵۴]

---

(۱) کشف الباری:۱/۴۷۹_۴۸۰)_

(۲) کشف الباری:۲/۱۰_۱۱)_

(۳) کشف الباری:۶۵۹)_

(۴) فتح الباری:۶/۲۲۱،وعمدة القاری:۱۵/۴۱)_

(۵) کشف الباری،کتاب الجهاد:۲/۳۷۹_۳۸۵،باب الحرب خدعة)_

(۶) قوله: عن جابر بن سمرة رضی الله عنه :الحدیث،اخرجه البخاری فی کتاب الانبیاء ایضا،باب علامات النبوة فی الاسلام،رقم (۳۶۱۹)،وکتاب الایمان والنذور،باب کیف کانت یمین النبی صلی الله علیه وسلم ؟رقم (۶۶۲۹). ومسلم، کتاب الفتن......باب لا تقوم الساعة حتی یمر الرجل بقبر الرجل......رقم (۷۳۲۷_۷۳۲۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

① **اسحاق**: دا اسحاق بن ابراهيم بن راهويه رحمه الله دي.
ابوعلي جياني رحمه الله ليكلي دی چې ما يو راوی کله هم د دوی طرفته د نسبت او نسب ذکر کولو سره ليدلې نهٔ دې يعنی دا نهٔ معلوميده چې د اسحاق نه څوك مراد دی؟ ليکن وروستو بيا دا حديث شريف مونږ ته هم دې سياق او مضمون سره په مسند اسحاق کښې ملاو شو نو غالب گمان هم دادې چې ددې نه مراد ابن راهويه دې.[1]
د اسحاق بن راهويه تذکره په کتاب العلم، "باب فضل من علم وعلم" کښې تيره شوې ده.[2]

② **جرير**: دا جرير بن عبد الحميد رحمه الله دې.د دوی حالات په کتاب العلم، "باب من جعل لاهل العلم أيامامعلومة" کښې بيان شوې دی.[3]

③ **عبدالملك**: دا عبدالملك بن عمير کوفی رحمه الله دې.[4]

④ **جابر بن سمرة**: دا مشهور صحابی حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه دې.[5] ددې حديث شريف مضمون بعينه هم هغه دې کوم مضمون چې د تيرشوې حديث مبارك وو.
څلورم حديث شريف د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنهما دې.

۲۹۵۴:[6] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا سَيَّارٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ الْفَقِيرُ حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أُحِلَّتْ لِي الْغَنَائِمُ».[ر: ۳۲۸]

## رجال الحديث

① **محمد بن سنان**: دا محمد بن سنان باهلی رحمه الله دې.د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب من سئل علماوهو......" کښې تيره شوې ده.[7]

② **هشيم**: دا هشيم بن بشير واسطی رحمه الله دې.

③ **سيار**: دا سيار بن ابی سيار وردان واسطی رحمه الله دې.

---

[1]) فتح الباری:۲۲۱/۶،وشرح الكرمانی:۹۴/۱۳،ومسند اسحاق)_
[2]) کشف الباری:۴۲۸/۳)_
[3]) کشف الباری:۲۶۸/۳)_
[4]) د دوی دحالاتو دپاره اوگورئ، کتاب الاذان،باب اهل العلم والفضل احق بالامامة)_
[5]) د دوی دحالاتو دپاره اوگورئ، کتاب الاذان،باب وجوب القراءة للامام.....)_
[6]) قوله: جابر بن عبد الله......":الحديث،مر تخريجه في كتاب التيمم)_
[7]) کشف الباری:۵۳/۳)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ **يزيد الفقير**: دا يزيد بن صهيب كوفي رحمه الله دې چې په الفقير باندې مشهور دې.[1]

⑤ **جابر بن عبدالله**: دا مشهور انصاري صحابي حضرت جابربن عبد الله رضي الله عنهما دې.[2]

دلته امام بخاري رحمه الله د حضرت جابربن عبد الله رضي الله عنه د حديث صرف يوه جمله ذكر كړې ده.دا حديث پوره په كتاب التيمم كښې راغلې دې،په هغې كښې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا ارشاد مبارك دې چې: "أعطيت خمساً......"ماته خاص طور سره د الله تعالى له طرفه پنځه څيزونه راكړې شوې دی چې زما نه مخكښې چاته وركړې شوې نۀ وو.لكه د يو مياشت په مسافت (فاصله باندې د رعب او دبدبې په ذريعې سره زما نصرت كړې شوې دې او ټوله زمكه زما دپاره د مانځه ځائې او د پاكوالي ذريعه ګرځولې شوې ده،نو زما د امت هر سړې چې كوم ځائې كښې هم د مانځه وخت بيامومي نو مونځ دې اوكړي او زما دپاره غنيمتونه حلال كړې شوې دی حالانكه زما نه مخكښې دا غنيمتونه د چا دپاره حلال نۀ وو او ما ته شفاعت راكړې شوې دې او زما نه مخكښې به انبياء كرام عليهم السلام د يو قوم دپاره خاص طور سره راستولې كيدل او زما راليږل عام طور د ټول انسانيت دپاره شوې دی.[3]

**غنيمت او سابقه امتونه**: علامه خطابي رحمه الله ليكلې دی چې په تير شوې امتونو كښې به خلق په دوه قسمه وو،يو خو هغه خلق چې هغوی ته په جهاد او قتل وقتال كښې اجازت نۀ وو نو هغوی ته به غنيمت هم نۀ ملاويدۀ او دويم قسم هغه خلق وو چې په قتال كښې خو به شريكيدل ليكن كه هغوی به مال غنيمت حاصل كړو نو ددې هغې خوراك د هغوی دپاره حلال نۀ وو بلكه يو آسماني اور به راغئ او هغه د غنيمت ټول مال به ئې اوسوزوو.[4] په غنيمت كښې تصرف،ددې خوراك صرف د محمد صلى الله عليه وسلم او د دوی مبارك د امت خصوصيت دې[5] بلكه په قرآن پاك كښې خو دېته حلالاً طيباً وئيلې شوې دې.[6] د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په يو روايت كښې راغلې دی "أطيب كسب المسلم سهمه فى سبيل الله"[7]

---

[1] د هشيم، سيار او د يزيد الفقير د حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب التيمم،باب التيمم)_

[2] د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء،باب من لم ير الوضوء الا من المخرجين......)_

[3] اوګورئ، صحيح البخاري،كتاب التيمم،باب التيمم،رقم (۳۳۵))_

[4] فتح الباري:۴۳۸/۱،واعلام الحديث للخطابي:۳۳۴/۱،كتاب التيمم،رقم (۳۳۵))_

[5] قال ابن رجب الحنبلي: واما احلال الغنائم له ولامته خاصة.فقد روى ان من كان قبلنا من الانبياء كانوا يحرقون الغنائم،وفى حديث عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده،عن النبي صلى الله عليه وسلم:((واحلت لي الغنائم اكلها، وكان من قبلي يعظمون اكلها،وكانوا يحرقونها))".فتح الباري:لابن رجب:۳۱۵/۱،تحت رقم (۳۳۵)،وحديث عمر بن شعيب اخرجه احمد فى مسنده:۲۲۲/۲،مسند عبدالله بن عمروبن العاص، رضي الله عنه ،رقم (۷۰۶۸))_

[6] قال الله تعالى:(فكلوا مما غنمتم حلالا طيبا) (الانفال:۶۹))_

[7] اوګورئ، التمهيد لابن عبدالبر:۱۳۴/۳،حديث خامس لربيعة بن عبدالرحمن.....وكنزالعمال:۲۸۵/۴،عن [illegible] كتاب الجهاد،والجامع الصغير مع الفيض:۶۹۹/۱،رقم (۱۱۲۳))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې په تشريح کښې علامه مناوى رحمه الله فرمائي:

"أى مايكسبه من غنيمة ولى سلب قتيل ونحوها لان ما حصل بسبب الحرص على نصرة دين الله و نيل درجة الشهادة لا شئ أطيب منه،فهو افضل من البيع وغيره مما مر لانه كسب المصطفى ﷺ وحرفته،الا ترى الى قوله: "وجعل رزقى تحت ظل رمحى" فافضل الكسب مطلقاً سهم الغازى لما ذكر......" (۱)

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت واضح دې،کوم چې په دې جمله کښې دې، "أحلت لى الغنائم".

پنځم حديث د حضرت ابوهريره رضى الله عنه دې

۲۹۵۵ :(۲) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « تَكَفَّلَ اللَّهُ لِمَنْ جَاهَدَ فِي سَبِيلِهِ، لاَ يُخْرِجُهُ إِلاَّ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِهِ وَتَصْدِيقُ كَلِمَاتِهِ، بِأَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، أَوْ يَرْجِعَهُ إِلَى مَسْكَنِهِ الَّذِي خَرَجَ مِنْهُ { مَعَ مَا نَالَ } مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ ». [ر: ۳۶]

## رجال الحديث

① **اسماعيل:** دا مشهور محدث اسماعيل بن ابى اويس رحمه الله دې.د دوى تذکره په کتاب الايمان،"باب من كره أن يعود فى الكفر كما يكره......"کښې تيره شوې ده.(۳)

② **مالک:** دا امام دار الهجرة حضرت امام مالک بن انس رحمه الله دې.ددوى حالات د "بدء الوحى" په "الحديث الثانى"کښې تير شوې دى.(۴)

③ **ابو الزناد:** دا ابو الزناد عبد الله بن ذکوان رحمه الله دې.

④ **الاعرج:** دا عبد الرحمن بن هرمز رحمه الله دې.ددې دواړو حضراتو تذکره په کتاب الايمان،"باب حب الرسول....."کښې راغلې ده.(۵)

⑤ **ابوهريره:** د حضرت ابوهريره رضى الله عنه حالات په کتاب الايمان،"باب أمور....."کښې تير شوې دى.(۶)

---

[۱]) فيض القدير شرح الجامع الصغير:۶۹۹/۱،حرف الهمزة)_

[۲]) قوله: عن ابى هريرة رضى الله عنه ":الحديث،مر تخريجه فى كتاب الايمان،باب الجهاد من الايمان،كشف البارى:۳۰۱/۲)_

[۳]) كشف البارى:۱۱۳/۲)_

[۴]) كشف البارى:۲۹۰/۱، تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ،كشف البارى:۸۰/۲)_

[۵]) كشف البارى:۱۰/۲_۱۱)_

[۶]) كشف البارى:۶۵۹/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حديث شريف ترجمه** حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائی چې نبی ﷺ فرمائيلي دی چې الله تعالى د هغې كس ضمانت اخستلې دې څوك چې د هغهٔ په لاره كښې جهاد كوى، هغهٔ لره د خپل كور نه صرف جهاد في سبيل الله او د الله تعالى د كلماتو تصديق ويستلې وى، چې دې به د شهادت په صورت كښې جنت كښې داخلوى او يا به ئې د غازى كيدو په صورت كښې د خپل كور طرفته واپس كړى، د كوم ځائى نه چې دې تلې وو، هغه اجر او غنيمت سره كوم چې دهٔ حاصل كړو (يعنى په دواړو صورتونو كښې دې كامياب دې).

**خبرداري:** ددې حديث پوره تشريح په كتاب الايمان او كتاب الجهاد كښې تيره شوې ده[1]

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ددې شريف مناسبت ترجمة الباب سره په دې كلمه كښې دې، "اوغنيمة"[2]

شپږم حديث شريف هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

٢٩٥٦: [3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «غَزَا نَبِيٌّ مِنَ الأَنْبِيَاءِ فَقَالَ لِقَوْمِهِ لاَ يَتْبَعْنِي رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَأَةٍ وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَبْنِيَ بِهَا وَلَمَّا يَبْنِ بِهَا، وَلاَ أَحَدٌ بَنَى بُيُوتًا وَلَمْ يَرْفَعْ سُقُوفَهَا، وَلاَ أَحَدٌ اشْتَرَى غَنَمًا أَوْ خَلِفَاتٍ وَهُوَ يَنْتَظِرُ وِلاَدَهَا. فَغَزَا فَدَنَا مِنَ الْقَرْيَةِ صَلاَةَ الْعَصْرِ أَوْ قَرِيبًا مِنْ ذَلِكَ فَقَالَ لِلشَّمْسِ إِنَّكِ مَأْمُورَةٌ وَأَنَا مَأْمُورٌ، اللَّهُمَّ احْبِسْهَا عَلَيْنَا. فَحُبِسَتْ، حَتَّى فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ، فَجَمَعَ الْغَنَائِمَ، فَجَاءَتْ - يَعْنِي النَّارَ - لِتَأْكُلَهَا، فَلَمْ تَطْعَمْهَا، فَقَالَ إِنَّ فِيكُمْ غُلُولاً، فَلْيُبَايِعْنِي مِنْ كُلِّ قَبِيلَةٍ رَجُلٌ. فَلَزِقَتْ يَدُ رَجُلٍ بِيَدِهِ فَقَالَ فِيكُمُ الْغُلُولُ. فَلْتُبَايِعْنِي قَبِيلَتُكَ، فَلَزِقَتْ يَدُ رَجُلَيْنِ أَوْ ثَلاَثَةٍ بِيَدِهِ فَقَالَ فِيكُمُ الْغُلُولُ، فَجَاءُوا بِرَأْسٍ مِثْلِ رَأْسِ بَقَرَةٍ مِنَ الذَّهَبِ فَوَضَعُوهَا، فَجَاءَتِ النَّارُ فَأَكَلَتْهَا، ثُمَّ أَحَلَّ اللَّهُ لَنَا الْغَنَائِمَ، رَأَى ضَعْفَنَا وَعَجْزَنَا فَأَحَلَّهَا لَنَا». [٤٨٦٢]

## رجال الحديث

① **محمد بن العلاء:** دا محمد بن العلاء همدانى كوفى رحمه الله دې. ددوى تذكره په كتاب العلم، "باب فضل من علم وعلم" كښې راغلې ده.[4]

---

[1]) كشف البارى، كتاب الايمان: ٣٠٥/٢_٣١٤، وكتاب الجهاد: ٦٨/١، و: ١١٢_١١٥)_

[2]) عمدة القارى: ٤٢/١٥)

[3]) قوله: عن ابى هريرة رضي الله عنه: "الحديث اخرجه البخارى، كتاب النكاح، باب من احب البناء قبل الغزو، رقم (٥١٥٧)، ومسلم، كتاب الجهاد، باب تحليل الغنائم لهذه الامة خاصة، رقم (٤٥٥٥))_

[4]) كشف البارى: ٤١٣/٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

③ **ابن المبارک**: دا حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله دي د دوی اجمالی تذکره د "بدء الوحی" په "الحدیث الخامس" کښي راغلې ده.[1]

④ **معمر**: دا ابوعروه معمر بن راشد ازدی رحمه الله دي د دوی تذکره هم د "بدء الوحی" په "الحدیث الخامس" کښي تیره شوې ده.[2]

⑤ **همام بن منبه**: دا د حضرت ابوهریره رضی الله عنه مشهور شاګرد حضرت همام بن منبه رحمه الله دي.د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب من حسن اسلام المرء......." کښي تیر شوي دی.[3]

⑥ **ابوهریره**: د حضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره په کتاب الایمان، "باب أمور الایمان" کښي تیره شوې ده.[4]

**قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: غزا نبي من الانبياء:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چې نبی علیه السلام اوفرمائیل چې په انبیاء کرامو کښي یو نبی قتال اوکړو.غزا فعل ماضی ده لیکن د مضارع په معنی کښي ده.مطلب دا دي چې د غزوې او د قتال اراده ئې اوکړه.[5]

**دا نبی څوک وو؟** د قاضی عیاض، ابن اسحاق[6]، امام حاکم[7] او د جمهور محدثینو او علماء کرامو رائې هم دا ده چې دا نبی حضرت یوشع بن نون علیه السلام وو.چې د بنی اسرائیلو طرفته رالیږلي شوي وو.[8]

ددې تصدیق او تائید د هغه حدیث شریف نه هم کیږی کوم چې امام احمد رحمه الله په خپل "مسند" کښي د هشام عن محمد بن سیرین عن ابی هریره رضی الله عنه د طریق نه نقل کړې دي چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دي: "**ان الشمس لم تحبس لبشر الا ليوشع بن نون ليالي سار الى بيت المقدس......**"[9] دا حدیث شریف مرفوع هم دي او صحیح هم دي.[10]

---

[1] ) کشف الباری:۱/۴۶۲)_
[2] ) کشف الباری:۱/۴۶۵)_
[3] ) کشف الباری:۲/۴۲۸)_
[4] ) کشف الباری:۱/۶۵۹)_
[5] ) فتح الباری:۶/۲۲۱،وتحفة الباری:۳/۵۴٤)_
[6] ) عمدة القاری:۱۵/۴۲،وطرح التثریب فی شرح التقریب للعراقی:۶/۱۹۷۶،باب الغنیمة.....)_
[7] ) فتح الباری:۶/۲۲۱،والمستدرک للحاکم: ۲/۱۳۹_۱۴۰، کتاب قسم الفئ،رقم (۲۶۱۸))_
[8] ) فتح الباری:۶/۲۲۱،وعمدة القاری:۱۵/۴۲،وارشاد الساری:۵/۲۰۶،وشرح الابی علی مسلم:۲/۵۸، وتحفة الباری:۳/۵۴٤)_
[9] ) مسند احمد:۲/۳۲۵،مسند ابی هریرة،رقم (۸۲۹۸))_
[10] ) فتح الباری:۶/۲۲۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ليكن ابن بطال رحمه الله دا واقعه د حضرت داؤد عليه السلام طرفته منسوب كړې ده او د باب د حديث د الفاظو نسبت ئې د هغوى طرفته كړې دې.(۱)، حافظ وائى چې ماته په هيڅ يو مسندحديث كښې دا خبره ملاو نۀ شوه. البته خطيب بغدادى په خپل تاليف "ذم النجوم" كښې د ابو حذيفه د طريق نه او امام بخارى رحمه الله په "المبتدا" كښې د حضرت على رضى الله عنه د طريق نه يو روايت نقل كړې دې، د هغې خلاصه داده چې د حضرت يوشع عليه السلام قوم د هغوى نه مطالبه اوكړه چې مونږ ته د مخلوقاتو د ابتداء او زمونږ د مقرره وختونو (د مرګ) په باره كښې حال أحوال بيان كړئ، هغوى د قوم دا مطالبه پوره كړه، اوس هر سړى ته د خپل مرګ وخت معلوم شوې وو، حالات هم په دې طريقه باندې روان وو تردې چې حضرت داود عليه السلام تشريف راوړلو او هغوى دوى سره (په داسې حال كښې چې دوى كافران شوې وو) د قتال اراده اوكړه او لښكر ئې راوستلو نو دوى هم د حضرت داود عليه السلام د مقابلې كولو دپاره خپل كسان روان كړل ليكن...... هغه كسان ئې روان كړل چې د كومو خلقو مرګ كښې وخت باقى وو، اوس د جنګ نتيجه دا شوه چې د حضرت داود عليه السلام لښكريان خو شهيدان شو ليكن په دوى كښې څوك هم مړۀ نۀ شو، حضرت داود عليه السلام الله تعالى ته شكايت اوكړو او د الله تعالى نه ئې مدد اوغوستلو نو الله تعالى په دوى باندې نمر اودرولو چې نمر ډوب نۀ شى، دغه شان ورځ اوږده شوه او په كافرانو باندې شپه ورځ ګډه وډه شو او خپل حساب ترينه هير شو، دغه شان پرې حضرت داود عليه السلام قابو اوموندلو. حافظ ابن حجر رحمه الله ددې روايت د نقل كولو نه پس ليكى:

"واسناده ضعيف جداً، وحديث أبي هريرة المشار اليه عند أحمد أولى فان رجال اسناده محتج بهم في الصحيح، فالمعتمد أنها لم تحبس الاليوشع"(۲)

**ايا د نمر اودريدل (نۀ ډوبيدل) صرف حضرت يوشع عليه السلام سره خاص دى؟** د پورتنى تفصيل نه هم دا معلوميږى چې د نمر د اودريدلو واقعه صرف د حضرت يوشع عليه السلام سره شوې وه، د مسند احمد شريف د پورتنى ذكركرده حديث نه حصر معلوميږى، "ان الشمس لم تحبس لبشر الاليوشع بن نون...." ليكن څۀ نور واقعات چې صحيح سندونو سره روايت شوې دى، د هغې نه دا حصر باطل معلوميږى چې دا واقعه صرف حضرت يوشع عليه السلام سره خاص نۀ ده.

لكه ابن اسحاق په "المبتدا" كښې د يحيى بن عروة بن الزبير عن ابيه د طريق نه نقل كړې دى چې كله الله تعالى حضرت موسى عليه السلام ته حكم اوكړو چې بنى اسرائيل ځان سره كړه او د مصر نه اوځئ اوكړئ نو دا حكم ئې هم وركړو چې خپل ځان سره د حضرت يوسف عليه السلام تابوت هم واخلئ. د الله تعالى په حكم سره دوى د حضرت يوسف عليه السلام تابوت تلاش كوو ليكن هغه دوى عليه السلام پيدا نۀ كړې شو، تردې چې د سحر رڼرا په خوريدو شوه نو ددې نه مخكښې حضرت موسى عليه السلام بنى اسرائيلو سره وعده كړې وه چې د صبا په راختلو (طلوع فجر) باندې

---

(۱) شرح ابن بطال: ۱۳۵/۵، باب استئذان الرجل الامام.....)_

(۲) فتح البارى: ۲۲۱/۶)_

په روانګی کوو، ددې وجې نه هغوی الله تعالی ته دعا اوکړه چې طلوع فجر هغه وخت پورې مؤخر کړې شی چې کله د یوسف ﷺ د تابوت ذمه دارئ نه فارغ شم نو الله تعالی د هغوی دا دعا قبوله کړه.[1]

ددې نه علاوه د نبی کریم ﷺ په باره کښې د تاریخ مختلفو عالمانو لیکلې دی چې د معراج د شپې په سحر باندې نبی ﷺ د مکې مکرمې قریشو ته اووئیل چې ما ستاسو هغه قافله لیدلې ده کومې چې سره د تجارت مال او سازوسامان دې او هغه قافله به د ورځې په ختمیدو باندې ښکاره کیږی لیکن د قافلې د رارسیدلو نه مخکښې نمر په ډوبیدو شو نو نبی ﷺ د الله تعالی په دربار کښې خپل درخواست پیش کړو چې نمر اودرولې شی نو نمر اودرولې شو تردې چې هغه قافله راورسیدله، د حضرت جابربن عبدالله ﷺ کلمات دادی:

"أن النبی صلی الله علیه وسلم أمر الشمس، فتاخرت ساعة من نهار".[2]

ددې ټولو واقعاتو نه دا خبره معلومیږی چې د نمر اودریدل صرف د حضرت یوشع ﷺ خصوصیت نهٔ دې او په هغوی کښې داخبره منحصر هم نهٔ ده بلکه دغه شان نور واقعات هم شته.

**د حصر حدیث او د مذکوره واقعاتو مینځ کښې تطبیق:** د حضرت موسی ﷺ واقعه بنیاد جوړول او بیا د مسنداحمد د حصر والا حدیث باندې اشکال کول صحیح نهٔ دی، دا ځکه چې د حضرت یوشع بن نون ﷺ د واقعې تعلق د نمر د ډوبیدو سره دې او د حضرت موسی ﷺ د واقعې تعلق د طلوع فجر سره دې، یعنی هغه د ماښام واقعه ده او دا د سحر واقعه ده، ددې وجې نه د حضرت یوشع ﷺ دپاره د نمر اودریدل ددې خبرې سره منافی نهٔ دی چې د هغوی نه علاوه د بل چا دپاره د طلوع فجر اودریدل نهٔ وی شوې.[3] هرچه د نبی ﷺ د معراج شریف د واقعې د سحر خبره ده نو د هغې جواب دادې چې د حصر والا په حدیث شریف کښې د حصر تعلق د سابقه انبیاء کرامو ﷺ سره دې، مطلب دادې چې زمونږ د نبی کریم ﷺ نه وړاندې د نمر اودریدل صرف د حضرت یوشع ﷺ دپاره شوې دی نو په دې کښې ددې خبرې هیڅ نفی نشته چې د نمر اودریدل د هغوی نه پس زمونږ د نبی کریم ﷺ دپاره نهٔ شی کیدې[4] امام سدی رحمه الله ددې واقعې په باره کښې فرمائی:

"ان الشمس كادت أن تغرب قبل أن يقدم ذلك العير، فدعا الله عزوجل، فحبسها حتى قدموا كما وصف لهم.... فلم تحبس الشمس على أحد الا عليه ذلك اليوم، وعلى يوشع بن نون.......".[5]

---

[1] ) پورته حواله، وعمدة القاری: ۴۳/۱۵)_

[2] ) پورته حواله جات، وحدیث جابر اخرجه الطبرانی فی "الاوسط": ۲۲۴/۴، باب من اسمه ابراهیم، رقم (۴۰۳۹). بسند حسن_ کما قال الحافظ فی الفتح: ۲۲۱/۶، وطرح التثریب: ۱۹۷۸/۶ واخرجه البیهقی فی دلائل النبوة: ۴۰۴/۲، بسنده عن اسماعیل بن عبدالرحمن القرشی، تحت باب الاسراء برسول الله ﷺ من المسجد....)

[3] ) فتح الباری: ۲۲۱/۶)_

[4] ) پورته حواله)_

[5] ) عمدة القاری: ۴۳/۱۵، وشرح الابی علی مسلم: ۵۸/۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د نمر د واپس کیدو واقعات:** پورته چې کوم واقعات ذکر شو نو ددې تعلق اودریدو سره وو .خواه سحر وی یا ماښام،ددې نه علاوه د تاریخ او د سیر په کتابونو کښې د نمر د واپس کیدو واقعات هم ملاویږی، یعنی هغه واقعات چې په هغې کښې د یو شخصیت دپاره نمر د پریوتلو نه پس دوباره د واپس کیدو تذکره ده،لاندې د هغې واقعاتو تذکره کولې شی

① په دې ضمن کښې د ټولو نه اولنۍ واقعه د حضرت سلیمان ﷺ په باره کښې مشهوره ده، د قرآن کریم په دې آیتونو کښې د هغې ذکر(د بعضې مفسرینو د وینا مطابق) راغلې دې:

﴿اذ عرض علیه بالعشی الصافنات الجیاد، فقال انی احببت حب الخیر عن ذکر ربی حتی توارت بالحجاب، ردوها علی فطفق مسحاً بالسوق والاعناق﴾[1]

ددې آیتونو خلاصه داده چې یو ماښام حضرت سلیمان ﷺ ته اسونه د کتلو دپاره راوستې شو ،دوی مبارك په دې کار کښې دومره قدرې مشغول شو چې د مازیګر مونځ ترینه پاتې شو او نمر پریوتلو ،وروستو ورته خبر اوشو نو دوباره ئې د اسونو د راوستلو حکم اوکړو او په توره باندې ئې د هغوی ښتونه او خپې وهل شروع کړل[2] دا خلاصه د مشهور تفسیر مطابق ده او په دې کښې د ﴿ردوها﴾ ضمیر د اسونو طرفته راجع کیږی لیکن بعضې مفسرینو (ثعلبی او بغوی وغیره)[3] ددې ضمیر مرجع نمر ښودلې دې او وائی چې سلیمان ﷺ د نمر د واپس کولو وئیلې وو،د هغوی درخواست قبول کړې شو،نمر واپس کړې شو.دغه شان هغوی د مازیګر مونځ اوکړو[4] لیکن د محققینو علماؤ په نزد دا واقعه ثابته نۀ ده او د جمهورو مفسرینو رائې هم داده چې د ﴿ردوها﴾ ضمیر د مؤنث اسونو طرفته راجع کیږی،

حافظ فرمائی: "أورد هذا الأثر جماعة ساکتین علیه جازمین بقولهم: "قال ابن عباس: قلت لعلی؟" وهذا لا یثبت عن ابن عباس ولا عن غیره، والثابت عن جمهور أهل العلم بالتفسیر من الصحابة ومن بعدهم أن الضمیر المؤنث فی قوله ﴿ردوها﴾ للخیل، والله أعلم"[5]

البته بعضې مفسرین مذکوره واقعې ته صحیح وائی او دا د حضرت سلیمان ﷺ معجزه ئې ګرځوی، علامه قرطبی رحمه الله فرمائی:

"قلت ومن قال ان الهاء فی ﴿ردوها﴾ ترجع للشمس، فذلك من معجزاته"[6]

---

[1] ) سورة ص :۳۱_۳۳)_

[2] ) ددې آیتونو د تفسیر دپاره اوګورئ، کشف الباری،کتاب التفسیر،ص :۵۵۵)_

[3] ) فتح الباری:۲۲۲/۶،وتفسیر البغوی: ۶۱/۴،وتفسیر النسفی: ۳۹/۴)_

[4] ) فتح الباری:۲۲۲/۶،وعمدة القاری:۴۳/۱۵)_

[5] ) فتح الباری:۲۲۲/۶)_

[6] ) الجامع لاحکام القرآن للقرطبی :۱۹۷/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

②دویمه واقعه د حضرت نبی اکرمﷺ ده.قاضی عیاض رحمه الله وغیره فرمانی چې په غزوه خندق کښې په قتال کښې د مشغولیت د وجې نه د نبیﷺ او د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه د مازیگر مونځ پاتې شوې وو.تردې چې نمر پریوتلو نو نبیﷺ په بارگاه الهی کښې خپل درخواست پیش کړو.هغه قبول کړې شو او نمر واپس کړې شو بیا ټولو د مازیگر مونځ اوکړو دې واقعې ته امام طحاوی رحمه الله صحیح وئیلې دی او راویان ئې ثقه گرځولې دی.[1]

③دریمه واقعه د حضرت علی رضی الله عنه ده.ددې تخریج امام طحاوی رحمه الله په دوو طریقو سره کړې دې او دواړو طریقو ته ئې صحیح او ثابت وئیلې دی.

حضرت اسماء بنت عمیس رضی الله عنها فرمائی:"كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يوحى اليه، و رأسه فى حجر على،فلم يصل العصر حتى غربت الشمس،فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم:"صليت يا على؟"قال: لا،فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم:"اللهم ،انه كان فى طاعتك وطاعة رسولك،فاردد عليه الشمس".قالت أسماء:فرأيتها غربت،ثم رأيتها طلعت،بعد ما غربت".[2]

مطلب دا دې چې په رسول الله مبارکﷺ باندې وحی نازلیده او د هغوی سر مبارک د حضرت علی رضی الله عنه په غیږه کښې وو.حضرت علی رضی الله عنه د مازیگر مونځ نه وو کړې او نمر پریوتلې وو.نبیﷺ ترینه تپوس اوکړو چې ائې علی.تاسو مونځ کړې دې؟نو هغوی جواب ورکړو چې نه جی.نبیﷺ د الله تعالی په دربار کښې عرض اوکړو چې ائې الله!دا علی ستا او ستا د رسول په اطاعت او خدمت کښې مشغول وو نو ددهٔ دپاره نمر دوباره واپس کړه.حضرت اسماء وائی چې ما نمر اولیدو نو پریوتلې وو.بیا مې اولیدهٔ نو دا مشاهده مې اوکړه چې هغه د پریوتلو نه پس دوباره راختلې دې.

ددې حدیث شریف په دویم طریق کښې حضرت اسماء رضی الله عنها دا هم فرمائی:

"ثم قام على،فتوضأ وصلى العصر،ثم غابت،و ذلك فى الصهباء فى غزوة خيبر".[3]

بیا حضرت علی رضی الله عنه پاسیدلو،اودس ئې اوکړو او د مازیگر مونځ ئې اوکړو.بیا نمر

---

[1]) ددې تخریج د قاضی عیاض د وینا مطابق امام طحاوی کړې دې لیکن مونږ ته دا حدیث په شرح مشکل الآثار کښې خو ملاو نهٔ شو.حافظ ابن حجر ته هم ددې په نسبت کښې تامل دې لیکن په واقعه باندې هغوی څهٔ تنقید نهٔ دې کړې.غالباً هغوی دا قصه صحیح منی.هم دا حالت د علامه عینی رحمه الله هم دې.هغوی ددې واقعې د نقل کولو نه پس په دې باندې خاموشی اختیار کړې ده. انظر الفتح:۲۲۲/۶.والعمدة:۴۳/۱۵.او علامه ذهبی رحمه الله ددې واقعې تغلیط کړې دې.اوگورئ، تنزيه الشريعة المرفوعة:۳۷۹/۱)_

[2]) شرح مشكل الآثار:۹۲/۳.باب:۱۶۵.بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ فى مسالته الله عزوجل ان يرد الشمس......رقم (۱۰۶۷).والمعجم الكبير للطبرانى:۱۵۰/۲۴_۱۵۲.رقم (۳۹۰_۳۹۱).و روى اوله ابن ابى عاصم فى كتاب السنة:۲۲۶.رقم (۱۳۲۳))_

[3]) شرح مشكل الآثار:۹۲/۳.باب:۱۶۵.بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ فى مسالته الله عزوجل ان يرد الشمس......رقم (۱۰۶۸))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پريوتلو او دا د صهباء د ځائې واقعه ده، د غزوه خيبر ورځې وي.
امام طحاوي رحمه الله ددې حديث د نقل کولو نه څو صفحې پس ليکي:

"وكل هذه الاحاديث من علامات النبوة.

وقد حكى لى على بن عبد الرحمن بن المغيرة، عن أحمد بن صالح، انه كان يقول: لا ينبغى لمن كان سبيله العلم التخلف عن حفظ حديث أسماء الذى رواه لنا عنه لانه من أجل علامات النبوة"[1]

چې "دا ټول حديثونه د نبوت د علاماتو نه دي او ماته على بن عبد الرحمن د احمد بن صالح قول نقل کولو سره اوفرمائيل چې هغوی به فرمائيل چې د هيڅ يو عالم دپاره هم دا مناسب نۀ دي چې هغه د حضرت اسماء رضي الله عنها ددې حديث نه اجتناب اوکړي ځکه چې دا حديث د نبوت د لويو علاماتو نه دې".
ددې نه علاوه حافظ ابن حجر، علامه عيني، امام قرطبي، امام ابوالفضل عراقي او د هغوی جليل القدرځوئی ابوزرعه عراقي رحمهم الله وغيره هم دې حديث اودې واقعې ته صحيح وئيلې دی[2]
ليکن بل طرفته بعضې محدثينو دا حديث موضوع او باطل ښودلې دې چې په هغوی کښې ابن الجوزي[3]، ابن تيميه[4]، ذهبي[5]، ابن کثير[6]، ابن عساکر او جوزقاني رحمهم الله [7] په شان امامان شامل دی.[8] امام ابن تيميه رحمه الله خو ددې حديث په بنياد باندې امام طحاوي رحمه الله د ډير سخت تنقيد نشانه ګرځولې ده او وائي چې دۀ ته د احاديثو د تللو او د هغې د سندونو د صحت او د کمزورتيا په معلومولو کښې څۀ زيات مهارت حاصل نۀ وو.[9]
**امام طحاوي او حديث رد الشمس لعلي:** هرچه د امام طحاوي رحمه الله مناقب او صفات دی نو د هغې د بيانولو خو دا موقع نۀ ده، پاتې شو حديث د حضرت علي رضي الله عنه دپاره د نمر د واپس کيدو والا، او په دې بنياد باندې امام طحاوي د تنقيد نشانه ګرځول، دا خو بالکل صحيح نۀ دی. ددې وجه دا ده چې ددې حديث نقل کوونکې صرف حضرت امام طحاوي رحمه الله نۀ دې،

---

[1]) پورته حواله، ص: ۹۷_۹۸)_
[2]) الفتح: ۶/۲۲۲، والعمدة: ۱۵/۴۳، وطرح التثريب التقريب: ۶/۱۹۷۸_۱۹۷۹، وتفسير القرطبي: ۱۵/۱۹۷، ۱۹۷، وايضا صححه القاضي عياض فى الشفاء: ۱/۱۷۷، والخفاجي فى شرحه نسيم الرياض للشفاء: ۳/۳۸۳_۳۸۶، القسم الاول، فصل انشقاق القمر وحبس الشمس)_
[3]) كتاب الموضوعات: ۱/۲۶۶، باب فى فضائل على رضي الله عنه، الحديث الحادى عشر، فى ردالشمس له)_
[4]) منهاج السنة النبوية: ۴/۴/۱۸۹، فصل، قال الرافضى.....التاسع، رجوع الشمس له.....)_
[5]) تنزيه الشريعة المرفوعة: ۱/۳۷۹، الفصل الثانى، رقم (۱۰۴))_
[6]) البداية والنهاية لابن كثير: ۶/۸۱)_
[7]) الاباطيل والمناكير: ۱/۱۵۸، بحواله تعليقات شرح مشكل الآثار: ۳/۹۳)_
[8]) فتح البارى: ۶/۲۲۲، وتعليقات شرح مشكل الآثار: ۳/۹۳)_
[9]) منهاج السنة لابن تيمية: ۴/۱۸۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بلکه د طبرانی[1]، بیهقی[2]، او د امام حاکم[3] په شان محدثین هم دا حدیث روایت کوی[4].
ددې وجې نه دا حدیث بالکل رد کول ممکن نۀ دی.
هم دا وجه وه چې د حافظ ابن حجر رحمه الله په شان جلیل القدر د حدیث رد کوونکې هم دا د نبی کریم ﷺ معجزه بښودلو سره فرمائی:
"وقد أخطأ ابن الجوزي بإيراده له في "الموضوعات"، وكذا ابن تيميه في "كتاب الرد على الروافض" في زعم وضعه، والله أعلم"[5].
ابن تیمیه چې په امام طحاوی رحمه الله کوم تنقید کړې دې نو ددې جواب علامه کوثری مصری ورکړې دې چې ددې الزام بنیاد دادې چې امام طحاوی د "رد الشمس لعلی" حدیث صحیح ګرځولې دې او د اخبره د ابن تیمیه د خیال خلاف ده، ابن تیمیه دا د روافضو شرارت ګڼړی. دا د عناد نه سوا هیڅ نۀ دی ځکه چې نورو ډیرو محدثینو هم ددې حدیث شریف تصحیح کړې ده، خواه ابن تیمیه په دې باندې خوشحاله وی یا خفه.[6] والله أعلم بالصواب

**قوله: فقال لقومه: لا يتبعني رجل ملك بضع امرأة وهو يريد أن يبني بها، ولما يبن بها...:** نو حضرت یوشع علیه السلام خپل قوم ته اووئیل چې ماسره دې داسې سړې سفر نۀ کوی چې هغۀ اوس اوس (تازه) نکاح کړې وی او خپلې بی بی ته تلل غواړی ځکه چې اوسه پورې هغه ورغلې نۀ دې.
حضرت یوشع علیه السلام د جهاد دپاره د روانیدو نه مخکښې یو اعلان اوکړو چې داسې قسم خلق دې ماسره په سفر کښې نۀ ځی، چې هغوی اوس اوس نکاح کړې وی او بی بی سره ئې ملاقات شوې نۀ دې او غواړی چې زما ملاقات ورسره اوشی.
"بضع" د باء ضمې سره لوستلې شی او ددې معنٰی نکاح ده، دغه شان ددې معنٰی شرمګاه او جماع هم راځی او دلته درې واړه معنې صحیح دی، دغه شان ددې لفظ اطلاق په مهر او په طلاق باندې هم کیږی، جوهری د ابن السکیت نه د بضع معنٰی نکاح نقل کړې ده.

---

[1]) المعجم الكبير للطبراني: ۱۵۰/۲۴_۱۵۲، حديث اسماء بنت عميس، رقم (۳۹۰_۳۹۱)، وايضا اخرجه السيوطي في الخصائص الكبرى: ۸۲/۲، باب ردالشمس بعد غروبها)_
[2]) لم اجده في مطبوعاته، والله اعلم بالصواب)_
[3]) لم اجده فقي مطبوعاته، والله اعلم بالصواب)_
[4]) فتح الباري: ۲۲۱/۶)_
[5]) فتح الباري: ۲۲۲/۶)_
[6]) الحاوي في سيرة الامام الطحاوي، ص: ۱۳، ددې بحث سره متعلق د مزيد وضاحت او تفصيل دپاره اوګورئ: نسيم الرياض في شرح الشفاء للقاضي عياض: ۳۸۳/۳_۳۸۶، وتعليقات حمدي عبد المجيد على المعجم الكبير: ۱۴۸/۲۴_۱۵۱، رقم (۳۹۰_۳۹۱))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**يقال: "مالك فلان بضع فلانة"** (۱)

"**ولما يبن بها**" كښې "لما" جازمه د "لم" په معنى كښې ده ليكن د لما په ذريعې سره ترينه تعبير اوكړې شو چې هغه ددې خبرې توقع هم لرى چې ورته د زفاف موقع به ملاو شى لكه سعيد بن المسيب عن ابى هريره رضي الله عنه د طريق نه چې كوم روايت امام نسائى او ابو عوانه او ابن حبان (۲) نقل كړې دې، د هغې الفاظ دادى:

"**لا يتبعنى رجل بنى دارا لم يسكنها أو تزوج امرأة ولم يدخل بها**" (۳)

بيا چې د عدم دخول كوم قيد لګولې شوې دې ددې نه دا معلوميږى چې د دخول نه پس به معامله ددې برعكس وى او ددې دواړو خبرو مينځ كښې چې كوم فرق دې نو هغه پټ نۀ دې، اګرچه د دخول نه پس هم د بعضې خلقو زړونه په كورونو كښې بانده وى ليكن بهرحال هغه حالت به نۀ وى كوم چې د دخول نه مخكښې وى ځكه چې په دې صورت كښې خو په ذهن باندې بس ښځه سوره وى. (۴) والله اعلم

**قوله: ولا أحد بنى بيوتاً ولم يرفع سقوفها:** نۀ داسې سړې چې هغۀ كور جوړ كړې وى ليكن د هغې چت ئې اچولې نۀ وى.

مطلب دادې چې داسې سړې دې هم ماسره په سفر كښې نۀ ځى چې د كور په جوړولو او تعمير كښې مشغول وى او د هغې نه مكمل فارغ شوې نۀ وى بلكه څۀ كار باقى پاتې وى د مسلم شريف (۵) او د مسند احمد (۶) په روايت كښې د سقوفها په ځائې سُقُفها راغلې دې، دواړه صيغې د جمع دې، دغه شان د شيخينو او د مسند احمد روايتونه به خپل مينځ كښې په معنى كښې موافق شى، حافظ رحمه الله د سين فتحه او د قاف سكون سره ضبط وهم ګرځولې دې. (۷) په دې صورت كښې به لفظ مفرد وى.

**قوله: ولا أحد اشترى غنما أو خلفات وهو ينتظر ولادها:** نۀ داسې سړې چې هغۀ چيلئ يا حاملې اوښې اخستلې وى او د هغې د لنګون انتظار كوى

**د خلفات معنوى تحقيق: خلفات. بفتح الخاء المعجمة وكسر اللام وفتح الفاء** د **خلفة** جمع ده، حاملې

---

(۱) الصحاح للجوهرى: ۹۵، مادة "بضع"، فتح البارى: ۶/۲۲۲، وعمدة القارى: ۱۵/۴۳، وارشاد السارى: ۵/۲۰۶، وطرح التثريب: ۶/۱۹۷۶)_

(۲) صحيح ابن حبان: ۸/۱۴۹، كتاب السير، باب الغنائم وقسمتها، ذكر تحليل الله..... رقم (۴۷۸۷))_

(۳) فتح البارى: ۶/۲۲۲)_

(۴) پورته حواله، وارشاد السارى: ۵/۲۰۶)_

(۵) صحيح مسلم، كتاب الجهاد، باب تحليل الغنائم لهذه الامة خاصة، رقم (۴۵۵۵))_

(۶) مسند الامام احمد: ۲/۳۱۸، مسند ابى هريرة رضي الله عنه، رقم (۸۲۲۱))_

(۷) فتح البارى: ۶/۲۲۲، وطرح التثريب: ۶/۱۹۷۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوښې ته ونیلې شی.البته بعضې وخت کښې د اوښې نه علاوه په نورو څناورو باندې هم ددې اطلاق کیږی.(۱)

او کلمه د او چې د غنما او خلفات مینځ کښې ده،دا د تنویع دپاره ده.بیا دلته غنماً مطلق ذکر کړې شوې دې او ددې صفت حمل غالباً حذف کړې شوې دې.ددې وجه یا خو داده چې دویمه کلمه یعنی خلفات په دې باندې دلالت کوی.په دې صورت کښې د غنما ترجمه به هم داوی چې حامله چیلئ.دویمه وجه دا هم کیدې شی چې غنم دلته مطلق دې د څۀ زیاتی وصف نه بغیر،یعنی صرف چیلئ.په دې صورت کښې به ددې د مطلق بیانولو توجیه دا وی چې په چیلئ کښې د برداشت ماده کمه وی.دا ډیره زر ویریږی.دغه شان ددې د ضائع کیدو ویره وی.په خلاف د اوښې دلته خو د حمل د ضائع کیدو ویره وی چې چرته حمل ضائع نۀ شی.ځکه چې په عربو کښې د نومې اوښې اهمیت وو.(۲)

بعضې شارحینو "أو" د شك دپاره ګرځولې دې لیکن حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چې دا صرف د یو احتمال په درجه کښې ده.معتمد د تنویع دپاره کیدل دی ځکه چې د ابویعلی(۳) محمد بن العلاء نه د روایت الفاظ دا دی، "ولا رجل له غنم أو بقر أو خلفات" دلته خو دا او په تنویع باندې صراحةً دلالت کوی(۴)او ولادد ولد یلد ولادة مصدر دې،د واو کسرې سره.(۵)

**ددې کسانو د منع کولو حکمت:** ځنګه چې تاسو اوکتل چې حضرت یوشع علیه السلام درې قسمه خلق خپل ځان سره د تلو نه منع کړل او وې فرمائیل، "لایتبعنی......"نو ددې حکمت دا وو چې په جهاد کښې به د هغوی توجو تقسیم شوې وه،ذهن به ئې په دغه کارونو کښې انختې وو.ددې وجې نه مهلب رحمه الله فرمائی چې په دې حدیث شریف کښې ددې خبرې دلیل دې چې ددنیا فتنې انسان لره بې صبره او بې حواسه کوی،مثلاً هغه سړې چې نزدې وخت کښې ئې وادۀ کړې وی،د خپلې بی بی سره د نزدیکت خواهشمند هم وی،د هغې د دیدار کولو مشتاق وې نو داسې سړې که چرته جهاد ته هم لاړ شی نو ددۀ زړۀ به د واپس کیدو په فکر کښې وی.(۶)

---

(۱) فتح البارى:۶/۲۲۲،وعمدة القارى:۱۵/۴۳)_
(۲) فتح البارى:۶/۲۲۲،وطرح التثریب:۶/۱۹۷۷)_
(۳) لم اجده فی مسند ابی یعلی،وانما عزاه الیه الحافظ رحمه الله علیه .فی الفتح:۶/۲۲۲)_
(۴) فتح البارى:۶/۲۲۲)_
(۵) پورته حواله،وطرح التثریب:۶/۱۹۷۷)_
(۶) وضاح بن اسماعیل خپلې محبوبې ته په خطاب کولو کښې دا مضمون په دې بیتونو کښې بیان کړې دې

ذرنیی ما امـمـن بنـات نعش ... مـن الطیف الـذی ینـتـاب لیـلا
ولکـن ان اردت فهـیـجینا ... اذا رمقت بـاعینهـا سهـیـلا (دیوان الحماسة۱۰۹)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شیطان به دې د عبادت نه بې فکره کړی په کوم عبادت کښې چې دې مشغول دې او ددهٔ په زړهٔ کښې به ویره واچوی هم دا حال د دنیا د نور ساز و سامان دې.(۱)

او امام نووی رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث شریف نه د اخبره معلومه شوه چې اهم امور د داسې کسانو په ذمه باندې لګول پکار دی چې فارغ وی، ددې کارونو دپاره وخت ورکولې شی، اهم کارونه دداسې کسانو په ذمه باندې لګول پکار نهٔ دی چې د هغوی زړهٔ ددې کارونو نه علاوه په نورو کارونو کښې مشغول وی ځکه چې دغه کارونه به ددهٔ عزم کمزورې کړی او کوم کوشش چې دې کوی نو په هغې کښې به دغه نور کارونه د نقصان سبب وی.(۲) او علامه ابی رحمه الله په شرح مسلم کښې فرمائی چې زیاته واضحه خبره داده چې دا حدیث د "لا یقضی القاضی وهو غضبان" د قبیل نه دې لکه دا د تنقیح مناط(۳) باب نه دې.....او د حدیث شریف مطلب دادې چې ماسره دې داسې هیڅ یو سړې هم رانهٔ شی چې د هغهٔ زړهٔ په بله څهٔ معامله کښې مشغول وی.(۴) یاد ساتئ چې مذکوره حکم په هغه صورت کښې دې چې کله جهاد فرض کفایه وی ورنه د فرض عین کیدو په صورت کښې چې کله نفیرعام شی نو د هر سړی دپاره وتل ضروری دی، البته که حاکم وقت د څهٔ مصلحت د وجې نه څوک منع کړی نو جدا خبره ده.

**فغزا:** نو د غزوې دپاره روان شو.

یعنی هغه کسان ئې ځان سره کړل کوم کسانو کښې چې دا مذکوره صفات نهٔ وو د کومو ذکر چې حضرت یوشع علیه السلام کړې وو.(۵) چې "لایتبعنی رجل......" او جهاد دپاره روان شو.

**قوله: فدنا من القریة صلاة العصر أو قریباً من ذلك:** نو هغوی کلی ته نزدې شو د مازیګر په وخت کښې یا مازیګر ته نزدې

د کلی نه مراد (اریحا)(۶) د عبرانئ ژبې لفظ دې، د حضرت نوح علیه السلام په نسل کښې د یو سړی اریحا بن مالك بن ارفحشذ بن سام بن نوح طرفته ددې ښار نسبت کولو سره دې ته اریحا وئیلې شی، دا د شام په ښار اُردن (نن صبا مستقل مملکت دې) په نشیب کښې واقع وو، ددې

---

(۱) شرح ابن بطال:۲۷۷/۵،وفتح الباری:۲۲۳/۶،وطرح التثریب:۱۹۷۶/۶)_

(۲) شرح النووی علی مسلم:۸۵/۲،ومثله فی فتح الباری:۲۲۳/۶_۲۲٤،وشرح الکرمانی:۹۶/۱۳)_

(۳) وتنقیح المناط عند الاصولیین:_هو النظر والاجتهاد فی تعیین ما دل النص علی کونه علة من غیر تعیین،بحذف ما لا مدخل له فی الاعتبار مما اقترن به من الاوصاف،و ذلک مثل قول النبی صلی الله علیه وسلم للاعرابی الذی قال:هلکت یا رسول الله_ما صنعت؟.....انظر الموسوعة الفقهیة:۷۷/۱٤،مادة تنقیح المناط)_

(٤) شرح الابی علی مسلم:۵۸/۵،احادیث اباحة الغنائم لهذه الامة.....)_

(۵) فتح الباری:۲۲۲/۶)_

(۶) اریحا بالفتح،ثم الکسر ،وباء ساکنة،والحاء المهملة،والقصر_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د بيت المقدس مينځ كښې د يو ورځ مشكل غريز سفر فاصله ده،دا د حموى د زمانې خبره ده،دلته جبارين قوم آباد وو،چې د هغوى ذكر په قرآن كريم كښې هم راغلې دى(قالوا يموسى ان فيها قوما جبارين.....) (المائدة:٢٢) اوګوره معجم البلدان:١/١٦٥،مادة "اريحا")_ښار دې،دلته د ښار نه په قريه سره تعبير كړې شوې دې،امام حاكم رحمه الله(١)چې كوم روايت د حضرت كعب رضي الله عنه نه نقل كړې دې،په هغې كښې ددې كلى نوم اريحا راغلې دې.(٢)

د مسلم شريف په روايت كښې "فادنى للقرية"(٣)راغلې دې،په دې صورت كښې به مطلب دا شى چې هغوى خپل لښكر اريحا ښار ته نزدې كړو.(٤)

**جبابره قوم سره د حضرت يوشع عليه السلام جهاد:** د باب په حديث شريف كښې چې د كوم جهاد او قتال ذكر دې نو دا د جبابره قوم يا د جبارينو خلاف وو،ابن اسحاق وائى چې كله حضرت موسىٰ عليه السلام وفات شو او ددې واقعې څلويښت كاله تيرشو نوحضرت يوشع عليه السلام بنى اسرائيلو ته پيغمبر راواستولې شو او هغوى بنى اسرائيلو ته اووئيل چې اوس زۀ د الله تعالىٰ نبى يم او ماته الله تعالىٰ جبابره قوم سره د جهاد كولو حكم كړې دې.نو بنى اسرائيلو ددوى تصديق اوكړو،په دوى ئې ايمان راوړو او د دوى په لاس ئې بيعت اوكړو.نو حضرت يوشع عليه السلام بنى اسرائيل ځان سره د اريحا طرفته بوتلل،دوى سره د ميثاق تابوت(٥)هم وو،هلته په رسيدلو سره دوى د اريحا ښار محاصره اوكړه او دا محاصره شپږ مياشتو پورې جارى وه.

د اوومې مياشتې په شروع كښې د حضرت يوشع عليه السلام ملګرو په يوځائې حمله اوكړه چې د هغې د وجې نه د جبارينو ټول قوم اوويريدۀ،په هغوى كښې وارخطائى خوره شوه او د ښار د پناه والا ديوال پريوتۀ.دغه شان دوى داخل شو او جبابره ئې ښۀ قتل كړل،دا د جمعة المبارك ورځ وه او د جبابره څۀ خلق ژوندى وو او جنګيدل،په دې دوران كښې نمر پريوتل شروع شو او د هفتې شپه په داخليدو شوه،په دې شپه كښې د دوى دپاره د قتال او د ښكار وغيره ممانعت وو،ددې صورت حال په ليدلو سره حضرت يوشع عليه السلام ته ويره شوه چې چرته مونږ كمزورې نۀ شو او جنګ د هفتې ورځې ته اونۀ رسى نو ددې وجې نه هغوى د الله تعالىٰ

---

(١) المستدرك للحاكم:٢/١٤٠،كتاب قسم الفئ،رقم (٢٦١٨)،والمعجم الاوسط للطبرانى:٦/٣٥٣،من اسمه محمد،رقم (٦٦٠٠))_

(٢) فتح البارى:٦/٢٢٢)_

(٣) صحيح مسلم،كتاب الجهاد،باب تحليل الغنائم لهذه الامة خاصة،رقم (٤٥٥٥))_

(٤) فتح البارى:٦/٢٢٢،وطرح التثريب:٦/١٩٧٨)_

(٥) د ميثاق د تابوت نه مراد هغه تابوت دې په كوم كښې چې سكينه،د حضرت موسىٰ او هارون عليهما السلام همسا او د هغې تختو لرګى وو كومې چې حضرت موسىٰ عليه السلام د خپل قوم د غوا د بچى په عبادت باندې د ليدلو په وخت كښې ماتې كړې وې،دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دې.هناك اقوال اخرى ايضا.انظر تفسير القرطبى:٣/٢٤٩)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دربار عاليه کښې دعا اوکړه، "اللهم اردد الشمس على......"(١)

**قوله: فقال للشمس: انك مامورة، وأنا مامور، اللهم احبسها علينا، فحبست حتى فتح الله عليهم:** نو حضرت يوشع عليه السلام نمر ته په خطاب کولو کښې اووئيل چې ته هم مامور ئې او زه هم مامور يم. ائې الله! دا نمر زمونږ د پاره اودرئ نو نمر اودرولې شو تردې چې الله تعالى هغوى ته په جبابره قوم باندې فتح نصيب کړه.

مطلب دادې چې کله يوشع عليه السلام اوليدل چې نمر پريوځى او دشمن تردې وخته پورې پوره ختم شوې نه دې نو هغوى نمر ته خطاب اوکړو او وې فرمائيل چې ته هم مامور ئې او زه هم مامور يم، تا ته د عام عادت مطابق د پريوتلو د پاره د الله تعالى حکم دې او ما ته دا حکم دې چې د "هفتې" په ورځ جنګ اونه کړم لکه د حاکم په روايت کښې د دې سبب هم موجود دې، حضرت کعب رضي الله عنه فرمائى:

"انه وصل الى القرية وقت عصر يوم الجمعة، فكادت الشمس أن تغرب ويدخل الليل"(٢)

د وأنا مامور هم دا معنى ده او د دواړو مامورانو مينځ کښې هم دا فرق دې چې جماداتو ته امر ته د تسخير (مسخر کيدو) دې او عاقلانو ته امر د تکليف (مکلف کيدو) دې.(٣)

**نمر ته د خطاب کولو حقيقت:** دلته حضرت يوشع عليه السلام چې نمر ته کوم خطاب اوکړو نو دا يا په حقيقت باندې محمول دې چې الله تعالى په نمر کښې دا صلاحيت پيدا کړې وو چې په هغه کښې تميز او ادراک راغلې وو او د حضرت يوشع عليه السلام په خبرو باندې پوهيدلو. يا دا په مجاز باندې محمول دې چونکه دا خبره هغوى ته معلومه شوه چې نمر د خپل عام عادت نه اړول صرف د خرق عادت په طور باندې ممکن دى، د دې وجې نه هغوى په زړه کښې د دې خبرې سوچ اوکړو چې ته هم مامور ئې او زه هم مامور يم، د دې نه پس هغوى په ژبې سره اوفرمائيل چې، "اللهم احبسها علينا"

حافظ رحمه الله فرمائى(٤) چې د دويم احتمال تائيد د هغې روايت نه هم کيږى کوم چې د حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله نه روايت دې، په هغې کښې دى:

"اللهم، انها مامورة، وانى مامور، فاحبسها على، حتى يقضى بينى وبينهم، فحبس الله عليه"(٥)

"ائې الله! دې هم مامور دې، زه هم مامور يم نو دې د ډوبيدو نه بند کړه، تردې چې زما او د جبابره قوم مينځ کښې څه فيصله اوشى نو الله تعالى نمر د ډوبيدو نه منع کړو". د دې روايت

---

(١) عمدة القارى: ٤٣/١٥، وکتاب الاسماء المبهمة: ٣٣٢/٥)_

(٢) لم اجدها فى المستدرک، وانما قاله الحافظ: ٢٢٢/٦)_

(٣) فتح البارى: ٢٢٣/٦)_

(٤) پورته حواله، وانظر کذلک طرح التثريب: ١٩٧٨/٦)_

(٥) صحيح ابن حبان: ١٤٩/٨، کتاب السير، باب الغنائم وقسمتها.....رقم (٤٧٨٧))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نه د "وأنا مامور" د ارشاد وضاحت كيږي.(۱) بهرحال دواړه احتمالات ممكن دي او راجح دويم احتمال دې. والله اعلم

د باب په روايت كښې "اللهم احبسها علينا" راغلې دې كوم چې مطلق دې او د امام احمد په روايت كښې مقيد راغلې دې چې "اللهم احبسها على شيئاً" چې دا نمر هغه وخت پورې منع كړې كوم وخت پورې چې زمونږ ضرورت دې چې هغه پوره شي او ښار فتح شي.(۲)

**د نمر منع كيدو په كيفيت كښې اختلاف:** لكه څنګه چې په روايت كښې راغلي دي چې نمر د ډوبيدو نه منع كړې شو ليكن ددې كيفيت څۀ وو؟ په دې كښې د حديث د عالمانو اختلاف دې، په دې سلسله كښې راجح قول هغه دې كوم چې ابن بطال رحمه الله وغيره اختيار كړې دې چې د نمر حركت رو شوې وو، د هارون بن يوسف امادى په ترجمه كښې راغلي دي چې دا واقعه د حزيران په مياشت (غالباً جون) كښې په څوارلسم تاريخ باندې پيښه شوې وه، دا ورځ ډيره اوږده وى.(۳) (په انګريزى مياشتو كښې د جون ۲۲ تاريخ د كال په ورځو كښې د ټولو نه اوږده ورځ وى، كيدې شى چې دا هم دغه ورځ وى) والله اعلم

**قوله: فجمع الغنائم، فجاءت ـ يعني النار ـ لتاكلها، فلم تطعمها:** نو حضرت يوشع عليه السلام غنيمتونه جمع كړل دې دپاره چې هغه يعنى اور راشى او دا اوخورى ليكن هغې اور غنيمتونه او نۀ څكل (خوړل خو لرې خبره ده)

"يعني النار" جمله تفسيريه ده، دا د يو راوى له طرفه ده، په دې كښې د جاءت د فاعل وضاحت كړې شوې دې. بيا دلته "فلم تطعمها" وئيلې شوې دې او لم تاكلها نۀ دې وئيلې شوې څكه چې لتاكلها سره به موافقت شوې وو نو دا مبالغه ده څكه چې د طعم معنى ده څكل او د اكل معنى ده خوړل، مطلب دادې چې راتلونكې اور د غنيمتونو نه څكل هم اونۀ كړل، خوړل خو لرې خبره ده، ددې وجې نه ددې جملې "فلم تطعمها" معنى د لم تذق طعمها ده، ددې مثال په قرآن كريم كښې هم موجود دې.(۴)

ارشاد مبارك دې: ﴿ومن لم يطعمه فانه منى﴾ چې حضرت طالوت عليه السلام بنى اسرائيلو ته اووئيل چې كوم كس دې نهر ته د اوبو څكلو دپاره لاس نزدې نۀ كړى نو هغه زما ملګرې دې او څوك چې ددې خلاف كار اوكړى نو هغۀ سره زما هيڅ تعلق نشته

---

(۱) فتح البارى: ۶/۲۲۳)_

(۲) پورته حواله، والمسند للامام احمد: ۲/۱۸، مسند ابى هريرة (۸۲۲۱))_

(۳) فتح البارى: ۶/۲۲۳، وابن بطال: ۵/۲۷۸، والكرمانى: ۱۳/۹۶، وطرح التثريب: ۶/۱۹۷۸)_

(۴) البقرة ۲۳۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله**: **فقال: ان فیکم غلولاً**: نو حضرت یوشع علیه السلام اوفرمائیل چې بیشکه په تاسو خلقو کښې غلول دې

غلول د غنیمت په مال کښې خیانت کولو ته وئیلې شی[1]

**قوله**: **فلیبایعني من کل قبیلة رجل فلزقت ید رجل بیده فقال: فیکم الغلول،فلیبایعني قبیلتك،فلزقت ید رجلین أو ثلاثة بیده،فقال: فیکم الغلول**: نو د هرې قبیلې نه دې یو سړې زما په لاس باندې بیعت اوکړی نو د یو سړی لاس د هغوی لاس پورې انختلو،وې فرمائیل چې خیانت هم تاسو خلقو کړې دې،ددې وجې نه اوس دې ستاسو قبیله زما په لاس باندې بیعت اوکړی.نو د دوو یا دریو کسانو لاسونه انختل،یوشع علیه السلام اوفرمائیل چې خیانت هم تاسو خلقو کړې دې.

د **فلزقت** نه مخکښې دواړو ځایونو کښې حذف دې،چونکه د کلام سیاق په دې باندې دلالت کوی، ددې وجې نه دا جمله حذف کړې شوه،یعنی **فبایعوه** چې هغوی بیعت اوکړو......نو دا واقعه پیښه شوه،[2]دلته په روایت کښې "**رجلین او ثلاثة**" راغلې دې،د ابویعلی[3]په روایت کښې "**رجل او رجلین**" دې.د بیعت دوران کښې د څو کسانو لاس انختۀ نو په دې کښې شك دې، البته د سعید بن المسیب رحمه الله په روایت کښې یقین سره "**رجلین**" راغلې دې،[4] چې د دوو کسانو لاس انختلې وو.[5]

ابن المنیر رحمه الله فرمائی چې د هغوی په وخت کښې د خیانت معلومولو طریقه هم دا وه.[6]

---

[1]) عمدة القاری:۴۳/۱۵،وفتح الباری:۲۲۳/۶،وشرح الکرمانی:۹۶/۱۳)_

[2]) فتح الباری:۲۲۳/۶)_

[3]) لم اجده فی مسند ابی یعلی،وانما قاله الحافظ فی الفتح)_

[4]) صحیح ابن حبان:۱۴۹/۸،کتاب السیر،باب الغنائم وقسمتها.....رقم (۴۷۸۷))_

[5]) فتح الباری:۲۲۳/۶)_

[6]) یوه عجیبه واقعه:دلته علامه قسطلانی رحمه الله یو واقعه ذکر کړې ده،کومه چې د مستند او ثقه راویانو نه روایت ده،فرمائی چې په مدینه منوره کښې یو حمام وو،په هغې کښې به ښځو ته غسل ورکولې شو،هغې کښې یو ځل یو ښځه راوستلې شوه،هغې ته غسل ورکولې شو چې یو بله ښځه تخت ته راغله او اودریدله او مرده ښځې ته ئې اووئیل ائې زناکارې او د هغې ښځې په شرم ګاه ئې لاس هم اووهلو چې په هغې ځائې باندې وینختلو،هغې ښځې او نورو ښځو ډیرې چغې اووهلې چې په څۀ طریقې سره دا لاس لرې شی لیکن داسې اونۀ شو.دا معامله د مدینې منورې والی ته بیان کړې شوه نو هغوی د مدینې منورې فقهاؤ سره مشوره اوکړه نو یو کس رائې ورکړه چې لاس دې ترینه کټ کړې شی.دویم اووئیل چې د مړې ښځې ددغه ځائې نه دې غوښه کټ کړې شی ځکه چې بهرحال د مړ انسان په مقابله کښې د ژوندې حرمت زیات دې.د مدینې منورې والی اووئیل چې ترڅو ما د ابوعبید(امام مالك)سره مشوره کړې نۀ وی نو هیڅ قسم حکم جاری کولې نۀ شم نو د امام مالك طرفته قاصد واستولې شو نو هغوی اوفرمائیل چې مۀ د ښځې لاس کټ کوئ ..... [بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو کوم کس چې به خیانت گر او دهوکه باز وو نو د بیعت کولو په وخت به د هغهٔ لاس انختلو په دې کښې به دې خبرې طرفته اشاره وه چې په دې لاس باندې د بل چا څهٔ حق دې چې ددهٔ نه اخستل پکار دی.یا دا داسې لاس دې چې دا وهل پکار دی او ددې لاس مالك خائن، لره قید کول پکار دی.تردې چې مذکوره حق خپل مالك ته واپس کړی.دا د هغې جنس نه دې د کوم ذکر چې په روایتونو کښې هم راغلې دې چې په قیامت کښې به لاس د خپل مالك خلاف گواهی ورکوی.()

"فیکم الغلول"نه پس د سعید بن المسیب رحمه الله په روایت کښې د هغې دواړو د جرم قبلول هم مذکور دی چې هغې دواړو اووئیل"فقالا:أجل،غللنا"()

**قوله: فجاؤا برأس مثل رأس بقرة من الذهب،فوضعوها،فجاءت النار فأكلتها:** نو هغوی د سرو زرو یو سر راوړو چې د غوا د سر برابر وو،هغه ئې کیخودلو، اور راغئ او هغه غنیمت ئې اوخوړهٔ.

مطلب دادې چې هرکله په هغوی باندې جرم ثابت شو نو هغوی د غوا د سر برابر یو سر راوړو چې د سرو زرو جوړ کړې شوې وو.هغه ئې راوړلو او نورو غنیمتونو سره ئې کیخودلو،اوس چونکه غنیمت مکمل راغئ نو راتلونکې اور هغه ټول غنیمت اوخوړلو کوم چې د قبولیت علامت وو.لکه څنګه چې وړاندې تیر شو چې د تیر شوې امتونو او انبیاء کرامو علیهم السلام خصوصیت دا وو چې په یو فراخه ځائې کښې به ئې غنیمت جمع کړو،د آسمان نه به اور راغئ او هغه به ئې اوسوزوو او که په هغې کښې به څهٔ قسم خیانت وو یا داسې څیز به ووچې حلال به نهٔ وو نو اور به هغې ته هیڅ هم نهٔ وئیل اودا به د نهٔ قبلیدو علامت گڼړلې شو.

دا حال د هغوی د قربانو هم وو،د څناور د قربانی کولو نه پس به اور راغئ او هغه به ئې اوسوزوو کوم چې به د الله تعالی په نزد قبول وو او چې کوم به قبول نهٔ وو نو هغه به په خپل

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]او مهٔ غوښنه کټ کوی، زما خیال خو دادې چې دا مړه او وفات شده ښځه په خپل حد کښې خپل حق غواړی،دې الزام لگوونکې ښځې(قاذفه)ته حد اولگوی:نو د هغوی په مشوره باندې عمل کولو سره د مدینې منورې والی په هغې ژوندۍ ښځې باندې حد جاری کړو،چې کله یو اتیا کوړې ورکړې شوې نو لاس هم هغه شان انختلې وو لیکن څنګه چې ورته اتیایمه کوړه ورکړې شوه او د حد قذف نصاب پوره شو نو د هغې ښځې لاس هم د مړې ښځې د بدن نه جدا شو!!!

علامه قسطلانی رحمه الله ددې واقعې د نقل کولو نه پس لیکی: فاما أن یکون مالک رحمه الله اطلع علی هذا الحدیث،فاستعمله بنور التوفیق فی مکانه،و اما أن یکون وفق،فوافق:

وقد کان الزاق یدالغال بید یوشع تنبیها علی أنها ید علیها حق یطلب أن یتخلص منه،أو دلیلاً علی أنها ید ینبغی أن یضرب علیها،ویحبس صاحبها،حتی یؤدی الحق الی الامام،وهو من جنس الشهادة الید علی صاحبها یوم القیامة"اوگوری:ارشاد الساری:۲۰۷/۵.)_

) فتح الباری:۲۲۳/۶،وبمثله قال ابن بطال،انظر شرحه:۲۷۸/۵)_

) پورته حواله جات،وصحیح ابن حبان:۱۴۹/۸،کتاب السیر،باب الغنائم......رقم (۴۷۸۷))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حالت باندې باقي پاتې شو او اور به هغې ته هيڅ هم نه ونيل.[1]

**قوله**: ثم أحل الله لنا الغنائم، رأى ضعفنا وعجزنا، فأحلها لنا: بيا الله تعالى زمونږ دپاره غنيمتونه حلال کړل، هغه زمونږ عجز او کمزورئ ته او کتل نو دا ئې زمونږ دپاره حلال کړل يعنې الله تعالى امت محمديه سره د شفقت معامله اوکړه او په حکم کښې ئې تخفيف او سپکوالې اوکړو او غنيمتونه ئې د امت محمديه ﷺ دپاره حلال کړل، اوس دا امت د غنيمت مالونه خوړلې شي او دا ددې امت خصوصيت دې.

د نسائي شريف[2] په روايت کښې راغلي دي: "فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم عند ذلك: ان الله اطعمنا الغنائم رحمة رحمنا بها، وتخفيفا وخفف عنا"[3]

جمله د "رأى ضعفنا وعجزنا" جمله تعليليه او سببيه ده، په دې کښې د امت محمديه ﷺ دپاره غنيمتونه حلال ولې اوګرځولې شو، ددې خبرې علت او سبب په کښې بيان کړې شوې دې. د سعيد بن المسيب رحمه الله په روايت کښې نور هم وضاحت دې، په هغې کښې دی: "لما رأى من ضعفنا"[4] په دې جمله کښې دې خبرې طرفته هم اشاره ده چې د الله تعالى په وړاندې د عاجزئ اظهار کول د فضل او د انعام سبب جوړيږي.[5]

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت**: ترجمة الباب سره ددې حديث شريف مناسبت په دې جمله کښې دې: "ثم أحل الله لنا الغنائم"[6]

## ⑨ باب: الغنيمة لمن شهد الوقعة

**د ترجمة الباب مقصد**: دلته د امام بخاري رحمه الله مقصد د ائمه ثلثه مذهب لره راجح ګرځول دی هغوی دا وائي چې کوم خلق په جهاد کښې شريك وی نو هغوی ته به د غنيمت په مال کښې حصه ملاويږي او کوم کسان چې شريك نه وی نو هغوی ته به په کښې حصه نه ملاويږي. بيا چې امام بخاري رحمه الله کومو الفاظو سره ترجمه قائمه کړې ده نو هغه د حضرت عمر رضي الله عنه د يو اثر الفاظ دی، چې هغوی د حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه ته د هغوی په تپوس کولو باندې راستولې وو. ددې نه ائمه ثلثه په خپل مذهب باندې استدلال کوی.[7]

---

[1] ) عمدة القاري: ۱۵/۴۳_۴۴، وشرح ابن بطال: ۵/۲۷۸، وطرح التثريب: ۶/۱۹۷۹)_

[2] ) سنن النسائي الكبرى: ۶/۳۵۲، كتاب التفسير، الانفال، قوله تعالى: (حلالا طيبا)، رقم (۱۱۲۰۹))_

[3] ) فتح الباري: ۶/۲۲۳، وعمدة القاري: ۱۵/۴۴، وشرح الكرماني: ۱۳/۹۶)_

[4] ) سنن النسائي: ۶/۳۵۲، كتاب التفسير.......قوله تعالى: (حلالا طيبا)، رقم (۱۱۲۰۹)، ومسند احمد: ۳/۲۳۲، مسند ابي هريرة من رواية همام بن منبه، رقم (۸۱۸۵) و: ۳/۲۳۸، رقم (۸۲۲۱))_

[5] ) فتح الباري: ۶/۲۲۳)_

[6] ) عمدة القاري: ۱۵/۴۴)_

[7] ) فتح الباري: ۶/۲۲۴)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا اثر امام عبدالرزاق صنعانی رحمه الله موصولاً په خپل مصنف کښې نقل کړې دې،[1] د دې نه علاوه امام بيهقى رحمه الله هم دا اثر مختلف طرق سره نقل کړې دې او د دې په پس منظر بيانولو کښې ئې يوه واقعه هم ليکلې ده، لکه طارق بن شهاب رحمه الله فرمائى:

"ان أهل البصرة غزوا أهل نهاوند[2] فامدوهم بأهل الكوفة، وعليهم عمار بن ياسر، فقدموا عليهم بعد ما ظهروا على العدو، فطلب أهل الكوفة الغينمة، وأراد أهل البصرة أن لا يقسموا لاهل الكوفة من الغنيمة، فقال رجل من بنى تميم لعمار بن ياسر: أيها الاجدع، تريد أن تشاركنا فى غنائمنا؟ قال: وكانت أذن عمار جدعت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم، فكتبوا الى عمر بن الخطاب، رضى الله عنه، فكتب اليهم عمر: "ان الغنيمة لمن شهد الوقعة"[3]

چې "اهل بصره اهل نهاوند سره جنګ اوکړو، د هغوی د مدد د پاره اهل کوفه روان شو او د دوی امير حضرت ياسر رضی الله عنه وو، اهل کوفه ميدان جنګ ته هغه وخت اورسيدل چې کوم وخت کښې اهل بصره په دشمن باندې غالب شوې وو، نو اهل کوفه په غنيمت کښې خپله حصه اوغوښتله او د اهل بصره خواهش دا وو چې اهل کوفه مونږ سره په تقسيم کښې شريك نۀ شى، نو په بنوتميم کښې يو سړى حضرت عمار بن ياسر رضی الله عنه ته په خطاب کښې اووئيل...... آيا تاسو زمونږ په غنيمتونو کښې نور خلق شريکول غواړئ......؟ نو هغې خلقو صورت حال حضرت عمر رضی الله عنه ته واستوو، او د حل باره کښې ئې پوښتنه اوکړه نو حضرت عمر رضی الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل چې د غنيمت حقدار هغه دې څوك چې په جنګ کښې شريك شوې وى".

د اصل مسئلې طرفته د تللو نه مخکښې په دې باندې ځان پوهه کړئ چې د غنيمت د استحقاق د پاره څو شرطونه دى، کوم چې لاندې ذکر کولې شى:

① مستحق صحيح او سالم وى، بيمار نۀ وى، مطلب دا دې چې د جنګ کولو صلاحيت لرى، ګډ، شل او نابينا وغيره نۀ وى.

② دارالحرب کښې دې د قتال په نيت سره داخل شوې وى، خواه وروستو بيا په جنګ کښې حصه واخلى يا وانخلى ليکن مقصد ئې قتال او دشمن سره جنګيدل وى.

③ سړې وى، په غنيمت کښې د ښځو څۀ حصه نشته، اګرچه په جنګ کښې شرکت اوکړى.

④ مسلمان وى، کافر د پاره د غنيمت په مال کښې څۀ نشته اګرچه په جنګ کښې شريك وى.[4]

---

[1] ) مصنف عبدالرزاق: ۳۰۲/۵_۳۰۳، کتاب الجهاد، باب لمن الغنيمة؟ رقم (۹۶۸۹)_

[2] ) د نهاوند غزوې سره متعلق تفصيل به په کتاب الجزية، باب ما الجزية کښې راشى_

[3] ) السنن الكبرى للبيهقى: ۹۸۶/، کتاب السير باب الغنيمة لمن شهد الوقعة، رقم (۱۷۹۵۳_۱۷۹۵٤)، وايضا عند ابن ابى شيبة: ٤۹/۱۸، کتاب السير، باب من قال: ليس له شئ اذا......، رقم (۳۳۹۰۰)_

[4] ) الموسوعة الفقهية: ۳۳۱/۳۱_۳۱۲، وبدائع الصنائع: ۹۵۰۲/، کتاب السير، فصل فى احکام الغنائم وما يتصل بها، وحاشية الدسوقى: ۵۰٤/۲، باب فى الجهاد، والمغنى: ۲۰۸/۹_۲۰۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د باب د حدیث شریف مسئله:** امام بخاری رحمه الله چې د کومې مسئلې د تشریح دپاره دلته دا باب قائم کړې دې نو د هغې تعلق پورته ذکر شوې دویم شرط سره دې او د مسئلې صورت دادې چې که د جنګ ختمیدو نه پس یو سړې یا یو لښکر د جنګ میدان ته راورسی نو آیا دوی به په غنیمت کښې حصه وی یا نه؟

نو ددې دوه صورتونه دی، یو اتفاقی دې او دویم صورت اختلافی دې.

اتفاقی صورت دادې چې مذکوره سړې یا لښکر د جنګ میدان ته داسې وخت کښې اورسی چې جنګ هم ختم شوې وی او د غنیمت د تقسیم عمل هم پوره شوې وی نو دوی له په غنیمت کښې څه حصه نشته. او اختلافی صورت دادې چې جنګ خو ختم شوې وی لیکن د غنیمت د تقسیمولو نه مخکښې دا سړې یا دا لښکر میدان جنګ ته اورسی نو د احنافو په نزد به دا سړې په غنیمت کښې شریك وی، دوی ته به هم حصه ملاویږی او د جمهورو په نزد به دوی ته په غنیمت کښې هیڅ هم نه ملاویږی.[1] د جمهورو دلیل د حضرت عمار رضی الله عنه هغه واقعه ده کومه چې اوس تیره شوه چې حضرت عمر رضی الله عنه په خپل خط کښې "الغنیمة لمن شهد الوقعة" لیکلې وو. او د دوی دویم دلیل د بخاری شریف او ابوداؤد شریف د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث دې، "أن النبی صلی الله علیه وسلم بعث أبان بن سعید بن العاص فی سریة قبل نجد، فقدم أبان بعد فتح خیبر، فلم یسهم له"[2]

**د احنافو دلیلونه:** په دې مسئله کښې د احنافو دلیلونه ډیر زیات دی، په هغې کښې مونږ یو څو دلته ذکر کوو.

① امام ابویوسف رحمه الله خپل سند سره د حضرت عمر رضی الله عنه په باره کښې روایت کړې دی چې هغوی حضرت سعد رضی الله عنه ته خط اولیکه چې "قد أمددتك بقوم، فمن أتاك منهم قبل أن تفنی القتلی، فأشرکه فی الغنیمة"[3] یعنی: "زهٔ د امداد په طور یو لښکر ستاسو طرفته درلیږم، د مقتولینو د ختمیدو نه مخکښې چې په هغوی کښې څوك هم تاسو ته دراورسی نو هغه په غنیمت کښې شریك کړئ".

② حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د حضرت عکرمه بن ابی جهل په سرداریٔ کښې د پنځو سوو کسانو یو لښکر د ابوامیه او د زیاد بن لبید بیاضی د مدد دپاره روان کړو، دا جماعت دوی ته هغه وخت اورسیدهٔ کله چې هغوی "نجیر"[4] فتح کړې وو نو هغوی دغه راتلونکې جماعت

---

[1]) الموسوعة الفقهیة: ۳۱۱/۳۱، غنیمة، شروط استحقاق الغنیمة)_

[2]) الحدیث، اخرجه البخاری فی الجهاد، باب الکافر یقتل المسلم.....رقم (۲۸۲۷)، والمغازی، باب غزوة خیبر، رقم (۴۲۳۷، و۴۲۳۹)، وابو داود فی سننه، کتاب الجهاد، باب فیمن جاء بعد الغنیمة لا سهم له، رقم (۲۷۲۳_۲۷۲۴))_

[3]) التلخیص الحبیر: ۱۰۸/۳، والمغنی: ۹۲۱۰/، واعلاء السنن: ۱۱۸/۱۲)_

[4]) قال الحموی: النجیر:.....حصن بالیمن_قرب حضر موت_منیع، لجا الیه اهل الردة....[بقیه برصفحه آئنده

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هم خپل ځان سره په غنیمت کښې شریك كړو(۱)

**د ائمه ثلثه د دلیلونو جوابونه**: د هغوی اولنې دلیل د "الغنيمة لمن شهد الوقعة والا اثر وو، ددې نه استدلال کول د څو وجوهاتو په بناء صحيح نۀ دې، هغه وجوهات لاندې ذكر كولې شى:

① ددې اثر په وقف او رفع کښې اختلاف دې او ددې موقوف كيدل راجح دى.(۲)

② احناف هم د حضرت عمر رضی اللہ عنہ د اثر نه استدلال کوی، چونکه اوس د هغوی نه روایت شده روایتونو کښې تعارض راغلې نو ددې وجې نه داحديث د احنافو خلاف حجت جوړيدې نۀ شى.

③ احناف ددې اثر مطلب دا اخلى چې په جنګ کښې څوك د قتال په نيت سره شريك شوې وى نو هغۀ ته به غنيمت کښې حصه ملاويږى، اوس ددۀ نيت د قتال وو يا نۀ وو نو ددې پته به څنګه لګى نو ددې دوه طريقې كيدې شى چې هغه د جهاد يا قتال دپاره د وتلو اظهار اوكړى، دهغې دپاره تيارې اوكړى اوددې عملى مظاهره هم اوكړى چې په جهاد کښې شريك شوې دې. دويم صورت دادې چې ددۀ وتل خو په بل څۀ غرض سره وو ليكن هلته تلو سره په جهاد كښې هم شريك شو لكه د اسونو په خيال ساتلو وغيره باندې مامور سرې، نو دۀ ته به دې صورت کښې په غنيمت کښې حصه ملاويږى چې په قتال کښې هم شريك شوې وى، صرف په ميدان جنګ کښې ددۀ موجود كيدل د غنيمت د حاصلولو دپاره كافى نۀ دى.(۳)

د ائمه ثلثه دويم دليل د حضرت ابان بن سعيد بن العاصى رضی اللہ عنہ واقعه ده، ددې واقعې نه ددې حضراتو استدلال کول ددې وجې نه صحيح نۀ دى چې دا د خيبر واقعه ده كوم چې فتح كيدو سره په دارالاسلام کښې بدل شوې وو او د باب د مسئلې تعلق د دارالحرب سره دې، په دارالاسلام کښې دغه شان مدد دپاره رارسيدونكو خلقو ته په اتفاق سره په غنيمت كښې حصه نۀ وركړې كيږى.(۴)

دويم طرفته هم دې خيبر سره متعلق د حضرت ابوموسىٰ اشعرى رضی اللہ عنہ واقعه ده كومه چې وړاندې راځى،(۵) په هغې کښې دا راغلې دى چې كله هغوى د خپل قوم ملګرو سره چې

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] مع الاشعث بن قيس فى ايام ابى بكر، رضی اللہ عنہ .فحاصره زياد بن لبيد البياضى،حتى افتتحه عنوة،وقتل من فيه،واسر الاشعث بن قيس،وذلك فى سنة ۱۲للهجرة....."انظر معجم البلدان:۵/۲۷۲،باب النون والجيم)_

(۱) التلخيص الحبير:۱۰۸/۳،والسير الكبير:۱۱۲/۳،مع شرحه للسرخسى،باب كيفية قسمة الغنيمة.....رقم الباب (۱۰۵)،وللاستزادة انظر اعلاء السنن:۱۱۸/۱۲_۱۲۸)_

(۲) اعلاء السنن:۱۲۰/۱۲،كتاب السير،باب اذا لحق عسكر الاسلام مدد.......والهداية مع البناية: ۱۴۳/۷، كتاب السير،باب الغنائم وقسمتها)_

(۳) اعلاء السنن:۱۲۱/۱۲،وفتح القدير:۲۲۶/۵_۲۲۷،كتاب السير،باب الغنائم وقسمتها)_

(۴) اعلاء السنن:۱۲۱/۱۲)_

(۵) الحديث،اخرجه البخارى فى فرض الخمس،باب ومن الدليل على ان الخمس.....[بقيه برصفحهٴ آينده...

دهغوی تعداد پنځوس زره وو او د حضرت جعفربن ابی طالب ﷺ ملګرو، کوم چې نجاشی سره مقیم وو، سره د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو دا عین هغه وخت وو کوم وخت چې نبی ﷺ د خیبر د فتح کولو نه فارغ شوې وو، نو نبی ﷺ دوی هم په غنیمت کښې شریك کړل او ددې حضراتو نه علاوه هغه کسان ئې په غنیمت کښې شریك نهٔ کړل کوم کسان چې په دغه موقع باندې حاضر نهٔ وو.

یو طرفته دا حدیث دې او دویم طرفته د حضرت ابان ﷺ واقعه، په دې دواړو کښې چونکه ظاهری تعارض دې نو ددې وجې نه د جمع بین الروایات طریقه اختیارولو سره احناف هم دا وائی چې د حضرت ابوموسیٰ اشعری ﷺ واقعه د غنیمت د تقسیمولو نه مخکښې ده او د حضرت ابان بن سعید ﷺ د واقعې تعلق د غنیمت د تقسیم نه پس وخت سره دې، په دې باندې د حدیث دا الفاظ واضح دلالت کوی چې، "تقدم أبان بعد فتح خیبر......"(۱) او د حضرت ابوموسیٰ اشعری ﷺ الفاظ خو دادی، "فوافیناه حین افتتح خیبر......"(۲) ددې وجې نه احناف حضرات د تفریق قائل دی او د دوی په مذهب کښې په دواړو واقعاتو باندې عمل کیږی.(۳). والله اعلم بالصواب

ددې نه پس د باب حدیث شریف ته اوګورئ.

۲۹۵۷ :(۴) حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ عُمَرُ - رضی الله عنه لَوْلاَ آخِرُ الْمُسْلِمِينَ مَا فُتِحَتْ قَرْيَةٌ إِلاَّ قَسَمْتُهَا بَيْنَ أَهْلِهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خَيْبَرَ.[ر: ۲۲۰۹]

## رجال الحدیث

① صدقة: دا ابوالفضیل صدقه بن الفضل مروزی رحمه الله دې. ددوی تذکره په کتاب العلم، "باب العلم والعظة باللیل" کښې تیره شوې ده(۵)

② عبدالرحمن: دا عبدالرحمن بن مهدی بصری رحمه الله دې(۶)

---

....بقیه ازحاشیه گذشته] لنوائب المسلمین ما سال هوازن.....رقم (۳۱۳۶))_

(۱) الحدیث اخرجه البخاری، وابو داود، مر تخریجه آنفا)_

(۲) صحیح بخاری، کتاب فرض الخمس، باب ومن الدلیل علی ان الخمس.....رقم (۳۱۳۶))_

(۳) اعلاء السنن: ۱۲۲/۱۲، دغه شان اوګورئ، کشف الباری، کتاب المغازی: ۴۴۷_۴۴۸)_

(۴) قوله: قال عمر ﷺ: الحدیث، مر تخریجه فی کتاب الحرث والمزارعة، باب اوقاف اصحاب النبی ﷺ وارض الخراج.....)_

(۵) کشف الباری: ۳۸۸/۴)_

(۶) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة، باب فضل استقبال القبلة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ **مالک**: دا امام دارالهجرة مالک بن انس رحمه الله دې.د دوی حالات په "بدء الوحی" کښې راغلي دی.[1]
④ **زید بن أسلم**: دا زید بن اسلم رحمه الله دې.د دوی ترجمه په کتاب الایمان، "باب کفران العشیر....." کښې راغلې ده.[2]
⑤ **اسلم**: دا ابو خالد اسلم رحمه الله دې چې د حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه مولی دې.[3]
⑥ **عمر**: د حضرت عمر رضی الله عنه حالات د بدء الوحی په "الحدیث الاول" کښې تیر شوې دی.[4]

**قال عمر رضی الله عنه: لولا آخر المسلمین ما فتحت قریة الا قسمتها بین أهلها، کما قسم النبی صلی الله علیه وسلم خیبر.**

حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چې که د راتلونکې (آئنده) مسلمانانو خیال نهٔ وو نو هر یو کلې یا ښار فتح کولو نه پس به مې د هغې اوسیدونکو کښې تقسیمولو لکه څنګه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خیبر زمکې سره کړې وو.
د بخاری شریف په روایت کښې دا اثر ډیر اختصار سره راغلې دې،د ابن ابی شیبه په روایت کښې نور هم تفصیل دې.اسلم فرمائی:
"سمعت عمر یقول: "والذی نفس عمر بیده، لولا أن یترک آخر الناس لا شئ لهم، ما افتتح علی المسلمین قریة من قری الکفار الا قسمتها سهمانا کما قسم رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر سهمانا، ولکنی أردت أن تکون جزیة تجری علیهم وکرهت أن یترک آخر الناس لا شئ لهم".[5]
دې حدیث شریف سره متعلق تفصیل به په کتاب الحرث والمزارعة کښې راشی.
**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت**: ابن المنیر رحمه الله فرمائی چې په ترجمه او د باب په حدیث کښې څهٔ مناسبت نشته،دا ځکه چې ترجمه د الغنیمة لمن شهد الوقعة ده او په باب کښې چې کوم حدیث ذکر کړې شوې دې نو د هغې مضمون د ترجمة الباب خلاف دې،په دې کښې خو ددې ذکر دې چې غنیمت د عامو مسلمانانو دپاره وقف دې او په مجاهدینو کښې به نهٔ تقسیمیږی،بلکه د آئنده راتلونکې مسلمانانو د مصلحتونو دپاره به وقف کیږی او تاسو خو وئیل چې غنیمت صرف د مجاهدینو دپاره وی،په دې کښې د بهر خلقو حصه نهٔ وی نو دلته خو خبره په عکس شوه؟
ددې اشکال جواب هم ابن المنیر رحمه الله ورکړې دې چې ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت په دې جمله کښې دې، "کما قسم رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر"

---

[1]) کشف الباری:۱/۲۹۰،الحدیث الثانی،تفصیل دپاره اوګورئ، کشف الباری:۲/۸۰_
[2]) کشف الباری:۲/۲۰۳_
[3]) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الزکاة،باب هل یشتری صدقته؟_
[4]) کشف الباری:۱/۲۳۹_
[5]) المصنف لابن ابی شیبة:۱۷/۵۱۰،کتاب السیر،فی قسمة ما یفتح.....رقم (۳۳۶۴۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې کښې امام بخاري رحمه الله د غنیمت فوراً د تقسیمولو ترجیح طرفته اشاره کړې ده چې غنیمت فوراً تقسیمول پکار دی، څنګه چې نبي ﷺ اوکړل لکه د نبي ﷺ دا کار ددې خبرې دلیل دې چې په موقع باندې کوم کس حاضر نۀ وی نو په موجوده غنیمت کښې به د هغۀ هیڅ حق نۀ وی، ددې وجې نه خو فوری د تقسیم عمل اختیارولې شی. اوس چې کوم کس بالکل په جنګ کښې شریک نۀ وی نو هغۀ ته خو په طریقه اولی سره حصه ملاویدل پکار نۀ دی.[1] والله اعلم

دا د امام بخاري او د ائمه ثلثه رائې ده، وړاندې تفصیل تیر شوې دې، دواړو طرفونو ته دلیلونه دی، البته د احنافو د مذهب په سلسله کښې څۀ فراخی شته کوم چې د سابقه تفصیل نه وضاحت سره معلومیږی.

## ⑩ بَابُ: مَنْ قَاتَلَ لِلْمَغْنَمِ، هَلْ يَنْقُصُ مِنْ اَجْرِهِ؟

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاري رحمه الله مقصد دلته دا بیانول دی چې یو سړې د غنیمت په نیت سره قتال کوی نو ددۀ څۀ حکم دې؟ په دې قتال باندې دۀ ته اجر ملاویږی یا نۀ؟ که اجر ملاویږی نو څومره به ملاویږی؟ پوره یا ناقص؟

په دې مسئله کښې د عالمانو اختلاف دې. یو رائې د جمهورو ده او یو مؤقف د بعضې حضراتو دې. ظاهراً خو دا معلومیږی چې ددې سړی اجر به کم شی لیکن جمهور علماء دا فرمائی چې دې سره هیڅ فرق نۀ پریوځی. اوګورئ کله چې د نبي کریم ﷺ نه تپوس اوکړې شو چې یو سړې د غنیمت دپاره قتال کوی او دویم د بهادرئ دپاره او دریم د ریاکارئ دپاره نو په دوی کښې فی سبیل الله کوم یو دې؟ نو نبي کریم ﷺ اوفرمائیل، "من قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا فهو فی سبیل الله" نبي ﷺ دا ئې اونۀ فرمائیل چې که ددۀ نیت د غنیمت وی نو دې په فی سبیل الله کښې داخل نۀ دې.

اوس یو سړې د اعلاء کلمة الله دپاره قتال کوی او ورسره ورسره ئې په زړۀ کښې د مال غنیمت خیال هم دې نو دې به د کال او د پوره اجر مستحق وی او ددۀ په اجر کښې به هیڅ کمې نۀ راځی. امام ابن جریر طبري رحمه الله د امت د جمهور عالمانو نه هم دا نقل کړې دی.[2] دغه شان علامه قاضی ابوبکر ابن العربي رحمه الله هم په احکام القرآن کښې ددې وضاحت کړې دې.[3] ددې حضراتو دلیل هغه روایت دې کوم چې امام ابوداؤد رحمه الله په خپل "سنن" کښې نقل کړې دې، حضرت عبدالله بن حواله رضی الله عنه فرمائی:

"بعثنا رسول الله صلی الله علیه وسلم لنغنم علی أقدامنا، فرجعنا، فلم نغنم شیئاً، وعرف الجهد فی وجوهنا،

---

[1] ) فتح الباری: ۶/۲۲۵)_
[2] ) فتح الباری: ۶/۲۸، وهو قول ابن المنیر کذلک، انظر فتح الباری: ۶/۲۲۶)_
[3] ) احکام القرآن لابن العربی: ۲/۳۸۳، سورة الانفال، الآیة: ۷، المسالة الثالثة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فقام فينا، فقال: اللهم، لا تكلهم الى فاضعف عنهم، ولا تكلهم الى انفسهم فيعجزوا عنها، ولا تكلهم الى الناس فيستاثروا عليهم"[1]

نبی کریم ﷺ مونږ د غنیمت د وصولولو دپاره په پیدل لښکر کښې واستولو لیکن مونږ واپس شو او مونږ ته څۀ غنیمت ملاو نۀ شو یعني په مقصد کښې کامیاب نۀ شو، نبی ﷺ زمونږ د مخونو نه زمونږ په مشقت او تکلیف باندې پوهه شو نو د خطبې دپاره (د تسلي په طور) اودریدلو، په خطبه کښې ئې اوفرمائیل، اې الله دوی ماته مۀ حواله کوه ځکه چې زۀ د دوی د مدد او نصرت کولو نه عاجز یم، نۀ دوی خپلو ځانونو ته حواله کړې چې دوی به د خپل نصرت او مدد نه عاجز راشی او مۀ دوی هغه خلقو ته حواله کړې چې هغه خلق به دوی باندې خپلو ځانونو ته ترجیح ورکړی".

په دې حدیث شریف کښې وضاحت دې چې نبی ﷺ دا حضرات د غنیمت د مال د حاصلولو دپاره لیږلې وو، ددې نه معلومه شوه چې اعلاء كلمة الله سره که د مال غنیمت نیت هم وی نو بیا هم په اجر کښې څۀ کمې نۀ واقع کیږی.[2]

۲۹۵۸: [3] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى الأَشْعَرِي رضي الله عنه قَالَ قَالَ أَعْرَابِي لِلنَّبِي صلى الله عليه وسلم الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ، وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُذْكَرَ، وَيُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ، مَنْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَالَ «مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ» [ر: ۱۲۳]

## رجال الحديث

① **محمد بن بشار**: دا محمد بن بشار رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم......" کښې تیره شوې ده.[4]

② **غندر**: دا محمد بن جعفر رحمه الله دې چې په "غندر" باندې مشهور دې. د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې راغلې دی.[5]

③ **شعبه**: دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبة بن الحجاج بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب المسلم من سلم المسلمون......" کښې راغلې ده.[6]

---

[1]) سنن ابى داود، كتاب الجهاد، باب فى الرجل يغزو: يلتمس الاجر والغنيمة، رقم (۲۵۳۵))_

[2]) فتح البارى: ۶/۲۹)_

[3]) قوله: ابو موسى الاشعرى رضي الله عنه": الحديث، مر تخريجه فى كتاب العلم، باب من سال وهو قائم عالما جالسا، كشف البارى: ۴/۵۱۰)_

[4]) كشف البارى: ۳/۲۵۸)_

[5]) كشف البارى: ۲/۲۵۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ **عمرو**: دا عمرو بن مره رحمه الله دی.[1]

⑤ **ابووائل**: دا مشهور تابعی ابو وائل شقیق بن سلمه رحمه الله دی. د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله......" کښې بیان کړې شوې دی.[2]

⑥ **ابوموسی اشعری**: د حضرت ابوموسی اشعری (عبدالله بن قیس) رضی الله عنه حالات په کتاب الایمان، "باب أی الاسلام أفضل؟" کښې راغلې دی.[3]

**خبرداری**: د باب د حدیث شریف تشریح وړاندې په کتاب العلم،[4] او کتاب الجهاد،[5] کښې تیره شوې ده.

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت**: دلته ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت د علامه عینی رحمه الله د وینا مطابق په "**الرجل یقاتل للمغنم**" کښې دی.[6]

## ⑪ باب: قسمة الامام ما یقدم علیه، ویخبأ لمن لم یحضره أو غاب عنه

**د ترجمة الباب مقصد**: علامه ابن المنیر رحمه الله فرمائی چې په خلقو کښې چې دا مشهوره شوې ده چې "**الهدیة لمن حضر**" چې هدیه به صرف هغه چا ته ملاویږی څوك چې په مجلس کښې شریك وی. امام بخاری رحمه الله ددې خبرې تردید کوی او دا فرمائی چې کوم خلق موجود نه وی او امام د هغوی دپاره هدیه اوساتی نو په دې کښې هیڅ حرج نشته.[7]

لیکن د ابن المنیر رحمه الله دا رائې بې ځایه او بې محله ده، دا ددې وجې نه چې امام بخاری رحمه الله دا وئیل غواړی چې امام المسلمین ته کوم مال د کافرانو نه حاصل شی لکه مال د غنیمت، مال فئ او جزیه وغیره نو امام ته په دې کښې پوره اختیار حاصل دې، چرته چې مناسب ګڼړی نو خرچ کولې شی، په حاضرینو کښې تقسیمول غواړی نو په حاضرینو کښې دې تقسیم کړی او که د حاضرینو نه علاوه په غائب خلقو کښې تقسیمول غواړی نو هغوی ته دې ورکړی، چاته چې غواړی نو ورکولې شی. علامه عینی رحمه الله فرمائی: "**حاصل المعنی یقسم**

---

[1] ) کشف الباری:۱/۶۷۸)_

[2] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان، باب تسویة الصفوف عند الاقامة وبعدها)_

[3] ) کشف الباری:۲/۵۵۹)_

[4] ) کشف الباری:۱/۶۹۰)_

[5] ) کشف الباری:۴/۵۱۱_۵۱۵)_

[6] ) کشف الباری، کتاب الجهاد:۱/۱۷۳_۱۷۵، باب من قاتل لتکون کلمة الله.....)_

[7] ) عمدة القاری:۱۵/۴۵)_

[8] ) فتح البار[illegible] ۶/۲۲۶ [illegible] لی تراجم ابواب البخاری:۱۹۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مايقدم عليه بين الحاضرين والغائبين، بان يعطى شيئاً للحاضرين، ويخبأ شيئاً للغائبين"[1]

٢٩٥٩[2] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أُهْدِيَتْ لَهُ أَقْبِيَةٌ مِنْ دِيبَاجٍ مُزَرَّرَةٌ بِالذَّهَبِ، فَقَسَمَهَا فِي نَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ، وَعَزَلَ مِنْهَا وَاحِدًا لِمَخْرَمَةَ بْنِ نَوْفَلٍ، فَجَاءَ وَمَعَهُ ابْنُهُ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ، فَقَامَ عَلَى الْبَابِ فَقَالَ ادْعُهُ لِي. فَسَمِعَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - صَوْتَهُ فَأَخَذَ قَبَاءً فَتَلَقَّاهُ بِهِ وَاسْتَقْبَلَهُ بِأَزْرَارِهِ فَقَالَ «يَا أَبَا الْمِسْوَرِ، خَبَأْتُ هَذَا لَكَ، يَا أَبَا الْمِسْوَرِ، خَبَأْتُ هَذَا لَكَ». وَكَانَ فِي خُلُقِهِ شِدَّةٌ.

## رجال الحديث

① **عبدالله بن يوسف**: دا ابومحمد عبدالله بن عبدالوهاب حجبی رحمه الله دي.د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب ليبلغ الشاهد الغائب" کښې تیره شوې ده.[3]

② **حماد**: دا حماد بن زيد بن درهم رحمه الله دي.د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المعاصی من أمرالجاهلية" کښې تیر شوي دی.[4]

③ **ايوب**: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی رحمه الله دي.د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الايمان" کښې راغلې ده.[5]

④ **عبدالله بن ابی مليكه**: دا قاضی عبدالله بن ابی ملیکه تمیمی رحمه الله دي.د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب خوف المؤمن من أن يحبط......" کښې بیان کړې شوي دی.[6]

حضرت عبدالله بن ابی ملیکه رحمه الله فرمائی چې د نبی ﷺ په خدمت کښې څۀ قباګانې هدیه راغلې چې د ریښمو وې او د سرو زرو کار پرې شوې وو نو هغه تولې نبی ﷺ په بعضې صحابه کرامو کښې تقسیم کړې او په هغې کښې یو قباء جدا د حضرت مخرمه بن نوفل[7] دپاره کیخوده، حضرت مخرمه چې کله په خدمت اقدس کښې حاضر شو نو ورسره خپل ځوئې مسور[8] وو، هغه راغئ دروازه کښې اودریدلو او ځوئی ته ئې اووئیل، دوی راوبله

---

[1] ) عمدة القاری: ۴۵/۱۵.د دغه شان اوګوری، فتح الباری: ۲۲۶/۶، وارشاد الساری: ۲۰۹/۵)_

[2] ) قوله: عن عبدالله......":الحديث، مر تخريجه فی کتاب الهبة، باب کيف يقبض العبد والمتاع؟)_

[3] ) کشف الباری: ۱۳۸/۴)_

[4] ) کشف الباری: ۲۱۹/۲)_

[5] ) کشف الباری: ۲۶/۲)_

[6] ) کشف الباری: ۵۴۸/۲)_

[7] ) د حضرت مخرمه بن نوفل رضی الله عنه د حالاتو دپاره اوګوری، کتاب الهبة، باب کيف يقبض العبد والمتاع؟)

[8] ) دحضرت مسوربن مخرمه رضی الله عنه دحالاتودپاره اوګوری، کتاب الوضوء، باب استعمال فضل وضوء الناس)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

(يعني نبي ﷺ) نبي ﷺ ئې آواز واوريدلو نو قباء ئې راواخسته او دوی سره ملاو شو او د هغې بتڼ ئې دوی ته مخامخ کړې او وې فرمائيل ائې ابو المسور! اما دا قبا ستاسو دپاره پټه کيخودلې وه او د هغوی په طبيعت کښې څۀ سختی وه.

**قوله: أن النبي صلى الله عليه وسلم أهديت له أقبية من ديباج مزردة بالذهب:** په اکثرو نسخو کښې دغه شان "مزردة بالذهب" راغلې دې، ددې معنی مونږ پورته بيان کړې ده چې د سرو زرو کار پرې شوې وو، په اصل کښې تزريد وائی د زرې د حلقو خپل مينځ کښې ملاويدلو ته، يوبل کښې داخليدل، (۱) البته ابوذر چې د مستملی نه کوم روايت نقل کړې دې نو په هغې کښې مزررة دې يعنی د تزرير نه دې په دې صورت کښې به معنی دا شی چې په دې قباء باندې د سرو زرو تنړئ لګيدلې وې ځکه چې د تزرير معنی ده بتڼ لګول، (۲).

**ادعه لی:** دا د حضرت مخرمه رضی الله عنه کلام دې، د دوی مخاطب دلته حضرت مسور رضی الله عنه دې هغوی خپل ځوی ته دا اووئيل چې لاړ شه او نبي ﷺ ته آواز اوکړه چې زۀ راغلې يم. په يو روايت کښې دی، مسور وائی چې ما ته دا خبره نامناسبه ښکاره شوه او ما د ناخوښئ اظهار اوکړو چې دغه شان نبي ﷺ رابلل نامناسب دی او ښۀ خبره نۀ ده. نو د هغوی پلار حضرت مخرمه رضی الله عنه اووئيل چې ائې ځويه! په دې کښې د بد منلو (نامناسب والي) څۀ خبره نشته، نبي ﷺ نۀ ناراضه کيږی ځکه چې هغوی مبارك جبار نۀ دی. (۳)

ددې حديث شريف متن سره متعلق نور بحثونه په کتاب اللباس او کتاب الادب وغيره کښې راغلې دی. (۴)

**قوله: وَرَوَاهُ ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ أَيُّوبَ. قَالَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم أَقْبِيَةٌ. تَابَعَهُ اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ :** او دغه شان اسماعيل بن عليه (۵) هم د ايوب نه روايت کړې دې. او حاتم بن وردان (۶) په سند بيانولو کښې د عن المسور..... اضافه هم کړې ده.

---

(۱) مجمع بحار الانوار: ۴۲۲/۲، باب الزای مع الراء، مادة زرر"، والقاموس الوحيد، مادة زرد")_

(۲) مجمع بحار الانوار: ۴۲۲/۲، باب الزای امع الراء، مادة زرر"، والقاموس الوحيد، مادة زرر"، وارشاد الساری: ۲۰۹/۵، وعمدة القاری: ۴۵/۱۵)_

(۳) ارشاد الساری: ۲۰۹/۵، وعمدة القاری: ۴۵/۱۵)_

(۴) کشف الباری، کتاب اللباس: ۱۶۴، وکتاب الادب: ۵۲۶_۵۲۸)_

(۵) د اسماعيل بن ابراهيم بن مسلم ابن عليه حالات په کشف الباری: ۱۲/۲، کتاب الايمان کښې تير شوي دی_

(۶) د حاتم بن وردان د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الشهادات، باب شهادة الاعمی وامره.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د مذکوره تعلیقاتو مقصد:** په دې عبارت باندې د پوهیدلو نه مخکښې دا زده کړئ چې د باب حدیث شریف لره د ایوب سختیانی نه روایت کوونکی کسان درې دی، حماد بن زید، اسماعیل بن علیه او حاتم بن وردان او د درې واړو په روایت کښې په ارسال او وصل کښې اختلاف دې، لکه د باب په حدیث شریف کښې "ایوب عن ابن ابی ملیکة أن النبی صلی الله علیه وسلم......" راغلې دې او دا حدیث مرسل دې ځکه چې ابن ابی ملیکه تابعی دې، ددې نه علاوه د اسماعیل بن علیه چې کوم روایت دې نو هغه هم مرسل دې، دغه شان دا دواړه حضرات د روایت په مرسل کیدو باندې متفق شو، ددې دواړو روایتونه یو شان دی، او د حاتم بن وردان رحمه الله چې کوم روایت دې، په هغې کښې "ابن ابی ملیکة عن المسور بن مخرمة...." دې، دغه شان دا روایت موصول شو.

امام بخاری رحمه الله د ارسال اووصل ددې اختلاف دواضحه کولو دپاره داتعلیقات ذکرکړې دی.

**د مذکوره تعلیقاتو تخریج:** پورته چې امام بخاری رحمه الله کوم دوه تعلیقات ذکر کړې دی، اول د ابن علیه او دویم د حاتم بن وردان. د اسماعیل بن علیه رحمه الله تعلیق مصنف په کتاب الادب کښې موصولاً ذکر کړې دې.(۱) او د حاتم بن وردان رحمه الله تعلیق موصولاً په کتاب الشهادات کښې تیر شوې دې.(۲)

**تابعه اللیث، عن ابن ابی ملیکة.** [ر: ۲۴۵۹]

حضرت لیث بن سعد رحمه الله (۳) د ابن ابی ملیکه نه روایت کولو کښې د ایوب رحمه الله تابعدرای کړې ده.

**د مذکوره تابعدارئ مقصد:** پورته د تعلیقاتو په ضمن کښې چې مونږ څۀ بیان کړل نو هغه تاسو اوکتل، اوس سوال دا دې چې دا روایت مرسل دې، لکه څنګه چې د ابن علیه او د حماد بن زید روایت دې یا موصول دې لکه څنګه چې د حاتم بن وردان روایت دې او راجح کوم یو دې؟

امام بخاری دا متابعت ددې ترجیح او رجحان ښودلو دپاره ذکر کړې دې چې لیث بن سعد احفظ دې او د روایت موصول کیدل راجح دی، ابن حجر رحمه الله فرمائی:

"واعتمد البخاری الموصول لحفظ من وصله"(۴)

**د مذکوره متابعت تخریج:** امام بخاری حضرت لیث بن سعد رحمه الله مذکوره پورتنې متابعت په کتاب الهبه کښې موصولاً نقل کړې دې.(۵)

---

(۱) صحیح بخاری، کتاب الادب، باب المدارة مع الناس، رقم (۶۱۳۲)).

(۲) صحیح بخاری، کتاب الشهادات، باب شهادة الاعمی.....رقم (۲۶۵۷)).

(۳) د حضرت لیث بن سعد رحمه الله حالاتو دپاره اوګورئ، کشف الباری: ۳۲۴/۱، بدء الوحی).

(۴) فتح الباری: ۲۲۶/۶).

(۵) صحیح بخاری، کتاب الهبة، باب کیف یقبض العبد والمتاع؟ رقم (۲۵۹۹)).

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د اصيلي يو وهم:** ددې پوره تفصيل نه يو خبره دا هم واضحه شوه چې د اصيلي په نسخه كښې چې عن ابن أبي مليكة عن المسور مذكور دې نو دا وهم دې، صحيح او معتمد خبره داده چې د "حماد بن زيد عن أيوب عن ابن أبي مليكة" والا طريق مرسل دې.(١)

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت په دې جمله كښې دې، "جهات هذا لك"(٢) ددې نه د امام بخاري رحمه الله مدعى ثابتيږي چې په دې كښې هيڅ باك نشته او امام ته په دې كارونو كښې اختيار دې. والله اعلم بالصواب

## ⑫ باب: كيف قسم النبي ﷺ قريظة والنضير، وما أعطى من ذلك في نوائبه.

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاري رحمه الله د استفسار په طور دا فرمائي چې نبي كريم ﷺ د بنو قريظه او د بنو نضير نه حاصل شده مال غنيمت څنګه تقسيم كړې وو؟ اوس هغوى د تقسيم كيفيت خو بيان كړې نۀ دې كوم چې ترجمة الباب دې او په باب كښې ئې د حضرت انس رضي الله عنه حديث نقل كړو ددې نه معلومه شوه چې هغه مالونه نبي ﷺ په نوائبو او حاجاتو كښې خرچ كړل، ددې په ذريعې امام بخاري رحمه الله دا اوښودل چې په دې تصرفاتو كښې نبي ﷺ ته پوره او كلي اختيار حاصل وو، نبي ﷺ به چې چرته مناسب ګڼړله نو هلته به ئې خرچ كول.(٣)

۲۹۲۰ :(٤) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الأَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ -رضي الله عنه- يَقُولُ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- النَّخَلاَتِ حَتَّى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرَ، فَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ.[۳۸۰۶، ۳۸۹۴]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن ابى الاسود:** دا عبدالله بن حميد ابو الاسود بصري رحمه الله دې.(٥)

② **معتمر:** دا معتمر بن سليمان بن طرخان تيمي رحمه الله دې.

③ **ابيه:** د اب نه مراد حضرت سليمان بن طرخان تيمي رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره په كتاب العلم، "باب من خص بالعلم قوماً دون قوم......" كښې راغلې ده.(٦)

---

(١) فتح الباري: ٦/٢٢٦)_

(٢) فتح الباري: ٦/٢٢٧)_

(٣) عمدة القاري: ١٥/٤٦، وشرح الكرماني: ١٣/٩٩)_

(٤) قوله: سمعت انس.....": الحديث، مر تخريجه في الهبة، باب فضل المنيحة)_

(٥) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الاذان، باب بلا ترجمة، رقم (٧٩٨))_

(٦) كشف الباري: ٤/٥٩٠_٥٩٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳ **انس بن مالک**:د حضرت انس بن مالک حالات په کتاب الایمان، ''باب من الایمان أن یحب لاخیه.....''کښې تیر شوې دی.[1]

**د حدیث شریف ترجمه**:حضرت انس بن مالک فرمائی چې خلقو به د نبی دپاره د کهجورو اونې خاص کولې تردې چې نبی ته په بنوقریظه او بنو نضیر باندې فتح حاصله شوه،بیا وروستو نبی دا اونې واپس کړې.

**د حدیث شریف مختصره تشریح**:په دې حدیث شریف کښې د ''الرجل''نه انصار مراد دی او د ''افتتح''تعلق د بنوقریظه سره دې،ځکه چې بنونضیر خو جلا وطن کړې شوې وو لیکن مآلاً او مجازاً ددې نه هم په فتحې سره تعبیر کړې شوې دې.[2]

په مدینه منوره کښې چې کله مهاجرین داخل شو او خپل هر څه ئې پریخودل نو انصارو ورته حوصله ورکړه،د هغوی ئې هرقسم تعاون او مدد اوکړو،پټې وغیره ئې ورته حواله کړل، د کومو انصاری صحابه کرامو چې دوه دوه بیبیانې وې نو په هغوی کښې ئې یو یو ته طلاق ورکړو او هغه ئې خپل مهاجر وړرور ته په نکاح کښې ورکړه او د قربانئ او د ایثار لوئې لوئې مثالونه ئې پیش کړل.دا د انفرادی کارونو معامله وه،د اجتماعی کارونو دپاره چې د انصارو کوم باغونه وو نو په هغې کښې هغوی څۀ د نبی کریم دپاره خاص کړل،د هغې آمدن به د مسلمانانو په مصلحتونو،مصارفو،او اهل بیت باندې خرچ کیدله،دا اختصاص د هدیې په صورت کښې وو ځکه چې صدقه خو د نبی کریم او د اهل بیت دپاره حرامه ده.

دا سلسله جاری وه،تردې چې نبی کریم او صحابه کرامو ته د مدینې منورې په یهودیانو باندې فتح حاصله شوه نو نبی هغه اونې انصارو ته واپس کړې.[3] ددې کارونو تفصیلات په کتاب المغازی کښې بیان کړې شوې دی.[4]

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت**:ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت په دې معنی کښې دې چې په ترجمه کښې د تقسیم د کیفیت په باره کښې سوال وو،د هغې جواب په حدیث شریف کښې موجود دې چې د بنوقریظه د مالونو د تقسیم دپاره څۀ طریقه اختیار کړې شوه،نو جواب دا وو چې نبی د خپل خواهش مطابق په هغې کښې تصرف اوکړو او هغه ئې د مسلمانانو په مصلحتونو کښې خرچ کړل.[5]

---

[1]) کشف الباری:۲/۴)_

[2]) عمدة القاری:۱۵/۴۶)_

[3]) پورته حواله،وارشاد الساری:۵/۲۱۰،وشرح ابن بطال:۵/۲۸۶)_

[4]) کشف الباری،کتاب المغازی:۱۸۳،و:۳۰۲)_

[5]) عمدة القاری:۱/۴۶،وفتح الباری:۶/۲۲۷،وارشاد الساری:۵/۲۱۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑬باب: برکة الغازی في ماله حیا ومیتاً، مع النبی ﷺ وولاة الامر

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا فرمائی چې د غازی مال چې د غنیمت وغیره نه حاصل شوې دې، په هغې کښې د غازی په ژوند کښې هم برکت وی او د غازی د وفات نه پس په کښې هم برکت وی، خواه دې غازی دا جهاد د نبی ﷺ په ملګرتیا کښې کړې وی یا ئې د نبی ﷺ نه پس د هغوی نائبانو او خلیفه ګانو سره په ملګرتیا کښې کړې وی.(۱) د شهادت او د دلیل په طور امام بخاری رحمه الله د حضرت زبیر رضی الله عنه واقعه پیش کړې ده، چې د هغې تفصیل وړاندې راځی.

**یو خبرداری:** په ترجمة الباب کښې لفظ د برکة باء مؤحده سره دې، بعضې حضراتو په دې کښې تصحیف کړې دې او تاء مثناة سره ئې ترکه لوستلې دې، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چې د لفظ ترکه احتمال هم اګرچه شته ځکه چې په دې قصه کښې د حضرت زبیر رضی الله عنه د ترکې ذکر دې، لکه وړاندې چې کوم عبارت راځی، "حیا ومیتا مع النبی ﷺ و ولاة الامر" دا په دې خبره باندې دلالت کوی چې صحیح روایت د جمهور حضراتو دې یعنی باء مؤحده سره.(۲)

۲۹۶۱:(۳) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قُلْتُ لأَبِي أُسَامَةَ أَحَدَّثَكُمْ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ لَمَّا وَقَفَ الزُّبَيْرُ يَوْمَ الْجَمَلِ دَعَانِي، فَقُمْتُ إِلَى جَنْبِهِ فَقَالَ يَا بُنَيِّ، إِنَّهُ لاَ يُقْتَلُ الْيَوْمَ إِلاَّ ظَالِمٌ أَوْ مَظْلُومٌ، وَإِنِّي لاَ أُرَانِي إِلاَّ سَأُقْتَلُ الْيَوْمَ مَظْلُومًا، وَإِنَّ مِنْ أَكْبَرِ هَمِّي لَدَيْنِي، أَفَتُرَى يُبْقِي دَيْنُنَا مِنْ مَالِنَا شَيْئًا فَقَالَ يَا بُنَيِّ بِعْ مَالَنَا فَاقْضِ دَيْنِي. وَأَوْصَى بِالثُّلُثِ، وَثُلُثِهِ لِبَنِيهِ، يَعْنِي عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ يَقُولُ ثُلُثُ الثُّلُثِ، فَإِنْ فَضَلَ مِنْ مَالِنَا فَضْلٌ بَعْدَ قَضَاءِ الدَّيْنِ شَيْءٌ فَثُلُثُهُ لِوَلَدِكَ. قَالَ هِشَامٌ وَكَانَ بَعْضُ وَلَدِ عَبْدِ اللَّهِ قَدْ وَازَى بَعْضَ بَنِي الزُّبَيْرِ خُبَيْبٌ وَعَبَّادٌ، وَلَهُ يَوْمَئِذٍ تِسْعَةُ بَنِينَ وَتِسْعُ بَنَاتٍ. قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَجَعَلَ يُوصِينِي بِدَيْنِهِ وَيَقُولُ يَا بُنَيِّ، إِنْ عَجَزْتَ عَنْهُ فِي شَيْءٍ فَاسْتَعِنْ عَلَيْهِ مَوْلاَيَ. قَالَ فَوَاللَّهِ مَا دَرَيْتُ مَا أَرَادَ حَتَّى قُلْتُ يَا أَبَتِ مَنْ مَوْلاَكَ قَالَ اللَّهُ. قَالَ فَوَاللَّهِ مَا وَقَعْتُ فِي كُرْبَةٍ مِنْ دَيْنِهِ إِلاَّ قُلْتُ يَا مَوْلَى الزُّبَيْرِ، اقْضِ عَنْهُ دَيْنَهُ. فَيَقْضِيهِ، فَقُتِلَ الزُّبَيْرُ - رضى الله عنه - وَلَمْ يَدَعْ دِينَارًا وَلاَ دِرْهَمًا، إِلاَّ أَرَضِينَ مِنْهَا الْغَابَةُ، وَإِحْدَى عَشْرَةَ دَارًا بِالْمَدِينَةِ، وَدَارَيْنِ

---

(۱) هذا ماقاله الشيخ الكاندهلوی رحمه الله، واختاره شيخنا المبجل رحمه الله. انظر الابواب والتراجم للكاندهلوی: ۱/۲۰۶. وقال القسطلانی رحمه الله: والظاهر ان الغرض ذكر الكثرة التی نشات عن البركة فی تركة الزبير اذ خلف دينا كثيرا، ولم يخلف الا العقار المذكور، ومع ذلك فبورک فيه، حتى تحصل منه هذا المال العظيم". شرح القسطلانی: ۵/۲۱۳)_

(۲) فتح الباری: ۶/۲۲۸، وعمدة القاری: ۱۵/۴۷، وشرح القسطلانی: ۵/۲۱۰)_

(۳) قوله: عن عبدالله": الحديث، تفرد به البخاری، ولم يخرجه غيره، انظر تحفة الاشراف: ۳/۱۷۹، رقم (۳۶۲۶)، ومن مسند الزبير......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بِالْبَصْرَةِ، وَدَارًا بِالْكُوفَةِ، وَدَارًا بِمِصْرَ. قَالَ وَإِنَّمَا كَانَ دَيْنُهُ الَّذِي عَلَيْهِ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ يَأْتِيهِ بِالْمَالِ فَيَسْتَوْدِعُهُ إِيَّاهُ فَيَقُولُ الزُّبَيْرُ لاَ وَلَكِنَّهُ سَلَفٌ، فَإِنِّي أَخْشَى عَلَيْهِ الضَّيْعَةَ، وَمَا وَلِيَ إِمَارَةً قَطُّ وَلاَ جِبَايَةَ خَرَاجٍ وَلاَ شَيْئًا، إِلاَّ أَنْ يَكُونَ فِي غَزْوَةٍ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَوْ مَعَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ - رضى الله عنهم - قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ فَحَسَبْتُ مَا عَلَيْهِ مِنَ الدَّيْنِ فَوَجَدْتُهُ أَلْفَىْ أَلْفٍ وَمِائَتَىْ أَلْفٍ قَالَ فَلَقِيَ حَكِيمُ بْنُ حِزَامٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ يَا ابْنَ أَخِي، كَمْ عَلَى أَخِي مِنَ الدَّيْنِ فَكَتَمَهُ. فَقَالَ مِائَةُ أَلْفٍ. فَقَالَ حَكِيمٌ وَاللَّهِ مَا أُرَى أَمْوَالَكُمْ تَسَعُ لِهَذِهِ. فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللَّهِ أَفَرَأَيْتَكَ إِنْ كَانَتْ أَلْفَىْ أَلْفٍ وَمِائَتَىْ أَلْفٍ قَالَ مَا أُرَاكُمْ تُطِيقُونَ هَذَا، فَإِنْ عَجَزْتُمْ عَنْ شَىْءٍ مِنْهُ فَاسْتَعِينُوا بِي. قَالَ وَكَانَ الزُّبَيْرُ اشْتَرَى الْغَابَةَ بِسَبْعِينَ وَمِائَةِ أَلْفٍ، فَبَاعَهَا عَبْدُ اللَّهِ بِأَلْفِ أَلْفٍ وَسِتِّمِائَةِ أَلْفٍ ثُمَّ قَامَ فَقَالَ مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى الزُّبَيْرِ حَقٌّ فَلْيُوَافِنَا بِالْغَابَةِ، فَأَتَاهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ، وَكَانَ لَهُ عَلَى الزُّبَيْرِ أَرْبَعُمِائَةِ أَلْفٍ فَقَالَ لِعَبْدِ اللَّهِ إِنْ شِئْتُمْ تَرَكْتُهَا لَكُمْ. قَالَ عَبْدُ اللَّهِ لاَ. قَالَ فَإِنْ شِئْتُمْ جَعَلْتُمُوهَا فِيمَا تُؤَخِّرُونَ إِنْ أَخَّرْتُمْ. فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ لاَ. قَالَ قَالَ فَاقْطَعُوا لِي قِطْعَةً. فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ لَكَ مِنْ هَا هُنَا إِلَى هَا هُنَا. قَالَ فَبَاعَ مِنْهَا فَقَضَى دَيْنَهُ فَأَوْفَاهُ، وَبَقِيَ مِنْهَا أَرْبَعَةُ أَسْهُمٍ وَنِصْفٌ، فَقَدِمَ عَلَى مُعَاوِيَةَ وَعِنْدَهُ عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ وَالْمُنْذِرُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَابْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ لَهُ مُعَاوِيَةُ كَمْ قُوِّمَتِ الْغَابَةُ قَالَ كُلُّ سَهْمٍ مِائَةَ أَلْفٍ. قَالَ كَمْ بَقِيَ قَالَ أَرْبَعَةُ أَسْهُمٍ وَنِصْفٌ. قَالَ الْمُنْذِرُ بْنُ الزُّبَيْرِ قَدْ أَخَذْتُ سَهْمًا بِمِائَةِ أَلْفٍ. قَالَ عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ قَدْ أَخَذْتُ سَهْمًا بِمِائَةِ أَلْفٍ. وَقَالَ ابْنُ زَمْعَةَ قَدْ أَخَذْتُ سَهْمًا بِمِائَةِ أَلْفٍ. فَقَالَ مُعَاوِيَةُ كَمْ بَقِيَ فَقَالَ سَهْمٌ وَنِصْفٌ. قَالَ أَخَذْتُهُ بِخَمْسِينَ وَمِائَةِ أَلْفٍ. قَالَ وَبَاعَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ نَصِيبَهُ مِنْ مُعَاوِيَةَ بِسِتِّمِائَةِ أَلْفٍ، فَلَمَّا فَرَغَ ابْنُ الزُّبَيْرِ مِنْ قَضَاءِ دَيْنِهِ قَالَ بَنُو الزُّبَيْرِ اقْسِمْ بَيْنَنَا مِيرَاثَنَا. قَالَ لاَ، وَاللَّهِ لاَ أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ حَتَّى أُنَادِيَ بِالْمَوْسِمِ أَرْبَعَ سِنِينَ أَلاَ مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى الزُّبَيْرِ دَيْنٌ فَلْيَأْتِنَا فَلْنَقْضِهِ. قَالَ فَجَعَلَ كُلَّ سَنَةٍ يُنَادِي بِالْمَوْسِمِ، فَلَمَّا مَضَى أَرْبَعُ سِنِينَ قَسَمَ بَيْنَهُمْ قَالَ فَكَانَ لِلزُّبَيْرِ أَرْبَعُ نِسْوَةٍ، وَرَفَعَ الثُّلُثَ، فَأَصَابَ كُلَّ امْرَأَةٍ أَلْفُ أَلْفٍ وَمِائَتَا أَلْفٍ، فَجَمِيعُ مَالِهِ خَمْسُونَ أَلْفَ أَلْفٍ وَمِائَتَا أَلْفٍ.

## رجال الحديث

① **اسحاق بن ابراهيم:** دا اسحاق بن ابراهيم بن راهويه حنظلي مروزی رحمه الله دی.

② **ابواسامه:** دا ابواسامه حماد بن اسامه ليثی رحمه الله دی. ددې دواړو حضراتو تذکره تفصيل سره په کتاب العلم، "باب فضل من علم وعلم" کښې تيره شوې ده.[1]

[1] کشف الباری: ۳/۴۱۴_۴۱۷، و۴۲۸_۴۳۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ **هشام بن عروة**: دا هشام بن عروة بن زبیر قرشي رحمه الله دي.
③ **عروة بن زبیر**: دا عروة بن زبیر بن العوام قرشي رحمه الله دي.ددې دواړو حضراتو حالات
د "بدء الوحی" په "الحدیث الثانی" کښې تیر شوي دی.(١)
⑤ **عبدالله بن زبیر**، ⑥ **زبیر بن العوام** رضي الله عنهما: ددې دواړو حضراتو حالات تفصیل سره په کتاب
العلم، "باب اثم من کذب علی النبی ﷺ" کښې راغلي دی.(٢)
**قوله**: قال: لما وقف الزبیر یوم الجمل دعانی فقمت الی جنبه: حضرت عبدالله بن
زبیر رضي الله عنه فرمائي چې د جمل په ورځ چې کله زما والدصاحب حضرت زبیر رضي الله عنه د قتال دپاره
اودریدو نو هغوی زهٔ طلب کړم نو زهٔ د هغوی یو طرفته اودریدم.
**یوم الجمل(د جمل جنګ)**: د جمل واقعه د اسلامي تاریخ یوه دردناکه واقعه ده،په دې کښې
دواړو طرفونو ته جلیل القدر صحابه کرام رضی الله عنهم وو او دواړو طرف ته خلق په حق
باندې هم وو،هم دا د اهل سنت والجماعت عقیده ده،دې واقعې سره متعلق تفصیلات خو
به انشاء الله په کتاب الفتن کښې راشي،مونږ دلته ددې خلاصه ذکر کوو.
دا د ۳۶هجرئ مطابق ۶۵۷ءجمادی الاولی یا جمادی الثانیه او د حضرت علی رضي الله عنه د
خلافت واقعه ده،دا جنګ د حضرت علي رضي الله عنه د ملګرو او د حضرت عائشه رضي الله عنها د ملګرو
مینځ کښې وو،مسئله د حضرت عثمان رضي الله عنه د قصاص وه او د جنګ ځائې بصره وو.
حضرت عائشه رضي الله عنها د خپلو طرف دار کسانو سره د مکې مکرمې نه بصرې ته روانه شوه،
حضرت علی رضي الله عنه د مخکښې نه بصرې سره نزدې ښار کوفه کښې موجود وو،چې کله هغوی
د حضرت عائشې رضي الله عنها د لښکر په باره کښې واوریدل چې بصرې ته راروان دې نو هغوی هم د
کوفې نه لښکر راویستلو،تردې چې دواړه لښکرې مخامخ شوې او د ددواړو ډلو مینځ
کښې څو ځله مذاکرات هم اوشو،نزدې وه چې دا مذاکرات کامیاب شوې وو او حضرت
علی رضي الله عنه د دلیلونو په رڼړا کښې دویمه ډله قائل کړې وې لیکن هلاکت دې وی ابن سبا
یهودی او د هغهٔ خبیث ملګرو لره،دوی چونکه د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت ذمه دار
وو،ددې وجې نه دوی ته ویره شوه چې که دا دواړه ډلې خپل مینځ کښې ملاو شوې نو مونږ
به خامخا قصاص کولې شو نو دوی د حضرت علی رضي الله عنه ملګرتیا شروع کړه او موقع موندلو
سره ئې په اهل جمل یعنی د حضرت عائشې رضي الله عنها په لښکر باندې حمله اوکړه او ددې خبر
حضرت علی رضي الله عنه ته نهٔ وو،چې هغوی ته پته اولګیده نوتپوس ئې اوکړوچې دا شور دڅهٔ دې؟
نو څهٔ سبائی کسانو غلط بیانی اوکړه او وې وئیل چې فریق ثانی اچانك او په بې خبرئ
کښې مونږ باندې حمله کړې ده،هم دا حال دویم طرفته هم اوشو او دا حضرات د نهٔ غوښتلو
باوجود دجنګ میدان ته کوزشو اوسبایان په خپل سازش کښې کامیاب شو،لعنهم الله وخذلهم.

---

(١) کشف الباری:١/٢٩١،دغه شان اوګورئ،کشف الباری:٢/٤٣٢_٤٤٠)_
(٢) کشف الباری:٤/١٦٤_١٧٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د دوارو ډلو مينځ كښې خطرناك جنګ اوشو ،دغه وخت حضرت عائشه رضي الله عنها د جنګ په ميدان كښې موجوده نۀ وه او هغې ته د جنګ د شروع كيدو پته هم نۀ وه ،په دې كښې كعب بن مسور نومې تابعى د هغوى په خدمت كښې حاضر شو او د واقعى حال احوال نه ئې خبر كړه او ورته يې اووئيل چې مناسب دا معلوميږى چې تاسو په اوښ باندې سوره شئ او د جنګ د ميدان طرفته راشئ ،كيدې شى چې د صلح څۀ صورت پيدا شى.ددې په اوريدو سره حضرت عائشه رضي الله عنها په اوښ باندې سوره شوه او اووتله.ليكن د توقع نه خلاف خلق ددې په سورلئ ليدلو سره نور هم غصه شو ځكه چې د هغوى خيال دا وو چې دوى د جنګ ميدان ته د قائد او د سپه سالار په حيثيت سره تشريف راوړې دې.

حضرت عائشې رضي الله عنها چې كله اوليدل چې خلق په هيڅ شان باندې د جنګ بندولو دپاره تيار او آماده نۀ دى او مسلسل مرى نو هغې كعب بن مسور ته حكم اوكړو چې تۀ د اوښ مهار پريږده،قرآن مجيد پورته كړه او وړاندې ورشه او خلق د قرآن مجيد د فيصلې طرفته راوبله او ورته اووايه چې مونږ ته د قرآن فيصله منظوره ده،تاسو هم ددې فيصله اومنئ.

كعب وړاندې شو او اعلان ئې اوكړو نو د عبدالله بن سبا ملګرو پرې په يوځائې د غشو باران جوړ كړو او شهيد ئې كړو ،ددې نه پس د حضرت عائشې رضي الله عنها كسان نور هم غصه شو. برابر قتليدل ليكن هيڅ يو كس ئې د حضرت عائشې رضي الله عنها د اوښ مهار ته پرينخودۀ.

حضرت على رضي الله عنه ددې حالت په ليدلو سره پوهه شو چې ترڅو په ميدان جنګ كښې دا اوښ په نظر راځى نو د اور دا شعلې به هيڅ كله كمې نۀ شى نو هغوى خپلو كسانو ته حكم اوكړو چې په څۀ طريقې سره دا اوښ ختم كړئ ځكه چې ددې په پريوتلو سره به جنګ ختم شى.ددې په اوريدلو سره هغوى په دې كوشش كښې اولګيدل چې په څۀ طريقې سره دا اوښ راوغورځولې شى ليكن دويم طرفته اهل جمل هم غافل نۀ وو.هغوى د دويم فريق هروار منع كوو ،د اوښ مهار نيولو سره برابر جنګيدل،دغه شان په سوونو كسان د اوښ په مهار باندې شهيدان شو ،آخر كافى وخت پس يو سړى موقع موندلو سره د اوښ خپې په توره باندې اووهلې او د هغې خپې ئې پرې كړې،دغه شان اوښ په سينه باندې كيناستۀ.د اوښ په پريوتلو سره اهل جمل منتشر شو او د حضرت على رضي الله عنه لښكر د دوى محاصره اوكړه او محمد بن ابى بكر كوم چې دوى سره وو هغۀ ته ئې حكم اوكړو چې لاړ شه د خپلې خور حفاظت اوكړه،چې هيڅ قسمه تكليف ورته اونۀ رسى ،دغه شان دا جنګ خپل انجام ته اورسيدۀ.

دا اولنى جنګ وو چې دواړه ډلې په كښې مسلمانان وو ،ددې نه پس د فتنو دروازه كهلاؤ شوه.د جنګ ختميدلو نه څو ورځې پس د خلافت امور دوباره مرتب كولو دپاره حضرت على رضي الله عنه محمد بن ابى بكر ته حكم اوكړو چې د سفر تيارى اوكړه.نو په يكم رجب ۳۶هجرئ كښې د سفر د تيارى كولو نه پس حضرت على رضي الله عنه ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها د بصرې د څلويښت سردارانو د ښځو سره او د محمد بن ابى بكر سره د بصرې نه روانه كړه،څو پرلانګه فاصلې پورې قافلې سره په خپله هم لاړل،بيا ئې حضرات حسنين د حفاظت په غرض قافلې سره كړل،حضرت عائشه رضي الله عنها اول مكې مكرمې ته لاړه ،هلته ئې حج اوكړو او په محرم ۳۷ هجرئ كښې يې مدينې منورې ته تشريف راوړلو.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې جنګ کښې د دواړو ډلو په زرګونو کسان شهيدان شو ،چې د هغوی په تعداد کښې اختلاف دې،په شهيدانو کښې حضرت طلحه بن عبيدالله هم وو کوم چې په عشره مبشره کښې دې او حضرت زبير بن العوام رضي الله عنهما په کښې هم وو.حضرت عائشې رضي الله عنها به فرمائيل، "وددت أني مت قبل هذا اليوم بعشرين سنة" چې "اې کاش!د نن ورځ نه زۀ شل کاله مخکښې وفات شوې وې چې دا مې نۀ وو ليدلې"

دې جنګ ته جمل نوم ځکه ورکړې شو چې حضرت عائشه رضي الله عنها په دې جنګ کښې په يو لوئې اوبښ باندې تشريف فرما وه،د هغۀ نوم عسکر وو،دا حضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه د قبيله عرينه د يو سړی نه په دوه سوه ديناره اخستلې وو او دا د حضرت عائشې رضي الله عنها د سورلۍ دپاره مخصوص وو.(۱) أعاذنا الله من الفتن،ما ظهر منها وما بطن

**قوله: فقال: يا بني،لا يقتل اليوم الا ظالم أو مظلوم:** نو زما والد صاحب حضرت زبير ماته اووئيل،ائې ځويه!نن ورځ قتليدونکې به يا ظالم وی يا مظلوم.

**ددې جملې مختلف مطلبونه:** ددې جملې څو مطلبونه او معنې بيان کړې شوې دی.

(۱) علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی:

که هغوی قتل شو نو هغوی به په خپل خيال کښې مظلومان وی ليکن دويم فريق (مدمقابل) به ئې ظالمان ګڼړی ځکه چې هرفريق خپل ځان په حق باندې او دويم فريق په ناحقه باندې ګڼړلو او په دې کښې به ئې تاويل کولو.

او ددې کلام نه د حضرت زبير رضي الله عنه مقصد دادې چې صحابه چې د امت غوره خلق دی د هغوی خپل مينځ کښې قتال او جنګ کول د هغې خلقو په شان نۀ دی کوم چې د عصبيت په بنياد باندې قتال کوی يا باغيان دی يا هغه خلق چې د هغوی قاتلان او مقتولين دواړه به ظالمان وی،د هغوی په باره کښې خو د نبی صلى الله عليه وسلم صفا ارشاد مبارك دې، "اذا التقى المسلمان بسيفيهما فالقاتل والمقتول في النار" (۲) ځکه چې دلته خو د تاويل کولو ګنجائش بالکل نشته چې د هغې د وجې نه دا خلق د الله تعالى په نزد معذور اوګڼړلې شی.

او حضرت زبير،طلحه او د صحابه کرامو رضي الله عنهم جماعت چې د حضرت عائشې رضي الله عنها سره وتلې

---

(۱) د جنګ جمل تفصيلاتو،اسباب او نتيجې دپاره اوګورئ،عمدة القاري:۱۵/۴۹_۵۰،وفتح البارى: ۶/۲۲۹، والبداية والنهاية:۴/۷/۲۲۲_۲۴۱،سنة ۳۶هـ،والكامل لابن الاثير:۳/۹۹ _ ۱۴۹،وقعة الجمل، وشرح القسطلانی:۵/۲۱۰، تاريخ اسلام (اردو) از اکبرشاه نجيب آبادی:۱/۴۳۰_۴۴۶،طبع مکتبة العلم کراچی، وتاريخ الاسلام للذهبي:۲/۱۷۱،سنة ست وثلاثين،وقعة الجمل،الطبقة الرابعة)_

(۲) الحديث اخرجه البخارى،كتاب الايمان،باب (وان طائفتان من المؤمنين......) رقم (۳۱)،والديات،باب قول الله تعالى:(ومن احياها)،رقم (۶۸۷۵)،والفتن،باب اذا التقى المسلمان......رقم (۷۰۸۳)،ومسلم فى الفتن،باب اذا توجه المسلمان......رقم (۷۲۵۲_۷۲۵۵)،وابو داود،الفتن،باب النهى عن القتال فى الفتنة،رقم (۴۲۶۸)،والنسائى،تحريم الدم،باب تحريم القتل،رقم (۴۱۲۱_۴۱۲۲)،و(۴۱۲۵_۴۱۲۸))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وو نو د هغوی مطالبه خو دا وه چې د حضرت عثمان رضی الله عنه قاتلان دې گرفتار کړې شی او حد دې پرې جاری کړې شي،ښکاره خبره ده چې دا يو شرعی مطالبه ده او دا خلق هیڅکله او بالکل د حضرت علی رضی الله عنه سره د قتال کولو دپاره وتلې نهٔ وو ځکه چې په دې کښې دوه رائې نهٔ وې ځکه چې حضرت علی رضی الله عنه د خپلې زمانې په خلقو کښې د خلافت صحيح حقدار وو ،هم هغوی د لوئې امامت مستحق وو.

البته کار دا شوې وو چې د حضرت عثمان رضی الله عنه قاتلانو حضرت علی رضی الله عنه سره پناه اخستلې وه،د حضرت علی رضی الله عنه ملګرتيا به ئې کوله،د حضرت علی رضی الله عنه خپل خيال دا وو چې ترڅو د امت حالات برابر شوې او پرامن شوې نهٔ وی نو دا قاتلان جلاد ته حواله کول مناسب نهٔ دی،البته کله چې حالات پرسکون او برابر شی نو دا کار به هم اوکړې شی.ښکاره خبره ده چې دا دواړه ډلې په خپل خپل ځائې صحيح دی نو ددې وجې نه د دواړو ډلو مقتولين به مظلومان شمارلې شی نهٔ چې ظالمان.هم دا د اهل سنت والجماعت مذهب دې،والقاتل منهم والمقتول في الجنة ان شاء الله[1]

②علامه ابن التين السفاقسی رحمه الله فرمائی:مطلب دادې چې قتال کوونکی دوه قسمه خلق وی:صحابی او غيرصحابی نو په صحابی کښې خو تاويل کيدې شی ددې وجې نه هغه مظلوم دې او غيرصحابی چې ددنيا دپاره جنګ او قتال کوی نو هغه به ظالم وی.

"معناه:أنهم اما صحابي متاول فهو مظلوم،واما غير صحابي قاتل لاجل الدنيا فهو ظالم"[2]

**قوله: واني لا أراني الا ساقتل اليوم مظلوماً:** او زما د خپل ځان په باره کښې خيال دې چې نن به زهٔ ظلماً شهيد کيږم.

أراني د همزه ضمه لوستلې شی ددې معنی ده أظن يعنی زما خيال او ګمان دادې او د همزه فتحه هم لوستلې کيږی بيا به ددې معنی أعتقد وی يعنی زما يقين او اعتقاد دادې چې نن به زهٔ شهيد کيږم.[3]

د هغوی دا ګمان يا يقين پوره شو او عمرو بن جرموز نومې يو سړی پرې اچانک حمله اوکړه او شهيد ئې کړو ،داسې حال کښې چې دوی د جنګ د ميدان نه وتلې وو.[4] ددې تفصيل په کتاب العلم کښې تير شوې دې.[5]

**قوله: وان من أكبرهمي لديني ،أفترى يبقي ديننا من مالنا شيئاً؟:** او زما د

---

[1] ) شرح ابن بطال:۲۹۰/۵،وعمدة القاری:۵۱/۱۵)_

[2] ) شرح القسطلانی:۲۱۰/۵،وعمدة القاری:۵۱/۱۵،وفتح الباری:۲۲۹/۶)_

[3] ) عمدة القاری:۵۱/۱۵،وفتح الباری:۲۲۹/۶)_

[4] ) پورته حواله جات)_

[5] ) كشف الباری:۱۷۳/٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تولو نه لویه پریشانی زما قرض دی، ستا څۀ خیال دې، زمونږ دا قرض به زمونږ په مال کښې څۀ پریږدی؟

مطلب دادې چې دومره قرضونه چې ما د خلقو نه اخستلې دی.د هغې په ادا کولو کښې به ټول مملوکه مال خرچ شی، هغې کښې به څۀ پاتې شی؟

په لدینی کښې لام د تاکید دې او مفتوح دې او په افتری کښې همزه د استفهام ده او فعل مجهول دې، دا د افتعلن په معنی کښې دې او یبقی د ابقاء نه دې(افعال نه)نۀ چې د بقاء نه.[1]

**قوله: فقال: یابنی، بع مالنا، فاقض دینی، وأوصی بالثلث، وثلثه لبنیه-یعنی بنی عبدالله بن الزبیر، یقول: ثلث الثلث-فإن فضل من مالنا فضل بعد قضاء الدین فثلثه لولدك:** بیا ئې اووئیل ائې ځویه!زمونږ مال خرڅ کړه او زما قرض ادا کړه.او د ثلث(دریمې حصې)وصیت ئې اوکړو او په ثلث کښې به ثلث د هغوی یعنی د عبدالله بن زبیر(د مخاطب)د ځامنو دپاره وی، وې وئیل چې ثلث به په دریو حصو کښې تقسیم کړې او د هغې یو ثلث به خپل ځامنو ته ورکړې.که د قرض ادا کولو نه پس زمونږ په مال کښې څۀ بچ شو نو د هغې ثلث به ستا د ځامنو دپاره وی.

پورته ذکر شوې عبارت د مختلفو حضراتو په کلام باندې مشتمل دې، ددې وضاحت دادې چې د حضرت زبیر رضی الله عنه کلام دادې."یابنی، بع مالنا، فاقض دینی، فان فضل من مالنا فضل بعد قضاء الدین فثلثه لولدك" ددې مطلب دادې چې ائې ځویه!زما مال خرڅ کړه او زما قرض ادا کړه او د قرض ادا کولو نه پس که هم مال باقی بچ پاتې شو نو د هغې یو ثلث به د فقیرانو او مسکینانو دپاره وی، لیکن ددې ثلث ثلث به ستا د اولاد دپاره وی او "وأوصی بالثلث وثلثه لبنیه" دا د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه کلام دې.او"یعنی بنی عبدالله بن الزبیر یقول: ثلث الثلث" دا د یو راوی تفسیر او وضاحت دپاره راوړلې شوې جمله ده، چې په دې کښې راوی د "ثلثه لبنیه" وضاحت کړې دې.که ددې تفصیل خیال او لحاظ اونۀ ساتلې شی نو په عبارت باندې پوهیدل مشکل دی.

په دې عبارت کښې فثلثه کښې کوم ضمیر مجرور دې دا مطلقاً د ثلث طرفته راجع دې یعنی د ثلث ثلث ځکه چې وصیت خو مطلقاً د مال په ثلث کښې جاری کیږی.ددې برعکس امام مهلب رحمه الله دا ضمیر مجرور د فضل طرفته راجع کړې دې لیکن دا د اشکال نه خالی نۀ دې.[2]

بعضې حضراتو په فثلثه کښې لام تشدید سره لوستلې دې یعنی د اسم په ځائې ئې امر

---

[1]) عمدة القاری:۵۲/۱۵،وشرح القسطلانی:۲۱۱/۵)_

[2]) فتح الباری:۲۳۰/۶،عمدة القاری:۵۲/۱۵،وارشاد الساری:۲۱۱/۵،والکوثر الجاری:۱۱۱/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

گرځولې دي چې ددې مطلق ثلث درې حصې کول، حافظ دېته زيات اقرب وئيلې دی.(۱)

**قوله: قال هشام: وكان بعض ولد عبدالله قد وازى بعض بني الزبير، خبيب وعباد:** هشام وائی چې د عبد الله بن زبير بعضې ځامن د حضرت زبير رضی الله عنه د بعضې ځامنو هم عمر وو يعنې خبيب او عباد د هشام بن عروه دا قول د سابقه سند سره موصول دې.(۲)

علامه جوهری رحمه الله وازی په واو سره ليکل غلط او خلاف القياس ښودلې دی، هغوی دا وائی چې دا همزه سره آزی ليکل پکار دی، د باب د حديث شريف الفاظ په دهٔ باندې رد کوی چې دلته وازی واو سره دې، ددې معنٰی ده ساوی يعنی برابر کيدل.(۳)

**ددې جملې مطلب:** ① علامه مهلب رحمه الله فرمائی چې ددې دا معنٰی هم کيدې شی چې د حضرت عبدالله ځامن د حضرت زبير رضی الله عنه د ځامنو يعنی د خپلو ترونو په عمر کښې برابر شوې وو.

② او دا معنٰی هم کيدې شی چې د حضرت عبد الله ځامن د ميراث په حصه کښې د خپل ترونو يعنی د حضرت زبير رضی الله عنه د ځامنو برابر شوې وو يعنی هغوی ته هم دومره ملاؤ شوه لکه څومره چې ئې ترونو ته ملاؤ شوه.

دا دويم احتمال مهلب رحمه الله غوره گرځولې دې او فرمائی چې په دويم صورت کښې د حضرت زبير رضی الله عنه د اولاد د کثرت بيانولو هيڅ معنٰی نشته.ليکن نورو شارحينو اولنې احتمال راجح او دويم احتمال مرجوح ښودلې دې.(۴) لکه حافظ رحمه الله فرمائی چې دا احتمال د اعتراض او د اشکال نه خالی نهٔ دې ځکه چې دغه وخت پورې خو ميراث تقسيم شوې نهٔ وو، نهٔ د مال موروث څهٔ معلومه او معينه اندازه وه نهٔ د موصٰی به يعنی د ثلث اندازه وه.

ددې نه علاوه دا وينا "والا لم يكن لذكر كثرة أولاد الزبير معنى في الموازاة في السن"(۵) هم صحيح نهٔ ده ځکه چې مراد دا دې چې حضرت زبير رضی الله عنه د حضرت عبدالله رضی الله عنه اولاد ته خصوصيت سره بيان اوکړو او د نورو نوسو په مقابله کښې ئې هغوی ته زيات اهميت ورکړو، ددې وجه واضحه ده چې د حضرت عبد الله ځامن د لوئې عمر والا او د کورونو خاوندان شوې وو تردې چې په دې معامله کښې د ترونو برابر شوې وو نو حضرت زبير رضی الله عنه د خپل وصيت په ذريعې سره د مال څهٔ مقدار د خپلو نوسو دپاره هم مقرر کړو، دې دپاره چې د دوی د پلار حضرت عبدالله رضی الله عنه حصه زياته فراخه شی، دغه شان دوی په مالی معاملاتو کښې د خپل

---

۱) فتح الباری:۶/۲۳۰،وعمدة القاری:۱۵/۵۲،وارشاد الساری:۵/۲۱۱)_

۲) فتح الباری:۲۳۰،وارشاد الساری:۵/۲۱۱)_

۳) پورته حواله جات،والصحاح للجوهری:۴۰،مادة_ ازا"حرف الالف،والعمدة:۱۵/۵۲،والکوثر الجاری:۶/۱۱۲)

۴) فتح الباری۶/۲۳۰،وارشاد الساری:۵/۲۱۱،وشرح ابن بطال:۵/۲۹۱،والکوثر الجاری:۶/۱۱۲،وشرح الکرمانی:۱۳/۱۰۰)_

۵) قاله ابن بطال:۵/۲۹۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پلار حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه سره معاون او مددګار جوړ شي.(۱) والله اعلم بالصواب
"خبیب وعباد"د بدلیت یا د بعض نه د بیان د وجې نه مرفوع دی او دا د بعض تفسیر کوی.د مثال په طور صرف په دې دوو نومونو باندې اکتفاء اوکړې شوه.ورنه د حضرت عبدالله په اولاد کښې نور کسان هم وو چې په عمر کښې د ترونو برابر شوي وو.(۲) حافظ دلته دا هم وئیلې دی چې"خبیب وعباد"مجرور هم لوستلې کیدې شی چې دا د لفظ"بعض"نه بیان واقع شی.لیکن دلته د حافظ نه سهو شوې ده،علامه عینی وائی چې لفظ د "بعض"په حدیث شریف کښې دوه ځله راغلې دې،په هغې کښې یو مرفوع دې او دویم منصوب دې.دا دریم صورت د کوم ځائې نه راغئ؟دا خبره قسطلانی هم کړې ده.صحیح خبره داده چې دا دواړه نومونه مجرور هم لوستلې کیدې شی لیکن د ولد په اعتبار سره،کوم چې په"بعض ولد عبدالله......"کښې راغلې دی نۀ چې په اعتبار د بعض سره.(۳)
**خبیب:** دا خبیب بن عبدالله بن الزبیر بن العوام القرشی الاسدی المدنی رحمه الله دې.د دوی مور بی بی تماضر بنت منظور بن زبان الفزاریه ده.(۴)
دې د خپل والد عبدالله بن زبیر او د حضرت عائشه و کعب الاحبار رضي الله عنهم نه روایت کوی.د دوی نه په روایت کوونکو کښې د دوی ځوئې زبیر بن خبیب،یحیی بن عبدالله بن مالك،زهری او سلیمان بن عطاء وغیره شامل دی.(۵)
دوی په اهل علم او اهل ورع کښې وو،د دوی وررور مصعب بن عبدالله وائی:
"کان خبیب قد لقی کعب الاحبار،ولقی العلماء،وقرأ الکتاب وکان من النساك"(۶)
ابن حبان د دوی تذکره په کتاب الثقات کښې کړې ده.(۷)
علامه ذهبی رحمه الله فرمائی،"ناسك،صدوق،معنی بالعلم"(۸)
علامه مزی رحمه الله فرمائی،"وکان......عالماً بقریش،وکان طویل الصلوة،قلیل الکلام"(۹)

---

[1]) فتح الباری:۲۳۰/۶،وارشاد الساری:۲۱۱/۵،وکذا انظر الکوثر الجاری:۱۱۲/۶)_
[2]) عمدة القاری:۵۲/۱۵،وفتح الباری:۲۳۰/۶،وارشاد الساری:۲۱۱/۵)_
[3]) پورته حواله جات)_
[4]) تهذیب الکمال:۲۲۳/۸،البته ابن حبان (۲۱۱/۴) د دوی د مور نوم حنتمه بنت عبدالرحمن لیکلې دې کوم چې د مشهور قول خلاف دې_
[5]) تهذیب الکمال:۲۲۳/۸،وتهذیب التهذیب:۱۳۵/۳)_
[6]) تهذیب الکمال:۲۲۳/۸،وتهذیب التهذیب:۱۳۵/۳،وخلاصة الخزرجی:۱۰۴،من اسمه خبیب)_
[7]) الثقات لابن حبان:۲۱۱/۴)_
[8]) الکاشف:۳۷۱/۱،رقم (۱۳۷۶))_
[9]) تهذیب الکمال:۲۲۵/۸)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د بنو امیه خلیفه ولید بن عبد الملك د حضرت عمربن عبد العزیز طرفته یو خط واستوو ،کله چې عمر د مدینې منورې والی وو چې دهٔ ته سل کوړې ورکړه او قید کښې ئې واچوه.
حضرت عمربن عبد العزیز رحمه الله د حکم پوره والې اوکړو او په یو منګی کښې اوبه یخې کړې شوې او د یخنئ په موسم کښې یو سحر هغه اوبه په دهٔ باندې واړولې شوې چې د هغې د وجې نه دده بدن یخ شو او یخنی پرې راغله،هم دا عمل وروستو دده د مرګ سبب جوړ شو.
په جیل کښې چې کله دده تکلیف زیات شو نو حضرت عمربن عبد العزیز رحمه الله دې د جیل نه بهر کړو او په خپل کار باندې ډیر پښیمانه شو،او د خبیب خاندان دې د عمر بن مصعب بن زبیر کور ته منتقل کړو،دې دوران کښې چې کله د خبیب خاندان دهٔ سره نزدې ناست وو،د ماجشون سره د ملاقات کولو په غرض باندې راغلل،دا صاحب د حضرت عمربن عبد العزیز په ملګرو کښې وو،کله چې دې د مدینې منورې والی وو،کله چې دې دننه داخل شو نو عروه بن عبد الله بن زبیر اووئیل،کیدې شی ستاسو ملګری(عمربن عبد العزیز)ته تردې وخت پورې دده په مرګ کښې شك دې او نزدې ناستو کسانو عروه ته اووئیل چې څادر لرې کړئ او ورته د خبیب حالت اوښایئ.چې کله ماجشون د هغهٔ حالت اولیدهٔ ،دغه وخت خبیب وفات شوې وو نو هغه نیغ د حضرت عمر کور "درمروان"ته لاړو.
ماجشون وائی چې هلته په رسیدلو سره ما دروازه اوټکوله،بیا داخل شوم،د داخلیدو نه پس مې حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله په دې حالت کښې اولیدو چې هغه په دردزه کښې د مبتلا ښځې په شان کله کینی او کله پاسی،زما په لیدلو سره ئې اوفرمائیل چې څهٔ خبر دې راوړلې دې؟ما ورته اووئیل چې بنده(خبیب)خو مړ شو.نو هغه په زمکه باندې پریوتلو، بیا ئې سر اوچت کړو او وې وئیل انا لله وانا الیه راجعون.ددې حادثې اثر تول ژوند کښې په حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله باندې وو،ددې نه پس هغوی د مدینې منورې د ولایت نه استعفٰی ورکړه او د ګورنرئ وغیره د قبلولو نه منع شو.ددې نه پس که به دوی ته په یو داسې نیك کار باندې چا مبارك باد ورکوو کوم نیك کار چې به دوی جاری کړې وو نو دوی به فرمائیل،"فکیف بخبیب؟"!!چې ستاسو خبره خو صحیح ده لیکن زهٔ به د خبیب څهٔ کوم؟
حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله چې کله خلیفه جوړ شو نو هغوی آلِ زبیر بن عوام ته خصوصی طورباندې عطیات او تحفې ورکړې نو خلقو به وئیل چې دا د خبیب دیت دې.(۱)
د ابن حبان رحمه الله د قول مطابق د حضرت خبیب انتقال په۹۳هجرئ کښې اوشو(۲)هم دا رائې د ابن الاثیر رحمه الله هم ده او د زبیر بن بکار هم ده.(۳)
په اصحاب سته کښې صرف امام نسائی رحمه الله په سنن کبرٰی کښې د دوی په واسطې سره یو

---

۱) تهذیب الکمال:۸/۲۲۵_۲۲۶،وتهذیب التهذیب:۳/۱۳۵_۱۳۶)_
۲) الثقات:۴/۲۱۱)_
۳) الکاشف:۱/۳۷۱،والکامل فی التاریخ:۴/۲۷۸،سنة ثلاث وتسعین،ذکر عدة حوادث)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

روایت اخستلې دي.(۱) رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة.او د حضرت عباد بن زبیر رحمه الله حالات وړاندې تیر شوي دی.(۲)

**قوله: وله یومئذ تسعة بنین وتسع بنات:** دې ورځو کښې د دوی نهه ځامن او نهه لونړه وې.

په له کښې چې کوم ضمیر مجرور دې نو دا د زبیر طرفته راجع دې،دلته د امام کرمانی نه یو عجیبه تسامح شوې ده چې هغوی دا ضمیر د عبد الله طرفته راجع کړې دې.(۳) دا صفا غلطی ده،د حضرت عبدالله رضی الله عنه چې دغه وخت کښې کوم اولاد موجود وو،هغه خبیب، عباد، هاشم،ثابت او حمزه دی.(۴) د دوی د باقی اولاد پیدائش د حضرت زبیر رضی الله عنه د شهادت نه پس شوې دې.(۵)

د حضرت زبیر رضی الله عنه نارینه اولاد چې نهه دې،د هغوی نومونه دا دی:

عبد الله،عروه او منذر،د دوی مور حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها ده.عمرو او خالد،د دوی مور ام خالد بنت خالد بن حسین ده.مصعب او حمزه او د دوی مور رباب بنت انیف ده.عبیده او جعفر او ددې دواړو مور زینب بنت بشر ده.

ددې نهو نه علاوه چې کوم نارینه اولاد وو نو هغه د حضرت زبیر رضی الله عنه د شهادت نه مخکښې وفات شوي وو.او د نهه لونړو نومونه دا دی:

خدیجة الکبریٰ،ام الحسن او عائشه،دا درې واړه د حضرت اسماء بنت ابی بکر نه وې حبیبه،سوده او هند د دوی مور ام خالد ده.د رمله مور رباب،د حفصه مور زینب او د زینب مور ام کلثوم بنت عقبه وه.(۶) رضی الله عنهم وعنهن اجمعین.

**قال عبدالله: فجعل یوصینی بدینه،ویقول: ان عجزت عن شئ منه فاستعن علیه مولای، قال: فوالله،ما دریت ما اراد،حتی قلت: یا أبة،من مولاك؟قال: الله.قال: فوالله،ما وقعت فی کربة من دینه الاقلت: یامولی الزبیر،اقض عنه دینه،فیقضیه.**

حضرت عبد الله وائی چې زما پلار ما ته د خپل قرض په باره کښې وصیت کوو او دا به ئې وئیل چې ائې ځویه!که ته د قرض د څۀ حصې ادا کولو نه عاجز شوې نو زما د مولا نه مدد

---

(۱) السنن الکبری،ابواب الزینة (۹/۷۸ ).کذا فی تحفة الاشراف:۳۹۳/۱۱،رقم (۱۶۰۶۶)،وتهذیب الکمال:۲۲۶/۸_۲۲۷)_

(۲) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ،کتاب الزکاة،باب الصدقة فیما استطاع)_

(۳) شرح الکرمانی:۱۰۰/۱۳،وفتح الباری:۲۳۰/۶)_

(۴) د حمزه نوم په تهذیب الکمال:۲۲۳/۸ کښې راغلې دې،حافظ،عینی او قسطلانی نه دا اولنی څلور نومونه ذکر کړې دی،_

(۵) فتح الباری:۲۳۰/۶،وعمدة القاری:۵۲/۱۵،وارشاد الساری:۲۱۱)_

(۶) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

واخله عبدالله وائی چې په خدائې قسم!زهٔ پوهه نهٔ شوم چې،دې څهٔ وائی او د مولی نه،د دوی څهٔ مراد دې؟ تردې چې ما اووئیل.اباجان!ستاسو مولا څوك دې؟نو وې فرمائیل: الله......
حضرت عبدالله وائی چې په خدائې قسم!د هغوی په قرض ادا کولو کښې چې به ما ته کله هم څهٔ پریشانی پیښه شوه نو ما به عرض اوکړو ائې د زبیر مولا!د زبیر له طرفه د هغوی قرضه ادا کړې.نو الله تعالی به څهٔ لاره پیدا کړه.

**د حضرت عبد الله د حیرانه کیدلو وجه:** مولی په عرب کښې هغې سړی ته وائی چې یو غلام ئې آزاد کړې وی.ښکاره خبره ده چې حضرت زبیر رضي الله عنه خو حرالاصل وو د هغوی مولی به څوك وو. یعنی د هغوی آزادونکې به څوك وو؟ددې وجې نه حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما ته حیرانتیا او پریشانی جوړه شوه چې د مولا نه د دوی مراد څهٔ دې؟ددې وجې نه ئې تپوس اوکړو، "یاأبة،من مولاك؟"نو په جواب کښې اووئیلې شو، "الله"نو کله چې به حضرت عبدالله ته د قرض په سلسله کښې څهٔ مشکل پیښ شو نو الله تعالی ته به ئې درخواست اوکړو.الله تعالی به ئې درخواست قبول کړو،نتیجه دا چې ټول قرض ادا شو.
ددې حضراتو یقین کامل وو او دا ټول دې درجې ته رسیدلې وو،چې خپله هره مسئله،هر مشکل او هره پریشانی به ئې د الله تعالی په دربار جل جلاله کښې پیش کوله.کوم چې ټولو ته ورکوی، کافر او مسلمان،د غریب او د امیر تفریق د هغهٔ په نزد نشته.یو خو مونږ یو چې په هر څیز کښې په اسبابو باندې نظر ساتو،د رب الاسباب طرفته نهٔ متوجه کیږو،نو د امت چې کوم حشر دې هغه د ټولو په وړاندې دې.

**قوله:** فقتل الزبیر رضی الله عنه،ولم یدع دیناراً ولا درهماً،الا أرضین منها:الغابة،واحدی عشرة داراً بالمدینة،ودارین بالبصرة،وداراً بالکوفة،وداراً بمصر:
ددې نه پس حضرت زبیر رضي الله عنه شهید شو،په ترکه کښې ئې نهٔ دینار پریخودو او نهٔ څهٔ درهم لیکن څهٔ زمکې وې چې په هغې کښې یو غابه ده او یوولس کورونه په مدینه منوره کښې، دوه کورونه په بصره کښې،یو کور په کوفه کښې او یو کور ئې په مصر کښې پریخودو.

"أرضین"د جمع صیغه ده او په حالت د نصب کښې دې،ددې مفرد أرض دې،ددې ترجمه پورته"څهٔ زمکو"سره کړې شوې ده.البته غالباً دلته د حافظ رحمه الله نه تسامح شوې ده چې هغوی دا تثنیه ګڼړلې ده اوفرمائی چې د"منها"په ځائې"منهما"تثنیه سره کیدل پکار وو[1] دا لفظ غین معجمه او باء مؤحده خفیفه سره دې.بعضې حضراتو دا الغابه یاء سره لوستلې دې کومه چې واضحه او صفا غلطی ده.[2] دا د مدینې منورې په اطرافو او مضافاتو کښې د یو مشهورې علاقې نوم دې چې ورته"عوالی المدینة"وئیلې شی.ددې مقام او د مدینې منورې

---

[1] فتح الباری:۶/۲۳۰)_
[2] پورته حواله،وعمدة القاری:۱۵/۵۲،وارشاد الساری:۵/۲۱۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مینځ کښې څلور میله فاصله وه او دا مقام د شام په لاره باندې راتلۀ.[1] حضرت زبیر رضی الله عنه دا زمکه، کمافی حدیث الباب، په یو لاك اویا زره باندې اخستلې وه او بیا ئې وروستو په شپاړس لاکه باندې خرڅه کړې وه. د باب په حدیث کښې د مذکوره کورونو نه علاوه د حضرت زبیر رضی الله عنه یو کور په مکه مکرمه کښې وو. د هغې ذکر ابو نعیم په مستخرج کښې کړې دې، ددې راوی هم هشام بن عروه دې.[2]

**قوله: قال: وانما کان دینه الذی علیه أن الرجل کان یأتیه بالمال فیستودعه ایاه، فیقول الزبیر: لا، ولکنه سلف، فانی أخشی علیه الضیعة:** حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی چې کومه قرضه په حضرت زبیر رضی الله عنه باندې واجبه وه نو ددې صورت داسې شوې وو چې یو سړی به ورته مال راوړلو چې دا خپل ځان سره امانت کیږدئ نو حضرت زبیر رضی الله عنه به ورته اووئیل چې امانتاً خو نۀ البته د قرض په صورت کښې ئې راسره پریږده ځکه چې ماته ددې د ضائع کیدو ویره ده.

په دې عبارت کښې حضرت عبدالله رضی الله عنه د هغې لوئې رقم وجه بیان کړې ده چې کوم لوئې رقم ئې په والد محترم باندې قرض جمع شوې وو، چې ددې قرض سبب او وجه څۀ وه.

**د حضرت زبیر رضی الله عنه د احتیاط کمال او تقوی:** چې یو سړی به حضرت زبیر رضی الله عنه ته راغلو چې خپل مال ورسره امانت کیږدی نو دوی به هغه څیز د امانت په صورت نۀ قبلولو بلکه ورته به ئې فرمائیل چې د قرض په شکل کښې ئې پریږده. دغه شان د صاحب المال مال به هم محفوظ وو او اعتماد به ئې هم وو او حضرت زبیر رضی الله عنه به ددې الزام نه بچ وو چې هغوی دا مال قصداً عمداً ضائع کړې دې چونکه د امانت په هلاکیدو او ضائع کیدو کښې ضمان نۀ وی او قرض خو په هر حالت کښې واپس کول وی، ددې وجې نه به حضرت زبیر رضی الله عنه ذمه داری په خپل ځان واخستله، په حدیث شریف کښې هم ددې طرفته اشاره ده، "فانی أخشی الضیعة" او که په دې مال باندې به ئې تجارت کوو نو ددې منافع به هم د دوی دپاره پاکه او حلاله وه.

ددې عمل نه ددې خبرې اندازه بښۀ لګی چې حضرت زبیر رضی الله عنه کښې څومره لوئې احتیاط او حد درجې تقوی وه، علامه ابن بطال رحمه الله ددې وجوهاتو په بیانولو کښې لیکی:

"وأما قول الزبیر للذین کانوا یستودعونه "لا، ولکنه سلف"، انما یفعل ذلك خشیة أن یضیع المال، فیظن به ظن سوء فیه، أو تقصیراً فی حفظه، فیری أن هذا أبقی لمرؤته، وأوثق لصاحب الاموال، لانه کان صاحب ذمة وافرة، وعقارات کثیرة، فرأی أن یجعل أموال الناس مضمونة علیه، ولا یبقیها تحت شیء من جواز التلف، ولتطیب نفس صاحب الودیعة علی ذمته، وتطیب نفسه هو علی ربح هذا المال".[3]

---

[1] پورته حواله جات، والکوثر الجاری: ۱۱۲/۶، ومعجم البلدان: ۱۸۲/۴، باب الغین مع الالف.....)_

[2] فتح الباری: ۲۳۱/۶_ ۲۳۲)_

[3] شرح ابن بطال: ۲۹۱/۵، وعمدة القاری: ۵۲/۱۵، وفتح الباری: ۲۳۰/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مشرانو صحابه کرامو رضي الله عنهم هم د خپلو مالي معاملاتو ذمه داري حضرت زبیر رضي الله عنه ته حواله کړې وه، دوی به د هغوی د مالي کارونو او امورو نګراني کوله.لکه زبیر بن بکار د هشام بن عروه د طریق نه نقل کړې دي چې د حضرت عثمان، حضرت عبدالرحمن بن عوف، حضرت مطیع بن الاسود، حضرت ابوالعاص بن الربیع، حضرت عبدالله بن مسعود او د حضرت مقداد بن عمرو رضي الله عنهم وغیره په شان صحابه کرامو هم د خپل مالي معاملاتو انتظام حضرت زبیر رضي الله عنه ته حواله کړې وو.(۱)

**قوله: وما ولي امارة قط، ولا جباية خراج، ولا شيئاً الا أن يكون في غزوة مع النبي ﷺ،أو مع أبي بكر وعمر وعثمان رضي الله عنهم:** کله هم دوی د څه ځائې حاکم جوړ شوي نۀ دی، کله ئې هم د خراج د وصولولو ذمه داري اخستلې نۀ ده او نۀ بل څۀ څیز وو چې په هغې کښې ئې څۀ عهده اخستلې وی، بس نبی کریم ﷺ سره یا حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهم سره به ئې غزا (جهاد) کوله.(۲)

په دې جمله کښې حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه د یو وهم دفع کړې ده چې حضرت زبیر رضي الله عنه سره دومره لوئې مقدار کښې مال د کوم ځائې نه راغئ، چې هر کله والي هم نۀ وو، جابي هم نۀ وو (ټیکس وصولوونکې) نو ددې جواب هغوی بیان کړو چې دا ټول مال د مختلفو غزاګانو برکت دې، حضرت زبیر رضي الله عنه به په غزاګانو کښې نبی کریم ﷺ، حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهم سره ملګرتیا کوله، کوم غنیمت چې به ملاؤ شو نو هغه به ئې په کاروبار وغیره کښې لګوو، ددې وجې نه څۀ بد او خراب ګمان کول پکار نۀ دی، الله تعالی د دوی په مال کښې برکت اچولې وو، په هغې کښې ورته ډیرې زیاتې فائدې حاصلې شوې یعنی د لکونو او کروړونو نه زیاتې شوې.ابن بطال رحمه الله فرمائي:

"وقوله: "وما ولي امارة قط، ولا جباية خراج" فيكثر ماله من هذا الوجه، فيكون عليه فيه ظن سوء ومغمز لظن عمر والمسلمين بالعمال، حتى قاسمهم، بل كان كسبه من الجهاد وسهمانه من الغنائم مع رسول الله وخليفتيه بعده، فبارك الله في ماله لطيب أصله، وربح أرباحاً بلغت ألوف الالوف"(۳)

ددې نه علاوه زبیر بن بکار خپل سند سره روایت کړې دې چې د حضرت زبیر رضي الله عنه په ملکیت کښې سل غلامان وو چې دوی ته به ئې خراج ادا کوو.نو په دې وجوهاتو باندې خیال کول چې هغوی دا مال غلطو طریقو سره حاصل کړې وو، دا خیال بالکل غلط دې.(۴)

**قوله: قال عبدالله بن الزبير: فحسبت ما عليه من الدين، فوجدته ألفي ألف،**

---

(۱) فتح الباري:۶/۲۳۰_

(۲) د حضرت ابوبکر ﷺ حالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الوضوء،باب من لم يتوضا من لحم الشاة والسويق)

(۳) شرح ابن بطال:۵/۲۹،وعمدة القاري:۱۵/۵۲،وفتح الباري:۶/۲۳۰)_

(۴) فتح الباري ۶/۲۳۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ومائتي ألف:** حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه وائی چې په دوی باندې کومه قرضه وه، ما د هغې حساب اولګوو نو هغه دوه ویشت لاکه وه (دوه ملین، دوه لکهه)

دا قول هم سابقه سند سره موصول دې.[1]

او حسبت د باب نصر نه د ماضی متکلم صیغه ده ددې معنی ده شمارل او حساب کول. حساباً وحسباناً بالضم. وغیره ددې مصدرونه دی. دویم یو لفظ دې چې د باب حسب بالکسر نه دې، د هغې مصدر حسباناً. بالکسر. وغیره دې، د هغې معنی ده ګمان او اندازه لګول[2]

**قال: فلقی حکیم بن حزام عبدالله بن الزبیر، فقال: یا ابن أخی. کم علی أخی من الدین؟**

فرمائی چې حضرت حکیم بن حزام[3] حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما سره ملاؤ شو او وې فرمائیل: ورارهٔ! زما د ورور قرضه څومره ده؟

حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه د حضرت زبیر بن عوام رضی الله عنه د ترهٔ ځوئې وو، ددې وجې نه هغوی حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ته "یاابن اخی" سره آواز اوکړو.[4]

**قوله: فکتمه،فقال: مائة ألف:** حضرت عبدالله رضی الله عنه ترینه د قرض اصل مقدار پټ اوساتلو او وې فرمائیل یو لاك.

**ایا دا دروغ او غلط بیانی نهٔ ده؟** په حضرت زبیر رضی الله عنه باندې د واجب قرض مقدار دوه ویشت لاکه وو لیکن د حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه په تپوس باندې حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د قرض اصل مقدار ترینه پټ اوساتلو او صرف یو لاك ئې ورته اووئیل او باقی یو ویشت لاکهٔ ئې حذف کړل نو آیا دا په دروغو او غلط بیانئ کښې نهٔ راځی؟

ابن بطال رحمه الله ددې اشکال جواب دا ارشاد فرمائیلې دې چې دا دروغ نهٔ دی او نهٔ غلط بیانی ده ځکه چې هغوی ورته څهٔ اووئیل او څهٔ ئې پټ اوساتل ځکه چې هر سړی ته دا حق حاصل دې چې کله د هغهٔ نه د څهٔ څیز په باره کښې تپوس اوکړې شی نو تپوس کوونکې ته چې څومره ئې خوښه وی وئیلې شی نو دغه شان هغوی ته هم دا حق حاصل وو چې څهٔ ورته اووائی او څهٔ ورته اونهٔ وائی، دلته هغوی د حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه په تپوس کولو باندې دا خپل حق اختیار کړو.[5]

**د قرض د اصل مقدار پټولو وجه:** ددې وجه دا وه چې حضرت حکیم رضی الله عنه د حضرت زبیر رضی الله عنه په باره کښې څهٔ غلط ګمان او د احتیاط د کموالی رائې اختیار نهٔ کړی چې دومره لویه قرضه

---

[1]) فتح الباری:۶/۲۳۰،وعمدة القاری:۱۵/۵۲)_

[2]) پورته حواله جات)_

[3]) دحضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الزکاة،باب لا صدقة الا عن ظهر غنی)_

[4]) عمدة القاری:۱۵/۵۳،وشرح الکرمانی:۱۳/۱۰۱،وفتح الباری:۶/۲۳۱)_

[5]) شرح ابن بطال:۵/۲۹۲،وفتح الباری:۶/۲۳۱،وعمدة القاری:۱۵/۵۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پرې څنګه واجبه شوه، چې بیا د هغې په ادا کولو کښې وارثان پریشان وی؟
ددې نه علاوه د حضرت عبدالله رضی الله عنه په نظر کښې دا خبره هم وه چې حضرت حکیم رضی الله عنه د هغوی په باره کښې دا خیال اونۀ کړی چې دې د څۀ مدد او تعاون محتاج دې.چې د هغې په نتیجه کښې دې (حضرت حکیم) حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه لره خپل محتاج خیال کړی.[۱]
د حقیقت د پټولو خلاصه دوه خبرې شوې.
(۱): د حضرت زبیر رضی الله عنه متعلق حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه د څۀ غلط فهمئ ښکار نۀ شی.
(۲) د حضرت عبدالله رضی الله عنه غیرت او خود دارئ ته څۀ نقصان اونۀ رسی چې حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه دوی لره د خپل مدد او تعاون محتاج خیال کړی.

**قوله:** فقال حکیم: والله، ما أرى أموالکم تسع لهذه، فقال له عبدالله: أرأیتك إن کانت ألفي ألف ومائتي ألف؟ قال: ما أراکم تطیقون هذا، فإن عجزتم عن شئ منه فاستعینوا بي: حضرت حکیم اوفرمائیل.په خدائې قسم!زما خیال نۀ دې چې ستاسو مالونه به ددومره قرض دپاره کافی شی نو حضرت عبدالله ورته اووئیل، که قرض دوه ویشت لاکه وی نو ستاسو څۀ خیال دې؟نو حضرت حکیم اوفرمائیل زما په خیال تاسو ددې د ادا کولو قدرت نۀ لرئ،نو که چرته تاسو ددې د ادا کولو نه عاجزه شوئ نو زما تعاون حاصل کړئ.
ابتداء کښې حضرت عبدالله د قرض مقدار کم اوښودلو، چې د هغې وجه اوس تیره شوه، چې هرکله ئې محسوسه کړه چې حضرت حکیم یو لاک قرض ډیر لوئې رقم ګڼړی نو حضرت عبدالله دا ضروری اوګڼړله چې د قرض پوره مقدار دوی ته اوښودلې شی او دا یقین ورته هم ورکړې شی چې د قرض د دومره لوئې مقدار په ادا کولو باندې زما قدرت هم شته.یو لاک خو ډیر معمولی رقم دې.[۲]

**قوله:** وکان الزبیر اشترى الغابة بسبعین ومائة ألف، فباعها عبدالله بألف ألف وستمائة ألف: او حضرت زبیر غابه په یو لاک اویا زره باندې اخستې وه، دا حضرت عبدالله په شپاړس لاکه باندې خرڅه کړه.
حضرت عبدالله د غابه زمکه شپاړس حصو کښې تقسیم کړه او د هرې حصې قیمت ئې یو لاک مقرر کړو چې څوک اخستل غواړی نو د هرې حصې یو لاک روپئ قیمت دې، دغه شان ټوله زمکه د شپاړس لاکو شوه[۳]

**قوله:** ثم قام، فقال: من کان له على الزبیر حق فلیوافنا بالغابة: بیا حضرت عبدالله(د اعلان کولو دپاره)اودریدو، وې فرمائیل چې په زبیر باندې د چا حق وی نو هغه

---

[۱]) پورته حواله جات)_
[۲]) فتح الباری:۶/۲۳۱،وعمدة القاری:۱۵/۵۳)_
[۳]) فتح الباری:/۲۳۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې مونږ سره په غابه کښې ملاو شی.

قليوافناد موافاة(مفاعلة)نه دې، ددې معنی ده راتلل، أی فليأتنا.[1]

**فأتاه عبد الله بن جعفر-وكان له على الزبير أربعمائة ألف-فقال لعبد الله: إن شئتم تركتها لكم. قال عبد الله: لا، قال: فإن شئتم جعلتموها فيما تؤخرون إن أخرتم. فقال عبد الله: لا، قال: قال: فاقطعوا لي قطعة. قال عبد الله: لك من هاهنا إلى هاهنا**

نو عبد الله بن جعفر د حضرت عبد الله بن زبير(اعلان اوريدلو سره) راغئ، د دوی په حضرت زبير باندې څلور لاکه روپئ وې او ابن الزبير ته ئې اووئيل چې که تاسو غواړئ نو زۀ به خپل رقم تاسو ته پريږدم. ابن الزبير اوفرمائيل نه، دا نۀ شی کيدې. نو ابن جعفر اووئيل چې که تاسو غواړئ نو دا معامله مؤخر کړئ د نورو مؤخر شوې معاملاتو په شان، ابن الزبير اووئيل چې نه دا هم نۀ شی کيدې. ابن الزبير وائی چې ابن جعفر اووئيل تۀ زما دپاره د زمکې يوه حصه جدا کړه حضرت عبد الله بن زبير رضی الله عنهما اووئيل چې ستاسو دپاره ددې ځائې نه دې ځائې پورې زمکه ده.

حضرت زبير د حضرت عبد الله بن جعفر څلور لاکه قرض دارې وو، چې کله عبد الله بن زبير اعلان اوکړو نو د اعلان په اوريدو سره عبد الله بن جعفر ورته راغئ او دوه پيشکشونه ئې اوکړل، يو خو دا چې زۀ خپل حق پريږدم، دويم دا چې دا معامله فی الحال د نورو معاملاتو په شان مؤخر کړه، زۀ اوس د خپل حق مطالبه نۀ کوم، چې کله دې خوښه شی نو بيا راته راکړه، د باب د حديث شريف مضمون هم دا دې.

د يعقوب بن سفيان په تاريخ کښې نور تفصيل دادې چې په دې موقع باندې حضرت حکيم بن حزام او عبد الله بن عمر رضی الله عنهم هم حاضر وو او دا خبرې اترې د حضرت عبد الله بن جعفر رضی الله عنهما په کور کښې شوې وې، نو هرکله چې دا ټول حضرات د هغوی کور ته داخل شو نو ابن جعفر اوفرمائيل چې آيا تاسو دا حضرات ماته د سفارش دپاره راوستلي دی، بس ما درته خپل حق پريخودو نو ابن الزبير اووئيل، زۀ دا نۀ غواړم، نو هغوی اووئيل چې ددې قرض په بدله کښې تاسو ماته خپلې څپلئ راکړئ، ابن الزبير اووئيل، زۀ دا هم نۀ غواړم نو حضرت عبد الله بن جعفر حيرانتيا سره اووئيل آيا تاسو معامله د قيامت د ورځ دپاره پريخودل غواړئ چې هلته فيصله اوشی؟ ابن الزبير اووئيل، داسې هم نۀ غواړم نو ابن جعفر اووئيل چې زۀ معامله په تاسو باندې پريږدم، تاسو چې څۀ فيصله اوکړئ نو ماته به قبول وی نو ابن الزبير اووئيل چې زۀ به د قرض په بدله کښې تاسو ته جائيداد درکوم نو هغوی اووئيل چې ټهيک ده.[2]

**قوله: قال: فباع منها، فقضى دينه، فأوفاه، وبقي منها أربعة أسهم ونصف..:**

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/۵۳، والقاموس الوحيد للكيرانوی، مادة: "وفی".

[2]) المعرفة والتاريخ للفسوی:۲/۲۳۹، مكحول، رقم(۲۴۰) وفتح البارى:۶/۲۳۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فرمائى چې حضرت عبدالله بن زبير په تركه كښې څۀ حصه خرڅه كړه او قرض ئې پوره ادا كړو او د زمكې څلورنيمې حصې د قرض ادا كولو نه پس بچ شوې.

"منها" نه مراد "من الغابة والدور" دي، صرف "من الغابة" نۀ دي، دا ځكه چې قرض دوه ويشت لاكه وو، پورته ذكر شوې دى چې د زمكې قيمت شپاړس لاكه وو[1]، ښكاره خبره ده چې په شپاړس لاكه باندې دوه ويشت لاكهه څنګه ادا كيدې شى؟ددې وجې نه ابن الزبير زمكه هم خرڅه كړه او څۀ كورونه ئې هم خرڅ كړل، دغه شان ئې قرض ادا كړو او د زمكې څلور نيمې حصې بچ پاتې شوې.

**قوله:** فقدم على معاوية ـ وعنده عمرو بن عثمان، والمنذر بن الزبير، وابن زمعة:

ددې نه پس حضرت عبدالله بن زبير حضرت معاويه رضي الله عنه ته راغئ، دغه وخت دوى سره عمرو بن عثمان[2]، منذر بن زبير او عبدالله بن زمعه رضي الله عنهم هم موجود وو.

**قوله:** المنذر بن الزبير: دا جليل القدر شخصيت ابوعثمان منذر بن زبير بن عوام بن خويلد دې. حضرت اسماء بنت ابى بكر صديق رضي الله عنهما د دوى مور بى بى ده[3] او د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنهما ورور دې. دوى د حضرت عمر رضي الله عنه په دور خلافت كښې پيدا شوې وو.[4]

حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه چې د قسطنطنيه د محاذ دپاره د خپل ځوى يزيد په مشرئ كښې كوم لښكر ته ترتيب وركړې وو، په هغې كښې دوى هم وو او په دغه غزوه كښې شريک وو.[5]

زبير بن بكار وائى چې د منذر د خپل ورور حضرت عبدالله سره څۀ خفګان پيدا شو نو دوى هغه پريخودلو او كوفه كښې د حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه خدمت كښې حاضر شو، چې هغوى ئې ډير اكرام اوكړو او لس لاكه درهمه[6] او دې سره سره څۀ جائيداد هم وو.[7]، ئې وركړل ليكن د هغې د وصولولو نه مخكښې حضرت امير معاويه رضي الله عنه وفات شو.

حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه په خپل وصيت كښې فرمائيلې وو چې زما قبر ته به منذر كوزيږى[8] ددې نه ددې دواړو د تعلق د كلكوالى اندازه بنۀ كيدې شى.

---

[1] ) فتح البارى:۶/۲۳۱)_

[2] ) د حضرت عمروبن عثمان حالات كتلو دپاره اوګورئ، كتاب الجنائز، باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: يعذب الميت.......)_

[3] ) سير أعلام النبلاء:۳/۳۸۱، والطبقات الكبرى لابن سعد:۵/۱۸۲)_

[4] ) سير أعلام النبلاء:۳/۳۸۱، والبداية والنهاية:۸/۲۴۶)_

[5] ) پورته حواله جات)_

[6] ) د ابن كثير مطابق دا رقم يو لاكې وو

[7] ) البدايه والنهاية:۸/۲۴۶)_

[8] )البدايه والنهاية:۸/۲۴۶، وسير أعلام النبلاء:۳/۳۸۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د دوی د ورور عبدالله بن زبیر او د یزید بن معاویه مینځ کښې چې کله د بیعت په معامله کښې اختلاف شو، خبره ډیره شوه او دوی ته اطلاع اوشوه نو دوی د کوفې نه راغلل او په اتو ورځو کښې ئې د مکې مکرمې مسافت پوره کړو او راؤرسیدو، اهل شام چې کله د عبدالله بن زبیر محاصره اوکړه نو په دې محاصره کښې دوی هم راغلل، دې دوران کښې ۶۴هـ کښې دوی وفات شو، ټول عمر مبارک ئې څلویښت کاله وو.[1]

ابن کثیر لیکلې دی چې دوی او عثمان بن عبدالله بن حکیم به د ورځې د اهل شام خلاف جنګیدل او د شپې به ئې هم په دوی باندې خوراک کوو.[2]

د دوی لور فاطمه بنت المنذر مشهوره محدثه وه او د هشام بن عروه بن زبیر په نکاح کښې وه.[3] رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

**ابن زمعه:** دا د نبی کریم ﷺ صحابی عبدالله بن زمعه بن اسود بن مطلب بن اسد قرشی اسدی مدنی رضی الله عنه دې. د دوی مور بی بی قریبة الکبری ده چې د ام المؤمنین حضرت ام سلمه حقیقی خور ده، دغه شان حضرت ابن زمعه د حضرت ام سلمه خوریې شو.[4]

د حضرت ام سلمه لور زینب بنت ابوسلمه د ابن زمعه په نکاح کښې وه.[5]

دوی د نبی کریم ﷺ او د خپلې ترور حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت کوی.

د دوی نه د حدیث په روایت کوونکو کښې د دوی ځوئې ابوعبیده، عبیدالله بن عبدالله بن عتبه، عروه بن الزبیر او ابوبکر بن عبدالرحمن بن الحارث وغیره شامل دی.[6]

دوی د قریش په اشرافو کښې دی، البته د محدثینو په نزد د دوی شمار په اهل مدینه کښې کیږی.[7]

دوی به د نبی کریم ﷺ کور ته خپلې ترور کره تلل راتلل، د نبی کریم ﷺ په مرض الوفات کښې ئې دا خبر راؤړې وو چې ابوبکر ته اووایه چې مونځ ورکړی، لیکن حضرت ابوبکر رضی الله عنه په موقع باندې موجود نهٔ وو نو دوی حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ته د مونځ ورکولو دپاره اوفرمائیل.[8] د نبی کریم ﷺ د وفات په وخت د دوی عمر پنځلس کاله وو.[9]

---

[1] ) پورته حواله جات، وتاريخ الذهبي:۲/۳۷۶)_

[2] ) البداية والنهاية:۸/۲٤٦)_

[3] ) سير أعلام النبلاء:۳/۳۸۱)_

[4] ) تهذيب الكمال:۱٤/۵۲۵، وتهذيب التهذيب:۵/۲۱۸، والاستيعاب:۱/۵٤٤، والجرح والتعديل: ۵/٦۹، باب العين، رقم(۲۷۲))_

[5] ) تهذيب التهذيب:۵/۲۱۸، وتهذيب الكمال: ۱٤/۵۲٦)_

[6] ) تهذيب التهذيب:۵/۲۱۸، وتهذيب الكمال: ۱٤/۵۲٦)_

[7] ) الاستيعاب:۱/۵٤٤، وإكمال مغلطاى:۳۵۹، وتهذيب الكمال: ۱٤/۵۲٦)_

[8] ) تهذيب الكمال: ۱٤/۵۲٦، والاستيعاب:۱/۵٤٤، وتهذيب التهذيب:۵/۲۱۸-۲۱۹، وسنن أبي داؤد، كتاب السنة، باب في استخلاف أبي بكر، رضى الله عنه، رقم(٤٦٦۰))_

[9] ) تهذيب الكمال: ۱٤/۵۲۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دوی د زیادی د قول مطابق حضرت عثمان سره ۳۵هجری کښې شهید شو اودابن الکلبی وینا دا ده چې مسلم بن عقبه په "یوم الحرة" باندې دوی ظلماً شهید کړې وو. لیکن ابن عبدالبر فرمائی چې په یوم الحره باندې خو د دوی خوئې یزید شهید شوې وو نهٔ چې ابن زمعه.[1].

امام ذهبی وائی چې حضرت عبدالله بن زمعه د ام المؤمنین حضرت سوده وررور دې.[2]. غالباً هم د دوی په تقلید کښې علامه عینی هم دا لیکلې دی.البته دا خبره صحیح نهٔ ده، دلته د دوی نه تسامح شوې ده.د دواړو په نسب کښې غوروفکر کولو سره دلته ددې خبرې غلط کیدل په واضحه توګه معلومیږی.[3]

د اصول سته اصحابو د دوی روایات نقل کړې دی.[4].

د دوی نه ټول څلور احادیث مبارکه روایت دی.چې په هغې کښې یو حدیث داسې دې چې په دریو احکاماتو باندې مشتمل دې،ددې وجې نه بعضې راویانو خو دا درې واړه یوځائې کړې دی او د یو حدیث مجموعه ئې ګرځولې ده او بعضو په هر حکم باندې مشتمل حدیث مستقل بالذات حدیث ګرځولې دې،لکه څنګه چې علامه خزرجی هم کړې دی او فرمائی چې "وله حدیث متفق علیه"[5] په دې اعتبار سره به مجموعی روایتونه دوه شی،هم دې خبرې لره اختیارولو سره علامه نابلسی د دوی صرف دوه حدیثونه ذکر کړې دی[6]

په حدیث شریف کښې چې د حضرت عبدالله بن زبیر حضرت معاویه رضی الله عنه ته د تللو کومه تذکره ده نودا د دمشق ده څکه چې دوی مبارک هلته وو چې حضرت عبدالله دملاقات دپاره تشریف یوړو،دغه ځائې کښې دغه وخت نور حضرات هم تشریف فرما وو.[7].کمامر.

**فقال له معاوية:کم قومت الغابة؟قال:كل سهم مائة ألف.قال:كم بقى؟قال:أربعة**

---

[1]) تهذیب التهذیب:۲۱۹/۵،والاستیعاب:۵۴۵/۱،والاکمال للمغلطای:۳۵۹/۷)_

[2]) الکاشف للذهبی:۵۳۳/۱،رقم(۲۷۲۶)،وعمدة القاری:۵۳/۱۵)_

[3]) تهذیب التهذیب:۲۱۹/۵، د ام المؤمنین حضرت سوده نسب دادې: سودة بنت زمعه بن قیس بن عبدشمس بن عبدود بن نصر......قرشیه عامریه،رضی الله عنها(تهذیب الکمال:۲۰۰/۳۵،النساء)او د حضرت عبدالله بن زمعه نسب داسې دې: عبدالله بن زمعه بن الاسود بن المطلب بن اسد بن عبدالعزی..... قرشی اسدی،رضی الله عنه(تهذیب الکمال:۵۲۵/۱۴)]_

نو د دواړو په نسب کښې واضح طور سره فرق دې چې د حضرت سوده نیکهٔ قیس بن عبدشمس دې،او د عبدالله بن زمعه نیکهٔ الاسود بن المطلب دې،دغه شان حضرت سوده عامریه ده څکه چې د بنوعامر سره ئې تعلق دې او د عبدالله بن زمعه تعلق د بنواسد سره دې رضی الله عنهما.

[4]) تهذیب الکمال:۱۴/ ۵۲۶،والکاشف:۵۳۳/۱،وتهذیب التهذیب:۲۱۸/۵)_

[5]) خلاصة الخزرجی:۱۹۸،دغه شان اوګورئ: الاصابة:۳۱۱/۲،والاستیعاب:۵۴۴/۱)_

[6]) ذخائر المواریث فی الدلالة علی مواضع:۲۶/۲،رقم(۲۶۹۰_۲۶۹۱))_

[7]) عمدة القاری:۵۳/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أسهم ونصف. فقال المنذر بن الزبير: قد أخذت سهما بمائة ألف. وقال عمرو بن عثمان: قد أخذت سهما بمائة ألف. وقال ابن زمعة: قد أخذت سهما بمائة ألف. فقال معاوية: كم بقي؟ فقال: سهم ونصف. قال: أخذته بخمسين ومائة ألف.

نو حضرت معاويه اووئيل چې د غابې څه قيمت مقرر شوې دې؟ عبدالله اووئيل چې هره حصه د يو لاک ده. وې فرمائيل چې څومره حصې پاتې دی؟ وې فرمائيل څلور نيمې حصې نو منذر بن زبير اووئيل چې يوه حصه زۀ په يو لاک اخلم او عمرو بن عثمان اووئيل چې يوه حصه ما په يو لاک واخسته او عبدالله بن زمعه اووئيل چې يوه حصه ما په يو لاک واخسته بيا معاويه رضي الله عنه اووئيل چې څومره پاتې شوه؟ عبدالله بن زبير اووئيل چې يوه نيمه حصه، نو معاويه رضي الله عنه اوفرمائيل چې دا ما په يو نيم لاک(يو لاک پنځوس زره) باندې واخسته.

د حضرت عبدالله په قول "كل سهم مائة ألف" کښې لفظ د مائة منصوب بنزع الخافض دې، اصل عبارت داسې دې، "كل سهم بمائة ألف"[1].

**قوله: قال: وباع عبدالله بن جعفر نصيبه من معاوية بستمائة ألف:** فرمائي او عبدالله بن جعفر هم خپله حصه په حضرت معاويه رضي الله عنه باندې په شپږ لاکه باندې خرڅه کړه. مطلب دادې چې حضرت عبدالله بن جعفر ته د خپل قرض په بدله کښې په غابه کښې کومه حصه ملاؤ شوې وه نو هغه ئې په حضرت اميرمعاويه باندې خرڅه کړه، د څلورو لاکو حصه وه او هغه ئې په هغوی باندې په شپږ لاکه خرڅه کړه، دغه شان هغوی ته دوه لکه روپۍ فائده اوشوه.[2].

**قوله: فلما فرغ ابن الزبير من قضاء دينه قال بنو الزبير: اقسم بيننا ميراثنا. قال: لا والله، لا أقسم بينكم حتى أنادي بالموسم أربع سنين: ألا من كان له على الزبير دين، فليأتنا، فلنقضه:** هركله چې حضرت عبدالله بن زبير د قرض ادا كولو نه فارغ شو نو بنوالزبير مطالبه اوکړه چې زمونږ ميراث په مونږ کښې تقسيم کړه. هغوی اوفرمائيل په خدائې قسم چې نۀ تقسيموم، هغه وخته پورې نۀ تقسيموم چې د حج په موقع باندې څلور کالو پورې آواز اونۀ کړم چې که په زبير باندې د چا څۀ حق وی نو هغه دې مونږ ته راشی چې مونږ د هغۀ حق ادا کړو.

د حضرت عبدالله قول "لا والله" د فعل د حذف سره دې، "لا اقسم والله" دې نه پس جمله د ماقبل تفسير دې. حضرت عبدالله چونکه وصی وو او په بنو الزبير کښې د ټولو نه مشر هم وو، ددې وجې نه هغوی د ميراث د تقسيمولو نه انکار اوکړو، ددې ګمان په بنياد باندې چې شايد د چا حق پاتې شوې وی او ماته اطلاع نۀ وی رارسيدلې، ښکاره خبره ده چې ترڅو د

---

[1] ) پورته حواله، وإرشاد الساری: ۲۱۲/۵)_

[2] ) فتح الباری: ۲۳۲/۶، وإرشادالساری: ۲۱۳/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قرض پوره ادائيگي شوې نه وې نو ميراث خو نۀ شي تقسيميدې،ددې وجې نه ئې اوفرمائيل چې لږ صبر اوکړئ،زۀ د حج په موقع باندې څلور کالو پورې اعلان کوم،ددې نه پس به ئې تقسيموم ـ بهرحال د هغوی مقصد هيڅکله حق دار لره د خپل حق د وصولۍ نه منع کول نۀ وو چې حقدار ته د هغۀ حصه ورنۀ کړې شي.[1]

الموسم بكسر السين: نه مراد د حج ورځې دی،دا د وسمه بمعنی علامت نه مشتق دې،چونکه دا ورځې په مکه مکرمه کښې د خلقو د جمع کيدو دپاره علامت وی،ددې وجې نه ددې نوم موسم اوګرځولې شو.[2]

او د څلور کالو د خاص کولو وجه داده چې دغه وخت هم او د هغې نه پس بيا هم د مکې مکرمې او د دنيا د نورو علاقو ترمينځه دوه کاله مسافت وو،د هغوی مقصد دا وو چې اقطار عالم ته د دوی پيغام اورسی،دا دوه کاله شو،بيا ددې جواب راتلو نو دا دوه کاله شو،دغه شان دا ټول څلور کاله شو.[3]

**قوله: قال: فجعل كل سنة ينادي بالموسم. فلما مضى أربع سنين قسم بينهم:**
فرمائی چې حضرت عبدالله بن زبير به هرکال د حج په ورځو کښې اعلان کوو،چې کله څلور کاله تير شو نو په وارثانو کښې ئې ميراث تقسيم کړو.

**قوله: قال: وكان للزبير أربع نسوة:** فرمائی او د حضرت زبير څلور بيبيانې وې.
دا د شهادت د وخت ذکر دې چې د شهادت په وخت کښې د هغوی په نکاح کښې څلور بيبيانې وې،د هغوی نومونه دا دی،ام خالد ،رباب،زينب او عاتکه بنت زيد(دا د حضرت سعيد بن زيد خور بی بی ده چې په عشره مبشره کښې دې).
حضرت زبير شپږ نکاحونه کړې وو ،چې په هغې کښې هغوی حضرت اسماء بنت ابی بکر او ام کلثوم ته طلاق ورکړې وو ،طلاق هغوی بی بی عاتکه ته هم ورکړې وو ليکن د هغوی د شهادت په وخت دا په عدت کښې وه او حضرت عبدالله بن زبير د مال په يو مخصوص مقدار باندې دوی سره صلح کړې وه.[4]،كما رواه الحاكم[5]

**ورفع الثلث:** او دريمه حصه ئې جدا کړه.
يعنی د کوم ثلث مال چې حضرت زبير وصيت کړې وو ،هغه ئې جدا کړو.[6]

---

[1]) عمدة القاري:۵۳\۱۵،وشرح الكر ماني:۱۰۲\۱۳۔
[2]) عمدة القاري:۵۳\۱۵،وشرح الكرماني:۱۰۳\۱۳،والقاموس الوحيد،مادة وسم)۔
[3]) العمدة:۵۳\۱۵،والكرماني:۱۰۲\۱۳،وارشاد الساري:۲۱۳\۵،والكوثر الجاري:۱۱۳\۶)۔
[4]) فتح الباري:۲۳۲\۶،وعمدة القاري:۵۳\۱۵)۔
[5]) المستدرک:۴۱۵\۳،كتاب معرفة الصحابة،ذكر مقتل الزبير بن العوام،رقم (۵۵۸۲).
[6]) فتح الباري:۲۳۲\۶،وعمدة القاري:۱۵،وارشاد الساري:۲۱۳\۵)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**فاصاب كل امرأة ألف ألف ومائتا ألف:** نو د هرې ښځې په حصه كښې دولس لاكه راغلې.
ددې مطلب دادې چې د ميراث پيسې ۴۸ لاكه وې، دولس لره څلورو سره ضرب وركولو كښې هم دا تعداد جوړيږي.[1]

**قوله: فجميع ماله خمسون ألف ألف ومائتا ألف:** د دوی د ټول مال مقدار ۵ كروړه او دوه لاكه وو.

دلته د حديث شارحينو تفصيلی بحثونه كړې دی، چې په هغې باندې پوهيدل آسان نهٔ دی البته مونږ لاندې يو څو اقوال نقل كوو او په هغې باندې به تبصره هم كيږی.

حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه فرمائيلې وو چې كه د قرض ادا كولو نه پس څهٔ مال بچ پاتې شی نو د هغې په ثلث كښې دې وصيت جاری كړې شی او باقی مال دې په وارثانو كښې تقسيم كړې شی، تفصيل وړاندې تير شوې دې.

اوس په حساب باندې ځان پوهه كړئ!

قرض دوه ويشت لاكه روپئ دې او هرې بی بی ته دولس لاكه وركړې شوې، نو د دوی ټوله حصه اتهٔ څلويښت لاكه جوړيږی، دا اتهٔ څلويښت د قرض او وصيت ادا كولو نه پس باقی مال دې نو ۴۸ لاكه ته چې په ۸ كښې ضرب وركړې شی نو د قرض او وصيت ادا كولو نه پس چې څهٔ پاتې كيږی د هغې ټول مقدار به معلوم شی(۸×۴۸۰۰۰۰۰ = ۳۸۴۰۰۰۰۰) دغه شان به دا رقم ۳ كروړه او ۸۴ لاكه شی، دې سره چې د وصيت ثلث ملاؤ كړې شی كوم چې يو كروړ ۹۲ لاكه دې، نو حاصل جمع(۵۷۶۰۰۰۰۰)پنځه كروړه او شپږ اويا لاكه روپئ شوې.

د وصيت د ثلث ويستلو طريقه به دا وی چې ۵كروړ ۷۶لاكه په ۳ باندې تقسيم كړې شی نو ثلث به راوځی، يعنی ۵۷۶۰۰۰۰۰/۳ : ۱۹۲۰۰۰۰۰

بيا چې په دې ټول رقم يعنی ۵كروړه۷۶لاكه كښې ۲۲ لاكه قرض شامل كړې شی، يعنی ۵۷۶۰۰۰۰۰+ ۲۲۰۰۰۰۰ = ۵۹۸۰۰۰۰۰نو ټول مال ۵ كروړه او۹۸لاكه روپئ شو . دا ساده حساب دې او په دې كښې د دَين او وصيت نه پس، ثلث او وصيت ټول راغلل.[2]

---

[1]) فتح البارى:۲۳۲/۶)_

[2]) ټول مال ۵ كروړه۹۸لاكه دې، چې دهغې تفصيل د اجزاؤپه اعتبارسره لاندې ذكر كولې شی: ثمن ۸×۴۸۰۰۰۰۰ (د ۴بيبيانو حصه)(اتهٔ څلويښت لاكه)

ثمن ته مو په ۸ كښې ضرب وركړو۳۸۴۰۰۰۰۰(چې د قرض او وصيت نه پس مجموعه ده)(۳كروړه۸۴لاكه)

د وصيت دريمه حصه ۱۹۲۰۰۰۰۰+(۱كروړ۹۲لاكه)

حاصل جمع ۵۷۶۰۰۰۰۰(۵كروړ۷۶لاكه)

قرض ۲۲۰۰۰۰۰(دوه ويشت لاكه)

.....[بقيه برصفحه آئنده]....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**اشکال او د هغې جوابات**: تفصیل تاسو اولوستلو، اوس اشکال دادې چې د روایت په آخره کښې دی، "فجمیع ماله خمسون ألف ألف ومائتا ألف" یعني ټول مال ۵ کروړه او دوه لاکه وو او تفصیلي حساب سره ټول مال ۵ کروړه۹۸لاکه جوړیږي، نو په اجمال او تفصیل کښې مطابقت نشته؟هم دې خبرې د بخاری شریف شارحین حیران او پریشان کړې دی.

**جواب نمبر①** حافظ شرف الدین دمیاطي ددې اشکال جواب دا ورکړې دې چې د بیبیانو په حصو کښې بعضې راویانو ته وهم شوې دې، اصل کښې د هرې بی بی حصه زر زر یعني لس لاکه وه، په قرض کښې چې کوم الفی ألف ومائتی ألف وو، د هغې نه مائتی ألف(دوه لاکه)د بیبیانو په الف الف کښې شامل کړې شوې او الف الف ومائتا الف جوړ شو، که د بیبیانو نیمه حصه الف الف(۱۰لاکه)وی نو د څلورو بیبیانو حصه به ۴۰ لاکهه شی، بیا څلویښت لاکه چې ثمن دې، دې ته به ۸ کښې ضرب ورکوو ۴۰۰۰۰۰۰×۸ = ۳۲۰۰۰۰۰۰، د ضرب حاصل درې کروړه او شل لاکه شو، چې د دین او وصیت نه پس باقي پاتې شوې مال دې، په دې کښې به د وصیت ثلث یوځائې کړې شی چې یو کروړ ۶۰ لاکه دې، یعنی ۳۲۰۰۰۰۰۰+۱۶۰۰۰۰۰۰= ۴۸۰۰۰۰۰۰ نو حاصل جمع به ۴کروړه ۸۰ لاکه شی، بیا دې سره ۲۲ لاکه قرض یوځائې کړې شی، یعنی:

۴۸۰۰۰۰۰۰+ ۲۲۰۰۰۰۰= ۵۰۲۰۰۰۰۰ نو حاصل جمع به ۵ کروړه او دوه لاکه شی او اجمال او تفصیل کښې به مطابقت پیدا شی.

حافظ ابن حجر دې جواب ته غوره وئیلې دی.[۱]

**جواب نمبر②** حافظ شرف الدین دویم جواب دا ورکړې دې چې حضرت عبدالله بن زبیر چې کوم څلور کاله میراث مؤخر کړې وو، په دغه زمانه کښې دا مال زیات شو او ۵کروړه ۹۸

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ټول مال- ۵۹۸۰۰۰۰۰(۵کروړ، ۹۸لاکه)

تفصیل دپاره اوګورئ، فتح الباری:۲۳۲/۶).

[۱] فتح الباری:۲۳۳/۶، هم دا قول علامه عیني هم ذکر کړې دې، لیکن ددې قول نسبت یئ نۀ دې ذکر کړې، اوګورئ عمدة القاری:۴۹/۱۵

ددې قول خلاصه داده:

| | | |
|---|---|---|
| ثمن | ۴۰۰۰۰۰۰ | (د څلورو بیبیانو حصه، څلویښت لاکهه) |
| ثمن ته مو ضرب ورکړو | ۸ سره | |
| حاصل ضرب | ۳۲۰۰۰۰۰۰ | (درې کروړه شل لاکه، چې د قرض او وصیت نه پس باقي مانده دې) |
| د وصیت ثلث | ۱۶۰۰۰۰۰۰ | (یو کروړ شپیتهٔ لاکه) |
| حاصل جمع | ۴۸۰۰۰۰۰۰ | (څلور کروړه اتیا لاکه) |
| قرض | ۲۲۰۰۰۰۰ | (دوه ویشت لاکه) |
| ټول مال | ۵۰۲۰۰۰۰۰ | (پنځه کروړه دوه لاکه)). |

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لاکه شو، ورنه ابتداء کښې دا ۵ کروړه ۲ لاکه وو.([1]) ګویا ۹۲ لاکه زیاتوالې په کښې اوشو.
حافظ صاحب دا جواب د اول جواب نه هم غوره ښودلې دې او ترجمه کښې چې برکة الغازی سهر د حیا او د میتا کوم قید دې نو هغې سره هم ددې مطابقت دې او دا جواب بې تکلفه هم دې.([2]). هم دا جواب علامه کرمانی هم ذکر کړې دې.([3]).

**جواب نمبر** ③ حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چې "جمیع ماله خمسون" دا مبتدا او خبر دی، ددې معنی ده، "جمیع ماله خمسون سهما" کل د ټول مال پنځوس حصې وې او ددې نه پس "الف الف ومائتا الف" دې، دا د هرې حصې قیمت دې چې هره حصه د دولس لاکو روپو وه، اوس چې ۱۲ لاکه لره په ۵۰ کښې ضرب ورکړې شی، یعنی ۱۲۰۰۰۰۰ × ۵۰ = ۶۰۰۰۰۰۰۰ نو د ټول مال مجموعه شپږ کروړه جوړیږی. او ۵ کروړه ۹۸ لاکه کښې صرف دوه لاکه فرق پاتې کیږی، لکه په تفصیل کښې خو ۵ کروړه ۹۸ لاکه جوړیږی او په اجمال کښې تقریبی طور سره دې ته شپږ کروړه اوویلې شو او په محاوراتو کښې دغه شان اطلاقات کیږی.([4])
لیکن ښکاره خبره ده چې دا جواب به تقریبی وی، تحقیقی به نۀ وی.

**جواب نمبر** ④ بعضې علماؤ یو بل جواب ورکړې دې چې قرض د یو ښځې د حصې یعنی د دولس لاکو دوچند یعنی ۲۴ لاکه. په دې صورت کښې به مجموعه شپږ کروړه وی، ۵ کروړه ۹۸ لاکه به نۀ وی، په دې صورت کښې به د اجمال او د تفصیل پوره مطابقت وی، په دې جواب کښې د یو ښځې حصه دوچند کولو سره د قرض مقدار متعین کړې شوې دې.
دلته قرض د **من قبیل تثنیة المرکب** نه معتبر منلې شوې دې، د یو ښځې حصه چې دولس لاکه ده، هغه مرکب ده، ددې دوچند قرض ګرځولې شوې دې. بیا **جمیع ماله** مبتدا او **خمسون** ئې خبر دې، ددې نه مراد **خمسون سهما** دې او **الف الف ومائتا الف** د هرې حصې قیمت دې، نو د پنځوس حصو قیمت د ۱۲ لاکو په حساب سره ۶ کروړه جوړیږی، دغه شان په اجمال او تفصیل کښې فرق نۀ پاتې کیږی.([5]) والله اعلم بالصواب

---

[1]) فتح الباری: ۶/۲۳۳)_
[2]) فتح الباری: ۶/۲۳٤)_
[3]) پورته حواله، وشرح الکرمانی: ۱۳/۱۰۳، وعمدة القاری: ۱۵/۵۳)_
[4]) فیض الباری: ۳/٤۶۵، قصة شهادة الزبیر)_
[5]) البدر الساری الی فیض الباری: ۳/٤۶۵_٤۶۶. ددې قول خلاصه لاندې ذکر کولې شی:

| | | |
|---|---|---|
| د ښځو حصې | ۴۸۰۰۰۰۰ | (اته څلویښت لاکه) |
| ۸ کښې ضرب ورکړې شو ۸× | | |
| د ضرب حاصل | ۳۸۴۰۰۰۰۰ | (درې کروړه، څلور اتیا لاکه، دا د قرض او وصیت نه پس باقی مانده مال دې). |

.....(بقیه برصفحه آئنده)...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پورته چې كوم صورتونه بيان كړې شو نو دهغې روايت مطابق دى كوم چې امام بخارى صاحب رحمه الله نقل كړې دې، ورنه ابن سعد په طبقات كښې، ددې نه علاوه نورو حضراتو محدثينو چې كوم روايتونه نقل كړې دى، د هغې په اعتبار سره نور شكلونه جوړيږى.[1]

**د حديث شريف متن سره متعلق يو وضاحت:** د باب د حديث شريف شمار په هغه احاديثو كښې دې، چې په كومو كښې امام بخارى صاحب رحمه الله متفرد دې ځكه چې په اصحاب سته كښې د دوى نه علاوه چاهم دا حديث نۀ دې ذكر كړې.

اصحاب الاطراف دا حديث په مسند زبير كښې ذكر كړې دې. حالانكه ددې شمار په مسند عبدالله بن زبير رضي الله عنه كښې كيدل پكار دى.[2]

**د استفهام د جواب ذكر:** دلته د حديث په سند كښې راغلې دى "قلت لابى أسامة: أحدثكم هشام بن عروة....؟" چې استفهام او سوال خو ذكر دې ليكن په دې كښې جواب او تصديق ذكر نۀ دې ځكه چې ابو اسامه د ابو اسحاق بن ابراهيم په تپوس باندې "نعم" وغيره نۀ دې وئيلې. ليكن هم دا حديث ددې سند سره په مسند د اسحق بن راهويه كښې موجود دې، په هغې كښې كلمه د ايجاب موندلې كيږى چې هغوى د تحديث په سوال باندې اوفرمائيل چې او! هشام بن عروه ماته دا حديث اورولې دې.[3] والله أعلم

---

....بقيه ازحاشيه گذشته]

| | | |
|---|---|---|
| د وصيت دريمه حصه | ۱۹۲۰۰۰۰۰ | (يو كروړ، دوه نوى لاكه) |
| حاصل جمع | ۵۷۶۰۰۰۰۰ | (پنځه كروړه، شپږ اويا لاكه) |
| د قرض مقدار | ۲۴۰۰۰۰۰ | (ځلويريشت لاكه، دا د من قبيل تثنية المركب نه دې) |
| ټول مال | ۲۰۰۰۰۰۰۰ | (شپږ كروړه)). |

[1] ) حافظ ابن حجر رحمه الله ددې سلسلې تقريباً ټول روايتونه او طرق بيان كړې دى (فتح البارى: ۶/۲۳۲-۲۳۳)، په دې ټولو كښې د حضرت زبير رضي الله عنه د مال په باره كښې ډير سخت اختلاف دې، څوک څۀ وائى او څوک څۀ وائى. البته حافظ رحمه الله په دې ټولو روايتونو كښې تطبيق كولو سره فرمائيلې دى چې دلته مقصود د مال په كميت كښې اختلاف بيانول نۀ دى، بلكه مقصود دا وينا ده چې د هغوى په تركه كښې څومره قدرې زياتوالې اوشو ځكه چې د شهادت په وخت هغوى د خپلو پسماندګانو دپاره څۀ جائيداد پريخودلې وو او دې سره سره لوئې قرض هم ليكن الله تعالى په دې كښې بركت پيدا كړو او د مال دومره لويه مجموعه حاصله شوه، ليكى:

وكان القوم أتوا من عدم إلقاء البال على تحرير الحساب، إذ الغرض فيه ذكر الكثرة التى نشات عن البركة فى تركة الزبير إذ خلف دينا كثيراً، ولم يخلف الا العقار المذكور، ومع ذلک فبورک فيه حتى تحصل منه هذا المال العظيم". فتح البارى: ۶/۲۳۳)_

[2] ) عمدة القارى: ۱۵/۴۸، وفتح البارى: ۶/۲۲۸_۲۲۹)_

[3] ) فتح البارى: ۶/۲۲۹، وشرح القسطلانى: ۵/۲۱۳. دا د حافظ او د هغوى په اتباع كښې د قسطلانى ارشاد دې، البته دا روايت مونږ ته د ډير زيات تلاش كولو باوجود هم په ......[بقيه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت په دې معنی کښې دې چې حضرت زبير بن العوام ﷺ په خپله ترکه کښې څۀ کورونه پريخودلي وو، دې سره سره ډير زيات قرض هم، ليکن کوم مال چې ورته د حضرت نبی کريم ﷺ او د خلفاء ثلاثه حضرت ابوبکر، عمر اوعثمان ﷺ سره په غزواتو کښې شرکت کولو سره حاصل شو، هغې مال کښې الله تعالی د دوی په ژوند کښې هم برکت واچوو او د شهادت نه پس هم[1] لکه څنګه چې تاسو په حديث شريف کښې اوکتل. هم دا د ترجمې مقصود هم وو چې د غازی په مال کښې د هغۀ په ژوند کښې او د مرګ نه پس برکت وی. والله أعلم بالصواب

## (۱۴) باب: إذا بعث الإمام رسولاً في حاجة، أو أمره بالمقام، هل يسهم له.

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری ﷺ دلته دا فرمائي چې که د وخت امام يو سړی لره په دارالاسلام کښې د څۀ ضرورت د وجې نه پريخودلې وی، يا ئې د څۀ ضرورت د وجې نه يو سړې قاصد او پيغام رسوونکې ليږلې وی نو هغۀ ته به د غنيمت په مال کښې حصه ملاويږی يا نۀ؟[2]

په دې مسئله کښې اختلاف دې، د ائمه ثلثه، امام اوزاعی، ابوثور، نخعی او ليث بن سعد ﷺ وغيره مسلک دادې چې په دې صورت کښې به دغه قاصد او رسول يا چې په اقامت باندې مامور وی دوی ته به د غنيمت نه حصه نۀ ملاويږی، هم دې سره يوشان مسئله په باب[ ۹] الغنيمة لمن شهد الوقعة کښې تيره شوې ده.

(۱) **احناف:** او د امام ابوحنيفه او د هغوی د ملګرو ﷺ وينا داده چې د دې قسمه خلقو ته به په غنيمت کښې حصه ملاويږی، دوی به د غنيمت په مال کښې شريک وی.[3]

(۲) **د ائمه ثلثه دليل:** په دې سلسله کښې د جمهورو مشهور دليل د حضرت عمر ﷺ اثر دې چې "**الغنيمة لمن شهد الوقعة**" چې په غنيمت کښې به د هغه چا حصه وی څوک چې په جنګ کښې هم شريک شوې وی.[4]

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] مسند اسحاق کښې ملاؤ نۀ شو، بلکه دلته د حافظ نه تسامح شوې ده څکه چې امام ابن راهويه ددې سند سره حديث د افک هم نقل کړې دې، چې د هغې په آخره کښې واقعی کلمه د ايجاب موجوده ده، فاقربه ابو اسامة، وقال: نعم. مسند اسحاق بن راهويه، حديث رقم(۱۱۷۷)_

[1]) فتح الباري:۶/ ۲۳۳، وشرح القسطلاني:۵/۲۱۳، وعمدة القاري:۱۵/۴۸)_

[2]) عمدة القاري:۱۵/ ۵۴)_

[3]) شرح ابن بطال:۵/۲۹۳، والكوثر الجاري:۶/۱۱٤)_

[4]) ارشاد الساري:۵/۲۱٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د باب الغنيمة لمن شهد الوقعة والا مسئله كښې امام بخاري رحمه الله د ائمه ثلثه سره يو شان وو، او په دې مسئله كښې هغوى د احنافو هم مسلک معلوميږي.

**د احنافو دليل:** د احنافو دليل د باب حديث شريف دې، په کوم کښې چې راغلې دی چې حضرت عثمان رضي الله عنه ته نبی کريم ﷺ په غزوه بدر کښې د نۀ شريکيدو باوجود په غنيمت کښې حصه ورکړې وه، ځکه چې د هغوى د نۀ شرکت وجه د حضرت نبی اکرم ﷺ ممانعت وو چې تاسو دلته د خپلې بی بی پرورش اوکړئ.[1]

دغه شان اهل سير ذکر کړې دی چې نبی کريم ﷺ حضرت سعيد بن زيد وطلحه بن عبيدالله رضي الله عنهما هغه لارې ته ليږلې وو کومه لاره چې د شام طرفته تلې وه، مقصد جاسوسی کول وو، دا دواړه حضرات د غزوه بدر د ختميدو نه پس راؤرسيدل نو نبی عليه السلام دې دواړو حضراتو ته په غنيمت کښې حصه ورکړه، دې دواړو اووئيل چې حضرت! د اجر نه خو محرومه پاتې شو؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې اجر به هم ملاؤ شي.[2]

**د جمهورو له طرفه جواب:** جمهورو د حضرت عثمان رضي الله عنه د حديث دا جواب ورکړو چې دا د نبی کريم ﷺ خصوصيت دې. يا نبی عليه السلام هغوى ته په خمس کښې ورکړې وه.[3]

---

[1] شرح ابن بطال:۵/۲۹۳، والکوثر الجاري:۶/۱۱٤، وعمدة القاري:۱۵/۵٤)_

[2] پورته حواله جات. علامه عينی د ابن اسحاق په حواله سره او ابن عبد البر رحمه الله د هغه صحابه کرامو رضي الله عنهم نومونه شمارلې دي، کوم چې په غزوه بدر کښې په مختلفو وجوهاتو سره شريک شوي نۀ وو، ليکن هغوى ته حصه ورکړې شوې وه، دهغوى تعداد تقريباً اَلس دې، چې لاندې ذکرکولې شي:

① عثمان بن عفان رضي الله عنه، د شرکت نه کولو وجه د باب په حديث شريف کښې ذکر ده.

②، ③: طلحه بن عبيد الله وسعيد بن زيد بن نفيل، د جاسوسئ دپاره د شام طرفته ليږلې شوې وو.

④ ابولبابه بشير بن عبد المنذر: چې کله د مکې مکرمې نه د مشرکينو د روانيدو پته نبی کريم ﷺ ته اولګيده نو دوی ئې د مقام روحاء نه واپس کړل او د مدينې منورې د عامل په حيثيت سره ئې مقرر کړل. ⑤ حارث بن حاطب بن عبيد، دوی هم د لارې نه واپس کړې شوې وو.

⑥ حارث بن صمه. دوی ته د روحاء په مقام کښې زخم لګيدلې وو، ددې وجې نه واپس شو.

⑦ خوات بن جبير. په غزوه کښې شريک نۀ وو.

⑧ ابو الضياح بن ثابت بن نعمان. په لاره کښې د دوی يو خپه په کاڼړی باندې د لګيدو په وجه ډيره زخمی شوې وه، ددې وجې نه واپس شو.

⑨ عاصم بن عدی بن الجد بن العجلان. دوی هم غزوه کښې د شرکت کولو دپاره راوتلې وو ليکن نبی کريم ﷺ دوی واپس کړل.

⑩ سعد بن مالک بن خالد الساعدی. دوی د غزوې دپاره پوره تياری کړې وو ليکن وفات شو. يو قول دادې چې د روحاء په مقام باندې دوی وفات شو. دا د مشهور صحابی حضرت سهل بن سعد رضي الله عنهما والد صاحب دې.

نو نبی کريم ﷺ دې ټولو ته د غنيمت په مال کښې حصه ورکړه او د اجر خوشخبری ئې هم ورکړه. اوګورئ: عمدة القاري:۱۵/۵٤، والسيرة النبوية لابن هشام:۲/۶۷۸_۷۰۶، باب: من حضر بدراً من المسلمين، والاستيعاب:۱/۳۶۱، باب سعد، رقم (۹۵۲) والله اعلم)_

[3] عمدة القاري:۱۵/۵۵، والکوثر الجاري:۶/۱۱٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د احنافو له طرفه جمهورو ته جواب:** د حضرت عثمان رضي الله عنه معامله په خصوصيت باندې محمول کول ددې وجې نه صحيح نهٔ دی چې د خصوص دپاره د څهٔ دليل کيدل ضروری دی او دلته دليل نشته.

او دا وينا چې نبی عليه السلام هغوی ته د خمس نه حصه ورکړې وه، نو دا د غزوه حنين واقعه ده، د بدر واقعه نهٔ ده(۱)، په غزوه بدر کښې حصه ورکړې شوې وه، چې په هغې باندې د باب د حديث شريف دا الفاظ دلالت کوی، "فقال له النبی صلی الله عليه وسلم: إن لك أجر رجل ممن شهد بدرا وسهمه".

بهرحال د دليلونو په رڼا کښې دلته د احنافو مذهب راجح معلوميږی. والله أعلم بالصواب

۲۹۶۲:(۲) حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ مَوْهَبٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضى الله عنهما - قَالَ إِنَّمَا تَغَيَّبَ عُثْمَانُ عَنْ بَدْرٍ، فَإِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - وَكَانَتْ مَرِيضَةً. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ لَكَ أَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَسَهْمَهُ». [۳۴۹۵، ۳۸۳۹]

## رجال الحديث

① **موسى:** دا موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله دې.

② **ابوعوانه:** دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله اليشكرى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذکره اجمالاً د "بدء الوحی" په "الحديث الرابع" کښې تيره شوې ده(۳).

③ **عثمان بن موهب:** دا عثمان بن عبدالله بن موهب الاعرج تميمی قرشی رحمه الله دې(۴).

**خبردارې:** ابوعلی جيانی رحمه الله ليکی چې د اصيلی په نسخه کښې د عثمان بن موهب په ځائې عمرو بن عبدالله مذکور دې چې غلط دې، صحيح عثمان بن موهب دې(۵).

---

[1]) العمدة:۱۵/۵۵، دې مسئلې سره متعلق څهٔ تفصيلات وړاندې په باب الغنيمة لمن شهد الوقعة کښې تير شوې دی.

[2]) قوله:عن ابن عمر رضى الله عنهما:الحديث:اخرجه البخارى ايضا،كتاب فضايل اصحاب......باب مناقب عثمان بن عفان،رضى الله عنه......رقم (۳۶۹۸)،وباب مناقب على بن ابى طالب.....رقم (۳۷۰۴)،وكتاب المغازى، باب قول الله تعالى:(ان الذين تولوا منكم يوم التقى الجمعان.....)،رقم(۴۰۶۶)،وكتاب التفسير،باب (وقاتلوهم حتى لا تكون فتنة ويكون.....)،رقم (۴۵۱۳_۴۵۱۴)،وباب (وقاتلوهم حتى لا تكون فتنة)،رقم (۴۶۵۰_۴۶۵۱)، وكتاب الفتن،باب قول النبى صلى الله عليه وسلم:الفتنة من قبل المشرق،رقم(۷۰۹۵) والترمذى،كتاب المناقب،باب مناقب عثمان بن عفان رضى الله تعالى عنه،رقم (۳۷۰۹))_

[3]) كشف البارى:۱/۴۳۳_۴۳۴)_

[4]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الزكاة،باب وجوب الزكاة)_

[5]) عمدة القارى:۱۵/۵۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ ابن عمر: د حضرت ابن عمر رضی الله عنه حالات په کتاب الایمان، "باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: "بنی الاسلام علی خمس" کښې تیر شوې دی.(۱).

**قوله: قال: إنما تغيب عثمان عن بدر، فإنه كانت تحته بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم وكانت مريضة، فقال له النبي صلى الله عليه وسلم: إن لك أجر رجل من شهد بدرا وسهمه:** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چې حضرت عثمان رضی الله عنه د غزوه بدر نه غائب وو ځکه چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم لور مبارکه د هغوی سره د نکاح په عقد کښې وه او هغه بیماره وه نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی ته اوفرمائیل چې ستاسو دپاره د بدری صحابی په شان اجرت او په غنیمت کښې حصه ده.

**د باب د حدیث شریف پس منظر:** ددې حدیث مبارک تعلق اصل کښې فضائلو سره دې، البته امام بخاری رحمه الله د خپلې مدعی ثابتولو دپاره دا دلته نقل کړې دې، هغه هم اختصار سره، تفصیلی روایت مؤلف علیه الرحمة په فضائل اصحاب النبی او مغازی وغیره(۲) کښې نقل کړې دې، چې د هغې خلاصه داده:

یو مصری سړې د حج دپاره راغلې وو او د حضرت عثمان رضی الله عنه په مخالفینو کښې وو، هغهٔ د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په وړاندې په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې درې اعتراضونه اوکړل، ابن عمر رضی الله عنه اول خو ددهٔ د مزید کتلو دپاره اول ددهٔ تائید اوکړو او بیا ئې ورته د درې واړو اعتراضاتو جوابونه ورکړل.

د هغهٔ اولنې اعتراض دا وو چې حضرت عثمان د غزوه احد په ورځ تختیدلې وو، حضرت ابن عمر رضی الله عنه ددې خبرې تصدیق اوکړو، بیا ئې وضاحت اوکړو چې د الله تعالی له طرفه ددې مسئلې معافی شوې ده، ددې وجې نه مونږ ته په دې مسئله کښې د خبرې کولو حق نشته، د الله تعالی ارشاد دې: (ولقد عفا الله عنهم)(۳) نو دا معامله اوس ختمه شوه.

دویم اعتراض د هغهٔ دا وو چې حضرت عثمان رضی الله عنه د جنگ بدر نه هم غائب وو. حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ددې وجه دا بیان کړه چې د حضرت عثمان رضی الله عنه په عقد کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم لور وه او د بدر په موقع باندې هغه بیماره وه نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی ته د خپلې بی بی د خیال ساتلو دپاره په مدینه منوره کښې د اوسیدلو دپاره اوفرمائیل او دا ئې اوفرمائیل چې تاسو ته به هغه اجر و ثواب او په غنیمت کښې هغومره حصه ملاویږی څومره چې په جنگ کښې یو شریک مجاهد ته ملاویږی. نو ددې وجې نه هغوی حکماً بدری دی.

ددې سړی دریم اعتراض دا وو چې حضرت عثمان رضی الله عنه د بیعت رضوان نه وروستو پاتې شوې وو. ددې جواب دادې چې که د مکې مکرمې په وادئ کښې د حضرت عثمان رضی الله عنه نه

---

(۱) کشف الباری: ۱/۶۳۷)_

(۲) اوګورئ، صحیح بخاری، کتاب فضایل اصحاب، رقم (۳۶۹۸)، وکتاب المغازی، رقم ۴۰۶۶)_

(۳) آل عمران: ۱۵۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زیات عزتمند بل څوک سړې وو نو نبی کریم ﷺ به هغه لیږلې وو(چونکه دوی د ټولو نه زیات عزتمند وو،ددې وجې نه نبی کریم ﷺ د دوی انتخاب اوفرمائیلو) . هرکله چې حضرت عثمان رضی الله عنه مکې مکرمې ته اورسیدلو نو د بیعت رضوان واقعه پیښه شوه،حضرت عثمان رضی الله عنه چونکه په موقع باندې په خپله موجود نهٔ وو،ددې وجې نه نبی کریم ﷺ خپل ښې لاس مبارک اوچت کړو او وې فرمائیل چې "دا د عثمان لاس دې". بیا ئې هغه په دویم لاس باندې کیخودلو او وې فرمائیل چې "دا د عثمان بیعت دې".

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ددې سړی د دریو واړو اعتراضاتو د جوابونو ورکولو نه پس اوفرمائیل چې "اوس خپل ځان سره دا تفصیل یوسه".

**د باب د حدیث شریف د بعضې حصو تشریح:** تغیب د باب تفعل نه دې،دې کښې د تکلف معنی پرته ده،مطلب دادې چې حضرت عثمان رضی الله عنه د خپلې بی بی د خیال ساتلو په غرض سره د غزوه بدر نه غائب وو،قصداً غائب نهٔ وو.(۱).

د بنت رسول الله ﷺ نه مراد حضرت رقیه رضی الله عنها ده.

**حضرت رقیه رضی الله عنها:** دا د نبی کریم ﷺ لور مبارکه حضرت ام عبدالله رقیه بنت سید البشر ﷺ محمد بن عبدالله الهاشمیه رضی الله عنها ده. د دوی مور بی بی حضرت خدیجة الکبری رضی الله عنها ده(۲).

د مشهور قول مطابق دا د نبی کریم ﷺ درمیانه لور ده(مینځنۍ)،ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چې په دې کښې خو څهٔ اختلاف نشته چې حضرت زینب رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ د ټولو نه مشره لور ده،البته رقیه،فاطمه او د ام کلثوم رضی الله عنهن باره کښې اختلاف دې،د اکثرو قول دادې چې مینځ کښې حضرت رقیه،فاطمه د دوی نه وړوکې او ام کلثوم رضی الله عنها د ټولو نه کشره ده(۳).

حضرت رقیه رضی الله عنها اول د ابولهب د ځوی عتبه په نکاح کښې وه،دا خبره د هجرت نه د وړاندې زمانې ده،البته کله چې سورة اللهب نازل شو نو ابولهب سخت خفه شو او خپل ځوی ته ئې اووئیل چې که تا ددهٔ(محمد ﷺ)لورته طلاق ورنه کړو نو زما او ستا به هیڅ قسم تعلق نهٔ وی نو عتبه دې ته د دخول نه مخکښې طلاق ورکړو،بیا دا د حضرت عثمان رضی الله عنه په نکاح کښې راغله،د هغوی نه ئې یو ځوې عبدالله پیدا شو،هم ددې ځوئی طرفته کنیت کولو سره به حضرت عثمان رضی الله عنه په ابوعبدالله باندې بللې شو(۴).

حضرت رقیه رضی الله عنها ته خپل خاوند سره د حبشې طرفته دواړو هجرتونو کښې د ملګرتیا شرف

---

(۱) عمدة القاری:۱۵/۵٤)_
(۲) الاصابة:٤/۳۰٤،سیر اعلام النبلا:۲/۲۵۰)_
(۳) الاستیعاب بهامش الاصابة:٤/۲۹۹،والاصابة:٤/۳۰٤)_
(٤) پورته حواله جات ،وسیر اعلام النبلا:۲/۲۵۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او سعادت حاصل دي.[1]

هم په حبشه کښې د دوی ځوی حضرت عبدالله وفات شو، دغه وخت ددې هلک عمر شپږ کاله وو.[2]

بیا حضرت رقیه رضي الله عنها د خپل خاوند حضرت عثمان نه پس مدینې منورې ته هجرت اوکړو، هلته د بدر نه څۀ موده وړاندې دوی د خسرې په بیمارۍ کښې مبتلا شو، ددې وجې نه حضرت عثمان رضي الله عنه ته نبی کریم ﷺ د دوی د عیادت او خیال ساتلو دپاره په مدینه منوره کښې د اوسیدلو حکم اوفرمائیلو، هم په دې مرض کښې دا وفات شوه او مسلمانان دغه وخت په بدر کښې وو.[3]

حضرت عثمان رضي الله عنه چې کوم وخت ددې په دفن کولو کښې مشغول وو، نو اتفاقاً دغه وخت حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه په غزوه بدر کښې د فتحې خوشخبری مدینې منورې ته راوړلو دپاره راورسیدو، حضرت اسامه بن زید رضي الله عنهما هم د دفن کولو په دې عمل کښې شریک وو، هشام بن عروه د خپل پلار نه نقل کوی:

"تخلف عثمان وأسامة بن زيد عن بدر، فبيناهم يدفنون رقية سمع عثمان تكبيراً، فقال: يا أسامة، ماهذا؟ فنظروا، فاذا زيد بن حارثة على ناقة رسول الله ﷺ الجدعاء، بشيراً بقتل المشركين يوم بدر".[4]

د حضرت رقیه رضي الله عنها وفات په دویمه هجرئ کښې اوشو، د دوی د وفات نه پس نبی کریم ﷺ په ربیع الاول دریمه هجرئ کښې خپل لور حضرت ام کلثوم رضي الله عنها حضرت عثمان رضي الله عنه ته په نکاح ورکړه او وې فرمائیل چې "که زما لس لونړه وې نو ما به ټولې عثمان ته په نکاح ورکړې وې".[5] ددې وجې نه حضرت عثمان ته ذوالنورین وئیلې شی. رضی الله عنهم وأرضاهم

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** د ترجمة الباب دویم جزء سره خو د حدیث شریف مناسبت واضح دې چې حضرت عثمان رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ په هدایت باندې د خپلې بی بی د عیادت دپاره د غزوې نه پاتې شوې وو، ددې باوجود دوی ته اجر او غنیمت دواړه ملاؤ شو. ددې تعلق د ترجمې د الفاظو "أو أمره بالمقام" سره دې.[6]

---

[1] ) پورته حواله جات)_

[2] ) الاستيعاب بهامش الاصابة: ٤/ ٣٠٠، والاصابة: ٤/ ٣٠٤، وسير اعلام النبلا: ٢/ ٢٥١)_

[3] ) الاصابة: ٤/ ٣٠٤_٣٠٥، وسير اعلام النبلا: ٢/ ٢٥١، وطبقات ابن سعد: ٨/ ٣٦، والاستيعاب بهامش الاصابة: ٤/ ٣٠١)_

[4] ) الاصابة: ٤/ ٣٠٥، والاستيعاب بهامش الاصابة: ٤/ ٣٠٢، وكذا انظر المعجم الكبير: ٢٢/ ٤٣٥، رقية بنت رسول الله صلى، رقم (١٠٥٨)_

[5] ) الطبقات الكبرى: ٨/ ٣٨، وسير اعلام النبلا: ٢/ ٢٥٢_٢٥٣، ومجمع الزوايد: ٩/ ٢١٧، والمعجم الكبير: ٢٢/ ٤٣٦، رقم (١٠٦١)_

[6] ) عمدة القاري: ١٥/ ٥٤، والكوثر الجاري: ٦/ ١١٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لیکن د ترجمې اولنی جزء یعنی د "بعث الامام رسولاً فی حاجة" د اثبات دپاره مؤلف رحمه الله څۀ حدیث وغیره نۀ دې ذکر کړې؟
ددې دوه جوابونه دی:
یو خو دا چې هغوی دا مسئله د اقامت والا په مسئله باندې قیاس کړې ده.[1] چې هلته څنګه د حاکم حکم موجود دې، نو دغه شان د قاصد لیږل هم د وخت د حاکم په ذریعې سره کیږی، ددې وجې نه قاعده به دا وی چې که د وخت امام یو کس لره د څۀ غرض د وجې نه په غزوه کښې د شرکت کولو نه منع کړی او بل څۀ کار ورته اوسپاری نو د هغۀ به هم په غنیمت کښې حصه وی.
دویم دا چې حدیث خو موجود وو، لیکن د امام بخاری رحمه الله د شرط مطابق پوره نۀ وو، ددې وجې نه هغوی د ارسال رسل لاندې څۀ حدیث شریف ذکر نۀ کړو.
او دا حدیث هم هغه دې کوم چې اوس مخکښې تیر شو چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت طلحه بن عبیدالله او سعید بن زید رضی الله عنهما لره د شام لارې طرفته د جاسوسئ دپاره لیږلې وو، دغه شان دا دواړه حضرات په غزوه بدر کښې شریک نۀ شو، ددې باوجود نبی علیه السلام دوی ته غنیمت ورکړو او د اجر و ثواب خوشخبری ئې هم ورکړه.[2]

## ⑮ باب: وَمِنَ الدَّلِيلِ عَلَى أَنَّ الْخُمُسَ لِنَوَائِبِ الْمُسْلِمِينَ

مَا سَأَلَ هَوَازِنُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- بِرَضَاعِهِ فِيهِمْ فَتَحَلَّلَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ. (١٥) وَمَا كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَعِدُ النَّاسَ أَنْ يُعْطِيَهُمْ مِنَ الْفَيْءِ وَالأَنْفَالِ مِنَ الْخُمُسِ، وَمَا أَعْطَى الأَنْصَارَ، وَمَا أَعْطَى جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ تَمْرَ خَيْبَرَ.

**د ترجمة الباب مقصد:** دا باب ددې خبرې په بیان کښې دې چې خمس به د عامو مسلمانانو په ضرورتونو کښې خرچ کولې شی، ددې دلیل دا دې چې قبیله بنو هوازن نبی علیه السلام ته درخواست کړې وو چې زمونږ نه اخستلې شوې مال غنیمت مونږ ته واپس کړې شی ځکه چې د نبی علیه السلام د قبیله بنوهوازن سره رضاعی تعلق دې، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمائیل چې هغوی په غنیمت کښې د خپل خپل حق نه لاس وینځی (او غنیمت واپس کړی). دغه شان ددې دلیل دا هم دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به مختلف صحابه کرامو رضی الله عنهم سره دا وعده فرمائیله چې زۀ به تاسو ته په مال فئ، غنیمت کښې درکوم، کوم چې د خمس نه حاصل شی. ددې نه علاوه نبی علیه السلام چې انصارو ته څۀ ورکړل او حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه ته ئې چې د خیبر کومې کهجورې ورکړې نو دا هم ددې خبرې دلیل دې چې د خمس مصرف د عامو مسلمانانو ضرورتونه هم دی.

[1] ) الکوثر الجاری: ٦/١١٤)_
[2] ) پورته حواله، والاستیعاب لابن عبدالبر بهامش الاصابة: ١/٤٥٠_ ٤٦٠، باب طلحة، رقم (١٢٧٩)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د ترجمة الباب نحوی تعلیل:** باب مرفوع دې او منون دې (یعنی تنوین لری) د خبریت د وجې نه، ددې مبتدا محذوف ده چې هذا دی[1]

ومن الدلیل. المسلمین پورې خبر مقدم دې، ما موصوله او معطوف علیها ده او "وماکان...... وماأعطی الانصار، وما أعطی جابربن عبدالله....." دا ټول معطوف دی، بیا مبتدا ده.[2]

په ما سئل هوازن النبی صلی الله علیه وسلم کښې هوازن د فاعلیت د وجې نه مرفوع او النبی د مفعول به کیدو د وجې نه منصوب دې[3]

د هوازن نه مراد قبیله ده لیکن دلته ددې په بعضې کسانو باندې ددې اطلاق مجازاً کړې شوې دې او په برضاعه کښې باء سببیه ده، یعنی بسبب رضاعه[4]

**واو عاطفه یا استفتاحیه:** امام بخاری رحمه الله وړاندې اتۀ بابونه مخکښې یو باب "ومن الدلیل علی أن الخمس لنوائب رسول الله صلی الله علیه وسلم....." قائم کړې وو. د هغې نه پس ئې دویم باب دا قائم کړې دې، "ومن الدلیل علی أن الخمس لنوائب المسلمین......" دریم باب وړاندې راځی، "ومن الدلیل علی أن الخمس للامام، وأنه یعطی....." دا درې بابونه دی.

اوس د حافظ رحمه الله رائې خو داده چې "ومن الدلیل" کښې واؤ عاطفه دې. ددې معطوف علیه هغه تیر شوې باب دې کوم چې د اتو بابونو نه وړاندې ذکر شوې دې او دا باب معطوف دې او یو معطوف وړاندې راځی.[5] علامه عینی رحمه الله فرمائی چې دا د دلیل نه بغیر یو دعوی ده. دا هم څۀ خبره ده چې په معطوف او معطوف علیه کښې دومره فاصله وی، د احادیثو سره سره دومره ډیر بابونه مینځ کښې فاصله جوړه شی؟

که د دوی خبره اومنلې هم شی چې دلته واؤ راغلې دې نو ددې جواب دا دې چې دا واؤ عاطفه نۀ دې، اکثر وختونو کښې داسې کیږی چې واؤ استعمال کړې شی او هغه په څۀ څیز باندې عطف نۀ وی، ددې وجې نه به دا اووئیلې شی چې دا واؤ د استفتاح دې، هم دا خبره د مشرانو استاذانو نه اوریدلې شوې ده.[6] علامه قسطلانی رحمه الله په دې مسئله کښې د علامه عینی رحمه الله ملګرتیا کوی.[7]

---

[1]) عمدة القاری: ۵۵/۱۵، وفتح الباری: ۲۳۸/۶، وارشاد الساری: ۲۱٤/۵)_

[2]) عمدة القاری: ۵۵/۱۵، وارشاد الساری: ۲۱٤/۵)_

[3]) پورته حواله جات، وفتح الباری: ۲۳۸/۶)_

[4]) پورته حواله جات)_

[5]) فتح الباری: ۲۳۸/۶)_

[6]) عمدة القاری: ۵۵/۱۵)_

[7]) شرح القسطلانی: ۲۱٤/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د ترجمة الباب مقصد**:اصل خبره دلته داده چې امام بخاري رحمه الله هم یو خبره بیانوی چې خمس به د مسلمانانو په ضروریاتو کښې خرچ کیږی،نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دهغې د تقسیم ذمه دار وی، چې هغې لره نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپلو ضروریاتو کښې هم د ضرورت په اندازه باندې خرچ کولې شی او د دوی مبارک نه پس چې کوم امام وی هغه به د دوی نائب وی،هغه هم د خپل ضرورت مطابق ددې نه اخستلې شی،ددې نه علاوه خمس به هغه د مسلمانانو په ضرورتونو او حاجتونو کښې خرچ کوی.(١)

**د تعلیقاتو مقصد**:بیا په دې ځان پوهه کړئ چې مصنف رحمه الله د خپلې خبرې ثابتولو دپاره د باب لاندې د احادیثو نه علاوه د ترجمة الباب جزء جوړولو سره څلور تعلیقات هم ذکر کړې دی،ددې ټولو نه د هغهٔ مدعی ثابتیږی چې خمس به د عامة المسلمین په ضرورتونو وغیره کښې خرچ کیږی.

**د تعلیقاتو موصولاً تخریج**:د اولنی تعلیق قصه هوازن سره ده،کومه چې مؤلف رحمه الله په دې باب کښې مسنداً ذکر کړې ده،ددې نه علاوه په کتاب الهبه.....وغیره کښې(٢)،دویم تعلیق د وعدو سره متعلق دې چې نبی کریم علیه السلام د مختلفو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره په مختلفو وختونو کښې دا وعده کړې وه چې زهٔ به تاسو ته د مال فئ نه درکوم.په دې باره کښې هم احادیث په دې باب کښې مذکور دی.(٣).د دریم تعلیق تعلق د حضرات انصار رضی الله عنهم سره دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی ته په مختلفو مقامونو کښې ورکړه کړې وه،په هغې کښې د یو واقعې تخریج حضرت مؤلف رحمه الله په کتاب الهبه وغیره.(٤) کښې کړې دی.(٥)

او څلورم تعلق د حضرت جابر رضی الله عنه واقعې سره متعلق دې،یعنی خیبر کښې چې هغوی ته کومې کهجورې ورکړې شوې وې.دا واقعه امام ابوداؤد رحمه الله موصولاً په خپل سنن کښې ذکر کړې ده،چې په هغې کښې د واقعې پوره تفصیل دې،امام بخاری رحمه الله چې په دې باب

---

(١) فتح الباری:٦/٢٣٨)_

(٢) امام بخاری رحمه الله دا حدیث ددې باب نه علاوه په مختلفو مقامونو کښې موصولاً نقل کړې دې،اوګورئ، کتاب الوکالة،رقم (٢٣٠٧،٢٣٠٨)،وکتاب العتق،رقم (٢٥٣٩،٢٥٠٤)،وکتاب الهبة،رقم (٢٥٨٣،٢٥٤٨)،ورقم(٢٦٠٧،٢٦٠٨)،وکتاب المغازی،رقم (٤٣١٨،٤٣١٩)ددې نه علاوه امام ابوداؤد رحمه الله هم دا حدیث په خپل سنن کښې موصولاً روایت کړې دې،اوګورئ،کتاب الجهاد،باب فی فدا الاسیر بالمال، رقم (٢٦٩٣)_

(٣) فئ دپاره اوګورئ،ددې باب د حضرت جابر رضی الله عنه حدیث مبارک،رقم (٣١٣٧)،وکتاب الجزیة، رقم(٣١٦٤)او غنیمتونو سره متعلق حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما دې کوم چې په باب کښې ذکر دې.

(٤) هو من حدیث انس بن مالک،انظر کتاب الهبة،باب فضل المنیحة،رقم (٢٦٣٠)،اردو کتاب الخمس، باب کیف قسم النبی صلی الله علیه وسلم قریظة والنضیر......رقم(٣١٢٨)،وکتاب المغازی،باب حدیث بنی النضیر،رقم (٤٠٣٠)، وباب مرجع النبی صلی الله علیه وسلم من الاحزاب......رقم (٤١٢٠)_

(٥) تغلیق التعلیق وتعلیقاته:٣/٤٧٦)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې شپږم نمبر كوم حديث مبارك ذكر كړې دې، نو دا د هغه حديث يو حصه ده.[1]

**د مذكوره تعليقاتو ترجمې سره مناسبت:** د مذكوره څلورو واړو تعليقاتو مناسبت ترجمې سره بالكل واضح دې، چې دعوه ددې خبرې وه چې د خمس مصرف صرف د مسلمانانو ضروريات او حاجات وغيره دى او په دې تعليقاتو كښې ددې دعوې دليل دې چې خمس به د مسلمانانو په ضرورتونو وغيره كښې د موقع محل مناسب خرچ كولې شى.

**د باب اولنى حديث:** بيا په دې ځان پوهه كړئ چې امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې ټول اووه احاديث ذكر كړې دى، چې په هغې كښې اولنې حديث د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه او مروان بن حكم نه روايت دې.

۲۹۲۳:[2] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَزَعَمَ عُرْوَةُ أَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَاهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ، فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَحَبُّ الْحَدِيثِ إِلَىَّ أَصْدَقُهُ، فَاخْتَارُوا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ إِمَّا السَّبْىَ وَإِمَّا الْمَالَ، وَقَدْ كُنْتُ اسْتَأْنَيْتُ بِهِمْ». وَقَدْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - انْتَظَرَ آخِرَهُمْ بِضْعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً، حِينَ قَفَلَ مِنَ الطَّائِفِ، فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - غَيْرُ رَادٍّ إِلَيْهِمْ إِلاَّ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ. قَالُوا فَإِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْمُسْلِمِينَ فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ «أَمَّا بَعْدُ، فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ هَؤُلاَءِ قَدْ جَاءُونَا تَائِبِينَ، وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ، مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُطَيِّبَ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَا يُفِيءُ اللَّهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ». فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَهُمْ. فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّا لاَ نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ فِي ذَلِكَ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ، فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعَ إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ» فَرَجَعَ النَّاسُ، فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ، ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَخْبَرُوهُ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوا فَأَذِنُوا. فَهَذَا الَّذِي بَلَغَنَا عَنْ سَبْىِ هَوَازِنَ. [ر: ۲۱۸۴]

## رجال الحديث

① **سعيد بن عفير:** دا سعيد بن كثير بن عفير رحمه الله دې. د دوى تذكره په كتاب العلم، "باب من يرد الله به خيراً....." كښې تيره شوې ده.[3]

---

[1]) پورته حواله: ۳/۴۷۶_۴۷۷، وسنن ابى داود، كتاب الاقضية، باب فى الوكالة، رقم (۳۶۳۲)_

[2]) قوله: ان مروان......ومسور.....: الحديث، مر تخريجه فى الوكالة، باب اذا وهب شيا لو كيل او....)_

[3]) كشف البارى: ۳/۲۷۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑦**اللیث**: دا مشهور محدث لیث بن سعد فهمی رحمه الله دي.
⑧**عقیل**: دا عقیل بن خالد رحمه الله دي.
⑨**ابن شهاب**: دا محمد بن مسلم بن عبیدالله بن شهاب زهری رحمه الله دي. ددې درې وارو حضراتو تذکره د "بدء الوحی" په "الحدیث الثالث" کښې بیان کړې شوې ده.(۱).
⑩**عروة**: دا مشهور تابعی حضرت عروه بن زبیر رحمه الله دي. د دوی مختصر حالات د "بدء الوحی" په "الحدیث الثانی" کښې تیر شوې دی.(۲).
⑪ **مروان بن الحکم**: دا مروان بن حکم اموی رحمه الله دې(۳)
⑫**المسوربن مخرمه**: دامشهورصحابی دصحابی ځوئې حضرت مسوربن مخرمه رضي الله عنهما دي(۴)

**خبرداري**: ددې حدیث تشریح په مغازی کښې د غزوه حنین لاندې بیان کړې شوې ده.(۵).
**ترجمة الباب او د باب حدیث**: دا حدیث شریف په خپل مطلب کښې بالکل واضح دې، البته په ترجمة الباب کښې ذکر کړې شوې یو اهم جزئیه دلته ذکر نهٔ ده، هغه دا چې په ترجمه کښې مؤلف رحمه الله دا فرمائیلي وو چې قبیله بنو هوازن د نبی کریم ﷺ رضاعت سبب اوګرځوو او خپل درخواست ئې پیش کړو او په حدیث شریف کښې ددې رضاعت هیڅ ذکر نشته.
ددې د جواب د کتلو نه مخکښې په دې ځان پوهه کړئ چې د نبی کریم ﷺ د مرضعې حضرت حلیمه سعدیه رضي الله عنها تعلق د بنو سعد سره وو، چې د قبیله بنوهوازن یو شاخ دې.(۶) نو امام بخاری رحمه الله د رضاعت ذکر دلته خو اونه کړو لیکن په خپل تاریخ کښې ئې ددې تفصیلي ذکر کړې دې، ددې نه علاوه د تاریخ نورو امامانو هم ددې ذکر کړې دې.(۷).
لکه د نبی کریم ﷺ د رضاعت سره متعلق دا حدیث شریف ابن اسحاق په مغازی کښې د عمرو بن شعیب عن ابیه(شعیب)عن جده(عبد الله بن عمرو بن العاص) رضي الله عنهما د طریق نه نقل کړې دې او ددې دویم طریق زهیر بن صرو الجمشی رضي الله عنه دې، کوم چې په طبرانی کښې ذکر دې.
ددې دواړو طرقو خلاصه داده چې د هوازن وفد کله جعرانه مقام کښې د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو، په داسې حال کښې چې دغه وخت دا قبیله مسلمانه شوې وه، وې وئیل چې مونږ یو قوم او قبیله یو، په مونږ باندې هغه مصیبت راغلې دې کوم چې ستاسو نه پټ نهٔ دې، تاسو په مونږ باندې احسان اوکړئ، الله تعالی به تاسو ته د احسان بدله درکړی.

---

(۱) کشف الباری: ۱/۳۲۴_۳۲۶)_
(۲) کشف الباری: ۱/۲۹۱، اوګورئ ۲/۴۳۶)_
(۳) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، اردو کتاب الوضوء، باب البزاق والمخاط ونحوه فی الثوب)_
(۴) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب استعمال فضل وضوء الناس)_
(۵) کشف الباری، کتاب المغازی: ۵۳۶_۵۳۸)_
(۶) فتح الباری: ۶/۲۳۸، وعمدة القاری: ۱۵/۵۶، والکوثر الجاری: ۶/۱۱۴)_
(۷) تاریخ البخاری الصغیر: ۱/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بیا په هغوی یو سړي اودریدهٔ چې د هغهٔ نوم زهیر[1] وو، او وې وئیل اني د الله رسوله! زمونږ ښځې ستاسو تروریانې، ماسی او پرورش کوونکی دی، چا چې په وړوکوالی کښې ستاسو پرورش کړې دې.

که حارث بن ابی شمر(د شام بادشاه)او نعمان بن المنذر(د عراق بادشاه)باندې مونږ پئ ښکلې وې او په مونږ باندې دا مصیبت د هغوی له طرفه راغلې وو کوم چې ستاسو له طرفه راغئ، نو په دې معامله کښې به مونږ د هغوی دواړو له طرفه د ښیګړې او د مهربانئ امیدوار وو، حالانکه تاسو خو د ټولو نه غوره یئ(نو ستاسو د ښیګړې او د مهربانئ به څنګه امید نهٔ لرو؟)بیا زهیر نومې سړی د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې څهٔ اشعار پیش کړل، [2] چې په دې کښې د نبی کریم ﷺ د رشته دارئ وغیره ذکر وو[3]. ددې سړی ددې خبرو نه نبی کریم ﷺ ډیره متاثره شو، ددې نه پس د واقعې تفصیل د باب په حدیث شریف کښې ذکر دې.

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** د ترجمة الباب د ابتدائی حصې "ومن الدلیل علی أن الخمس لنوائب المسلمین ما سئل هوازن النبی صلی الله علیه وسلم......فتحلل من المسلمین" سره ددې حدیث مطابقت دې[4].

د باب دویم حدیث شریف د حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه دې.

---

[1]) د علامه واقدی رحمه الله په روایت کښې ددې سړی نوم ابو برقان السعدی ذکر دې، چې ددی نه په ظاهره هم دا معلومیږی چې خطیب بل څوک وو او شاعر بل کس، البته په دې کښې تطبیق هم کیدې شی چې ابو برقان کنیت وو او زهیر ئې نوم وو، شرح القسطلانی:(٢١٤/٥)_

[2]) په هغې کښې څهٔ اشعار لاندې ذکر کولې شی.

| | |
|---|---|
| انا لنشکر للنعماء اذ کفرت | و عندنا بعد هذا الیوم مدخر |
| فالبس العفو من قد کنت ترضعه | من امهاتک ان العفو مشتهر |
| یا خیر من مرحت کمت الجیاد به | عند الهیاج اذا ما استوقد الشرر |
| انا نؤمل عفواً منک تلبسه | هدی البریة اذ تعفو و تنتصر |
| فاعف عفا الله عما انت راهبه | یوم القیامة اذ یهدی لک ظفر |

تغلیق التعلیق:(٤٧٥/٣)_

[3]) القسطلانی:٢١٤/٥، والفتح:٢٣٨/٦، ومجمع الزاوید:١٨٧/٦، وتغلیق التعلیق:(٤٧٣/٣_٤٧٥)_

[4]) عمدة القاری:(٥٧/١٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲۹۲۴ (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ قَالَ وَحَدَّثَنِي الْقَاسِمُ بْنُ عَاصِمٍ الْكُلَيْبِيُّ - وَأَنَا لِحَدِيثِ الْقَاسِمِ أَحْفَظُ - عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ أَبِي مُوسَى، فَأُتِيَ ذَكَرَ دَجَاجَةً وَعِنْدَهُ رَجُلٌ مِنْ بَنِي تَيْمِ اللَّهِ أَحْمَرُ كَأَنَّهُ مِنَ الْمَوَالِي، فَدَعَاهُ لِلطَّعَامِ فَقَالَ إِنِّي رَأَيْتُهُ يَأْكُلُ شَيْئًا، فَقَذِرْتُهُ، فَحَلَفْتُ لَا آكُلُ. فَقَالَ هَلُمَّ فَلَأُحَدِّثْكُمْ عَنْ ذَاكَ، إِنِّي أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فِي نَفَرٍ مِنَ الْأَشْعَرِيِّينَ نَسْتَحْمِلُهُ فَقَالَ «وَاللَّهِ لَا أَحْمِلُكُمْ، وَمَا عِنْدِي مَا أَحْمِلُكُمْ». وَأُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِنَهْبِ إِبِلٍ، فَسَأَلَ عَنَّا فَقَالَ «أَيْنَ النَّفَرُ الْأَشْعَرِيُّونَ». فَأَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرَى، فَلَمَّا انْطَلَقْنَا قُلْنَا مَا صَنَعْنَا لَا يُبَارَكُ لَنَا، فَرَجَعْنَا إِلَيْهِ فَقُلْنَا إِنَّا سَأَلْنَاكَ أَنْ تَحْمِلَنَا، فَحَلَفْتَ أَنْ لَا تَحْمِلَنَا أَفَنَسِيتَ قَالَ «لَسْتُ أَنَا حَمَلْتُكُمْ، وَلَكِنَّ اللَّهَ حَمَلَكُمْ، وَإِنِّي وَاللَّهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَا أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا أَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ وَتَحَلَّلْتُهَا». [۴۱۲۴، ۴۱۵۳، ۵۱۹۸، ۵۱۹۹، ۶۲۴۹، ۶۲۷۳، ۶۳۰۰، ۶۳۰۲، ۶۳۴۰، ۶۳۴۲، ۷۱۱۶]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن عبدالوهاب:** دا ابومحمد عبدالله بن عبدالوهاب حجبی بصری رحمه الله دې. د دوی حالات په کتاب العلم، "باب لیبلغ العلم الشاهد الغائب" کښې تیر شوي دي.(۲)

② **حماد:** دا حماد بن زید بن درهم رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب المعاصی من امرا لجاهلیة...." کښې تیره شوې ده.(۳)

③ **ایوب:** دا ایوب سختیانی رحمه الله دې.

④ **ابوقلابه:** دا ابوقلابه عبدالله بن زید جرمی بصری رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الایمان" کښې تیره شوې ده.(۴)

---

(۱) قوله: "کنا عند ابی موسی.....:الحدیث.اخرجه البخاری ایضا.المغازی.باب قدوما لا شعر یین...... رقم (۴۳۸۵).وباب غزوه تبوک......رقم (۴۴۱۵).والاطعمة.باب الدجاج.رقم (۵۵۱۷_۵۵۱۸).والایمان والنذور. باب قول الله تعالی:(لا یؤاخذ کم الله....).رقم (۶۶۲۳).وباب:لا تحلفوا بآباء کم.رقم (۶۴۹).وباب الیمین فیما لا یملک.....رقم (۶۶۷۸و ۶۶۸۰).وباب الاستثناء فی الایمان. رقم (۶۷۱۸_۶۷۱۹).وباب الکفارة قبل الحنث وبعده.رقم (۷۲۱).والتوحید.باب قول الله تعالی:(والله خلقکم وما تعملون)......رقم (۷۵۵۵). ومسلم. الایمان. باب ندب من حلف یمینا.فرای غیرها خیرا منها......رقم (۴۲۶۳_۴۲۸).والنسای.الایمان.باب الکفارة قبل الحنث.رقم (۳۸۱۱).الصید والذباءح.باب اکل لحوم الدجاج.رقم (۴۳۵۱_۴۳۵۲).وابو داود. الایمان.باب الرجل یکفر قبل ان یحنث.رقم (۳۲۷۶).وابن ماجه.الکفارات.باب من حلف علی یمین......رقم (۲۱۰۷)

(۲) کشف الباری:۳/۳۸_

(۳) کشف الباری:۲/۲۱۹_

(۴) کشف الباری:۲/۲۶_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑤**قاسم بن عاصم الكليبى**: دا مشهور محدث او تابعى حضرت قاسم بن عاصم كليبى تميمى ليثى بصرى رحمه الله دې. بعضو د دوى نسبت كلينى[1] هم ليكلې دې[2].
دوى د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه، او زهدم بن مضرب جرمى، سعيد بن المسيب او عطاء الخراسانى رحمهم الله نه روايت كوى. د دوى نه په روايت كوونكو كښې ايوب سختيانى، حميد الطويل او خالد الخداء رحمهم الله وغيره شامل دى[3].
ابن حبان رحمه الله دوى په خپل كتاب "الثقات" كښې ذكر كړې دى[4].
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى "مقبول"[5].
امام ابوداؤد د دوى نه په "مراسيل" كښې، امام ترمذى په "شمائل" كښې او نورو محدثينو بخارى او مسلم او نسائى رحمهم الله د دوى روايات اخستلې دى. البته په ابن ماجه كښې د دوى څۀ روايت نشته[6]. رحمه الله تعالى رحمة واسعة.
⑥ **زهدم**: دا زهدم بن مضرب جرمى ازدى بصرى رحمه الله دې[7].
⑦**ابوموسى**: د حضرت ابوموسى عبدالله بن قيس اشعرى رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان، "باب أى الاسلام أفضل؟" كښې تير شوې دى[8].
ددې سند ټول راويان د بصرې دى، دغه شان دا سند بصرى شو.

**قوله**: قال: وحدثنى القاسم بن عاصم الكليبى، وأنا لحديث القاسم أحفظ عن زهدم: دلته ويونكې ايوب سختيانى رحمه الله دې[9] او ددې عبارت وضاحت دادې چې

---

[1]) حافظ مزى او ابن حجر وغيره رحمهم الله د دوى نسبت كلينى(نون سره) ذكر كړې دى، ليكن دا په ظاهره صحيح نۀ دې، صحيح كليبى باء مؤحده سره دې، ددې وجه داده چې د دوى أصل تعلق د بنوتميم سره دې چې د هغې يو شاخ كليب بن يربوع هم دې، د هغې طرفته منسوب كيدلو سره دوى ته كليبى وئيلې شى، اوګورئ، لانساب: ۴۶۵/۱۰، وتعليقات تحرير تقريب التهذيب: ۱۷۰/۳، او كلين_ بضم الكاف وفتح اللام_ مصغراً او كسرها بالامالة. د عراق يو كلې دې، اوګورئ، الانساب: ۴۶۳/۱۰، والاكمال للمغلطاى: ۱۸۶/۷، و وضيح المشتبه للذهبى: ۵۶/۵، والله اعلم)_
[2]) تهذيب الكمال: ۳۷۱/۲۳، وتهذيب التهذيب: ۳۱۹/۸)_
[3]) پورته حواله جات)_
[4]) الثقات لابن حبان: ۳۰۳/۵)_
[5]) تقريب التهذيب: ۱۹/۲، رقم (۵۴۶۵)
[6]) پورته حواله ا، وتهذيب الكمال: ۳۷۲/، وتهذيب ابن حجر: ۳۱۹/۸، وخلاصة الخزرجى ۳۱۲)_
[7]) د دوى دحالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الشهادات، باب لا يشهد على شهادة زور.....)_
[8]) كشف البارى: ۶۹/۱)_
[9]) فتح البارى: ۲۳۹/۶، وعمدة القارى: ۵۷/۱۵، وارشاد السارى: ۲۱۵/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ایوب دا روایت د دوو حضراتو یعنی ابوقلابه او قاسم بن عاصم نه روایت کوی او دا دواړه حضرات د زهدم بن مضرب جرمی نه روایت کوی. لکه امام بخاری رحمه الله چې په کتاب الایمان والنذور کښې کوم روایت نقل کړې دې، د هغې سند داسې دې: "حدثنا قتيبة، حدثنا عبد الوهاب عن أيوب، عن أبي قلابة والقاسم التميمي، عن زهدم.... "[1]

په دې کښې د دواړو ذکر یوځائې دې. اوس ایوب سختیانی رحمه الله دا فرمائی چې د قاسم روایت د ابوقلابه په نسبت ماته زیات یاد دې.

**خبرداری:** د دې حدیث مبارک تشریح په مغازی او اطعمه وغیره مختلفو ځایونو کښې راغلې ده.[2]

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** ترجمة الباب سره د دې حدیث مناسبت په دې جمله کښې دې، "وأتي رسول الله صلى الله عليه وسلم بنهب أبل.......فأمرلنا بخمس ذود غرالذرى" چې نبی کریم ﷺ مونږ ته د اوچت قُب والا پنځهٔ سپین اوښان راکړل، دا اوښان د خمس وو، دغه شان د دې حدیث مناسبت د ترجمې د جزء "وماكان النبي صلى الله عليه وسلم يعد الناس أن.....من الخمس" سره واضح دې[3].

د باب دریم حدیث د حضرت ابن عمر رضی الله عنه دې.

۲۹۷۵[4]: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضی الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَعَثَ سَرِيَّةً فِيهَا عَبْدُ اللَّهِ قِبَلَ نَجْدٍ، فَغَنِمُوا إِبِلاً كَثِيرًا، فَكَانَتْ سِهَامُهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا أَوْ أَحَدَ عَشَرَ بَعِيرًا، وَنُفِّلُوا بَعِيرًا بَعِيرًا. [۴۰۸۳]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن یوسف:** دا عبد الله بن یوسف تنیسی رحمه الله دې.

② **مالک:** دا امام دارالهجرة حضرت امام مالک بن انس رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو تذکره د بدء الوحی په "الحديث الثاني" کښې تیره شوې ده.[5]

③ **نافع:** دا نافع د ابن عمر رضی الله عنه مولی دې. د دوی تفصیلی حالات په کتاب العلم، "باب ذکر

---

[1] ) صحیح بخاری، کتاب الایمان والنذور، باب: لا تحلفوا بآباء کم، رقم (٦٦٤٩)_

[2] ) کشف الباری، کتاب المغازی: ٦٠٨، و٦٣٣، و کتاب الاطعمة: ٢٨٧_٢٩٠)_

[3] ) عمدة القاری: ١٥/٥٧)_

[4] ) قوله: عن ابن عمر رضی الله عنه: الحدیث، اخرجه البخاری فی المغازی، باب السریة التی قبل نجد، رقم (٤٣٣٨)، ومسلم، فی الجهاد والسیر، باب الانفال، رقم (٤٥٢١_٤٥٢٥)، وابوداود، فی الجهاد، باب فی النفل فی السریة.....رقم (٢٧١٤_٢٧٤٦)_

[5] ) کشف الباری: ١/٢٩٨_٢٩٠)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

العلم والفتیا فی المسجد" کښې تیر شوي دي.(۱).

۴ ابن عمر: د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما حالات په کتاب الایمان، "باب الایمان...." کښې تیر شوي دي.(۲).

عن ابن عمر رضی الله عنهما أن رسول الله صلی الله علیه وسلم بعث سریة،فیها عبدالله بن عمر،قبل نجد،فغنموا ابلا کثیرة

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دي چې نبی کریم ﷺ یوه سریه روانه کړه،چې په هغې کښې حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په خپله هم موجود وو،دا سریه د نجد طرفته لیږلې شوې وه،په دې کښې هغوی په غنیمت کښې ډیر زیات اوښان حاصل کړل. پورته په حدیث شریف کښې چې د کومې سریې تذکره ده هغه په "سریه ابی قتادة بن ربعی الانصاری" سره موسوم ده،ددې امیر حضرت ابوقتاده رضي الله عنه وو،دا سریه د فتح مکه نه مخکښې روانه کړې شوې وه،د ابن سعد د تحقیق مطابق دا د ۸هجری واقعه ده.(۳).

دلته نجد مطلقاً ذکر شوې دې،چې ډیره لویه علاقه ده،ددې تحقیق وړاندې په څه مقام باندې تیر شوې دې.(۴) ،البته د باب په حدیث کښې د نجد نه یو خاص علاقه"ارض محارب" مراده ده،کوم ځائې چې قبیله غطفان اوسیدله،دا سریه ددې قبیلې د شکست او سرکوبئ دپاره روانه کړې شوې وه.(۵).

د مشهور قول مطابق په دې سریه کښې پنځلس صحابه کرام رضي الله عنهم وو،په مال غنیمت کښې دوه سوه اوښان،دوه زره چیلئ او ډیر زیات قیدیان په لاس راغلل او دا سریه صرف پنځلس ورځې وه.(۶) په دې حدیث شریف کښې د نفل ذکر راغلي دې،لاندې به مونږ ددې متعلق اختصار سره بحثونه پیش کوو،ځکه چې دا حدیث شریف د نفل په باب کښې د اصل حیثیت لري.

**د نفل لغوی او اصطلاحی تعریف:** نفل د نون او د فاء فتحې سره دې،کله فاء ساکن هم لوستلې شی،ددې جمع انفال ده،ددې معنی ده زیاتوالې.(۷).

د شریعت په اصطلاح کښې نفل هغه انعام او زیاتوالی ته وئیلې شی کوم چې مجاهد ته د غنیمت نه علاوه ملاویږی،البته ددې اطلاق په اکثرو روایتونو کښې په مطلق غنیمت

---

[۱] کشف الباری:۴/۶۵۱)_

[۲] کشف الباری:۱/۶۳۷)_

[۳] طبقات ابن سعد:۲/۱۳۲)_

[۴] اوګورئ د باب ما جاء فی بیوت ازواج النبی....شپږم حدیث،حدیث ابن عمر)_

[۵] طبقات ابن سعد:۲/۱۳۲_۱۳۳)_

[۶] پورته حواله،والاوجز:۹/۱۱۸)_

[۷] شرح الزرقانی:۳/۱۵،کتاب الجهاد،جامع النفل فی الغزو،باب رقم(۳۰۲)والاوجز:۹/۱۱۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

باندې هم شوې دي، علامه راغب اصفهانی وائی چې دا اختلاف د تعبیر دې، لکه په دې اعتبار چې غازی ته دا انعام ملاؤ شوې دې نو دې ته غنیمت وائی او په دې اعتبار سره چې د الله تعالی له طرفه ورته دا انعام ملاؤ شو، چې ضروری نۀ وو نو دې ته نفل وائی، په دې دواړو کښې نور فرقونه هم بیان کړې شوې دی، چې د هغې دلته ضرورت نشته.[1]

**د نفل مشروعیت:** د نفل په مشروعیت باندې د جمهور علماؤ او فقهاؤ اتفاق دې، البته صرف یو فقیه عمرو بن شعیب ددې د مشروعیت قائل نۀ دې. هغوی دا وائی چې د نبی کریم ﷺ نه پس ددې ګنجائش نشته لیکن دا قول مرجوح دې.[2]

① **امام شافعی او امام مالک رحمهماالله:** بیا ائمه ثلثه کښې امام شافعی او امام مالک رحمهما الله دې لره د ضرورت د شرط سره مشروط کوی چې ترڅو سخت ضرورت نۀ وی، مثلاً مسلمانان په تعداد کښې کم او کفار په تعداد کښې زیات وی نو جائز دی، او که داسې نۀ وی نو جائز نۀ دی

② **احناف:** احناف ددې د مطلقِ جواز قائله دی، ځکه چې دا هم د تحریض او د ترغیب یو قسم دې، د الله تعالی حکم هم ددې خبرې دې چې ﴿یاأیها النبی حرض المؤمنین علی القتال﴾[3] چې "ائې نبی! مسلمانان په قتال باندې راتیز کړۀ" دا حکم مطلق دې[4] البته احناف کثرالله سوادهم دا هم فرمائی. کمافی البدائع. چې د وخت د امام دپاره دا مناسب نۀ دی چې د غنیمت ټول مال چاته نفلی ورکړی، ځکه چې په دې کښې به د ټولو مجاهدینو حق اووهلې شی، لیکن که داسې اوکړی نو جائز دی.[5]

**د نفل صورتونه:** د تنفیل بیا درې صورتونه دی:

① د وخت امام د لوئې لښکر نه مخکښې یو وړوکې لښکر (سریه) اولیږی، چې په دشمن باندې حمله اوکړی، دې لښکر ته چې کوم غنیمت ملاؤ شی د هغې یوه مقرره حصه مثلاً څلورمه یا دریمه به د هغۀ دپاره خاص کړی.

② د وخت امام یا د لښکر امیر د څۀ متعین او معلومو کسانو دپاره څۀ انعام مقرر کړی او دا ددې وجې نه چې هغوی د جنګ دوران کښې د بهادرئ مظاهره کړې وی یا ئې بل څۀ د

---

[1] ) المفردات فی غریب القرآن: ٥٠٤، کتاب النون، مادة نفل، والاوجز: ١١٦/٩، والبداءع: ٤٥٩/٦، وفی الموسوعة الفقهية (٧٤/١٤): وهو.....زيادة مال على سهم الغنيمة، يشترط الامام او امير الجيش لمن يقوم بما فيه نكاية زائدة على العدو")_

[2] ) الموسوعة الفقهية: ٧٥/١٤، (مادة تنفيل)، وفتح البارى: ٢٤٠/٦، والاوجز: ١١/٩)_

[3] ) الانفال: ٦٥)_

[4] ) الموسوعة الفقهية: ٧٥/١٤، وشرح الزرقانى: ١٦/٣)_

[5] ) بدايع الصنايع: ٤٥٩/٩_ ٤٦٠، وانظر فتح القدير: ٢٤٩/٥، والفتاوى الشامية لابن عابدين: ٢٦/٣، وكتاب السير للشيبانى: ١٢١/٢/١، ابواب الانفال)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فائدې کار کړې وی چې دغه کار نور چا نۀ وی کړې او دا کار مشروط هم نۀ وی. یعنی د مخکښې نه پرې خبره نۀ وی شوې، بلکه د غنیمت د تقسیم په وخت کښې دا انعام ورکړې شی چې فلانی سړی ته د هغۀ د مقررې حصې نه زیاتی د هغۀ ددې کارنامې د وجې نه دا انعام ورکولې شی.

④ د وخت امام دا اووائی چې کوم سړې فلانې دیوال مات کړی یا په دې کښې سورې اوکړی (ونحو ذلك) نو هغۀ ته به دا څیز یا دومره قدرې مال د انعام په طور ورکولې شی([1]).

دا درې صورتونه شو، دا درې صورتونه د جمهورو فقهاؤ په نزد صحیح دی، البته امام مالک رحمه الله او د هغوی ملګری دریم صورت لره مکروه ګنړی، هغوی دا فرمائی چې دې سره به د مجاهد اخلاص متاثره شی او د هغۀ قتال به د دنیا دپاره شی، نۀ چې د آخرت دپاره، دغه شان په دې کښې خپل ځان په خطره کښې اچول هم موندې کیږی حالانکه دا سې کول جائز نۀ دی([2]).

په دې سلسله کښې د جمهورو دلیل د حضرت حبیب بن مسلمه فهری هغه روایت دې کوم چې په ابوداؤد شریف کښې([3]) کښې مذکور دې چې نبی کریم ﷺ په ابتداء کښې څلورمه او د واپسئ په وخت دریمه حصه د نفل په طور ورکړه، ددې نه ثابته شوه چې ابتداء کښې هم دا کار صحیح دې([4]).

**د نفل محل**: د نفل ادا کول د بیت المال نه هم جائز دی لیکن په دې صورت کښې د نفل قسم او مقدار معلومول ضروری دی.

دغه شان د دشمن نه چې نزدې کوم غنیمت حاصل شی، په هغې کښې هم نفل ورکول جائز دی، په دې کښې اګرچه جهالت موندې کیږی چې څۀ معلومه ده چې غنیمت به حاصل هم شی یا نۀ؟ لیکن دا جهالت نقصان دا نۀ دې ځکه چې ددې ضرورت دې([5]).

بیا د امت د فقهاء کرامو رحمهم الله په دې خبره کښې اختلاف دې چې نفل که د غنیمت نه وی نو څنګه به وی؟

① **حنابله او شوافع**: د حنابله او شوافعو په نزد به نفل د غنیمت د خمس په څلورمه حصه کښې ورکولې شی، هم دا قول د حضرت انس رضی الله عنه هم دې، دلیل دا حدیث شریف دې، "**لا نفل الا بعد الخمس**"([6]).

---

[1]) الموسوعة: ٧٥/١٤، والمغنی: ١٨٥/٩، وحاشیه ابن عابدین: ٢٦٢/٣، وفتح القدیر: ٢٤٩/٥)_

[2]) حاشیه الزرقانی: ١٦/٣، والاوجز: ١٢٥/٩)_

[3]) سنن ابی داود، کتاب الجهاد، فیمن قال: الخمس قبل النفل، رقم (٢٧٤٨_ ٢٧٥٠)_

[4]) المغنی: ١٨٤/٩، والاوجز: ١٢٥/٩)_

[5]) المغنی: ١٨٦/٩، والموسوعة: ٧٥/١٤)_

[6]) المغنی: ١٨٧/٩، دا د موفق د وضاحت مطابق دې، ورنه د شوافعو په کتابونو.....[بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

(۲) **احناف:** د احنافو په نزد په دې کښې تفصيل دې:
که د جنګ دوران کښې امام نفل ورکوي نو د غنيمت د خمس څلورمه حصه به وي.
که د مال غنيمت د تقسيم نه پس کوي يعني د جنګ ختميدلو نه پس د غنيمت د تقسيم عمل شروع شي او هغه وخت د نفل ورکولو اعلان اوکړي نو دا به په خمس کښې جاري کيږي(۱). او د مالکيه په نزد به نفل د غنيمت په خمس کښې جاري کيږي شرح الزرقاني: ۳/۱۲، وبداية المجتهد: ۱/۳۹٦، الفصل الثالث في حکم الانفال)_

**د نفل مقدار:** د فقهاء کرامو رحمهم الله په نزد د نفل دوه مقدارونه دي، غوره او بيکاره.
بيکاره خو دادې چې څلورمه حصه يا دريمه يا ددې نه هم کمه وي يا بالکل نۀ وي، د وخت امام ته په دې ټولو څيزونو کښې اختيار دې چې په نفل کښې دريمه ورکوي يا څلورمه يا ددې نه هم کمه يا بالکل نۀ ورکوي. په دې کښې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې(۲).
البته د غوره په حد کښې د دوی اختلاف دې.
د امام احمد رحمه الله په نزد د دريمې حصې نه زيات مقدار په نفل کښې نۀ شي ورکړې کيدې(۳)
د امام شافعي رحمه الله په نزد د نفل څۀ غوره حد نشته بلکه دا د وخت د امام په رائې باندې منحصر ده ځکه چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم کله دريمه حصه ورکړې ده او کله څلورمه نو دا ددې خبرې دليل دې چې "ليس للنفل حد"(۴)
او د احنافو په نزد هم د نفلو څۀ غوره مقدار متعين نۀ دې، که د وخت امام اوغواړي نو ټول غنيمت هم لښکر ته ورکولې شي ليکن دوی دا هم فرمائي چې دا کار مناسب نۀ دې ځکه چې په دې صورت کښې به د نورو مجاهدينو حق اووهلې شي(۵).
دا خو نفل سره متعلق فقهي بحثونه وو کوم چې مونږ دلته مختصراً پيش کړل.
اوس يو نظر د باب په حديث شريف باندې اچوو.

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] کښې د هغوی مذهب دا ليکلې شوې دې چې نفل به د خمس په خمس کښې جاري کيږي، يعنی د غنيمت د پنځمې حصې پنځمه حصه به نفل کښې ورکولې شي، هم دا صحيح قول دې، اوګورئ، نووی: ۲/۸٦، وفتح الباري: ۲٤. وحديث انس اخرجه ابوداود من حديث معن بن يزيد، کتاب الجهاد، باب في النفل من الذهب والفضة.....رقم (۲۷۵۳)_

[1] ) حاشية ابن عابدين: ۳/۲٦٤، وفتح القدير: ۵/۲۵۰، والاوجز: ۹/۱۲۷)_
[2] ) الموسوعة: ۱٤/۷٦، (مادة تنفيل)_
[3] ) پورته حواله، والمغني: ۹/۱۸٤، والاوجز: ۹/۱۲۵)_
[4] ) الاوجز: ۹/۱۲۵، والموسوعة: ۱٤/۷٦)_
[5] ) حاشيه ابن عابدين: ۳/۲٦۳، والبدايع: ۹/٤٦، فصل في احکام الغنام.....والاوجز: ۹/۱۲٦_۱۲۷. د نفلو سره متعلق نورو معلوماتو دپاره اوګورئ، الاوجز: ۹/۱۱٦_۱۲۸، والموسوعة الفقهية: ۱٤/۷٤_۷۷، والاستذکار لابن عبدالبر: ٤/۱٤_۳٦، وفتح الباري: ٦/۲۳۹_۲٤۱، وعمدة القاري: ۱۵/۵۵_٦۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فكانت سهمانهم اثني عشر بعيراً أو أحد عشر بعيراً:** نو په سريه كښې شريک كسانو كښې هر كس ته دولس دولس يا يوولس يوولس اوښان ملاؤ شو.

"سهمان" د سين ضمې او د باء سكون سره، د سهم جمع ده، يعنى حصې[1] مطلب دادې چې په پورته مذكوره تعداد كښې اوښان د غنيمت په طور ملاؤ شو.

امام نووى رحمه الله فرمائى چې بعضې خلقو ددې معنى دا بيان كړې ده چې د ټولو شريكانو حصه دولس اوښان وو، ليكن دا واضح طور سره غلطه خبره ده، ځكه چې د ابوداؤد رحمه الله وغيره[2] په روايت كښې وضاحت شوې دې چې د هر شريک حصه دولس اوښان وو[3].

**د شريكانو په حصه كښې څومره څومره اوښان راغلل؟** د باب په حديث كښې شک سره "اثني عشر بعيراً او احد عشر بعيراً" راغلې دې، دا شک د امام مالک رحمه الله له طرفه راغلې دې او د حضرت نافع نور ټول شاګردان دا د شک نه بغير "اثني عشر بعيراً" نقل كوى، ابن عبدالبر رحمه الله هم دا فرمائيلې دى[4].

**د اثنى عشربعيراً مراد:** وړاندې دا خبره تيره شوې ده چې په دې سريه كښې، د كومې چې د باب په حديث كښې تذكره ده، دې كښې چې كوم غنيمت حاصل شو نو هغه دوه سوه اوښان، دوه زره چيلئ او څۀ قيديان وو او دا خبره هم بيان شوه چې د اهل سير مشهور قول دادې چې په دې كښې پنځلس كسان شريک وو، اوس كه دوه سوه اوښان پنځلس لره د دولس په حساب سره تقسيم وركړې شى نو جواب ۱۸۰ راځى او د دوو سوو خمس شلويښت دې، ۱۸۰ او شلويښت نو ۲۲۰ شوې، نو دلته حساب صحيح نۀ راځى ځكه چې يا خو د دوو سوو عدد غلط دې يا د دوو سو شلو تعداد غلط دې؟

ددې تضاد جواب د حديث شارحينو دا كړې دې چې اوښان او چيلئ يوځائې وركړې شوې وې او لس چيلئ د يو اوښ برابر وې، نو دوه زره چيلئ په دې حساب سره د دوو سوو اوښانو برابر شوې، دوه سوه اوښان د مخكښې نه وو، دغه شان دا مجموعه څلور سوه شوه. دې عدل لره د نظر لاندې ساتلو د وجې نه اثني عشر بعيراً وئيلې شوې دې او په نفلو كښې هم ددې لحاظ دې، هم دا توجيه د ټولو نه غوره ده[5].

**يو اعتراض او د هغې جوابات:** البته په دې ټول تفصيل باندې يو اعتراض دا پيدا كيږى چې

---

[1]) أوجز ۹:۱۱۹، وشرح الزرقانى:۳/۱۵)_

[2]) سنن أبى داؤد، كتاب الجهاد، باب فى النفل فى السرية......رقم(۲۷٤۱)_

[3]) اوجز:۹/۱۹۹، والنووى على مسلم:۲/۸٦، وفتح البارى:٦/۲۳۹)_

[4]) الاستذكار: ٤/٤١، والتمهيد: ١٤، حديث رابع عشر لنافع عن ابن عمر، وفتح البارى:٦/۲۳۹، والاوجز:۹/۱۱۹)

[5]) طبقات ابن سعد:۲/۱۳۲_۱۳۳، سرية ابى قتادة ربعى.....والاوجز:۹/۱۱۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوښان د عدل نه پس څلور سوه شو،ددې خمس(پنځمه حصه)اتیا ده.د کومې نه چې نفل ورکړې شو،پنځلس کسانو ته د ۱۲، ۱۲په حساب سره یوسل اتیا اوښان ورکړې شو. حاصل جمع ۲٦۰شو،اوس سوال دا دې چې باقي یوسل څلویښت اوښان څهٔ شو؟

ددې اعتراض نه د خلاصی دپاره حافظ رحمه الله خو دا اووئیل چې په سریه کښې شریک کسان پنځلس نهٔ وو بلکه پنځویشت وو[1]،پنځویشت لره دولس کښې ضرب ورکړو نو حاصل جمع ۳۰۰جوړیږی،اتیا خمس دې،چې دا دواړه جمع کړې شی نو حاصل ۳۸۰راځی چې څلورسوو ته نزدې نزدې دې.

لیکن د حافظ رحمه الله دا جواب د بعضې وجوهاتو د وجې نه داسې نهٔ دې چې اعتماد پرې اوکړې شی.

یو وجه خو داده چې اکثر اهل سیر په سریه کښې د شریک کسانو تعداد پنځلس ښودلې دې،مثلاً ابن سعد،قسطلانی او صاحب السیر الحلبیة وغیره وغیره[2].دویمه وجه داده چې بعضې حضراتو د شریکانو تعداد لس[3]او بعضو شپاړس[4]او بعضو څلور زره هم ښودلې دې[5]،په دې صورت کښې به حافظ صاحب څهٔ کوی؟

ددې اعتراض دویم جواب دادې چې که ددې حدیث شریف ټول روایتونه د نظر لاندې کړې شی نو دا خبره پوهې ته راځی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو لښکر روان کړې وو،رخ د هغوی د نجد طرفته وو،هلته د رسیدلو نه پس د لښکر یوه حصه جدا شوه او د بنو غطفان د شکست دپاره روانه شوه،هلته دوی فتح بیاموندہ او غنیمت ئې هم بیاموندهٔ،د سریې امیر خپل هر یو ملګری ته یو یو اوښ د نفل په طور ورکړو،باقي غنیمت سره لښکر کښې واپس راغلل. هرکله چې دوی په لښکر کښې واپس شو نو باقي غنیمت هم تقسیم شو او د لښکر هر هر کس ته دولس دولس اوښان ملاؤ شو ځکه چې د لښکر خپل غنیمت هم وو،دا ټول چې جمع کړې شو نو د هر یو په حصه کښې دولس دولس اوښان راغلل او په سریه کښې د.شریک کسانو په لاس دیارلس دیارلس اوښان راغلل ځکه چې یو یو اوښ نفلی وو.

ددې دلیل دوه جدا جدا روایتونه دی،اول د ابن اسحاق نه روایت دې او دویم د شعیب بن ابی حمزه نه،ددې دواړو روایتونو خلاصه هغه ده کومه چې پورته ذکر شوه،مونږ دلته صرف د شعیب بن ابی حمزه د روایت الفاظ نقل کوو،حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی:

"بعثنا رسول الله صلی الله علیه وسلم فی جیش،قبل نجد،وانبعث سریة من الجیش،فکان سهمان الجیش

---

[1]) فتح الباری:۵٦/۸،والاوجز:۱۱۹/۹)_

[2]) اوګورئ: طبقات ابن سعد:۱۳۲/۲،والسیرة الحلبیة:۲۰۴/۳،والاوجز:۱۱۹/۹)_

[3]) دا د ابن التین رحمه الله رائې ده،اوګورئ عمدة القاری:۳۱۲/۱۷)_

[4]) حکاه ابن الاثیر فی الکامل:۱۵۷/۲)_

[5]) دا د ابن عبدالبر قول دې،دا قول حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د حقیقت نه خلاف او بې اصل ښودلې دې،اوګورئ بذل:۳۵۳/۱۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اثنی عشر بعیراً، اثنی عشر بعیراً، ونفل أهل السرية بعيراً بعيراً، فكانت سهمانهم ثلاثة عشر"[1].
په دې روايت باندې ابن عبد البر رحمه الله اګر چه سخت رد کړې دې ځکه چې دا روايت د نافع د نورو شاګردانو د بيان کړه روايتونو نه خلاف دې، کوم چې د شعيب په مقابله کښې ثقات هم دی او اثبات هم دی[2].
البته د ابن عبدالبر رحمه الله ددې رد د وجې نه څۀ فرق نۀ پريوځی، هغه داسې چې ابن عبد البر په خپله هم دا منی چې د شعيب بيان کړده معنی هم صحيح ده، ځکه چې د امت د علماؤ او فقهاؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چې که د لښکر څۀ حصه سريه دپاره روانه شی نو کوم غنيمت چې ملاؤ شی، په هغې کښې به لښکر هم شريک وی، په سريه کښې د شريک کسانو امتياز به داسې وی چې هغوی ته به نفل ورکولې شی[3] نو په دې واقعه کښې هم دغه شان شوې دی لکه څنګه چې د شعيب بن ابی حمزه او د ابن اسحاق وضاحت موجود دې۔ ددې وجې نه د ابن عبد البر رحمه الله دا اعتراض په خپل محل باندې نۀ دې۔ والله أعلم
**فائده:** د باب په حديث شريف کښې چې د کوم نفل تذکره ده، په هغې کښې د فقهاؤ اختلاف دې چې دا نفل د کوم څيز نه ورکړې شوې وو، مشهور قولونه درې دی:
① امام اوزاعی، احمد، ابو ثور او احناف رحمهم الله وغيره ددې خبرې قائل دی چې دا نفل د اصل غنيمت نه وو۔ دليل د ابواسحاق روايت دې چې د هغې ذکر اوس د ابوداؤد په حوالې سره تير شو۔
② د امام مالک، قاسم بن سلام، سعيد بن المسيب او امام بخاری رحمهم الله وغيره رائې داده چې دا غنيمت د خمس نه وو، د دوی دليل د ابن عبد البر رحمه الله د قول مطابق د باب حديث شريف دې ځکه چې د حضرت نافع د اکثرو شاګردانو روايتونه په دې باندې دلالت کوی. سوا د ابن اسحاق د روايت نه۔
③ د امام شافعی وغيره رحمه الله رائې داده چې په دې کښې نفل د خمس په خمس کښې وو، ابن عبد البر رحمه الله باوجود ددې چې مالکی دې ليکن دې رائې ته ترجيح ورکوی[4] والله أعلم
**قوله: ونفلوا بعيراً بعيراً:** او په سريه کښې شريک ټولو کسانو ته يو يو اوښ د نفل په طور سره ورکړې شو۔
په دې روايت کښې د منفل تعيين نشته چې نفل چا ورکړې وو، دلته منفل مجهول دې او د

---
[1] ) سنن ابی داؤد، كتاب الجهاد، باب فی النفل فی السرية......رقم (۲۷۴۱)، و رواية ابن اسحاق انظرها فی نفس هذا الباب، برقم (۲۷۴۳)_
[2] ) الاستذكار: ۴۲/۴_
[3] ) پورته حواله، والفتح: ۶/ولنووی علی مسلم: ۸۶/۲، والمغنی: ۱۸۳/۹_۱۸۴، والاوجز: ۱۳۰/۹_
[4] ) وللاستزادة انظر: الاستذكار: ۴۳/۴_۴۶، والفتح: ۲۴/۶، والاوجز: ۱۲۸/۹، واعلاء السنن: ۲۶۰/۱۲_۲۷۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مسلم د روایت(۱)نه معلومیږی چې نفل ورکوونکې نبی کریم ﷺ وو او د ابوداؤد روایت(۲) بالکل ددې خلاف دې، په کوم کښې چې ابواسحاق دا فرمائی چې نفل ورکوونکې د سریې امیر حضرت ابوقتاده انصاری رضی الله عنه وو؟

بیا د غنیمت په تقسیم کښې هم اختلاف دې چې غنیمت چا تقسیم کړې وو؟

ددې جواب دادې چې نفل ورکول د سریې د امیر له طرفه وو او تقسیم د نبی کریم ﷺ په لاسونو مبارکو شوې وو ځکه چې نبی کریم ﷺ ته د نفل ورکولو پته اولګیده نو هغوی مبارک دا کار برقرار اوساتلو، ددې وجې نه دا د "تقریر" د قسم نه شو چې د سنت یو قسم دې. په دې باندې د لیث عن نافع وغیره روایت دلالت کوی، په کوم کښې چې راغلې دی چې "ولم یغیره رسول الله صلی الله علیه وسلم"(۳)، یا دواړه کارونه د سریې امیر کړې وو، دا کار هم په تقریر باندې محمول دې ځکه چې نبی کریم ﷺ هیڅ اعتراض اونه کړو او د لښکر د امیر فیصله ئې برقراره اوساتله(۴).

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ددې حدیث مطابقت د ترجمة الباب د جزء "الانفال من الخمس" سره دې، په حدیث کښې چې "ونفلوا بعیراً بعیراً" راغلې دی نو دا د خمس نه وو، هم دا د امام بخاری رحمه الله رائې ده.(۵) **کمامرآنفاً مفصلاً.**

**یوه فائده:** علامه نووی رحمه الله فرمائی چې په اکثرو روایتونو کښې اثناعشر راغلې دې او په بعضو کښې اثنی عشر. کمافی حدیث الباب. دا لفظ خو واضح دې چې په حالت د نصب کښې دې او د مشهور قاعدې مطابق دې. اولنې اعراب هم ددې حضراتو په نزد صحیح دې، کوم حضرات چې دا وائی چې د مثنی اعراب به په درې واړو حالتونو(رفع، نصب، جر)کښې د الف سره وی، دا د عربو د څلورو قبیلو لغت دې او ددې مثالونه هم په کلام د عربو کښې په کثرت سره بیاموندې شی......(۶).

د باب څلورم حدیث هم د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دې.

۲۹۲۲:(۷). حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب الانفال، رقم (۴۵۲۳)_

(۲) ابوداؤد شریف، کتاب الجهاد، باب فی النفل فی السریة......رقم(۲۷۴۳))_

(۳) صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب الانفال، رقم (۴۵۲۲))_

(۴) شرح النووی علی مسلم:۸۶/۲، وفتح الباری:۲۴۰/۶، والاوجز:۱۲۱/۹)_

(۵) الکوثر الجاری:۱۱۷/۶)_

(۶) شرح النووی علی صحیح مسلم:۸۶/۲، وتعلیقات جامع الاصول:۶۸۱/۲)_

(۷) قوله: عن ابن عمر رضی الله عنهما: الحدیث، اخرجه مسلم، کتاب الجهاد......باب الانفال، رقم (۴۵۲۶_۴۵۲۸)، وابو داؤد، کتاب الجهاد، باب فی النفل فی السریة......رقم (۲۷۴۶).

......[بقیه برصفحه آئنده]......

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رضي الله عنهما- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ السَّرَايَا لِأَنْفُسِهِمْ خَاصَّةً سِوَى قِسْمِ عَامَّةِ الْجَيْشِ.

## رجال الحديث

① **يحيى بن بكير**: دا يحيى بن عبد الله بن بكير مخزومي رحمه الله دي.
② **الليث**: دا ليث بن سعد فهمي رحمه الله دي.
③ **عقيل**: دا عقيل بن خالد رحمه الله دي.
④ **ابن شهاب**: دا محمد بن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله رحمه الله دي چې مشهور په ابن شهاب زهري دې ددې څلورواړو حضراتو تذکره د "بدء الوحی" په "الحديث الاول" کښې تيره شوې ده.[1]
⑤ **سالم**: دا مشهور تابعي سالم بن عبد الله بن عمر رحمه الله دې. د دوی حالات په کتاب الايمان، "باب الحياء من الايمان" کښې تير شوي دي.[2]
⑥ **ابن عمر**: د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما تذکره په کتاب الايمان، "باب الايمان...." کښې تيره شوې ده.[3]

**عن ابن عمر رضي الله عنهما أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان ينفل بعض من يبعث من السرايا لانفسهم خاصة، سوى قسم عامة الجيش.**

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم به کوم خلق سريو ته ليږل، په هغوی کښې به ئې بعضوته نفل ورکول، چې دا نفل به دهغوی سره د لښکر د عامو کسانو نه علاوه خاص وو.

**د باب د حديث نه د حافظ صاحب استدلال**: حافظ ابن حجر رحمه الله ددې حديث نه دا استدلال کړې دې چې په نفل کښې د يو سريې بعضې کسان محروم ساتل او بعضو ته ورکول جائز دی[4] او د جمهورو په نزد دا جائز نهٔ دی، په سريه کښې شريک ټولو کسانو ته نفل ورکول ضروري دی.[5] زمونږ په نزد ددې حديث معنی دا ده چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم به مختلف سريې روانولې چې په هغې کښې به ئې بعضې سريو ته نفل ورکوو او بعضو ته به ئې نهٔ ورکوو.

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] دا تخريج د تخريج د عام صاحبانو د تحقيق مطابق دې ځکه چې هغوی دا مستقل حديث شمار کړې دې ورنه د علامه ابن الاثير جزري رحمه الله تحقيق دادې چې د باب تير شوې روايت او دا روايت دواړه يو حديث دې لهذا دواړه جدا جدا شمارل صحيح نهٔ دی. اوګورئ جامع الاصول: ٢/٦٨١_٦٨٢)_

[1]) كشف الباري: ١/٣٢٣_٣٢٦)_
[2]) كشف الباري: ٢/١٢٨)_
[3]) كشف الباري: ١/٦٣٧)_
[4]) فتح الباري: ٦/٢٤١)_
[5]) دا بحث سابقه باب کښې تير شوې دې.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پورته مونږ ترجمه د شافعيه مسلک مطابق کړې ده (۱).

**د حافظ د مذکوره استدلال وجه:** شوافع چونکه ددې خبرې قائل دی چې نفل به د خمس د خمس نه ورکړې کيږي، ددې وجې نه هغوی هم په يو سريه کښې **"تخصيص البعض دون البعض في النفل"** ته جائز وائی، که هغوی دا جائز اونۀ ګڼړی نو دهغوی دخمس الخمس والا قول صحيح نۀ پاتې کيږي. علامه نووی رحمه الله هم دا تشريح د مخکښنی حديث د جملې **"ونفلوا بعيراً بعيراً"** کړې وه او دا ئې فرمائيلې وو چې ددې مطلب دادې چې په سريه کښې کوم د نفل مستحق وو، نو په هغوی کښې هر يو ته يو يو اوښ د نفل په طور سره ملاؤ شو، دا مطلب نۀ دې چې په سريه کښې شريک ټولو کسانو ته نفل ملاؤ شو (۲).

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چې امام نووی (او حافظ) ته ددې تاويل کولو ضرورت ددې وجې نه پيښ شو چې د خپل راجح مذهب دپاره څۀ تائيد کوونکې څيز تلاش کړي، ځکه چې دا حضرات د نفل د خمس الخمس قائل دی، ددې وجې نه په دې حديث شريف کښې چې د خمس الخمس کوم مقدار جوړيږي نو هغه په ټوله سريه باندې تقسيميدې نۀ شی، ددې وجې نه دې حضراتو دا مذکوره تاويل اوکړو.

البته دا تاويل چليدلې نۀ شی ځکه چې هم ددې حديث په يو طريق کښې صراحت سره دا الفاظ راغلې دی، **"نفلنا أميرنا بعيراً بعيراً لكل إنسان"** (۳) ددې نه ښۀ وضاحت سره دا معلوميږی چې په سريه کښې شريک ټول کسان د نفل مستحق ګرځيدلې وو (۴) والله أعلم.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت بالکل واضح دې ځکه چې په ترجمه کښې يو جزء **الانفال من الخمس** وو، په حديث شريف کښې هم د نفل ذکر دې، کوم چې د خمس نه ويستلې کيږي. **كما هو مذهب البخارى**. ددې وجې نه مطابقت اوموندلې شو. **والله أعلم بالصواب**

د باب پنځم حديث شريف د حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه دې.

**۲۹۶۷ (۵): حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ**

---

(۱) التلخيص الحبير: ۲/۲۷۳، واعلاء السنن: ۱۲/۲۷۶، نقلاً عن الترمذى ببلاغ مالک بن انس)_

(۲) شرح النووى على مسلم: ۲/۸۶)_

(۳) سنن ابى داود، كتاب الجهاد، باب فى النفل فى السرية.....رقم (۲۷۴۳))_

(۴) الاوجز: ۹/۱۲۰)_

(۵) قوله: عن ابى موسى رضي الله عنه: الحديث، اخرجه البخارى ايضا، كتاب مناقب الانصار، باب هجرة الحبشة، رقم (۳۸۷۶)، وكتاب المغازى، باب عزوة خيبر، رقم (۴۲۳۰ و۴۲۳۳)، ومسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب من فضايل جعفر...واهل سفينتهم، رقم (۶۴۱۰)، وابوداود، فى كتاب الجهاد، باب فيمن جاء بعد الغنيمة...... رقم (۲۷۲۵).

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أَبِي مُوسَى - رضي الله عنه - قَالَ بَلَغَنَا مَخْرَجُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَنَحْنُ بِالْيَمَنِ فَخَرَجْنَا مُهَاجِرِينَ إِلَيْهِ، أَنَا وَأَخَوَانِ لِي، أَنَا أَصْغَرُهُمْ، أَحَدُهُمَا أَبُو بُرْدَةَ وَالآخَرُ أَبُو رُهْمٍ، إِمَّا قَالَ فِي بِضْعٍ، وَإِمَّا قَالَ فِي ثَلاَثَةٍ وَخَمْسِينَ أَوِ اثْنَيْنِ وَخَمْسِينَ رَجُلاً مِنْ قَوْمِي فَرَكِبْنَا سَفِينَةً، فَأَلْقَتْنَا سَفِينَتُنَا إِلَى النَّجَاشِيِّ بِالْحَبَشَةِ، وَوَافَقْنَا جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَأَصْحَابَهُ عِنْدَهُ فَقَالَ جَعْفَرٌ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَعَثَنَا هَا هُنَا، وَأَمَرَنَا بِالإِقَامَةِ فَأَقِيمُوا مَعَنَا. فَأَقَمْنَا مَعَهُ، حَتَّى قَدِمْنَا جَمِيعًا، فَوَافَقْنَا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ، فَأَسْهَمَ لَنَا. أَوْ قَالَ فَأَعْطَانَا مِنْهَا. وَمَا قَسَمَ لأَحَدٍ غَابَ عَنْ فَتْحِ خَيْبَرَ مِنْهَا شَيْئًا، إِلاَّ لِمَنْ شَهِدَ مَعَهُ، إِلاَّ أَصْحَابَ سَفِينَتِنَا مَعَ جَعْفَرٍ وَأَصْحَابِهِ، قَسَمَ لَهُمْ مَعَهُمْ. [۳۶۳، ۳۹۹۰ - ۳۹۹۲]

## رجال الحديث

① **محمد بن العلاء**: دا ابو العلاء محمد بن العلاء همدانی کوفی رحمه الله دي.

② **ابو اسامه**: دا ابو اسامه حماد بن اسامه رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو تذکره په کتاب العلم، "باب فضل من علم وعلم" کښې تیره شوې ده.[1]

③ **برید بن عبدالله**: دا ابوبرده برید بن عبدالله بن عامر کوفی رحمه الله دي.

④ **ابوبرده**: دا ابوبرده عامر بن موسی اشعری رحمه الله دي.

⑤ **ابوموسی**: دا حضرت ابوموسی عبدالله بن قیس اشعری رضي الله عنه دي. ددې درې واړو حضراتو تذکره په کتاب الایمان، کښې د "باب أی الاسلام أفضل" په ضمن کښې بیان شوې ده.[2]

**عن أبي موسى رضي الله عنه قال: بلغنا مخرج النبي صلى الله عليه وسلم ونحن باليمن**

حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه فرمائی چې مونږ ته د نبی کریم صلى الله عليه وسلم د وتلو خبر ملاؤ شو په داسې حال کښې چې مونږ په یمن کښې وو.

"مخرج" مصدر میمی دې، ددې معنی ده وتل او د فاعل کیدو د وجې نه مرفوع دې.[3]

د مخرج نه څۀ مراد دی؟

د مخرج نه دوه څیزونه مراد کیدې شی:

① **بعثت**: په دې صورت کښې به مطلب داوی چې په ظاهره باندې دې حضراتو ته د نبی کریم صلى الله عليه وسلم د بعثت او د خروج علم د هجرت د اوږدې مودې تیریدو نه پس اوشو، نو هر کله چې دوی ته علم اوشو نو دوی د زیارت په غرض سره د یمن نه راووتل.

② **هجرت**: په دې صورت کښې به مطلب داوی چې د نبی کریم صلى الله عليه وسلم په باره کښې خو دوی ته

---

[1] ) کشف الباری: ۳/۴۱۳_۴۱۷)_
[2] ) کشف الباری: ۱/۶۹۰)_
[3] ) عمدة القاري: ۱۵/۶۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

علم د مخکښې نه حاصل وو، دې حضراتو اسلام هم قبول کړې وو لیکن په خپل وطن کښې مقیم وو، تردې چې د نبی کریم ﷺ د هجرت پته ورته اولګیده نو دوی د هجرت اراده اوکړه. اوس سوال دا پیدا کیږی چې بیا دا حضرات دومره اوږده زمانه چرته اوسیدل او هجرت ئې ولې اونهٔ کړو؟
نو ددې جواب دادې چې غالباً دوی ته د صحیح حالاتو پته نهٔ لګیده، چې هر کله د حالاتو مکمل اطلاع ملاؤ شوه نو دوی هم هجرت اوکړو او خپل وطن ئې پریخودهٔ.[1]

**قوله: فخرجنا مهاجرین إلیه، أنا وأخوان لی، أنا أصغرهم، أحدهما: أبوبردة، والآخر أبورهم:** نو مونږ د هغوی په طرف د هجرت په نیت اووتلو. زهٔ او زما دوه ورونړه، زهٔ په هغوی تولو کښې کشر ووم، یو ابوبرده وو او دویم ابورهم.

لفظ "مهاجرین" د حال جوړیدو د وجې نه منصوب دې.[2]

**ابو برده:** دا د حضرت ابوموسی اشعری ﷺ ورور ابوبرده بن قیس بن سلیم بن حضار بن حرب ﷺ دې.[3]

د دوی نوم عامر دې لیکن د خپل ورور په شان دوی هم په دې خپل کنیت سره مشهور دی.[4] په آخره کښې ئې کوفه خپل د اوسیدو ځائې اوګرځوو او آخری وخت پورې کوفه کښې اوسیدل[5]. دوی د نبی کریم ﷺ نه یو حدیث روایت کوی، فرمائی:

**"قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: اللهم اجعل فناء أمتی قتلا فی سبیلك بالطعن والطاعون"[6] رضی الله عنه وأرضاه.**

**خبرداری:** ابوبرده د دوی د ورارهٔ هم کنیت دې کوم چې د باب د حدیث راوی هم دې، د هغوی نوم هم عامر دې، البته دوی صحابی دی او د دوی نه صرف هم دا یو پورته روایت مروی دې او د دوی ورارهٔ ابوبرده مشهورتابعی او فقیه دې او د خپل والدصاحب ابو موسی اشعری او نورو صحابه کرامو ﷺ نه کثرت سره روایت کوی.

**أبورهم:** دا هم د حضرت ابوموسی اشعری ﷺ ورور دې، د دوی نوم څهٔ وو؟ په دې کښې

---

[1] ) فتح الباری: ۷/ ٤۸۵)_
[2] ) عمدة القاری: ۱۵/ ٦۰)_
[3] ) الاصابة مع الاستیعاب: ٤/ ۱۸. وفتح الباری: ۷/ ٤۸۵. وعمدة القاری: ۱۵/ ٦۰)_
[4] ) پورته حواله جات)_
[5] ) الاصابة: ٤/ ۱۸)_
[6] ) الحدیث روه احمد فی مسنده: ۳/ ٤۳۷. مسند ابی بردة......رقم (۱۵٦۹۳). و: ٤/ ۲۳۸. حدیث ابی بردة...... رقم (۱۸۲٤۸). والحاکم فی مستدرکه: ۲/ ۹۳. کتاب الجهاد. رقم (۲٤٦۲). وقال: هذا حدیث صحیح الاسناد. وقال الذهبی فی تلخیصه: صحیح)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مختلف اقوال دی.ابن عبد البر رحمه الله خو دا فرمائی چې د دوی نوم مجدی وو او ابن حبان د دوی نوم يقين سره محمد ښائی ليکن حافظ په دې باندې رد کړې دې. د ابن قانع رحمه الله رائې داده چې د دوی نوم مجيد وو [1] ابن قتيبه وئيلی دی چې د دوی طبيعت لږ تيز وو، ددې وجې نه به د دوی ورور حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه دوی ته خبرې اترې کولې [2]. رضی الله عنه وأرضاه

**قوله: إما قال في بضع،وإما قال في ثلاثة وخمسين أو اثنين وخمسين رجلاً من قومي:** يا ئې دا اوفرمائيل يا بل څۀ،يا ئې اوفرمائيل چې درې پنځوس يا دوه پنځوس سړو سره، کوم چې زما د قوم وو.

**دا حضرات ټول څومره وو؟** دلته د باب په روايت کښې،د کتاب المغازی په روايت کښې عبارت دغه شان شک سره دې،د بضع اطلاق د دريو نه تر نهو(٣تا٩)پورې کيږی،ددې وجې نه دا د درې پنځوس نه تر يوکم شپيتو پورې هم احتمال لری او درې پنځوس هم په روايت کښې راغلي دي او دوه پنځوس هم.

البته ابن منده رحمه الله په يو بل طريق سره نقل کړې دی چې د دوی(اشعريينو)تعداد پنځوس وو [3]،د پنځوستو نه زيات چې کوم خلق دی شايد هغه حضرت ابوموسی او د هغوی ورونړه وو،نو په کوم روايت کښې چې دوه پنځوس دی هغې کښې ورسره د دوی دواړه ورونړه ابوبرده او ابورهم ملاويږی د کوم ذکر چې د باب په حديث کښې دې.او څوک چې درې پنځوس يا زيات تعداد ښائی نو د هغوی مراد د هغه اختلاف طرفته اشاره ده کوم اختلاف چې د دوی د ورونړو د تعداد په باره کښې دې،ابن عبد البر رحمه الله ددې ټولو ورونړو تعداد څلور ښودلي دي او د ابن منده په روايت کښې د پنځو ذکر دې.په دې روايت کښې دا هم راغلي دی چې شپږ سړی د قبيله عک هم وو ليکن هغوی دلته مراد نۀ دی ځکه چې حضرت ابوموسی رضي الله عنه د من قومي وضاحت خو کړې دې،د دوی په تعداد کښې نور قولونه هم شته [4].

**قوله: فركبنا سفينة،فألقتنا سفينتنا إلى النجاشي بالحبشة،ووافقنا جعفر بن أبي طالب وأصحابه عنده،فقال جعفر: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم بعثنا ههنا،وأمرنا بالإقامة،فأقيموا معنا:** نو مونږ په يو کشتئ کښې سوارۀ شو،دغه کشتئ مونږ د حبشې بادشاه حضرت نجاشی رضي الله عنه ته اورسولو،هلته زمونږ ملاقات د حضرت جعفر

---

[1] ) الاصابة:٤/٧١،والاستيعاب بهامش الاصابة:٤/٦٩،وفتح الباري:٧/٤٨٥،وعمدة القاري:١٥/٦٠،وابن قانع في معجم الصحابة:٣/٣٩،باب الميم،رقم (١١٦٠))_

[2] ) الاصابة:٤/٧١)_

[3] ) فتح الباري:٧/٤٨٥،وابن منده)_

[4] ) فتح الباري:٧/٤٨٥_٤٨٦،والاستيعاب بهامش الاصابة:٤/٦٩)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بن ابی طالب رضی الله عنه او د هغوی ملگرو رضی الله عنهم سره اوشو ،نو حضرت جعفر اوفرمائیل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ دلته رالیږلي یو او دلته ئې مونږ ته د اوسیدلو حکم فرمائیلې دې نو تاسو هم دلته اقامت اختیار کړئ.

**قوله: فأقمنا معه،حتی قدمنا جميعاً:** نو مونږ هم هغوی سره هلته مقیم شو،تردې چې ټول په یو ځائې (په خدمت اقدس کښې) حاضر شو.

ابن اسحاق په مغازی کښې لیکلي دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت عمرو بن امیه رضی الله عنه د نجاشي طرفته ددې پیغام سره لیږلې وو چې حضرت جعفر او د هغوی ملگری تیار کړه او روان ئې کړه نو هغوی حضرت جعفر او د هغوی ملگری د اکرام سره روان کړل نو حضرت عمرو رضی الله عنه دا حضرات خیبر ته اورسول[1]. ابن اسحاق ددې حضراتو تعداد شپاړس ښودلې دې[2] دوی د اشعرپینو نه علاوه دی.

**فوافقنا النبی صلی الله علیه وسلم حين افتتح خيبر، فاسهم لنا او قال: فاعطانا منها، وما قسم لاحد غاب عن فتح خيبر منها شيئاً، الا لمن شهد معه، إلا أصحاب سفينتنا مع جعفر و أصحابه، قسم لهم معهم.**

مونږ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته هغه وخت اورسیدو کوم وخت چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم خیبر فتح کړې وو ،نو نبی علیه السلام مونږ ته هم غنیمت راکړو ،زمونږ نه علاوه چې کومخلق د فتح خیبر نه غائب وو هغوی ته نبی علیه السلام په دغه غنیمت کښې هیڅ هم ورنهٔ کړل،دا غنیمت صرف هغه چاته ملاؤ شو کوم چې د نبی علیه السلام سره په جنگ کښې شریک وو او مونږ د کشتۍ والاملگری، جعفر رضی الله عنه او د هغوی ملگری،دا ټول ئې هم په جنگ کښې د شریک کسانو سره د غنیمت په تقسیم کښې شریک کړل.

**دا شرکت د کوم مد نه وو؟:** په دې حدیث شریف کښې حضرت ابوموسی رضی الله عنه دا فرمائیلي دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خیبر په غنیمتونو کښې مونږ د مجاهدینو سره شریک کړو لیکن سوال دادې چې دا شرکت په کوم بنیاد باندې وو ،ځکه چې غنیمت خو هغه چا ته ملاویږی چې په جنگ او قتال کښې شریک وی،حال دادې چې دوی په خپله وضاحت اوکړو چې مونږ په جنگ کښې شریک نهٔ وو بلکه د فتحې نه پس حاضر شوې وو؟

ددې باشکال جوابات مونږ وړاندې ذکر کړې دی او په مغازی کښې په دې باندې بحث راغلې دې البته اختصار سره مونږ دغه جوابات دلته دوباره ذکر کوو:

① موسی بن عقبه فرمائی چې اصل کښې د مجاهدینو په اجازت سره نبی علیه السلام دا حضرات په غنیمت کښې شریک کړې وو ،چونکه مستحقین راضی وو نو ددې وجې نه هیڅ خبره نهٔ ده.

② دوی ته ئې د مال فئ نه ورکړې وو ،کوم چې د جنگ نه بغیر حاصل شوې وو.

③ دوی ته ئې د خمس نه ورکړې وو ،په خمس کښې امام ته اختیار وی، چرته چې غواړی

---

[1] ) سیرة ابن هشام:۲/۴/۳۶۲،ذکر قدوم جعفر.....(عدة من حملهم مع عمرو بن امیة))_

[2] ) پورته حواله،وفتح الباری:۷/۴۸۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خرج کولې شي، هم دې طرفته د علامه کرماني رحمه الله د قول مطابق د امام بخاري رحمه الله ميلان دې[1].

④تحقيقي جواب دادې چې په غنيمت کښې اصل داده چې د تقسيم نه لږ مخکښې نور کسان چې په جنګ کښې شريک نۀ وي، راؤرسي نو هغوي هم په تقسيم کښې شريکيږي، که د تقسيم نه پس راؤرسي نو د غنيمت مستحق نۀ دي، دلته هم دغه شان شوې دی چې دا حضرات د فتحې نه پس ليکن د غنيمت د تقسيم نه مخکښې رارسيدلي وو نو ددې وجې نه دوی په تقسيم کښې شريک شو[2]. حافظ رحمه الله هم د مختلف احتمالات ذکر کولو نه پس دا آخري احتمال غوره ګرځولې دې[3] په دې مسئله کښې تفصيل وړاندې په باب الغنيمة لمن شهد الوقعة وغيره کښې تير شوې دې.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ددې حديث مناسبت د ترجمة الباب سره ددې دعوې په بنياد دې چې اشعريينو وغيره ته څۀ ورکړې شوې وو نو هغه د خمس نه وو، په دې باندې ابوعبيد هم په کتاب الاموال کښې يقين ذکر کړې دې نو د ترجمې لفظ "من الخمس" سره به ددې مناسبت شي[4].

د باب شپږم حديث د حضرت جابر رضي الله عنه دې.

۲۹۲۸: [5] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرًا -رضى الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لَوْ قَدْ جَاءَنِي مَالُ الْبَحْرَيْنِ لَقَدْ أَعْطَيْتُكَ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا». فَلَمْ يَجِئْ حَتَّى قُبِضَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-، فَلَمَّا جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ أَمَرَ أَبُو بَكْرٍ مُنَادِيًا فَنَادَى مَنْ كَانَ لَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- دَيْنٌ أَوْ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنَا. فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لِي كَذَا وَكَذَا. فَحَثَا لِي ثَلاَثًا -وَجَعَلَ سُفْيَانُ يَحْثُو بِكَفَّيْهِ جَمِيعًا، ثُمَّ قَالَ لَنَا هَكَذَا قَالَ لَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ-

وَقَالَ مَرَّةً فَأَتَيْتُ أَبَا بَكْرٍ فَسَأَلْتُ فَلَمْ يُعْطِنِي، ثُمَّ أَتَيْتُهُ فَلَمْ يُعْطِنِي، ثُمَّ أَتَيْتُهُ الثَّالِثَةَ فَقُلْتُ سَأَلْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِي، ثُمَّ سَأَلْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِي، ثُمَّ سَأَلْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِي، فَإِمَّا أَنْ تُعْطِيَنِي، وَإِمَّا أَنْ تَبْخَلَ عَنِّي. قَالَ قُلْتَ تَبْخَلُ عَلَىَّ مَا مَنَعْتُكَ مِنْ مَرَّةٍ إِلاَّ وَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أُعْطِيَكَ.

---

[1]) عمدة القاري:۱۵/۶۰،وشرح الكرماني:۱۳/۱۰۸)_
[2]) اعلاء السنن:۱۲/۱۲۲)_
[3]) فتح الباري:۶/۲۴۱_۲۴۲)_
[4]) فتح الباري:۶/۲۴۱)_
[5]) قوله:سمع جابرا رضي الله عنه:الحديث،مر تخريجه فى الكفالة،باب من تكفل عن ميت دينا....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

①**علي**:دا مشهور محدث حضرت علي بن المديني رحمه الله دي . د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب الفهم في العلم" کښې تيره شوې ده[1].

②**سفيان**: دا ابن عيينه رحمه الله دي. د دوی حالات اجمالاً د بدء الوحي په "الحديث الاول" کښې او تفصيل سره په کتاب العلم، "باب قول المحدث....." کښې تير شوي دی[2].

③**محمد بن المنكدر**: دا محمد بن المنكدر بن عبد الله رحمه الله دي[3].

④**جابر**: دا حضرت جابر بن عبد الله انصاری رضي الله عنهما دي[4].

**قوله: قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:لو قد جاءنا مال البحرين لقد أعطيتك هكذا وهكذا وهكذا:** حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم ماته فرمائيلي وو چې مونږ ته د بحرين مال راغئ نو مونږ به تا ته درې لپې (مټهی) ډکې کړو.
په حديث شريف کښې چې د کوم مال ذکر دې نو دا جزيه وه، وړاندې په کتاب الجزية کښې د حضرت عمرو بن عوف رضي الله عنه په حديث کښې ددې وضاحت راځی[5] او دا مال حضرت علاء بن الحضرمی رضي الله عنه راليږلې وو[6]، ابن بطال رحمه الله دلته دا فرمائيلي دی چې غالباً دا مال د خمس يا د مال فئ وو[7] ليکن د مذکوره وضاحت په موجودګئ کښې ددې تاويل هيڅ ضرورت نشته[8].

**قوله: فلم يجئ حتى قبض النبي صلى الله عليه وسلم:** ليکن دغه مال رانغئ، تردې چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم د دنيا نه تشريف يوړو. يعنی د کوم مال وعده چې شوې وه د هغې د راتللو نه مخکښې د نبی عليه السلام انتقال اوشو.

**قوله: فلما جاء مال البحرين أمر أبوبكر منادياً،فنادى:من كان له عند رسول الله صلى الله عليه وسلم دين أو عدة فليأتنا:** هر کله چې د بحرين مال راغئ

---

[1] ) کشف البارى:۳/۲۵۶)_
[2] ) کشف البارى:۱/۲۳۸،و:۳/۱۰۲)_
[3] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الوضوء،باب صب النبي صلى الله عليه وسلم وضوء ه.....)_
[4] ) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الوضوء،باب من لم ير الوضوء الا من المخرجين.....)_
[5] ) انظر صحيح البخاری،کتاب الجزية والموادعة،باب الجزية والموادعة......رقم (۳۱۵۸))_
[6] ) عمدة القاری:۱۵/۶۱)_
[7] ) شرح ابن بطال:۵/۳۰۱)_
[8] ) فتح البارى:۶/۲۴۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو خليفه اول حضرت ابوبكرصديق ﷜ يو آواز كوونكى ته حكم اوكړو چې هغه اعلان اوكړى نو هغوى اعلان اوكړو چې په نبى كريم ﷺ باندې د چا قرض وى يا څه وعده وى نو هغه دې مونږ ته راشى (چې مونږ ورته هغه وركړو يا ورسره هغه وعده پوره كړو).
دې آواز كوونكى نوم د حافظ د قول مطابق ما ته معلوم نۀ شو. البته غالباً دا حضرت بلال ﷜ وو.[1]

**قوله: فأتيته، فقلت: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لي كذا وكذا، فحثا لي ثلاثاً:** نو زۀ ورته راغلم او ورته مې اووئيل چې نبى كريم ﷺ ما سره د دريو لپو د راكولو وعده فرمائيلې وه نو هغوى ماته درې حثيه مال راكړو. د ثلاثاً نه مراد ثلاث حثيات دې چې د حثية جمع ده، دا د ضرب او نصر دواړو نه استعماليږى. د يو متبهى مقدار ته وئيلې شى او يو لفظ الحفنة دې، ددې معنى ده د دوو متبهو مقدار. البته ابو عبيد دواړه په يومعنى كښې كرځولې دى.[2] د باب په حديث شريف كښې د دوو متبهو مقدار، يعنى د دوو لاسونو برابر مال مراد دې. لكه څنګه چې حضرت سفيان وړاندې وضاحت كړې دې[3] مطلب دادې چې حضرت ابوبكرصديق ﷜ ما ته درې ځله دواړه لاسونه ډك كړل. هم دا وعده نبى كريم ﷺ فرمائيلې وه. أعطيتك هكذا وهكذا وهكذا.

**قوله: وجعل سفيان يحثو بكفيه جميعاً، ثم قال لنا: هكذا قال لنا ابن المنكدر:** او حضرت سفيان ﷫ مونږ ته دواړه لاسونه ډكولو سره اوښودل. بيا ئې اوفرمائيل چې ابن المنكدر ﷫ مونږ ته هم دغه شان وئيلې وو. دا جمله د حضرت ابن المدينى ﷫ ده. ددې نه د حضراتو محدثينو د ضبط د كمال اندازه معلوميږى چې هغوى به څنګه يو يو جزيه او يو يو ادا محفوظه ساتله.

**قوله: وقال مرة: فأتيت أبابكر، فسئلت، فلم يعطني، ثم أتيته، فلم يعطني، ثم أتيته الثالثة، فقلت: سئلتك، فلم تعطني، ثم سئلتك فلم تعطني، ثم سئلتك فلم تعطني، فأما أن تعطيني، وإما أن تبخل عني:** او يو ځل ئې اوفرمائيل، زۀ حضرت ابوبكرصديق ﷜ ته راغلم او مال مې ترينه طلب كړو نو هغوى رانۀ كړو، بيا راغلم، بيا ئې رانه كړو، دريم ځل باندې راغلم او ورته مې اووئيل چې ما ستاسو نه مال طلب كړو ليكن تاسو رانۀ كړو. بيا مې طلب كړو ليكن تاسو رانۀ كړو. بيا مې په دريم ځل درخواست اوكړو نو بيا هم تاسو رانۀ كړو. اوس خو يا تاسو ماته مال راكړئ يا زما په معامله كښې د بخل نه كار واخله.

[1] فتح البارى: ۲٤۲/٦. وايضا عمدة القارى: ٦١/١٥)_
[2] پورته حواله جات)_
[3] فتح البارى: ۲٤۲/٦)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دلته قائل حضرت سفيان ابن عيينه رحمه الله دي.(۱)

**قوله: قال: قلتَ تبخل علي،ما منعتك من مرة إلا وأنا أريد أن أعطيك:**
حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه د تعجب په طور سره اوفرمائيل تۀ دا وائې چې ما تاسو سره د بخل معامله كړې ده،نو داسې څۀ خبره نشته،؟ما خو چې كله هم تاسو ته د دركولو نه انكار كړې دې نو مقصد مې هم دا وو چې زۀ به تاسو ته ضرور دركوم. دلته د قال قائل حضرت ابوبكر رضي الله عنه دي او مخاطب حضرت جابر او قلتَ جمله استفهاميه استعجابيه ده، دلته همزه استفهام حذف شوې دې،په مغازى كښې هم دا لفظ همزه سره أقلت راغلى دې،(۲).

**د منع كولو وجه څۀ وه؟**:دلته سوال دا دې چې هركله حضرت ابوبكر رضي الله عنه د حضرت جابر ضرورت خامخا پوره كوو نو بار بار ئې خالى لاس ولې واپس كوو؟
ددې مختلف جوابونه كيدې شي:
①فى الحال ئې منع كوو،هميشه دپاره ئې نۀ منع كوو،يعنى اوس نۀ شم دركولې،بيا راشه.
②ددې معاملې نه اهم معاملات پيښ وو.
③دوى ته چې وركړې شى نو ددې په ليدلو سره نور خلق رانشى،ددې وجې نه ئې منع اوفرمائيله.

بهرحال دا منع كول كلى نۀ.(۳). كما ذكر أبوبكر بنفسه.

**قَالَ سُفْيَانُ وَحَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرٍ فَحَثَا لِي حَثْيَةً وَقَالَ عُدَّهَا. فَوَجَدْتُهَا خَمْسَمِائَةٍ قَالَ فَخُذْ مِثْلَهَا مَرَّتَيْنِ. وَقَالَ يَعْنِي ابْنَ الْمُنْكَدِرِ وَأَيُّ دَاءٍ أَدْوَأُ مِنَ الْبُخْلِ.** [ر: ۲۱۷۴]

دا مذكوره سند سره متصل دې او د عمرو نه مراد ابن دينار(۴)او د محمد بن على(۵) نه مراد د حضرت حسين نوسې او د حضرت على كړوسې دې،(۶).

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه يو ځل دواړه لاسونه ډک راكړل او وې فرمائيل چې څۀ مې درته دركړې دى نو دا اوشماره،اومې كتل نو هغه پنځه سوه درهم وو، وې فرمائيل چې دومره دوه ځلې نورې هم واخله. ددې روايت د ذكر كولو مقصد د هغې زياتوالى طرفته اشاره ده كوم چې د عمرو عن محمد بن على په طريق كښې خو موندې كيږى ليكن د محمد بن المنكدر په طريق كښې نشته. د ابن المنكدر روايت د تعداد په

(۱) پورته حواله)_
(۲) صحيح بخارى،كتاب المغازى،باب قصة عمان والبحرين،رقم (۴۳۸۳))_
(۳) عمدة القارى:۶۱/۱۵،وفتح البارى:۲۴۲/۶)_
(۴) ددوى حالات په كشف البارى، كتاب العلم كښې راغلې دى،اوګورئ، ۳۰۹/۴)_
(۵) د دوى حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء،باب من لم ير الوضوء الا من المخرجين....)_
(۶) فتح البارى:۲۴۲/۶،وعمدة القارى:۶۱/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اعتبار سره مبهم وو، البته پورته طریق سره هغه ابهام ختم شو او دا معلومه شوه چې حضرت جابر رضی الله عنه ته حاصل شوې دراهم پنځلس سوه وو او د ثلاثاً معنی هم متعین او معلومه شوه.[1]

**قوله: وقال ـ یعني ابن المنکدر: وأي داء أدوی من البخل؟:** او وې فرمائیل یعنی ابن المنکدر چې بل کوم مرض د بخل نه زیات خطرناک کیدې شی!

د لفظ "وقال" ویونکې حضرت سفیان دې او د **یعنی** ویونکې ابن المدینی دې،[2] مطلب دا دې چې حضرت سفیان وقال اوفرمائیل، ددې وضاحت ابن المدینی رحمه الله اوفرمائیلو چې د سفیان مراد د وقال نه ابن المنکدر دې چې ابن المنکدر به فرمائیل چې د بخل نه زیات بل کوم مرض زیات خطرناک کیدې شی؟

**دا جمله د چا ده؟:** د باب د حدیث د ظاهر نه دا معلومیږی چې د "وأي داء أدوی من البخل" والا جمله د ابن المنکدر رحمه الله ده لکه علامه ابویوسف یعقوب رحمه الله په الخیر الجاری کښې هم دا خبره اختیار کړې ده[3] البته دا صحیح نۀ ده، بلکه دا د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه مقوله ده، په مغازی کښې ددې وضاحت راغلې دې، هلته دا هم دی چې حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دا جمله درې ځله ارشاد اوفرمائیله[4] دغه شان په مسند حمیدی کښې هم ددې وضاحت راغلې دې، هغوی د سفیان نه روایت کولو سره په دې حدیث کښې فرمائیلې دی، "وقال ابن المنکدر فی حدیثه"[5] ددې نه ددې جملې نسبت د حضرت ابوبکر رضی الله عنه طرفته واضح طور سره معلومیږی.[6]

**د أدوی د لفظ تحقیق:** قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چې محدثین دا لفظ غیرمهموز نقل کوی یعنی د **دوی یدوی دوی** نه، ددې معنی ده د خیټې په مرض کښې اخته کیدل، لیکن صحیح أدوأ همزه سره دې ځکه چې دا د داء نه دې نۀ چې د دوی نه.[7] البته حافظ علیه الرحمة د محدثینو په نقل کړده لفظ کښې تاویل کولو سره فرمائی چې کیدې شی هغوی په همزه کښې د

---

[1] ) فتح الباری:۲۴۲/۶. البته د ابن عساکر په یو روایت کښې د اعطانی ألفاوألفاوألفا" راغلې دی، یعنی د درهمونو مقدار درې زره وو. تاریخ مدینة دمشق:۳۲۳/۳۰، حرف العین)_

[2] ) فتح الباری:۲۴۲/۶)_

[3] ) الخیر الجاری.....لم اطلع علی هذا الکتاب!)_

[4] ) صحیح بخاری، کتاب المغازی، باب قصة عمان والبحرین، رقم (۴۳۸۳))_

[5] ) مسند الحمیدی:۵۱۸/۲، احادیث جابر بن عبدالله.....رقم (۱۲۳۳)، وفتح الباری:۲۴۲/۶)_

[6] ) فتح الباری:۲۴۲/۶، وایضاً انظر لا مع الدراری وتعلیقاته:۳۱/۷)_

[7] ) پورته حواله جات، وعمدة القاری:۶۱/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تسهیل قاعده جاری کړې وی[1].

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف په مناسبت کښې علامه عینی رحمه الله خو دا فرمائیلې دی چې د ترجمې د جزء "وماکان النبی صلی الله علیه وسلم یعد الناس أن یعطیهم من الفیء، والانفال من الخمس" او د حدیث د جملې "من کان له عند رسول الله صلی الله علیه وسلم دین أو عدة" خپل مینځ کښې مناسبت دې[2]. علامه احمد الکورانی الحنفی د ترجمة الباب د جزء "من الفیء" سره ددې حدیث مطابقت بیان کړې دې او فرمائیلې دی چې دا مال کوم چې د بحرین نه راغلې وو نو دا مال فیء وو. لهذا مناسبت اوموندلې شو[3]. او ابن بطال رحمه الله دا مال د خمس ګرځولې وو، کما مرقبل. په دې اعتبار سره به مناسبت د لفظ الخمس سره وی[4].

او د حافظ علیه الرحمة رائې دا ده چې ظاهراً ترجمې سره د حدیث مناسبت واضح نۀ دې البته دومره خبره کیدې شی چې د امام بخاری رحمه الله په نزد چونکه د خمس او د جزیه مصارف یو دی، په دې مناسبت سره هغوی جزیه سره متعلق حدیث د خمس د ترجمې لاندې نقل کړو[5].

د باب اووم حدیث هم د حضرت جابر رضی الله عنه دې.

۲۹۲۹: [6] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ- رضی الله عنهما- قَالَ بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- يَقْسِمُ غَنِيمَةً بِالْجِعْرَانَةِ إِذْ قَالَ لَهُ رَجُلٌ اعْدِلْ. فَقَالَ لَهُ «شَقِيتَ إِنْ لَمْ أَعْدِلْ».

## رجال الحدیث

① **مسلم بن ابراهیم:** دا مسلم بن ابراهیم فراهیدی، ازدی رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب أحب الدین إلی الله أدومه" کښې تیره شوې ده[7].

② **قرة بن خالد:** دا ابومحمد قرة بن خالد سدوسی بصری رحمه الله دې[8].

---

[1] ) فتح الباری: ۶/۲۴۲)_

[2] ) عمدة القاری: ۱۵/۶۱)_

[3] ) الکوثر الجاری: ۶/۶۱)_

[4] ) شرح ابن بطال: ۵/۳۰۱)_

[5] ) فتح الباری: ۶/۲۴۲)_

[6] ) قوله: عن جابر.....: الحدیث اخرجه مسلم، کتاب الزکاة، باب، ذکر الخوارج وصفاتهم، رقم (۲۴۴۹_۲۴۵۰)، وابن ماجه، کتاب السنة، باب فی ذکر الخوارج، رقم (۱۷۲))_

[7] ) کشف الباری: ۲/۴۵۵)_

[8] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب مواقیت الصلاة، باب السمر فی الفقه....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑤ **عمرو بن دینار** دا مشهور تابعی حضرت عمرو بن دینار رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب کتابة العلم" کښې تیره شوې ده[1].

⑥ **جابر بن عبدالله رضی الله عنهما**: دا حضرت جابر بن عبدالله انصاری رضی الله عنهما دې[2].

**قال: بینما رسول الله صلی الله علیه وسلم یقسم غنیمة بالجعرانة**

حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه فرمائی چې دې دوران کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د جعرانه په مقام کښې غنیمت تقسیمولو.

**دا واقعه د کوم وخت ده؟** نبی کریم علیه السلام چې کله د حنین د غزوې نه فارغ شو نو د جعرانه مقام ته ئې تشریف راوړو، دلته په راتلو سره ئې د حنین غنیمتونه تقسیم کړل. دا واقعه د ۵ ذوالقعده ۸هجرئ ده[3]. د مسلم شریف په روایت کښې راځي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حضرت بلال رضی الله عنه د څادر نه چاندی راویستلو سره په خلقو کښې تقسیموله او ډک ډک متیې به ئې ورکولې[4].

**قوله: أذقال له رجل: اعدل:** نو یو سړی نبی کریم علیه السلام ته اوونیل چې عدل اوکړئ.

**دا سړې څوک وو؟** دلته رجل (سړې) مبهم دې، دغه شان د مسلم شریف په روایت کښې هم "رجل" مبهم دې[5]. البته شارحینو په نورو روایتونو کښې نظر کولو سره ددې رجل د متعین کولو کوشش کړې دې لکه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دلته دوه واقعات دی. یو خو د باب د حدیث شریف واقعه چې په کومه کښې د چاندئ د تقسیم ذکر دې او دویمه واقعه د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت ده، دا واقعه حضرت علی رضی الله عنه لره د یمن په طرف د روانولو نه پس ده کومه چې په نهمه هجرئ کښې پیښه شوې وه. په دې کښې سره زر تقسیم شوې وو هغه هم صرف د څلورو کسانو مینځ کښې. اوس دا دوه قصې شوې. په دواړو کښې یو سړی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په تقسیم باندې اعتراض اوکړو. البته د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه په روایت کښې د معترض د نوم وضاحت کړې شوې دې چې هغه ذوالخویصره تمیمی وو[6] او د حضرت جابر رضی الله عنه په روایت کښې د معترض د نوم وضاحت نه

---

[1]) کشف الباری: ۳۰۹/٤)_

[2]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین.....)_

[3]) فتح الباری: ۲۸/۸، و۲۹/۱۲، وکشف الباری: کتاب المغازی: ۵۵۳)_

[4]) صحیح مسلم، کتاب الزکاة، باب ذکر الخوارج وصفاتهم، رقم (۲٤٤۹))_

[5]) پورته حواله. وسنن سعید بن منصور: ۳۲۲/۲، کتاب الجهاد، باب جامع الشهادة، رقم (۲۹۰۲))_

[6]) صحیح البخاری، کتاب المناقب، باب علامات النبوة فی الاسلام، رقم (۳۶۱۰)، وکتاب الادب، باب ما جاء فی قول الرجل: ویلک، رقم (۶۱۶۳)، وکتاب استتابة المرتدین، باب من ترک قتال الخوارج للتالف.....رقم (۲۹۳۳)، د حضرت ابوسعید دا روایت په بخاری شریف کښې په څو ځایونو کښې راغلې دې لیکن مونږ صرف د هغې ځایونو تخریج کړې دې په کومو کښې چې د ذوالخویصره.....[بقیه برصفحه آئنده...

دې شوې . ددې ابهام د ختمولو دپاره بعضې حضراتو خو دا اووئيل چې د باب په حديث شريف كښې هم د مبهم رجل نه مراد ذوالخويصره تميمى دې ليكن بنياد ئې دا قائم كړو چې په دواړو روايتونو كښې هم يوه قصه ده،جدا جدا واقعات نۀ دى،ليكن حافظ عليه الرحمة دا يو وهم ګرځولې دې.

بيا حافظ رحمه الله فرمائى چې ما ته د حضرت جابر رضى الله عنه د حديث يو ګواه هم ملاؤ شو،په هغې كښې هم سړې مبهم دې لكه د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنه نه روايت دې چې د غزوه حنين په موقع باندې نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته يو سړې راغئ،كوم وخت چې نبى عليه السلام څۀ تقسيمول نو هغې سړى اووئيل،"يامحمد!اعدل"ليكن د حضرت عبد الله بن عمرو ددې حديث دې ابهام لره ابن اسحاق په ښائسته سند سره ختم كړې دې او د حضرت عبد الله بن عمرو نه روايت كولو سره وائى چې دا ذوالخويصره وو.(١)

ددې روايت تخريج امام احمد او طبرى هم كړې دې،د هغې الفاظ دادى: "أتى ذوالخويصرة التميمى رسولَ الله صلى الله عليه وسلم،وهويقسم الغنائم بحنين،فقال:يامحمد....."(٢).

ددې وجې نه ددې روايتونو په ذريعې سره د حضرت جابر رضى الله عنه د روايت د مبهم سړى تعيين اوشو چې هغه ذوالخويصره وو،په دواړو واقعاتو كښې د تطبيق دپاره دا خبره كيدې شى چې معترض په دواړو ځايونو كښې هم دا سړې وو،كله چې د حنين غنيمتونه تقسيمېدل نو هغه وخت هم ذوالخويصره اعتراض كړې وو او د حضرت على رضى الله عنه د راليږلې شوى سرو زرو د تقسيم په وخت ئې هم اعتراض كړې وو.(٣)والله أعلم بالصواب

علامه عينى رحمه الله هم د باب په حديث كښې مبهم رجل ته ذوالخويصره وئيلې دى او هم دې ته ئې ترجيح وركړې ده.(٤)

علامه ذهبى رحمه الله وغيره د ذوالخويصره نوم حرقوص بن زهير نقل كړې دې.(٥)

**قوله: قال: لقد شقيتُ إن لم أعدل:** نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل زۀ به شقى شم كه عدل اونۀ كړم.

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] د نوم وضاحت راغلې دې،د حضرت ابوسعيد خدرى رضى الله عنه د حديث د تشريح دپاره اوګورئ،كشف البارى،كتاب المغازى، باب بعث النبى.....:٥٧١_٥٧٤،وكتاب الادب،باب ما جاء فى قول الرجل:ويلك:٥٨١_٥٨٢)_

(١) سيرة ابن هشام:٤٩٦/٤،امر اموال هوازن.....اعتراض ذى الخويصرة التميمى)_

(٢) مسنداحمد:٢١٩/٢،مسند عبدالله بن عمرو....رقم (٧٠٣٨)،وتاريخ الامم والملوک للطبرى:١٧٦/٢،سنة ٨هـ)

(٣) فتح البارى:٢٩١/١٢،وفتح الملهم،كتاب الزكاة،باب ذكر الخوارج.....:١٤٨/٥،رقم (٢٤٢٤))_

(٤) عمدة القارى:٦٢/١٥،ورجحه ابن الجوزى ايضا فى كشف المشكل:٧١١/١،وقال:هذا الرجل يقال له:ذوالخويصرة،كذلک ذكره ابو سعيد الخدرى فى مسنده.)_

(٥) عمدة القارى:٦٢/١٥،ومثله عند الحافظ فى الفتح:٢٩٢/١٢،كتاب استتابة المرتدين،رقم (٦٩٣٣).)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د شقیت معنی:** د شقیت په لفظ کښې دوه احتمالات دی.د متکلم صیغه ده یا د مخاطب البته اکثرو حضراتو تاء مضمومه سره د متکلم صیغه نقل کړې ده.ددې معنی واضحه ده چې که د عدل نه کار وانخلم نو زهٔ به شقی شم. دلته دا یاد ساتئ چې شرط سره دا لازمی خبره نهٔ ده چې واقع دې هم شی،ځکه چې نبی کریم ﷺ ددې نه بالکل نهٔ دې چې عدل اونهٔ کړې چې هغوی ته شقاوت لازم وی بلکې هغوی مبارک خو عادل دی،ددې وجې نه هغوی شقی کیدې نهٔ شی[1]،دویم طرفته قاضی عیاض تاء،ته مفتوح یعنی د خطاب صیغه وائی،هم دې خبرې ته علامه نووی او ابن الجوزی هم ترجیح ورکوی،دغه شان اسماعیلی په خپل یو روایت،کوم چې د خپل شیخ المنیعی نه نقل کوی،کښې د عثمان بن عمرعن قرة رحمه الله طریق نه هم مفتوح نقل کړې دې[2]۔
په دې دویم صورت کښې به ددې جملې مطلب دا شی چې تهٔ خو گمراه شوې چې د داسې سړی اقتدا(د خپل گمان مطابق)کوې کوم چې عادل نهٔ دې،ښکاره خبره ده چې د ظالم سړی مقتدی او تابعداری کوونکې به هم ظالم وی.
دویم مطلب دادې چې تهٔ خو گمراه او بدبخت شوې چې هرکله د خپل نبی په باره کښې داسې قسم اعتقاد لرې،چې یو مسلمان ئې هیڅکله نهٔ شی لرلې،تهٔ خو د اسلام نه خارج شوې،ښکاره خبره ده چې څوک د اسلام نه خارج شو نو هغه شقی او بدبخت شو[3]. والله أعلم
**ترجمة الباب سره د حدیث مبارک مطابقت:** ظاهراً ددې حدیث د ترجمة الباب سره څهٔ مطابقت نشته البته دا خبره کیدې شی چې په فیء،انفال،غنائم او اخماس کښې نبی کریم ﷺ ته د تصرف حق حاصل وو او په حدیث شریف کښې د غنیمتونو د تقسیم تذکره ده،او په ترجمة الباب کښې په دې باندې دلالت موجود دې،دغه شان خو به څهٔ نه څهٔ مطابقت پیدا شی لیکن دا د تکلف او تعسف نه خالی نهٔ ده۔ هذا ما قاله العینی[4]۔
علامه کورانی حنفی رحمه الله فرمائی چې ترجمې سره د حدیث شریف مطابقت د هغه سړی په قول "أعدل" کښې دې ځکه چې هرکله ذوالخویصره اولیدل چې نبی علیه السلام مؤلفة القلوب ته زیات مال ورکوی نو هغهٔ ته اعتراض پیدا شو او مؤلفة القلوب ته ورکړې کیدونکې مال د خمس نه وو[5]، په ترجمه کښې خو د خمس ذکر وضاحت سره موجود دې نو مطابقت اوموندلې شو۔ والله أعلم بالصواب

---

[1] ) فتح الباری:۲۴۳/۶،وعمدة القاری:۶۲/۱۵،وارشاد الساری:۲۱۸/۵،وکشف المشکل من حدیث الصحیحین:۷۱۱/۱)_
[2] ) پورته حواله جات، وانظر اخبار مکة للفاکهی:۶۳/۵،رقم (۲۸۴۳)،ذکر مسجد الجعرانة وما جاء فیه)
[3] ) پورته حواله جات، غیر اخبار مکة......والکوثر الجاری:۱۱۹/۶)_
[4] ) عمدة القاری:۶۱/۱۵)_
[5] ) الکوثر الجاری:۱۱۹/۶،ومثله قال السهارنفوری رحمه الله فی الابواب والتراجم:....[بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## (۱۶) باب: مَا مَنَّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم عَلَى الأُسَارَى مِنْ غَيْرِأَنْ يُخَمِّسَ

**د ترجمة الباب مقصد** دلته هم امام بخاری رحمه الله هم هغه خپله خبره دوباره ذکر کوی چې د وخت امام ته په غنیمت کښې پوره اختیار حاصل دې، هغه په غنیمت کښې هرقسمه تصرف کولې شی، که د خمس جدا کولو نه مخکښې چاته ورکوی نو هم ټهیک ده او که ددې نه پس ورکوی نو هم صحیح ده.(۱). کیفما رأت مصلحته.

د استدلال وجه داده چې نبی علیه السلام به په قیدیانو باندې د اصل غنیمت په ذریعې سره احسان کوو او کله د خمس په ذریعې سره، ددې نه دا خبره ثابته شوه چې نبی کریم ﷺ ته په اصل غنیمت کښې هم پوره اختیار حاصل وو، په ترجمة الباب کښې د "من غیرأن یخمس" نه مراد اصل غنیمت دې او بغیر د احسان نه د تخمیس معنی ده د فدیې اخستلو نه بغیر پریخودل(۲) ځکه چې دغه وخته پورې د خمس حکم نازل شوې نۀ وو، د خمس حکم د بدر نه پس راغلې دې، حسب القول المشهور.

او ابن بطال رحمه الله فرمائی چې دلته د استدلال وجه داده چې د نبی کریم ﷺ دپاره دا خبره بالکل صحیح نۀ ده چې د داسې کار یا داسې څیز په باره کښې څۀ اووائی چې که حقیقة واقع شی نو جائز نۀ وی یعنی د جائز فعل په باره کښې به نبی علیه السلام وینا کوی. داسې نۀ شی کیدې چې د نبی علیه السلام بیان کړې شوې یو څیز د واقع کیدو نه مخکښې خو جائز وی او د واقع کیدو نه پس ناجائز. ددې نه ثابته شوه چې د امام دپاره دا جائز دی چې هغه قیدیان د فدیه اخستلو نه بغیر پریږدی،(۳) که دا کار جائز نۀ وو نو نبی کریم ﷺ به هیڅکله هم د معطم بن عدی د ژوند تمنا نۀ وه کړې، چونکه دا کار جائز وو نو ددې وجې نه ئې تمنا اوکړه چې که هغۀ سفارش کړې وې نو ما به هغه د فدیې اخستلو نه بغیر پریخودلې وو.

**مجاهدین کله د غنیمت مالکان جوړیږی؟** ددې حدیث شریف نه دا مسئله هم راووتله چې مجاهدین د غنیمت مالکان هغه وخت جوړیږی چې کله مال د تقسیم نه پس د هغوی لاسونو ته راشی هم دا د مالکیه او د حنفیه مذهب دې او د امام شافعی رحمه الله رائې داده چې صرف د غنیمت په حاصلولو سره دوی مالکان جوړیږی.(۴)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] فیقول: والاوجه عند هذا العبد الضعیف ان النبی ﷺ لما اعطی بعضهم ازید بعض، حمله المعترض علی خلاف العدل، کما عند مسلم(رقم ۲۴۴۹)؛ فانه اخرج الحدیث اثم مما فی البخاری، وکان تصرفه ﷺ ذلک من الخمس، فطابق الحدیث الترجمة. الابواب والتراجم: ۱/۲۰۷)_

(۱) عمدة القاری: ۱۵/۶۲، وفتح الباری: ۶/۲۴۳)_

(۲) پورته حواله جات)_

(۳) شرح ابن بطال: ۵/۳۰۴، وفتح الباری: ۶/۲۴۳)_

(۴) فتح الباری: ۶/۲۴۳، وعمدة القاری: ۱۵/۶۲_۶۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲۹۷۰: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ -رضى الله عنه- أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ «لَوْ كَانَ الْمُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا، ثُمَّ كَلَّمَنِي فِي هَؤُلَاءِ النَّتْنَى، لَتَرَكْتُهُمْ لَهُ». [۳۷۹۹]

## رجال الحديث

①**اِسحاق بن منصور**: دا ابويعقوب اسحاق بن منصور كوسج رحمه الله دي.

②**عبد الرزاق**: دا د مصنَف صاحب، امام عبدالرزاق بن همام صنعانی رحمه الله دي. ددې دواړو حالات په كتاب الايمان، "باب حسن إسلام المرء....." كښې تير شوي دي[2].

③ **معمر**: دا معمر بن راشد رحمه الله دي. ددوی تذكره د بدء الوحی په "الحديث الخامس" كښې تيره شوې ده[3].

④**الزهرى**: دا ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. د دوی حالات اجمالاً په "بدء الوحی" كښې بيان شوي دی[4].

⑤**محمد بن جبير**: دا محمد بن جبير بن مطعم بن عدى رحمه الله دي[5].

⑥**أبيه**: دا مشهور صحابى حضرت جبير بن معطم قرشی رضي الله عنه دي[6].

**قوله**: أن النبى صلى الله عليه وسلم قال فى أسارى بدر: لو كان المطعم بن عدى حيا، ثم كلمنى فى هؤلاء النتنى لتركتهم له: د حضرت جبيربن مطعم رضي الله عنه نه روايت دې چې نبی كريم ﷺ د بدر د قيديانو متعلق اوفرمائيل چې كه مطعم بن عدی ژوندې وو، بيا ئې زما په وړاندې ددې بدبوداره خلقو سفارش كړې وو نو ما به د هغهٔ په خاطر دوی پريخودلي وو.

**د مطعم بن عدى د خاص كولو وجه**: دوی د مكې مكرمې په سردارانو كښې وو او د شرک په حالت كښې وفات شوې وو، ليكن ددهٔ په نبی كريم ﷺ باندې دوه احسانات وو، يو خو دا چې كله نبی كريم ﷺ طائف ته د دعوت دپاره تشريف يوړلو او واپس راغلل نو هغه وخت ورته مطعم پناه وركړې وه. دويم احسان دا وو چې د مكې مكرمې مشركانو كله د بنوهاشم

[1] قوله: عن ابيه رضي الله عنه: الحديث، اخرجه البخارى ايضا، كتاب المغازى، باب (بلا ترجمة) بعد باب شهود.....رقم (۴۰۲۴)، و ابو داود، كتاب الجهاد، باب فى المن على الاسير بغير فداء، رقم (۲۶۸۹).

[2] كشف البارى: ۲/ ۴۲۰_۴۲۱.

[3] كشف البارى: ۱/ ۴۶۵.

[4] كشف البارى: ۱/ ۳۲۶، الحديث الثالث.

[5] د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الاذان، باب الجهر فى المغرب.

[6] د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الغسل، باب من افاض على راسه ثلاثا.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او بنومطلب سره مقاطعه او بائيكاټ كړې وو نو په دغه مقاطعه ختمولو كښې د مطعم لوئې كردار وو.(۱)هم ددې احساناتو دوجې نه نبى كريم ﷺ داپورتنئ جمله ارشاد اوفرمائيله النتنى دا جمع ده، ددې مفرد نَتِنٌ وَنَتِينٌ دې لكه څنګه چې د زَمِن جمع زَمْنَىٰ او د جَرِيحٌ جمع جَرْحَىٰ راځى، ددې معنى ده بدبودار او د بدر قيديان ترينه مراد دى(۲)

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** ترجمة الباب سره ددې حديث شريف مطابقت په دې معنى كښې دې چې نبى كريم ﷺ ددې خواهش اظهار كوى چې كه داسې وې نو ما به داسې كړې وو، ښكاره خبره ده چې دغه مذكوره خواهش كه چرته جائز نۀ وو نو ددې اظهار به ئې ولې كوو؟معلومه شوه چې امام په غنيمت كښې پوره تصرف او اختيار لرى، د خمس ويستلو نه بغير هم په غنيمت كښې تصرف كولې شى(۳). والله أعلم بالصواب

## ⑰باب: باب وَمِنَ الدَّلِيلِ عَلَى أَنَّ الْخُمُسَ لِلإِمَامِ وَأَنَّهُ يُعْطِي بَعْضَ قَرَابَتِهِ دُونَ بَعْضٍ

مَا قَسَمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- لِبَنِي الْمُطَّلِبِ وَبَنِي هَاشِمٍ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ.

**د ترجمة الباب مقصد:** دا يو بل باب دې، وړاندې دغه شان څو بابونه تير شوې دى، دلته هم امام بخارى رحمه الله دا فرمائى چې امام او حاكم د خمس په معامله كښې د تصرف پوره اختيار لرى، څنګه چې غواړى نو په كښې تصرف كولې شى، خپلو بعضو رشته دارانو ته وركوى او بعضو ته نۀ وركوى نو داسې كولې شى(۴).

وړاندې په باب "ومن الدليل على أن الخمس لنوائب رسول الله صلى الله عليه وسلم..... "كښې د مذهبونو تفصيل تير شوې دې، په هغې كښې دا بيان شوې وو چې د احنافو په نزد اوس د ذوى القربى حق ساقط شوې دې او امام مالک ئې د خمس مصرف خو منى ليكن د خمس مستحق ئې نۀ منى. هلته دا هم ذكر كړې شوې وو چې امام بخارى رحمه الله په دې مسئله د امام مالک ملګرې دې، دا موجود باب هم ددې سلسلې يوه كړئ ده لكه د مصنف د رائې مطابق ذوى القربى مستحق نۀ دى، د خمس د نورو مصرفونو په شان صرف مصرف دى، امام ته اختيار دې چرته چې غواړى نو خرچ كولې شى، ذوى القربى ته وركوى يا نۀ وركوى، ګويا دا

---

[1]) عمدة القارى:۶۲/۱۵، وكشف البارى، كتاب المغازى:۱۷۲)_

[2]) العمدة ۶۲/۱۵، والفتح البارى:۲۴۴/۶، واعلام الحديث للخطابى:۱۴۵۵/۲، والكوثر الجارى:۱۲۰/۶)_

[3]) عمدة القارى:۶۲/۱۵، وشرح ابن بطال:۳۰۴/۵)_قال الكورانى رحمه الله(الكوثر الجارى:۱۲۰/۶):فان قلت:ليس فى الباب دلالة على انه من على احد من غير ان يخمس؟ قلت:قوله:لو كان مطعم حيا، وكلمنى فيهم لتركتهم له كاف فى الدلالة)_

[4]) عمدة القارى:۶۳/۱۵، والكوثر الجارى:۱۲۱/۶، والابواب والتراجم:۲۰۷/۱)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

باب ذوالقربى سره متعلق دي۔ د مزيد تفصيل دپاره دي هغه باب دوباره دي اوكتلې شى د كوم باب چې حواله وركړې شوه۔

دا خو د امام بخارى رحمه الله دعوى ده او په دليل كښې هغوى يو خو د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله قول نقل كړې دې او دويم ئې د حضرت جبير رضي الله عنه حديث نقل كړې دې۔

د ترجمة الباب په الفاظو كښې تقديم او تاخير دې، لكه د "ومن الدليل....دون بعض" پورې خبرمقدم دي او "ماقسم النبى إلى آخره" مبتداء مؤخر ده[1]۔

د بنى المطلب نه مراد المطلب بن عبد مناف دي كوم چې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د نيكۀ عبد المطلب تره دې، دا څلور وروڼه وو، مطلب، هاشم، نوفل او عبدشمس، ددې ټولو پلار عبد مناف دې[2]

قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ لَمْ يَعُمَّهُمْ بِذَلِكَ، وَلَمْ يَخُصَّ قَرِيبًا دُونَ مَنْ أَحْوَجُ إِلَيْهِ، وَإِنْ كَانَ الَّذِي أَعْطَى لِمَا يَشْكُو إِلَيْهِ مِنَ الْحَاجَةِ، وَلِمَا مَسَّتْهُمْ فِي جَنْبِهِ، مِنْ قَوْمِهِمْ وَحُلَفَائِهِمْ.

**د مذكوره تعليق لغوى او نحوى نچوړ:** په دې تعليق باندې د پوهيدلو نه مخكښې ددې لغوى او نحوى تحليل اوګورئ۔

په لم يعم كښې ضميرفاعل نبى كريم عليه السلام او ضميرمفعول "هم" د قريش طرفته راجع كيږى كوم چې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم رشته دار دى۔

د بذلك نه مراد بما قسمه يعنى د غنيمت تقسيم دې، يا أعطاء الخمس دې، دويم راجح دې ځكه چې بحث د خمس جارى دې۔

په دون من أحوج إليه كښې د موصول عائد يعنى "هو" محذوف دې، اصل عبارت دغه شان ښكار وو: "دون من هوأحوج إليه" ابن مالک وائى چې داسې ډيركم كيږى چې د موصول عائد محذوف وى لكه د قرآن كريم په آيت (تماما على الذى أحسن)[3] كښې يو قراءت د يحيى بن يعمر دې، هغه احسن د نون په ضمې سره روايت كوى، دا ددې وجې نه ضعيف ښودلې شوې دې چې په دې كښې د عائد حذف موندلې كيږى يعنى اصل عبارت دادې: "تماماً على الذى هوأحسن".

مزيد فرمائى چې كه كلام اوږد شى نو په دې كښې هيڅ حرج نشته، ددې دليل د قرآن كريم آيت: (وهوالذى فى السماء إله وفى الارض إله)[4] دې، په دې كښې د عائد حذف هم موندلې كيږى ځكه چې اصل عبارت دغه شان ښكار وو: "وفى الارض هو إله" البته دا ضرورى نۀ ده ځكه چې كلام اوږد دې۔ علامه عينى رحمه الله فرمائى چې په بعضې نسخو كښې "دون من هو أحوج إليه"

---

[1] ) عمدة القارى:١٥/٦٣)_

[2] ) پورته حواله، وسيرة ابن هشام:١/١٠٦،اولاد عبد مناف وامهاتهم، اردو )_

[3] ) الانعام:١٥٤)_

[4] ) الزخرف:٨٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ذکر دي، په دې صورت کښې ددې ټولو تکلفاتو ضرورت نشته. او "أحوج" د أحوجه إليه څخه نه دې، د احتاج يعنى محتاج کيدو په معنى کښې دې.

أعطى اکثرو حضراتو معروف ښودلې دې، په دې صورت کښې به ضمير د نبى کريم ﷺ طرفته راجع کيږي. او علامه عينى ئې مجهول ګرځوى او ددې معنى دا بيانوى: "وإن کان الذى أعطى أبعد قرابة ممن لم يعط" دلته د کان خبر محذوف دې، يعنى ممن لم يعط.

"لما يشکو...." جمله تعليليه ده، ځکه چې لرې رشته دار ته د ورکولو علت په کښې بيانيږي.

"ولما مستهم" دا په اولنى لما باندې عطف دې او دواړو ځايونو کښې لما لام مکسوره سره ده، دا لما ميم مشدده سره نۀ ده.

"جنبه" ددې معنى ده طرف او جهت.

"حُلفاءهم" حاء مهمله سره دا د حليف جمع ده او په دې کښې هغه تکليفونو او مصيبتونو طرفته اشاره ده کوم چې د مکې مکرمې د قريشو او د هغوى د ملګرو له طرفه نبى کريم ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ورکړې شوې وو.(١).

**د مذکوره تعليق مطلب:** د حضرت عمر بن عبدالعزيز ددې تعليق مطلب دادې چې نبى کريم ﷺ په ذوى القربى (قريشو) کښې ټولو ته ورنه کړه، نۀ ئې داسې اوکړل چې څوک زيات ضرورت مند دې نو د هغۀ د ضرورت لحاظ نۀ ساتلو سره ئې نزدې کس ته ورکړو. بلکه ددې خلاف ئې اوکړل چې يو نزدې کس دې، زيات ضرورتمند نۀ دې، دويم لرې کس دې ليکن زيات محتاج او ضرورتمند دې نو کوم چې زيات ضرورتمند دې او نزدې نۀ دې نو نبى کريم ﷺ هغۀ ته ورکړه او کوم کس چې نزدې دې ليکن ضرورتمند نۀ دې نو هغۀ ته ئې ورنه کړه.

او په دې ورکړه کښې ئې د دوو څيزونو خيال اوساتلو چې د هغې بيان په "لما يشکو إلى آخره.." کښې دې، يو احتياج او ضرورت، دويم څيز نصرت او مدد ځکه چې د اسلام په شروع زمانه کښې په مسلمانانو باندې د غمونو بارانونه وو، هغه وخت دا خلق د ظلم وستم په مقابله کښې ثابت قدم پاتې شو او د الله تعالى او د هغۀ د رسول ﷺ مدد او تعاون ئې کوو.(٢).

**د مذکوره تعليق مقصد:** ددې تعليق مقصد خو پورتنى تقرير سره واضح شو چې امام ته اختيار دې چې د خمس مال چرته غواړى نو خرچ کولې شى، په دې کښې د هيڅ تخصيص نشته، هم دا د امام مالک رحمه الله مذهب دې کوم چې امام بخارى رحمه الله اختيار کړې دې.

**ترجمې سره د تعليق مناسبت:** اوس ترجمة الباب سره ددې تعليق مناسبت بالکل واضح شوې دې، امام بخارى رحمه الله چې د پوره تصرف کومه دعوى کړې وه، په هغې باندې د حضرت عمر

---

(١) عمدة القارى:۶۳/۱۵، وفتح البارى:۲۴۴/۶، وارشاد السارى:۲۱۹/۵، وشرح ابن بطال:۳۰۶/۵)_

(٢) عمدة القارى:۶۳/۱۵، وفتح البارى:۲۴۴/۶، وشرح القسطلانى:۲۱۰/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بن عبد العزيز رحمه الله ارشاد واضح طور سره دلالت کوی. په دې تعليق سره ضمن کښې د احنافو مذهب هم ثابتيږی، احناف دا فرمائی چې ذوی القربی به د حصې مستحق وی ليکن د ضرورت او احتياج په بناء باندې، هم دا دوه څيزونه حضرت عمر بن عبدالعزيز په "لما يشکو.....الی آخره" کښې بيان کړی دی، تفصيل وړاندې تير شو.[1]

**د ذکر کړې شوې تعليق تخريج:** دا تعليق ابو زيد عمر بن شبه په خپل کتاب اخبارالمدينه کښې موصولاً او مطولاً نقل کړې دې، هغې کښې دا د يو خط په شکل کښې دې، کوم چې حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله يو قريشی ته ليکلې وو، د هغې ابتدائی جملې داوې:

"أما بعد! فإن الله تبارك وتعالى أنزل القرآن على محمد، هدى وبصائر لقوم يؤمنون......"[2].

۲۹۷۱ [3] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ مَشَيْتُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ وَتَرَكْتَنَا، وَنَحْنُ وَهُمْ مِنْكَ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّمَا بَنُو الْمُطَّلِبِ وَبَنُو هَاشِمٍ شَىْءٌ وَاحِدٌ».

## رجال الحديث

①**عبدالله بن يوسف:** دا عبد الله بن يوسف تنيسی رحمه الله دې. د دوی حالات اجمالاً د بدء الوحی په "الحديث الثانی" کښې تير شوې دی.[4]

②**الليث،** ③**عقيل،** ④ **ابن شهاب:** ددې درې واړو حضراتو حالات د بدء الوحی په "الحديث الثالث" کښې تير شوې دی.[5]

⑤**ابن المسيب:** دا مشهور تابعی محدث حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله دې. د دوی تذکره د کتاب الايمان، "باب من قال: إن الايمان هو العمل" په ضمن کښې تيره شوې ده.[6]

---

[1] ) اردو باب ومن الدليل على ان الخمس لنواءب رسول الله ﷺ.....باب رقم (۶)._

[2] ) تغليق التعليق:۴۷۸/۳،وکتاب اخبار المدينة:۱۳۲/۱،خصومة على والعباس الى عمر_ رضی الله عنه _رقم، (۵۷۷).او د حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله د حالاتو دپاره اوګورئ، کشف الباری:۶۲۳/۱)_

[3] ) قوله:عن جبير.....الحديث،اخرجه البخاری ايضا،کتاب المناقب،باب مناقب قريش،رقم (۳۵۰۲)، وکتاب المغازی،باب غزوة خيبر،رقم (۴۲۲۹)،و ابو داود،کتاب الخراج والامارة......باب بيان مواضع قسم الخمس......رقم (۲۹۷۸_۲۹۸۰)،والنسائی،کتاب الفیء،رقم (۴۱۴۲_۴۱۴۲)،وابن ماجه،کتاب الجهاد،باب قسمة الخمس،رقم (۲۸۸۱))_

[4] ) کشف الباری:۲۸۹/۱)_

[5] ) کشف الباری:۳۲۴/۱_۳۲۶)_

[6] ) کشف الباری:۱۵۹/۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑨ **جبیر بن مطعم**: دا حضرت جبیر بن مطعم بن عدی رضی الله عنه دې.[1]

**د حدیث مبارک ترجمه**: حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه فرمائی چې زهٔ او عثمان بن عفان رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ خدمت اقدس کښې حاضر شو او مونږ اووئیل چې یا رسول الله! تاسو خو بنو المطلب ته ورکړه اوکړه لیکن مونږ مو محروم اوساتلو، حالانکه مونږ د یو جدا شان حاملین یو؟ جواب کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې بنو المطلب او بنو هاشم خو یو څیز دې.

**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت**: وړاندې چې کوم تفصیل تیر شو نو د هغې په رڼا کښې ددې حدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت او مطابقت بالکل واضح او ښکاره دې.

**خبرداری**: ددې حدیث شریف تشریح وړاندې هم په کتاب الخمس کښې "باب ومن الدلیل علی أن الخمس لنوائب رسول الله ....." او په کتاب المغازی[2] کښې تیره شوې ده، البته مونږ به دلته بعضې فائدې ذکر کوو.

**په شئ واحد کښې د نسخو او د روایتونو اختلاف**: علامه خطابی رحمه الله لیکلې دی چې دا حدیث زمونږ نه حسن بن صالح روایت کړې دې او مونږ د ابن المنذر نه، په دې کښې "شئ واحد" راغلې دې، یعنی د سین مهمله کسره او د یاء د تشدید سره، ددې معنی ده هم مثل یعنی یو شان[3].

حافظ علیه الرحمة فرمائی چې ما سره چې د بخاری شریف کومه اصل نسخه ده، په هغې کښې د کشمیهنی په روایت کښې د باب حدیث، په مغازی کښې د مستملی روایت او د قریشو په مناقبو کښې د مستملی او د حموی په روایت کښې سی. بکسر السین المهملة وتشدید التحتانیة. دې، ابن معین رحمه الله به هم دغه شان سین مهمله سره روایت کوو او خطابی رحمه الله هم دې روایت ته صحیح وئیلې دی[4]. البته اکثرو حضراتو دا لفظ د شین معجمه سره نقل کړې دې، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چې په بخاری شریف کښې خو مونږ ته هم دغه روایت د څهٔ اختلاف نه بغیر رارسیدلې دې لیکن د بخاری نه علاوه کتابونو کښې د سی والا روایت دې او د اکثرو نقل کړده روایت صحیح دې، ددې واضح دلیل د حدیث مبارک دا الفاظ دی، "وشبك بین أصابعه".[5] چې نبی کریم ﷺ تشبیک بین الاصابع کړې دې، یعنی څنګه چې دا دوه ګوتې خپل مینځ کښې ملاؤ دی، دغه شان بنو هاشم او بنو المطلب هم خپلو

---

[1] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الغسل، باب من افاض علی راسه ثلاثا)_
[2] ) کشف الباری، کتاب المغازی: ٤٤٤)_
[3] ) تلخیص الجبیر، کتاب قسم الفیء والغنیمة: ۱۰۱/۳، رقم (۱۳۸۷)، وکشف المشکل: ٤/من مسند جبیر بن مطعم، رقم (۲۸۵۶))_
[4] ) فتح الباری: ۲٤٥/٦، وعمدة القاری: ٦٤/١٥)_
[5] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الخراج.....باب بیان مواضع قسم الخمس، رقم (۲۸۹۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې يو دى چونكه دلته مساوات بيانول مقصود دى،مماثلت او يوشان والې بيانول ﷺ مقصد نهٔ دې او نبى ﷺ دا وئيل غواړى چې مونږ او بنوالمطلب يو او مساوى يو.[1]

**واحد يا أحد:** بيا په دې ځان پوهه كړئ چې په اكثرو روايتونو كښې واحد دې،ليكن د ابو زيد مروزي په روايت كښې شئ أحد راغلي دې نو بعضو اوونيل چې د دواړو لفظونو يو معنى ده.[2]

قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ وَزَادَ قَالَ جُبَيْرٌ وَلَمْ يَقْسِمِ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ وَلَا لِبَنِي نَوْفَلٍ . وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ عَبْدُ شَمْسٍ وَهَاشِمٌ وَالْمُطَّلِبُ إِخْوَةٌ لأُمٍّ، وَأُمُّهُمْ عَاتِكَةُ بِنْتُ مُرَّةَ، وَكَانَ نَوْفَلٌ أَخَاهُمْ لأَبِيهِمْ.[۳۳۱۱، ۳۹۸۹].

ليث بن سعد وائى چې هم دا حديث ماته يونس بن يزيد ايلى هم روايت كړې دې،هغوى په خپل روايت كښې ددې الفاظو زياتوالې كړې دې چې نبى كريم ﷺ بنو عبد شمس او بنو نوفل ته په خمس كښې نهٔ وه وركړې......

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق امام بخارى رحمه الله موصولاً او مسنداً په كتاب المغازى[3] كښې د يحيى بن بكير په طريق سره ذكر كړې دې[4]،ليكن حافظ فرمائى چې د عبدالله بن يوسف عن الليث د طريق نه هم دا روايت ما سره دې،دغه شان به دا روايت موصول وى،معلق نهٔ[5] ليكن معلق كيدل زيات راجح دى،ځكه چې حافظ په خپله هم دا روايت په خپل كتاب تغليق التعليقك په تعليقاتو كښې شمار كړې دې[6].

**د مذكوره تعليق مقصد:** ددې مقصد واضح دې،كوم چې په لفظ د "وزاد" كښې موجود دې چې ليث د يونس بن يزيد[7] نه هم دا روايت اخستلې دې،په هغې كښې دا اضافه هم ده چې د حضرت جبير بن مطعم(د دوى تعلق بنو نوفل سره وو)او د حضرت عثمان بن عفان(د دوى تعلق د بنو عبد شمس سره وو) رضى الله عنهما دواړو د گزارش باوجود دوى ته هيڅ هم ورنهٔ كړل لكه څنګه چې د مغازى په روايت كښې د "شيئاً" الفاظ هم دى.

**ترجمة الباب سره د تعليق مناسبت:** دلته مناسبت واضح دې چې ددې دواړو حضراتو د

---

[1]) فتح البارى:۲۴۵/۶،وعمدة القارى:۶۴/۱۵)_

[2]) پورته حواله جات)_

[3]) كتاب المغازى،باب عروة خيبر،رقم (۴۲۲۹))_

[4]) فتح البارى:۲۴۵/۶،وعمدة القارى:۶۴/۱۵،وارشاد السارى:۳۱۹/۵)_

[5]) فتح البارى:۲۴۵/۶)_

[6]) تغليق التعليق:۴۷۹/۳)_

[7]) د يونس بن يزيدايلى رحمه الله حالات اجمالاً بدء الوحى:(۴۶۳/۱)او تفصيل سرهكتاب العلم،باب من يرد الله به خيرا......(۲۸۲/۳)كښى تير شوې دى)-

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

گزارش باوجود نبی ﷺ دوی ته په خمس کښې هیڅ هم ورنه کړل، دا ددې خبرې د ثابتولو دپاره کافی ده چې په دې کارونو کښې اصل تصرف د امام دې، هغه چې څنګه او چرته غواړی نو صرف کولې شی، په هغهٔ باندې هیڅ پابندی نشته. والله اعلم

**قوله: وقال ابن اسحاق: عبد شمس وهاشم والمطلب إخوة لام، وأمهم عاتكة بنت مرة، وكان نوفل أخاهم لابيهم:** او ابن اسحاق وائی چې عبد شمس، هاشم او مطلب د یو مور نه وو، د دوی مور عاتکه بنت مره ده. او نوفل ددې تولو پلار شریکورور وو، یعنی د هغهٔ مور دویمه وه. د عبدمناف د دوو ښځو نه څلور نارینه اولاد وو، چې په هغوی کښې د دریو مور خو عاتکه بنت مرة بن هلال وه، ددې تعلق د بنو سلیم سره وو او د نوفل مور واقده بنت عمرو ده.(۱) ددې تعلق د بنو مازن سره وو.(۲).

امام ابن جریر لیکلې دی چې هاشم او عبد شمس دواړه په یو وخت پیدا شوې وو، د پیدائش په وخت هاشم اول پیدا شو لیکن د هغهٔ یو خپه د عبد شمس د سر سره پیوسته وه، د جدا کولو په کوشش کښې دواړو اندامونو(سر او خپه)نه وینه روانه شوه، هغه وخت خلقو دا غلط خیال کوو چې ددې دواړو په اولاد کښې به جنګونه وی او وړاندې هم دغه شان اوشوه لکه په یوسل درې دیرشمه ۱۳۳ هجرئ کښې د بنو العباس او د بنو امیه بن عبد شمس مینځ کښې څو جنګونه اوشو.(۳).

ددې نه علاوه زبیر بن بکار په "نسب" کښې لیکلې دی چې خلقو به هاشم او مطلب ته د ښائست او د زینت د وجې نه بدران او عبد شمس او نوفل ته ابهران وئیل په دې کښې ددې خبرې دلالت دې چې په دې دواړو کښې یو خاص قسم تعلق او محبت وو چې وروستو بیا د دوی په اولاد کښې هم جاری وو، ددې وجې نه چې هر کله قریشو اتفاق سره د بنوهاشم مقاطعه اوکړه او په شعب ابی طالب کښې دوی پناه واخسته نو هغه وخت بنوالمطلب هم د بنوهاشم سره په شعب ابی طالب کښې داخل شو او بنو عبد شمس او بنو نوفل د قریشو سره د دوی په مقاطعه کوونکو کښې شامل وو او په شعب ابی طالب کښې داخل نهٔ شو.(۴). په دې وادئ کښې چې د دواړو قبیلو کوم خلق داخل شو، په هغې کښې دواړه قسم خلق وو، مسلمانان او مشرکان، مسلمانان خو ددې وجې نه داخل شو چې د هغوی مرګ او ژوند د نبی کریم ﷺ سره وو نو د الله او د رسول ﷺ په اطاعت کښې دا خلق دغه ځائې کښې قید وو او کفار د قبائلی غیرت په بنیاد او د ابوطالب په اطاعت کښې دغه ځائې کښې قید شو. هم په دې باندې ابوطالب یو مشهوره قصیده وئیلې ده چې "لامیه" سره مشهوره ده، په دې

---

(۱) سیرة ابن هشام:۱/۱۰۶، اولاد مناف وامهاتهم)_

(۲) پورته حواله، وفتح الباری:۶/۲۴۵، وعمدة القاری:۱۵/۶۴)_

(۳) عمدة القاری:۱۵/۶۴، وتاریخ ابن جریر:۱/۵۰۴، ذکر نسب رسول الله ﷺ، ابن هاشم)_

(۴) فتح الباری:۶/۲۴۵، والکامل فی التاریخ:۱/۵۵۴، نسب رسول الله ﷺ وذکر اخبار آباءه.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې هغوی د بنو نوفل او د بنو عبد شمس مذمت بیان کړې دې.دا قصیده په یوسل لس بیتونو باندې مشتمله ده،چې د هغې نه مونږ صرف څلور بیتونه لاندې ذکر کوو:

جزی الله عنا عبد شمس ونوفلا عقوبة شر عاجل غير آجل

بميزان قسط لا يخيس شعيرة له شاهد من نفسه حق عادل

لقد سفهت أحلام قوم تبدلوا بنی خلف قيضاً بنا والغياطل

ونحن الصميم من ذؤابة هاشم وآل قصی فی الخطوب الاوائل [1]

**د بیتونو ترجمه:** ① الله تعالی دې زمونږ له طرفه عبدشمس او نوفل ته خرابه بدله ورکړی، چې زر وی او غیرمؤخر وی.

② د اسې د عدل میزان سره،چې د یو اوربشې برابر مقدار هم پرینږدی،په دې باندې هم د هغوی نه یو حق ګو ګواه وی.

③ دهغې قوم اخلاق خراب شو،چاچې مونږ پریخودو او بنو خلف بن جمح او غیاطل (بنوسهم) ئې خپل کړل.

④ مونږ د هاشم او د آل قصیٔ د نسل خالص النسب خلق یو په اولنی تیر شوو حادثاتو کښې.

**د تعلیق مقصد:** لکه څنګه چې تاسو اوکتل دوی ټول په نسب کښې برابر دی.لیکن نبی کریم ﷺ بعضو ته څۀ ورکړل او بعضو ته ئې ورنۀ کړل.نو دا ددې خبرې دلیل دې چې د نزدې کسانو ته ورکول علت نۀ دې،هم په دې خبره باندې د خبرداری دپاره امام بخاری رحمه الله دا تعلیق ذکر کړې دې.[2].

**د مذکوره تعلیق تخریج:** د امام محمد بن اسحاق،د صاحب المغازی دا تعلیق امام بخاری رحمه الله په خپل تاریخ کبیر و صغیر دواړو کښې د اسماعیل بن ابی اویس د طریق نه موصولاً نقل کړې دې[3].ددې نه علاوه ابن جریر او زبیر بن بکار هم دا تعلیق ذکر کړې دې.[4].

# ⑱ باب: بَابٌ مَنْ لَمْ يُخَمِّسِ الْأَسْلَابَ. وَمَنْ قَتَلَ قَتِيلاً فَلَهُ سَلَبُهُ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُخَمَّسَ، وَحُكْمِ الْإِمَامِ فِيهِ.

**لغوی او اصطلاحی اسلاب:** اسلاب د سلب جمع ده،سلب د سین او د لام فتحې سره مصدر په معنی د مسلوب کښې دې،په دې کښې یو لغت د لام سکون سره هم دې،ددې معنی ده په

---

[1]) عمدة القاری:۶۵/۱۵،وذکر اوله فی زاد المعاد:۳۰/۳،فصل (اسلام حمزة....)،وکامله فی سیرة ابن هشام:۱ابن هشام:۲۷۲/۱_۲۸۰،شعر ابی طالب فی استعطاف قریش،والروض الانف:۱۷۴/۱_۱۷۹،فصل فی ذکر قصیدة لامیة ابی طالب....)_

[2]) لامع الدراری: ۳۱۱/۷)_

[3]) فتح الباری:۲۴۵/۶،وتغلیق التعلیق:۴۷۹/۳،والتاریخ الکبیر:۴/۱،والتاریخ الصغیر:۶/۱)_

[4]) عمدة القاری:۶۴/۱۵،وتاریخ ابن جریر:۵۰۴/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زور سره اخستلې شوې څکه چې سلبه معنی ده اخستل[1]۔

اصطلاحاً: مایوجد مع المحارب من ملبوس وغیرہ، عند الجمهور[2] یعنی جنګجو سره چې کوم لباس او اسلحه وغیره وی نو په هغې باندې ددې اطلاق کیږی۔ د سلب په احکاماتو کښې دیر تفصیلات دی چې هغه به مونږ ترتیب سره ذکر کوو۔

**تکلیفی حکم(د سلب مشروعیت):** د امت د جمهورو فقهاء کرامو رحمهم الله مؤقف او رائې داده چې یو مسلمان مجاهد چې د جنګ دوران کښې وړاندې شی او یو مشرک قتل کړی نو کوم مال و اسباب چې دغه مشرک سره وی، د هغې مستحق دا مسلمان مجاهد دې، په دې کښې هیڅ اختلاف نشته۔ البته په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې چې آیا ددې دپاره د امام اجازت هم ضروری دې یا نهٔ؟

① نو د احنافو نه علاوه د نورو ټولو حضراتو، سوا د امام مالک نه، دا وائی چې ددې دپاره د امام د اجازت هیڅ ضرورت نشته، امام د سلب وضاحت اوکړی یا اونه کړی، مجاهد به په هرحال کښې ددې مستحق او حقدار وی۔

② حضرات حنفیه کثرالله سوادهم ددې دپاره د امام اجازت شرط ګرځوی، مثلاً امام دا اووائی چې د غنیمت جمع کیدو نه مخکښې څوک یوکس قتل کړی فله سلبه(یعنی د هغهٔ سازوسامان به ددهٔ دپاره وی) ورنه په نورو صورتونو کښې به دا سلب هم د غنیمت حصه وی چې د مجاهدینو مینځ کښې به تقسیمیږی۔[3]۔

امام طحاوی رحمه الله فرمائی: ”أمر السلب موکول للامام فیری فیه رأیه.....“[4]۔

③ د موالکو مذهب هم احنافو ته نزدې نزدې دې لیکن هغوی دا وائی چې د امام دپاره دا مناسب نهٔ دی چې ابتداء کښې هغه دغه شان د څهٔ خبرې شرط اولګوی، البته د جنګ ختمیدو نه پس څهٔ داسې خبره کیدې شی، ددې وجې نه چې د مجاهد په نیت کښې فساد رانهٔ شی۔ اصل کښې مالکیه سلب هم د نفل حصه ګرځوی نو د نفل په سلسله کښې چې د هغوی کوم مذهب تیر شو هم هغه مذهب د هغوی په سلب کښې هم دې[5]۔

**د امامانو دلیلونه:**

**د جمهورو دلائل:** په دې سلسله کښې د جمهورو دلیل خو یو مشهور حدیث مبارک دې چې ”من قتل قتیلاً، له علیه بینة، فله سلبه“[6] او دویم دلیل د حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه قول

---

[1]) فتح الباری:۶/۲۴۷، وعمدة القاری:۱۵/۶۵، والاوجز:۹/ ۱۸۵، والموسوعة:۲۵/۱۷۶)_

[2]) پورته حواله جات، ولسان العرب:۶/۳۱۷، باب السین، مادة:سلب)_

[3]) عمدة القاری:۱۵/۶۵، وحاشیه ابن عابدین:۳/ ۲۶۰، مطلب فی التنفیل، وفتح الباری:۶/۲۴۸)_

[4]) شرح معانی الآثار:۲/۱۴۶_۱۵۰، باب الرجل یقتل قتیلا فی دار الحرب....)_

[5]) المنتقی:۳/۱۹۱، والاوجز:۹/۱۹۴، والشرح الکبیر للدر دیر:۲/۱۹۰)_

[6]) رواه البخاری فی الباب، واخرجه الجماعة_غیر النسائی_من حدیث..... [بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي. "اللهم ارزقنی رجلاً شديداً.....حتی اقتله وآخذ سلبه"(۱) د استدلال وجه داده چې دا احاديث مطلق او عام دی، په دې کښې هيڅ قسم قيد نشته(۲).

**د احنافو دليلونه:** د احنافو يو دليل د حضرت عوف بن مالک رضي الله عنه حديث دې، فرمائی:

**"ان مدديا(۳) اتبعهم فقتل علجاً، فاخذ خالد بعض سلبه، واعطاه بعضه، فذکر ذلک لرسول الله صلی الله عليه وسلم، فقال: لا ترده عليه يا خالد"(۴).**

"يو معاون هم دوی سره لاړو او هغهٔ يو بهادر کافر قتل کړو نو حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه د سلب بعضې حصه په خپله کيخوده او باقی حصه ئې دغه سړی ته ورکړه، ددې ذکر نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته اوکړې شو نو نبی عليه السلام اوفرمائيل، ائې خالده! څهٔ چې تا اخستلې دی نو هغه سړی ته ئې مهٔ واپس کوه"

دويم دليل د باب حديث دې، په کوم کښې چې د ابوجهل لعين د قتل قصه ذکر ده. په دې کښې نبی کريم صلی الله عليه وسلم سلب معاذ بن جموح رضي الله عنه ته ورکړې وو.(۵).

دريم دليل د شبر بن علقمه واقعه ده، فرمائي:

**"بارزتُ رجلاً يوم القادسية فقتلته، واخذت سلبه، فاتيت به سعداً، فخطب سعد اصحابه، ثم قال: ان هذا**

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] ابی قتادة رضي الله عنه .انظر جامع الاصول وتعليقاته:۲/۶۸۷_۶۸۸.وابن ماجه.کتاب الجهاد.باب المبارزة والسلب.رقم (۲۸۳۷))_

(۱) هو بعض حديث سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه.اخرجه الحاکم.وکامله:

.....ان عبد الله بن جحش قال يوم احد:الا تاتی ندعوالله؟فخلوا فی ناحية.فدعا سعد.فقال:يا رب.اذا لقينا القوم فلقينی رجلا شديداً باسه.شديدا حرده.فاقاتله فيک.ويقاتلنی.ثم ارزقنی عليه الظفر.حتی اقتله وآخذ سلبه. فقام عبدالله بن جحش.ثم قال:اللهم ارزقنی غدارجلا شديدا حرده.شديدا باسه.اقاتله فيک ويقاتلنی.ثم ياخذنی: فيجدع انفی واذنی.فاذا لقيتک غداقلت:يا عبدالله.فيم جدع انفک واذنک؟فاقول:فيک.وفی رسولک. فيقول:صدقت.قال سعد بن ابی وقاص:يا بنی.کانت دعوة عبد الله بن جحش خيرا من دعوتی.لقد رايته آخر النهار وان اذنه وانفه لمعلقان فی خيط.انظر:المستدرک:۲/۸۶.کتاب الجهاد.رقم (۲۴۰۹). واخرجه البيهقی ايضا فی الکبری:۶/۵۰۲.کتاب قسم الفیء والغنيمة.باب السب للقاتل.رقم (۱۲۷۶۹))_

(۲) المغنی:۹/۱۸۹)_

(۳) په جنګ موته کښې چې کوم لښکر د مدد او تعاون دپاره راغلې وو، د هغې يو سړې مراد دې، مددی په معنی د مددګار. د مسلم شريف وغيره د روايت نه معلوميږی چې ددې سړی تعلق د بنو حمير سره وو. اوګورئ، مسلم.کتاب الجهاد والسير.باب استحقاق القاتل سلب القتيل.رقم(۴۵۷۰).وسنن سعيد بن منصور:۲/۲۶۰.رقم (۲۶۹۷))_

(۴) هذا ملخص من حديث طويل.رواه ابو داود فی کتاب الجهاد.باب فی الامام يمنع القاتل السلب.رقم (۲۷۹۱).وسعيد بن منصور فی سننه:۲/۲۶۰.کتاب الجهاد.باب النفل والسلب.....رقم (۲۶۹۷))_

(۵) اوګورئ. حديث باب.رقم (۳۱۴۱).ددې دليل سره متعلق خبرداري به وړاندې د حديث په تشريح کښې راشی)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سلب شبر، لهو خير من اثنى عشر الفا، وإنا قد نفلناه إياه"[1].

**د استدلال وجه** دلته د استدلال وجه واضح ده، لکه په اولنی حدیث شریف کښې نبی کریم ﷺ ددې دواړو حضراتو مینځ کښې فیصله اوفرمائیله او سلب ئې په دواړو کښې تقسیم کړو، که د امام اجازت شرط وو یا بس صرف قاتل مستحق وو نو ددې فیصلې ضرورت ولې پیښیدو؟

په دویم دلیل کښې راغلې دی چې نبی کریم ﷺ سلب معاذ بن جموح ؓ ته ورکړو او دا ئې هم اوفرمائیل چې "کلاکما قتله" دغه شان خو سلب تولو ته ملاویدل پکار وو، لیکن ددې برخلاف سلب صرف معاذ بن الجموح ؓ ته ورکړې شو، ښکاره خبره ده چې نبی کریم ﷺ خپل اختیار استعمال کړې دې.

په دریم دلیل کښې حضرت سعد ؓ دا بیان فرمائی چې "وإنا قد نفلناه إياه" حالانکه دغه سلب د شبر حق دې نو ددې قول ضرورت ولې پیښ شو چې مونږ دا سلب دهٔ ته د نفل په طور ورکړې دې؟[2].

**د سلب مستحق څوک وی؟**

① **جمهور فقهاء**: په دې جزء کښې د فقهاؤ اختلاف دې، نو د جمهورو (امام اعظم ابوحنیفه، شافعی او احمد رحمهم الله) په نزد د سلب مستحق هرهغه سړې کیدې شی چې د حصې مستحق وی یا د رضخ مستحق وی، لکه غلام، ښځه، ماشوم، تاجر او ذمی ځکه چې په حدیث شریف کښې عموم دې "من قتل قتيلاً، له عليه بينة فله سلبه"[3].

البته د شوافعو په نزد ذمی ددې حکم نه مستثنی دې، د هغوی په نزد ذمی اګرچه د امام په اجازت سره په جنګ کښې شریک شوې وی لیکن هغه د سلب مستحق نهٔ شی کیدې، د اجازت نه بغیر خو د تولو اتفاق دې چې د هغه د سلب مستحق کیدې نهٔ شی[4].

② **موالک**: او د مالکیه مذهب په دې سلسله کښې دادې چې ددې سلب مستحق هغه کس وی چې صرف د سهم مستحق وی نو د هغوی په نزد ماشوم، ښځه او ذمی د سلب په مستحق کیدو کښې شامل نهٔ دی البته که امام دوی ته اجازت ورکړی یا په دوی باندې جهاد فرض عین شی نو دوی به هم مستحق وی. ددې تفصیل نه معلومه شوه چې کوم کس د سهم مستحق نهٔ وی او د رضخ مستحق هم نهٔ وی نو بالاتفاق په دې حکم کښې داخل نهٔ دې[5].

---

[1]) رواه سعيد فى سننه: ۲۵۸/۲، فى كتاب الجهاد، باب النفل والسلب فى الغزو.....رقم (۲۶۹۲)_

[2]) المغنى: ۱۹۲/۹، وايضا انظر البناية شرح الهداية: ۱۸۱/۷_۱۸۴، واعلاء السنن: ۲۸۲/۱۲)_

[3]) اوګورئ، حديث باب، رقم (۳۱۴۲)، ومسلم، كتاب الجهاد، باب استحقاق القاتل.....رقم (۴۵۶۸)_

[4]) حاشيه ابن عابدين: ۲۶۱/۳، والمغنى: ۱۸۹/۹، وفتح القدير: ۲۵۰/۵، فصل فى التنفيل، وسبل السلام شرح بلوغ المرام: ۵۲/۴_۵۳)_

[5]) المغنى: ۱۹۱/۹، والاوجز: ۱۸۵/۹، والموسوعة: ۱۷۸/۲۵، وعمدة القارى: ۶۹/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**خپل ځان په خطره کښې واچوي**: د سلب د مستحق کیدو دپاره چې کوم شرطونه دی نو په هغې کښې دا هم دې چې قاتل خپل ځان په خطره کښې واچوی او په دې حالت کښې مقتول قتل کړی او د مرګ سره لوبې کوی ورنه بیا د سلب مستحق نۀ شی کیدې.مثلاً د صف نه غشی ګزار کړی او هغې باندې یو کافر اولګی یا کافر په قلعه کښې بند وی او د یو مجاهد غشې دننه لاړ شی هغه کافر قتل کړی.(۱).

**د مقتول د قتل کولو شرعی اجازت وی**:یو شرط دا هم دې چې کوم کافر قتلولې شی،نو د هغهٔ قتل شرعاً جائز وی.ددې وجې نه ښځه،ماشوم،شیخ فانی،پاګل او د راهب وغیره قتلولو سره به څوک د سلب مستحق نه جوړیږی،ځکه چې ددې خلقو د قتل شرعاً ممانعت دې البته که په دې خلقو کښې یو کس په جنګ کښې شریک شو نو د داسې کس په قتلولو باندې به بیا د سلب مستحق وی ځکه چې د دوی قتل اوس جائز شو(۲).

**قتل ئې کړی یا**........یو شرط دا هم دې چې مقتول قتل کړی یا ئې د مقتول په حکم کښې کړی یعنی د هغهٔ دومره قدرې وینه اوبهوی چې مسلمانان د هغهٔ د شر نه محفوظ شی او هغه بالکل بې لاسو خپو کړی،مثلاً د هغهٔ سترګې اوباسی،یا د هغهٔ نظر ختم کړی یا د هغهٔ خپې لاسونه کټ کړی(۳).

**د جنګ دوران کښې ئې قتل کړی**:ددې نه علاوه یو شرط دا هم دې چې هغه وخت ئې قتل کړی چې کوم وخت جنګ جاری وی او مقتول په جنګ کښې مصروف وی که جنګ ختم شی او مشرکینو ته شکست اوشی،بیا یو مسلمان کافرانو پسې شی او په هغوی کښې یو کس قتل کړی نو دې به د سلب مستحق نۀ وی ځکه چې مشرکینو ته په شکست ملاویدو سره د هغوی شر هم ختم شوې دې.په دې کښې قیدی کافر،اودهٔ وغیره هم داخل دی ځکه چې په دې صورت کښې قاتل خپل ځان په خطره کښې وانۀ چوو(۴).دا د جمهورو مسلک دې البته په شافعیه کښې د ابوثور او ابن المنذر وغیره رائې دا ده چې کافر لره قتل کړې شی نو دا قاتل به په هرصورت کښې د هغهٔ د سلب مستحق وی ځکه چې د "**من قتل قتیلاً فله سلبه**" والا حدیث شریف عام دې.(۵).

**ایا د سلب د مستحق کیدو دپاره ګواهان ضروری دی؟**:① په دې باره کښې مشهورو اختلافی مسئلو کښې یو مسئله داده،جمهور فقهاء کرام ددې خبرې قائل دی چې د سلب د مستحق

(۱) المغنی:۹/۲۹۰،والاوجز:۹/۱۸۷،وللاستزادة انظر الموسوعة:۲۵/۱۷۸_۱۷۹. وکتاب السیر الکبیر للشیبانی:۲/۱۲۱،ابواب الانفال،مع شرحه للسر خسی)_

(۲) الموسوعة:۲۵/۱۷۹،والمغنی:۹/۱۹۰، والاوجز:۹/۱۸۶،ولدر المختار:۳/۲۶۱)_

(۳) الموسوعة:۲۵/۱۷۹،والمغنی:۹/۱۹۰،والاوجز:۹/۱۸۷)_

(۴) الموسوعة:۲۵/۱۸۱،والمغنی:۹/۱۹۱، والاوجز:۹/۲۰۳)_

(۵) پورته حواله جات. وفتح الباری:۶/۲۴۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کیدو دپاره گواهان پیش کول ضروری دی، تر څو چې قاتل گواهان پیش نهٔ کړی چې قتل هم دهٔ کړې دې نو دهٔ د سلب د مستحق کیدو دعوی به مقبول نهٔ وی ځکه چې په بعضو صحیح روایتونو کښې د "له علیه بینة" د الفاظو وضاحت موجود دې.[1]

۲ دویم طرفته د امام مالک او امام اوزاعی رحمهما الله مسلک دادې چې ددې دپاره د گواهانو پیش کولو هیڅ ضرورت نشته، د قاتل دومره وینا هم کافی ده چې: أنا قتلته.

د دوی دلیل د حضرت ابوقتاده او د حضرت معاذ بن الجموح رضی الله عنهما حدیثونه دی (ذکرهما الامام فی هذا الباب) چې په دې کښې نبی کریم ﷺ د دوی نه څهٔ گواهان او قسم وغیره طلب نهٔ کړو. لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د حضرت ابوقتاده رضی الله عنه نه د گواهئ نهٔ طلب کولو دعوی کول ددې وجې نه صحیح نهٔ ده چې د واقدی په مغازی[2] کښې راغلې دی چې اوس بن خولی رضی الله عنه په دې موقع باندې گواهی ورکړې وه. او که بالفرض دا صحیح هم نهٔ وی نو ممکنه ده چې نبی کریم ﷺ ته په بل څهٔ ذریعه باندې دا خبره معلومه شوې وی چې قاتل هم ابوقتاده رضی الله عنه دې.[3]

**د گواهانو نه څهٔ مراد دی؟** بیا هغه حضرات چې گواهان پیش کول ضروری گڼړی د هغوی په دې خبره کښې اختلاف دې چې د بینې (گواهان پیش کولو) نه څهٔ مراد دې؟ نو بعضې حضرات خو د دوو کسانو گواهی ورکول شرط گرځوی، دا د امام احمد رحمه الله مذهب هم دې او بعضې نور حضرات وائی چې شهادة رجل وامرأتین او رجل ویمین هم کافی دې ځکه چې دعوی په مال کښې ده. او بعضې نور حضرات په دې معامله کښې شهادة رجل واحد هم کافی گڼړی ځکه چې نبی کریم ﷺ د حضرت ابوقتاده رضی الله عنه په معامله کښې د یو گواه گواهی قبوله کړې وه او د هغهٔ نه قسم هم اخستلې شوې نهٔ وو. ابن العطیه وائی چې په دې باره کښې د اکثرو فقهاؤ هم دا قول دې.[4]

---

[1]) فتح الباری:۶/۲۴۹، والموسوعة:۲۵/۱۸۲، وشرح الابی علی مسلم:۵/۶۳، باب استحقاق القاتل سلب القتیل، والمغنی:۵/۱۹۴_۱۹۵، کتاب الجهاد، فصل: لا تقبل دعوی القتل الا ببینة، رقم(۷۴۷۶))_

[2]) د علامه واقدی په مغازی کښې د حضرت ابوقتاده په حق کښې په گواهی ورکوونکو کښې د دوو حضراتو نومونه راغلې دی، عبدالله بن أنیس او الاسود بن الخزاعی رضی الله عنهما په دې کښې د حضرت اوس رضی الله عنه نوم مونږ ته ملاؤ نهٔ شو، اوگورئ، کتاب المغازی للواقدی:۳/۹۰۸، غزوة حنین. غالباً دلته د حافظ نه تسامح شوې ده، ځکه چې په اصابة کښې هغوی په خپله د واقدی په حوالې سره د حضرت الاسود بن الخزاعی په باره کښې لیکلې دی شهد لابی قتادة بسلب قتیله یوم حنین والله اعلم. الاصابة:۱/۴۳، القسم الاول، رقم (۱۵۳))_

[3]) فتح الباری:۶/۲۴۹، دغه شان اوگورئ، الموسوعة:۲۵/۱۸۲)_

[4]) پورته حواله جات، والمغنی:۹/۱۹۵، واکمال الابی:۵/۶۳، ومکمل اکمال المعلم المطبوع مع اکمال الابی:۵/۶۳، وسبل السلام:۴/۵۳، کتاب الجهاد، رقم (۲۲)، والاوجز:۹/۲۰۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**په سلب کښې به تخميس جاري کيږي يا نه؟دا يو بله مشهوره اختلافي مسئله ده.**

① د شافعيه(فی المشهور عندهم)، حنابله. ابن المنذر او ابن جرير رحمهم الله وغيره مسلک دادې چې په سلب کښې به تخميس نه جاري کيږي. مطلب دادې چې سلب به قاتل ته حواله کولې شي او ددې نه به خمس نه اخستلې کيږي. د دوی يو دليل د حضرت عوف بن مالک او د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنهما حديث دې چې، "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قضى بالسلب للقاتل، ولم يخمس السلب"[1] چې "نبي عليه السلام قاتل ته د سلب ورکولو حکم جاري کړو او په هغې کښې ئې خمس وانه خستلو". او دويم دليل د حضرت عمر رضي الله عنه قول دې. "إنا كنا لا نخمس السلب"[2] چې "مونږ به په سلب کښې خمس نه ويستلو".

② په دې مسئله کښې دويم مذهب د امام اوزاعی او مکحول رحمهما الله دې چې په سلب کښې به هم خمس جاري کيږي ددې حضراتو دليل د قرآن پاک آيت «واعلموا أنما غنمتم من شيء فأن لله خمسه وللرسول»[3] دې خکه چې دا آيت کريمه عام دې، نو ددې وجې نه په غنيمتونو کښې به مطلقاً تخميس جاري کيږي هم دا مذهب د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هم دې[4].

③ په دې مسئله کښې دريم مذهب د اسحاق بن راهويه دې، هغوی فرمائي: "إن استكثر الامام السلب خمسه، و ذلك إليه" چې "که امام دا اووينی چې د سلب مقدار ډير زيات دې نو تخميس دې پکښې جاري کړی او ددې اختيار به امام ته وی"[5].

د دوی دليل د ابن سيرين رحمه الله نه روايت شده حديث دې چې حضرت براء بن عازب رضي الله عنه يو مرزبان(د اهل فارس مذهبی مشر او فقيه)سره په بحرين کښې مبارزت اوکړو. حضرت براء رضي الله عنه هغه په نيزه اووهلو، چې هغې سره د مرزبان ملا ماته شوه، حضرت براء رضي الله عنه د هغۀ دواړه بنګړې واخستل او نور سامان هم، د ماسپخين د مونځ نه پس دوی حضرت ابوطلحه رضي الله عنه ته راغلل او توله واقعه ئې واوروله، نو حضرت ابوطلحه رضي الله عنه اوفرمائيل چې مخکښې به مونږ په سلب کښې خمس نه اخستلو ليکن د براء چې کوم سلب دې نو دا معتدبه مال دې، ددې وجې نه به زۀ په دې کښې خمس اخلم، نو دا اولنې سلب وو چې په دې کښې تخميس جاري

---

[1]) صحيح مسلم، کتاب الجهاد، باب استحقاق القاتل سلب القاتل، رقم (۴۵۷۱)، وسنن ابی داود، کتاب الجهاد، باب في السلب لا يخمس، رقم (۲۷۲۱))_

[2]) التمهيد: ۲۴۷/۲۳، حديث ثامن وعشرون ليحيى بن سعيد، والمصنف لابن ابی شيبة: ۵۵۸/۱۷، کتاب السير، من جعل السلب للقاتل، رقم (۳۳۷۶۱))_

[3]) الانفال: ۴۱)_

[4]) الموسوعة: ۱۸۳/۲۵، وعمدة القاری: ۶۵/۱۵، وفتح الباری: ۲۴۷/۶)_

[5]) پورته حواله جات، والمغنی: ۱۹۲/۹، والاوجز: ۱۸۸/۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شو ،ددې سلب مقدار ديرش زره وو.(١)-

③په دې مسئله کښې څلورم مذهب د حنفيه او د مالکيه دې،ددې حضراتو په نزد سلب د نورو غنيمتونو په شان دی،دا د قاتل سره مختص نۀ دې بلکه قاتل او غيرقاتل ټول په دې کښې برابر دی.امام به سلب د نفل په طور باندې ورکوی. اوس د احنافو په نزد د تنفيل محل غنيمتونو لره دارالاسلام ته منتقل کولو نه مخکښې خو اربعة الاخماس دې او دارالاسلام ته د منتقل کولو نه پس خمس دې. او د مالکيه په نزد په هرحال کښې خمس دې او د امام په رائې باندې موقوف دې،که امام مناسب اوګڼړی نو قاتل ته به ورکړی.ورنه نۀ دې ورکوی.(٢) ، کمامر تفصيله فيماقبل.

**په سلب کښې به کوم کوم څيزونه ملاويږی؟** په دې خبره کښې د فقهاؤ اتفاق دې چې قاتل ته د مقتول کوم سلب ملاويږی نو په دې کښې به دا قاتل ددې څيزونو حقدار وی:

کپړې،توپئ،پګړئ،موزې او څادر وغيره،يعنی د استعمال څيزونه.

دغه شان اسلحه او د جنګ آلات،مثلاً ډهال،خود،نيزه،چاړه،توره،ليندګئ او غشې.

دغه شان د مقتول د سورلئ زين او واګې وغيره.(٣). ددې څيزونو نه علاوه د مقتول په نورو څيزونو کښې د امامانو اختلاف دې لکه د ائمه ثلثه په نزد د مقتول سورلی په سلب کښې داخلهش ده،د امام اوزاعی او امام مکحول هم دا مذهب دې،د دوی دليل هغه حديث مددی دې کوم چې وړاندې تير شو ،په هغې کښې راغلې دی، "**انه قتل علجا،فحاز فرسه وسلاحه**".

او امام احمد رحمه الله سورلی د سلب نه خارج ګڼړی،هم دا قول د ابوبکر هم دې(٤). دا بحث د هغې سورلئ په باره کښې دې کومه سورلی چې د مقتول په استعمال کښې وه لکه هغه سورلې چې د هغۀ په خيمه کښې وی يا تختيدلې وی نو هغه بالاتفاق په سلب کښې داخله نۀ ده.(٥). ددې نه علاوه د مقتول تاج،بنګړی،ګوتمه،طوق،پټکا ،اګرچه د سرو زرو وی يا د

---

[١]) رواه سعيد فی السنن:٢/٢٦٣_٢٦٤.کتاب الجهاد،باب ما يخمس فی النفل،رقم (٢٧٠٨).وابن عبدالبر فی التمهيد:٢٣/٢٤٧،حديث ثامن وعشرون ليحيى بن سعيد.وعبدالرزاق فی مصنفه:٥/١٥٨.کتاب الجهاد، باب السلب والمبارزة،رقم(٩٥٣١))_

[٢]) عمدة القاری:١٥/٦٥،والموسوعة:٢٥/١٨٣.ليکن د احنافو تحقيقی مذهب هغه دې کوم چې په فتاوی هنديه کښې د المحيط په حوالې سره نقل کړې شوی دې،هغه دا دې چې که امام داسې اووائی من قتل قتيلاً فله السلب بعد الخمس نو په دې صورت کښې به په سلب کښې تخميس جاری کيږی او که مطلقاً من قتل قتيلاً اووائی نو تخميس بۀ نۀ جاری کيږی.الفتاوی الهندية:٢/٢١٨،الفصل الثالث فی التنفيل،من کتاب السير)_

[٣]) البناية مع الهداية:٧/١٨٤،وفتح القدير:٥/٢٥٣،وحاشية ابن عابدين:٣/٢٦٤، والمغنی: ٩/١٩٣، والاوجز:٩/١٩٠)_

[٤]) المغنی:٩/١٩٣، والاوجز:٩/١٩٠،والدر المختار:٣/٢٦٤،والموسوعة:٢٥/١٨٤)_

[٥]) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بل څۀ څیز وی، دغه شان میانۍ د پیسو هغه تهیلۍ کومه چې ملا سره تړلې شی، او په دې کښې موجود پیسې، دا ټول څیزونه د ائمه ثلثه په نزد په سلب کښې داخل دی ځکه چې دا ټول څیزونه د حدیث شریف په عموم کښې داخل دی، یعنی "من قتل قتیلاً فله سلبه" دغه شان د براء بن مالک رضی الله عنه حدیث کوم چې اوس تیر شو، هغې کښې هم د بنګړو او پټکی ذکر راغلې دې. او د مالکیه مذهب ددې څیزونو په باره که دادې چې دا څیزونه په سلب کښې داخل نه دی، ځکه چې ددې څیزنو په ذریعې سره په جنګ څۀ مدد نه حاصلیږی(۱) بیا د امام احمد په نزد مقتول لره بالکل بې لباسه کول هم جائز دی، هم دا قول د امام اوزاعی هم دې اوابن منذر او سفیان ثوری رحمهم الله دا ناخوښه ګڼړی، ځکه چې په دې کښې بدن ښکاره کیږی. او د امام احمد وغیره دلیل د حضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه په حدیث شریف کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا جمله مبارکه ده، "له سلبه أجمع"(۲) دغه شان حدیث "من قتل قتیلاً فله سلبه" هم د جمهورو د مذهب دپاره دلیل دې، ځکه چې په دې کښې هر څۀ داخلیږی، "وهذا یتناول جمیعه"(۳)

**خبرداری**: د سلب متعلق مزید معلوماتو دپاره اوګورئ، **اوجز المسالک:۹/۱۸۳_۲۰۶، کتاب الجهاد، باب ما جاء فی السلب فی النفل، والموسوعة الفقهیة:۲۵/۱۷۶_۱۸۳، واعلاء السنن:۱۲/۲۷۵_۳۰۰، واحکام القرآن للرازی:۳/۶۹_۷۲، مطلب فی سلب القتیل، وفتح الباری:۶/۲۴۷_۲۴۹_ والله أعلم بالصواب.**

د سلب متعلق ددې ټولو تفصیلاتو نه پس اوس د باب سره متعلق بحثونه اوګورئ.

**د ترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله ددې ترجمة الباب په قائمولو سره د هغه مشهور اختلاف طرفته اشاره کړې ده کوم چې د سلب په تخمیس کښې دې چې ددې خمس به ویستلې شی یا نه؟ امام بخاری رحمه الله په دې مسئله کښې د جمهورو سره ملګرې دې، د هغوی د مذهب ثابتولو دپاره ئې دا باب قائم کړې دې(۴).

**قوله: ومن قتل قتیلاً فله سلبه:** او څوک چې چالره قتل کړی نو ددغه مقتول سلب به د قاتل وی.

دا د حضرت انس رضی الله عنه د حدیث شریف یوه حصه ده، پوره حدیث شریف داسې دې:

**"أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال یوم حنین: من قتل قتیلاً فله سلبه. فقتل أبو طلحة یومئذ عشرین**

---

۱) المغنی:۹/۱۹۳، والمنتقی:۳/۱۹۱، والاوجز:۹/۱۹۵، والموسوعة:۲۵/۱۸۴)_

۲) حدیث سلمة اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد، رقم (۳۰۵۱)، وانظر لتخریجه الکامل کشف الباری، کتاب الجهاد:۲/۴۵۸)_

۳) المغنی:۹/۱۹۵، وعمدة القاری:۱۵/۶۹، والاوجز:۹/۲۰۶)_

۴) عمدة القاری:۱۵/۶۵، وفتح الباری:۶/۲۴۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رجلاً، فاخذ اسلابهم" (۱).
"د غزوه حنين په موقع باندې نبى كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې څوک چالره قتل کړى نو د هغهٔ سلب به قاتل ته ملاويږى نو په دغه ورځ حضرت ابوطلحه انصارى رضی الله عنه شل کسان قتل کړل او د هغې ټولو سلب ئې واخستلو"

**قوله: من غير أن يخمس:** د سلب د تخميس (خمس جارى كيدو) نه بغير. دا جمله د امام بخارى رحمه الله د تفقه (فقاهت) نه ده (۲). غالباً هغوى د حضرت انس رضی الله عنه مذكوره حديث ذكر كولو سره ددې د عموم نه استدلال كړې دې چې په دې كښې د سلب د تخميس وغيره څهٔ خبره نشته، دا حديث شريف چونكه مطلق دې، ددې وجې نه به په سلب كښې د تخميس عمل نهٔ وى. والله أعلم

**قوله: وحكم الامام فيه:** او په دې كښې د امام حكم.
دا د آخرى جزء ترجمه ده، حكم مرفوع او مجرور دواړو طريقو سره لوستلې شوې دې، د مرفوع كيدو په صورت كښې به مطلب دا وى چې په سلب كښې به د امام رائې چليږى، هغه چې څنګه غواړى نو هغه شان حكم به لګولې شى، د امام په حكم باندې څوک هم اعتراض نهٔ شى كولې. په دې صورت كښې به دا مذهب د احنافو او د مالكيه تائيد شى چې د امام حكم او د هغهٔ د اجازت نه بغير به څوک د سلب مستحق نهٔ جوړيږى، ګويا امام بخارى رحمه الله په دې مسئله كښې ددې حضراتو سره ملګرې دې.
او د مجرور كيدو په صورت كښې به ددې مطلب دا شى چې د امام د فيصلې نه بغير به هم قاتل د سلب مستحق وى، په دې صورت كښې به مؤلف عليه الرحمة د امام شافعى او امام احمد رحمهما الله ملګرې شى.
مسئلې سره متعلق تفصيل د باب په شروع كښې راغلې دې. بيا امام بخارى رحمه الله په باب كښې دوه احاديث نقل كړې دى:

---

(۱) رواه ابو داود، كتاب الجهاد، باب فى السلب يعطى القاتل، رقم (۲۷۱۸)، والحاكم فى المستدرک: ۳ /۳۹۷، كتاب معرفة الصحابة، مناقب ابى طلحة......رقم (۵۵۰۵)، وابن ابى شيبة فى مصنفه: ۲۰/۵۳۲، كتاب المغازى، غزوة حنين وما جاء فيها، رقم (۳۸۱۵٤)، و: ۲۰/۵۲۳، رقم (۳۸۱٤۳))_

(۲) فتح البارى: ۶/۲٤۷، وقال العينى (۱۵/۶۵): من غير ان يخمس" ليس من لفظ الحديث، واراد به ان السلب لا يخمس")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲۹۷۲ - حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ الْمَاجِشُونِ عَنْ صَالِحِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ بَيْنَا أَنَا وَاقِفٌ فِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِينِي وَشِمَالِي فَإِذَا أَنَا بِغُلَامَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ حَدِيثَةٍ أَسْنَانُهُمَا، تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ بَيْنَ أَضْلَعَ مِنْهُمَا، فَغَمَزَنِي أَحَدُهُمَا فَقَالَ يَا عَمِّ، هَلْ تَعْرِفُ أَبَا جَهْلٍ قُلْتُ نَعَمْ، مَا حَاجَتُكَ إِلَيْهِ يَا ابْنَ أَخِي قَالَ أُخْبِرْتُ أَنَّهُ يَسُبُّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَئِنْ رَأَيْتُهُ لَا يُفَارِقُ سَوَادِي سَوَادَهُ حَتَّى يَمُوتَ الْأَعْجَلُ مِنَّا. فَتَعَجَّبْتُ لِذَلِكَ، فَغَمَزَنِي الْآخَرُ فَقَالَ لِي مِثْلَهَا، فَلَمْ أَنْشَبْ أَنْ نَظَرْتُ إِلَى أَبِي جَهْلٍ يَجُولُ فِي النَّاسِ، قُلْتُ أَلَا إِنَّ هَذَا صَاحِبُكُمَا الَّذِي سَأَلْتُمَانِي. فَابْتَدَرَاهُ بِسَيْفَيْهِمَا فَضَرَبَاهُ حَتَّى قَتَلَاهُ، ثُمَّ انْصَرَفَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَخْبَرَاهُ فَقَالَ «أَيُّكُمَا قَتَلَهُ». قَالَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَا قَتَلْتُهُ. فَقَالَ «هَلْ مَسَحْتُمَا سَيْفَيْكُمَا». قَالَا لَا. فَنَظَرَ فِي السَّيْفَيْنِ فَقَالَ «كِلَاكُمَا قَتَلَهُ». سَلَبُهُ لِمُعَاذِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ. وَكَانَا مُعَاذَ ابْنَ عَفْرَاءَ وَمُعَاذَ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ.[1]

## رجال الحديث

① **مسدد**: دا مسدد بن مسرهد رحمه الله دي. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب من الایمان ان یحب لاخیه...... "کښې تیره شوې ده[2].

② **یوسف بن الماجشون**: دا یوسف بن یعقوب الماجشون بن عبد الله بن ابی سلمه رحمه الله دي.

③ **صالح بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف**: دا د مشهور صحابی حضرت عبدالرحمن بن عوف نوسي صالح بن ابراهیم رحمه الله دي.[3].

④ **عن أبيه**: ددې نه مراد ابراهیم بن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله دي.

⑤ **جده**: د جده نه مراد مشهور صحابی حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دي[4].

**قوله**: قَالَ بَيْنَا أَنَا وَاقِفٌ فِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ......: په دې حدیث شریف کښې د ابوجهل لعین د قتل واقعه ذکر کړې شوې ده، کومه چې په بدر کښې پیښه شوې وه، ددې تفصیل چونکه په مغازی کښې راغلې دې، ددې وجې نه دلته ددې دوباره د ذکر کولو ضرورت

---

[1] ) قوله: عن جده": الحديث، اخرجه البخاري ايضا، كتاب المغازى، باب قتل ابى جهل، رقم (٣٩٦٤)، وباب (بلا ترجمة)، بعد بابفضل من شهد بدراً، رقم (٣٩٨٨)، ومسلم، كتاب الجهاد والسير، باب استحقاق القاتل سلب القتيل، رقم (٤٥٦٩))_

[2] ) كشف البارى: ٢/٢)_

[3] ) ددې دواړو د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوكالة، باب اذا وكل المسلم حربيا فى دار الحرب....)_

[4] ) ددې دواړو د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الجنائز، باب الكفن من جميع المال)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نشته(۱) البته دلته به مونږ د حديث شريف دځنو الفاظو او د جملو وضاحت خامخا کوو.

**فاذا أنا بغلامين من الانصار حديثة أسنانهما**

نو ما او کتل چې زۀ د دوو انصاری هلکانو مينځ کښې يم، چې دواړه کم عمره وو.

"**حديثة أسنانهما**" دا شبه جمله صفت دې د "**غلامين**"، ددې وجې نه مجرور هم دې او **أسنانهما** مرفوع دې ځکه چې هغه د **حديثة** فاعل دې(۲) او ددې معنی ده کم عمری.

**قوله: تمنيت أن أكون بين أضلع منهما:** ما تمنا او کړه چې کاش زۀ ددې دواړو نه علاوه د يو طاقتور سړی په خوا کښې وې، چې د هغۀ نه ماته څۀ فائده وې.

**د أضلع لغوی او صرفی تحقيق:** أضلع . بفتح الهمزة، وسكون الضاد، وفتح اللام صيغه د اسم تفضيل ده، ددې معنی ده ډير زيات قوی او طاقتور، ددې مصدر **الضلاعة** دې، ددې معنی ده قوت او طاقت، دا د علامه عينی رحمه الله تحقيق دې(۳). او حافظ رحمه الله دا **بضم اللام** د **ضلع** جمع ښودلې ده، ددې معنی ده پښتئ، ددې نه علاوه حافظ دا هم فرمائيلې دی چې دا د اکثرو روايت دې او د علامه عينی ذکر کړې شوی تحقيق ته ئې په وړُوئ وئيلو سره د ضعيف ګرځولو کوشش کړې دې(۴). ليکن راجح دلته د علامه عينی تحقيق دې، هم دا امام نووی هم ذکر کړې دې(۵) او علامه ابن الاثير جزری رحمه الله هم دا اختيار کړې دې(۶)، ددې نه علاوه فهم ته ډير زيات نزدې هم دا تحقيق دې.

**په أضلع کښې د نسخو اختلاف:** بيا په دې ځان پوهه کړئ چې د بخاری شريف اکثرو راويانو دا لفظ د ضاد معجمه سره **أضلع** نقل کړې دې، ليکن د حموی په نسخه کښې **أصلح . بالصاد المهملة والحاء المهملة** راغلې دې(۷)، علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چې دا اختلاف د مسدد له طرفه دې کوم چې د بخاری شيخ دې، ورنه هم دا روايت د يوسف بن الماجشون نه ابراهيم بن حمزه په طحاوی کښې(۸)، موسی بن اسماعيل په ابن سنجر کښې او عفان په ابن ابی شيبه(۱)

---

(۱) کشف الباری، کتاب المغازی:۱۰۳/۱۰۸)_

(۲) عمدة القاری:۶۶/۱۵، وفتح الباری:۲۴۸/۶)_

(۳) عمدة القاری:۶۶/۱۵)_

(۴) فتح الباری:۲۴۸/۶. البته په مقدمه کښې دوی هم د عينی تحقيق اختيار کړې دې، هدی الساری: ۲۲۷. فصل ض.ل. حرف الضاد المعجمة. الفصل الخامس)_

(۵) شرح النووی علی مسلم:۸۷/۲. کتاب الجهاد. باب استحقاق القاتل سلب القتيل)_

(۶) جامع الاصول:۱۹۵/۸. والنهاية فی غريب الحديث والاثر:۹۷/۳. باب الضادمع اللام)_

(۷) عمدة القاری:۶۶/۱۵. وفتح الباری:۲۴۸/۶)_

(۸) شرح معانی الآثار:۱۴۷/۲. کتاب السير. باب الرجل يقتل قتيلاً....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې هم روايت کړې دي.په دې ټولو کښې أضلع دي[۱] او راجح روايت هم د أضلع والا دې.ځکه چې د دريو حافظانو راويانو په مقابله کښې د يو حافظ راوی روايت ظاهر دې چې مرجوح به وی[۲]. علامه قرطبی او قاضی عياض رحمهما الله هم د أضلع والا روايت راجح ګرځولې دې[۳].

**قوله**: لايفارق سوادي سواده: زۀ به هغه پرينږدم.

دا کلام په دغه کم عمرو هلکانو کښې د يو هلک دې.سواد.بفتح السين سړی ته وائی. چونکه دلرې نه د سړی په شان څيز په نظرتورښکاری.ددې وجې نه سړی ته سواد هم وائی[۴].

**قوله**: حتی يموت الاعجل منا: تردې چې په مونږ کښې د چا مرګ زيات نزدې وی.هغه مړ شی.

بعضې حضراتو وئيلې دی چې الاعجل تحريف دې.اصل کښې دا الاعجزوو ليکن حافظ فرمائی چې په روايت کښې مذکوره لفظ صحيح دې[۵].ددې نه علاوه دا جمله د ملازمت لزوم نه کنايه ده او په دې معنی کښې کثيرالاستعمال هم ده.مطلب دا دې چې ترڅو ما هغه قتل کړې نۀ وی،نو هغه به زۀ نۀ پريږدم.

اوس ددې کم عمره صحابی د عقل کمال اوګورئ چې د جنګ په حالت کښې.چرته چې د لويو لويو خلقو طاقت کار نۀ ورکوی.هلته هم د عقل لمن نۀ پريږدی او دا محتاطه جمله ئې ارشاد اوفرمائيله.حالانکه د سختې غصې تقاضه خو دا وه چې داسې ئې فرمائيلې وې. "حتی أقتله"ليکن انجام چونکه مجهول وو ،ددې وجې نه ئې حتی يموت الاعجل منا اوفرمائيل[۶].

**قوله**: فلم أنشب أن نظرت إلى أبي جهل يجول في الناس: لږ وخت تير شوې وو چې ما ابوجهل اوليدۀ.چې د خلقو مينځ کښې ئې چکر لګوو.

نشب نشبا ونشباً د باب سمع نه دې ددې معنی نه انختل او د لم أنشب معنی ده لم ألبث ولم أتعلق بشئ غيره[۸]. د باب په روايت کښې "يجول"راغلې دې او د مسلم شريف په روايت

---

[۱]) المصنف.لم اجده فيه رغم تتبعی.وانما اشار اليه الحافظان ابن حجر وابن بطال)_

[۲]) ابن بطال:۳۱۵/۵،والمعمدة:۶۶/۱۵،والفتح:۲۴۸/۶.والنووی علی مسلم:۲/۸۷_۸۸)_

[۳]) پورته حواله جات)_

[۴]) عمدة القاری:۶۶/۱۵.المفهم لقرطبی:۷۵/۱۱،باب اسحقاق القاتل سلب....ومشارق الانوار:۵۹/۲(ض ل ع)

[۵]) عمدة القاری:۶۶/۱۵.وفتح الباری:۲۴۹/۶)_

[۶]) فتح الباری:۲۴۹/۶)_

[۷]) عمدة القاری:۶۶/۱۵)_

[۸]) پورته حواله، وشرح النووی علی مسلم:۸۸/۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې "يزول" راغلې دې.([1]) د دواړو يو معنى ده،مطلب دادې چې ابوجهل ډير زيات پريشان وو او اخوا ديخوا ګرځيدهٔ او په يو ځائې باندې نهٔ حصاريدهٔ([2]).

**قوله:** فابتدراه بسيفهما: نو دغه دواړو خپلې خپلې تورې اخستلو سره د ابوجهل طرفته تيزى اوكړه.

ابتدر و بادر د دواړو يو معنى ده،مطلب سبقت او جلدى كول دى.([3]). د مغازى په روايت كښې "فشدا عليه مثل الصقرين" الفاظ راغلې دى.([4])،چې "دا دواړه هلكان په ابوجهل باندې د شكرى په شان حمله آور شو".

**قوله:** فنظر فى السيفين،فقال:كلا كما قتله: نبى كريم ﷺ دواړو تورو ته په غور سره اوكتل،بيا ئې اوفرمائيل چې تاسو دواړو هغه قتل كړې دې.

دلته دا خبره ده چې نبى كريم ﷺ دواړه تورې په غور اوكتلې او ددې نه مخكښې ئې هم دا تپوس اوكړو چې تاسو تورې صفا كړې خو نهٔ دى،بيا ئې اوفرمائيل چې تاسو دواړو قتل كړې دې،ددې ټولې كارګذارئ مقصد څهٔ وو؟

علامه مهلب رحمه الله فرمائى چې ددې مقصد دا ښودل وو چې د سلب د مستحق كيدو دپاره اثخان شرط دې او په دې باره كښې اثخان ته يو قسم امتياز حاصل دې،هغه داسې چې نبى عليه السلام ددې دواړو د تورو معائنه اوفرمائيله چې د تورو دواړو طرفونو ته وينه څومره قدرې لګيدلې ده او د ابوجهل په بدن كښې كومه توره څومره قدرې ننوتلې ده،ددې وجې نه ئې دا سوال هم اوكړو چې تورې مو صفا كړې خو نهٔ دى؟ځكه چې د صفا كولو په صورت كښې به د داخليدو مقدار بدل شوې وو([5]).بيا نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې "كلاكما قتله" ځكه چې نبى عليه السلام اوليدل چې اثخان د يو كس فعل دې او دويم صحابى صرف په قتل كښې شركت كړې دې ليكن نبى عليه السلام د هغوى د زړهٔ ساتلو دپاره او د تسلئ دپاره دا جمله ارشاد اوفرمائيله چې "كلاكما قتله"([6]).

**قوله:** سلبه لمعاذ بن عمرو بن الجموح: ليكن ددهٔ سلب د معاذ بن عمروبن الجموح دې.

مطلب دادې چې دواړه هلكان اګرچه په قتل كښې شريک دى،ليكن اثخان چونكه د معاذ بن عمرو له طرفه دې،ددې وجې نه سلب هم د هغهٔ حق دې،دې ځائې پورې خو خبره واضحه

---

[1] ) صحيح مسلم،كتاب الجهاد والسير،باب استحقاق القاتل سلب.....رقم (٤٥٦٩))_

[2] ) عمدة القارى:١٥/ ٦٦)_

[3] ) پورته حواله)_

[4] ) صحيح بخارى،كتاب المغازى،باب (بلا ترجمة)،رقم (٣٩٨٨))_

[5] ) پورته حواله. شرح ابن بطال:٥/ ٣١٢،وفتح البارى:٦/ ٢٤٨،وعمدة القارى:١٥/ ٦٦)_

[6] ) شرح ابن بطال:٥/ ٣١٢،وعمدة القارى:١٥/ ٦٦_ ٦٧)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ده.ددې نه پس ددې جملو نه احنافو او مالكيه دا استدلال كړې دې چې د مقتول په قتل كولو سره قاتل د سلب مستحق نۀ جوړيږى.بلكه د امام په وركړې سره هغه ددې مستحق جوړيږى ورنه نبى ﷺ به سلب په دوى دواړو باندې تقسيم كړې وو.يو لره محروم ساتلو سره به نې دويم ته نۀ وركوو.ددې نه معلومه شوه چې په دې معاملاتو كښې امام ته اختيار دې. قاله الطحاوى رحمه الله(۱).ليكن دا استدلال كمزورې دې ځكه چې دا خبره خو تول منى چې د سلب مستحق مُثخن وى او نبى ﷺ چې د تورو كومه معائنه فرمائيلې وه نو د هغې مقصد هم دا وو چې دا اوكتلې شى چې د اثخان د كوم كس په تورې سره شوې دې.په دې بنياد باندې سلب معاذ بن عمرو ته وركړې شو.

دې جزء سره متعلق د احنافو دليلونه د باب په ابتداء كښې راغلې دى.

البته ددې حديث په يو بل طريق،كوم چې امام ابوداؤد (۲)او امام احمد (۳)وغيره نقل كړې دې،د هغې نه په مذكوره جزء باندې استدلال كيدې شى،په دغه طريق كښې راغلې دى چې نبى كريم ﷺ د ابوجهل توره حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته وركړې وه حالانكه هغه مثخن هم نۀ وو،اصل حق د معاذ بن عمرو وو ځكه چې هغه مثخن وو نود ابوجهل توره حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته وركول ددې خبرې دليل دې چې سلب څۀ شرعى حق(۴) نۀ دې بلكه قاتل كه ددې مستحق جوړيږى نو دنفل په طورسره ددې حقدار ګرځى.والله أعلم بالصواب

**قوله: وكانا معاذ بن عفراء، ومعاذ بن عمرو بن الجموح:** او هغه دواړه كم عمره هلكان معاذ بن عفراء او معاذ بن عمروبن الجموح رضي الله عنهما وو.

دواړو ځايونو كښې كلمه د معاذ منصوب ده،ځكه چې دا د كان خبر دې.

**معاذ بن عفراء:** دا حضرت معاذ بن الحارث بن رفاعه بن سواد الانصارى رضي الله عنه دې(۵)،دوى د خپلې مورېبى بى عفراء بفتح العين وسكون الفاء بنت عبيد بن ثعلبه په حوالې سره مشهور دى(۶)بدر،احد او نورو تولو غزواتو كښې د نبى كريم ﷺ سره ملګرې وو(۷)

د حضرت معاذ رضي الله عنه يو فضيلت دا هم دې چې دوى د انصارو نه دى،چاچې د عقبه اولى د بيعت دوران كښې په مكه مكرمه كښې اسلام قبول كړو،د راجح قول مطابق دا شپږ

---

(۱) شرح ابن بطال:۳۱۲/۵،وشرح معانى الآثار:۱۴۷/۲_۱۴۸،كتاب السير،باب الرجل يقتل....)_

(۲) سنن ابى داود،كتاب الجهاد،باب من اجاز على جريح مثخن.....رقم (۲۷۲۲))_

(۳) فى مسنده:۴۴۴/۱،مسند عبدالله بن مسعود،برقم (۴۲۴۶)،وابن ابى شيبة فى مصنفه:۵۶۰/۱۷،كتاب السير،باب من جعل السلب للقاتل،رقم (۳۳۷۶۵)،و:۳۲۴/۲۰،رقم (۳۷۸۵۲)،كتاب المغازى،غزوة بدر الكبرى..)

(۴) سلب د شريعت حق دې يا د امام؟په دې باندې به د باب په آخره كښې انشاء الله بحث راځى.

(۵) د دوى په نسب كښې نور قولونه هم دى،اوګورئ:تهذيب الكمال:۱۱۵/۲۸)_

(۶) پورته حواله،وعمدة القارى:۶۷/۱۵،والاصابة:۴۲۸/۳)_

(۷) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

انصاری صحابه کرام رضی الله عنهم وو(۱). نبی کریم ﷺ د حضرت معاذ بن عفراء او حضرت معمر بن الحارث رضی الله عنهما مینځ کښې ورورولی قائمه کړې وه(۲). امام نسائی رحمه الله د دوی یو روایت "لا صلاة بعد العصر حتی تغرب الشمس...." ذکر کړې دې(۳). باقی پنځو امامانو سره د دوی څۀ روایت نشته. د دوی په وفات کښې اختلاف دې چې کله اوشو او چرته اوشو؟

د راجح قول مطابق د دوی انتقال د حضرت علی رضی الله عنه په زمانه خلافت کښې شوې دې(۴) رضی الله عنه وأرضاه.

**معاذ بن عمرو بن الجموح:** دا معاذ بن عمرو بن الجموح بن زید بن حرام انصاری خزرجی سلمی رضی الله عنه دې(۵) دوی هم په بیعت عقبه کښې شریک شوې دی، بدری صحابی دې(۶) ، کمافی حدیث الباب.

دوی د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی او د دوی نه روایت کوونکې صرف حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې(۷).

د علامه ذهبی رحمه الله مطابق د دوی انتقال د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه کښې شوې دې او د ابن اسحاق مطابق په خلافت عثمانی کښې شوې دې(۸). والله أعلم. رضی الله عنه وأرضاه.

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ترجمة الباب سره د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه د حدیث مطابقت په دې معنی کښې دې چې نبی کریم ﷺ د ابوجهل په سلب کښې خمس نۀ وو جاری کړې(۹).

**قوله: قال محمد: سمع یوسف صالحاً، وإبراهیم أباه:** [۳۲۳۶، ۳۲۶۶]

محمد وائی: یوسف د صالح نه اوریدلی دی او دهغوی پلار د حضرت عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه

(۱) تهذیب الکمال:۲۸/۱۱۶، والاصابة:۳/۴۲۸)_

(۲) تهذیب الکمال:۲۸/۱۱۶، والاستیعاب بهامش الاصابة:۳/۳۶۴)_

(۳) سنن النسای الکبری:۱/۱۵۵، کتاب الصلاة الاولی، باب النهی عن الصلاة بعد العصر، رقم (۳۸۱)، والحدیث اخرجه ایضا ابن ابی عاصم فی الآحاد والمثانی:۳۹۱، رقم (۵۵۵)، وابن ابی شیبة، رقم (۷۳۹۹)، وابو داود الطیالسی، رقم (۱۲۲۶)، وغیرهم من الاءمة، انظر للاستزادة تعلیقات الشیخ محمد عوامة علی المصنف لابن ابی شیبة:۵/۱۰۸، رقم (۷۳۹۹))_

(۴) تهذیب الکمال:۲۸/۱۱۵_۱۱۶، والعمدة:۱۵/۶۷، والاصابة:۳/۴۲۸، وتهذیب التهذیب:۱۰/۱۸۸)_

(۵) عمدة القاری:۱۵/۶۷، والاصابة:۳/۴۲۹، والاستیعاب بهامش الاصابة:۳/۳۶۱)_

(۶) پورته حواله جات، وسیر اعلام النبلاء:۱/۲۴۹)_

(۷) سیر اعلام النبلاء:۱/۲۵۰)_

(۸) سیر اعلام النبلاء:۱/۲۵۰_۲۵۱، ولاستیعاب بهامش الاصابة:۳/۳۶۳)_

(۹) عمدة القاری:۱۵/۶۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نه اوريدلې دى.
**د مذكوره جملې مطلب** د محمد نه مراد په خپله امام بخارى رحمه الله دې او د يوسف نه مراد ابن ماجشون، د صالح نه مراد ابن ابراهيم او د ابراهيم نه مراد ابن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله او د اب نه مراد حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه دې او ددې ټولو اوريدل ترتيب سره ثابت دى، ددې نه علاوه دا جمله صرف د ابوذر او د ابو الوقت په نسخه كښې موندلې كيږى.(۱).
**د مذكوره جملې مقصد** بعضې حضراتو د باب حديث ته منقطع وئيلې دى. هغوى دا وائى چې د يوسف بن ماجشون او د صالح بن ابراهيم مينځ كښې يو راوى عبدالواحد بن ابى عون ساقط دې حالانكه د هغۀ ذكر ضرورى دې، ددې وجې نه دا روايت منقطع دې. متصل نۀ دې اصل كښې هم دا روايت امام بزار هم په خپل مسند كښې ذكر كړې دې او سند هم دا د بخارى والا دې ليكن په هغې كښې عبد الواحد بن ابى عون هم دې، پوره سند اوګورئ نو خبره به آسانه شى. امام بزار په خپل روايت كښې فرمائى:
"حدثنا محمد بن عبد الملك القرشي وعلي بن مسلم قالا: حدثنا يوسف بن أبي سلمة...... حدثنا عبد الواحد بن أبي عون، حدثني صالح بن إبراهيم.....، قال: بينا...."
ددې روايت د نقل كولو نه پس امام بزار دا هم فرمائيلې دى: "وهذا الحديث لا نعلمه يروى عن عبد الرحمن بن عوف، عن رسول الله صلى الله عليه وسلم إلا من هذا الوجه بهذا الاسناد...."
ښكاره خبره ده چې اوس خبره سخته شوه چې بزار يوڅۀ وائى او امام بخارى بل څۀ وائى ددې اشكال او ګرانوالى ختمولو دپاره امام بخارى دا پورتنۍ جمله ارشاد اوفرمائيله چې عبد الواحد بن ابى عون اګرچه زما په سند كښې نشته ليكن په دې سره د حديث په اتصال باندې څۀ فرق نۀ پريوځى، ددې وجه هم داده چې د يوسف سماع د صالح نه ثابته ده او د ابراهيم سماع هم د خپل پلار عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه نه ثابته ده، ددې وجې نه په دې كښې څۀ باك نشته او حديث متصل دې نۀ چې منقطع.(۲) والله أعلم
دويم حديث د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه دې.

۲۹۷۳: (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ أَفْلَحَ عَنْ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رضى الله عنه - قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَامَ حُنَيْنٍ، فَلَمَّا الْتَقَيْنَا كَانَتْ لِلْمُسْلِمِينَ جَوْلَةٌ، فَرَأَيْتُ رَجُلاً مِنَ الْمُشْرِكِينَ عَلاَ رَجُلاً مِنَ الْمُسْلِمِينَ، فَاسْتَدَرْتُ حَتَّى أَتَيْتُهُ مِنْ وَرَائِهِ حَتَّى ضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ

---

(۱) عمدة القارى:۱۵/۶۷)_
(۲) مسند الامام البزار:۳:۲۲۵،باب ماروى سعد بن ابراهيم.....رقم (۱۰۱۳)،وعمدة القارى:۱۵/۶۸،وارشاد السارى:۵/۲۲۱،فتح البارى:۶/۲۴۹)_
(۳) قوله: عن ابى قتادة.....":الحديث،مر تخريجه فى كتاب البيوع،باب بيع السلاح فى الفتنة....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عَلَى حَبْلِ عَاتِقِهِ، فَأَقْبَلَ عَلَيَّ فَضَمَّنِي ضَمَّةً وَجَدْتُ مِنْهَا رِيحَ الْمَوْتِ، ثُمَّ أَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَأَرْسَلَنِي، فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ مَا بَالُ النَّاسِ قَالَ أَمْرُ اللَّهِ، ثُمَّ إِنَّ النَّاسَ رَجَعُوا وَجَلَسَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «مَنْ قَتَلَ قَتِيلاً لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ». فَقُمْتُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِي ثُمَّ جَلَسْتُ ثُمَّ قَالَ «مَنْ قَتَلَ قَتِيلاً لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ» فَقُمْتُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِي ثُمَّ جَلَسْتُ، ثُمَّ قَالَ الثَّالِثَةَ مِثْلَهُ فَقَالَ رَجُلٌ صَدَقَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَسَلَبُهُ عِنْدِي فَأَرْضِهِ عَنِّي. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ - رضى الله عنه لاَهَا اللَّهِ إِذًا يَعْمِدُ إِلَى أَسَدٍ مِنْ أُسْدِ اللَّهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم - يُعْطِيكَ سَلَبَهُ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «صَدَقَ» «فَأَعْطَاهُ فَبِعْتُ الدِّرْعَ، فَابْتَعْتُ بِهِ مَخْرَفًا فِي بَنِي سَلِمَةَ، فَإِنَّهُ لأَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الإِسْلاَمِ. [ر: ۱۹۹۴]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن مسلمه**: دا عبدالله بن مسلمه رحمه الله دي. د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب من الدين الفرار من الفتن" كښې تير شوې دى.[1]

② **مالک**: دا امام دارالهجرة مالک بن انس رحمه الله دي. د دوى تذكره د بدء الوحى په "الحديث الثانى" كښې تيره شوې ده.[2]

③ **يحيى بن سعيد**: دا يحيى بن سعيد انصارى رحمه الله دي. د دوى حالات د بدء الوحى په "الحديث الاول" كښې تير شوې دى. [كشف البارى: ۱/۲۳۸، و: ۲/۳۲۱، باب صوم رمضان احتسابا،....]_

④ **ابن افلح**: دا عمر بن كثير بن افلح منسوب الى جده رحمه الله[3].

⑤ **أبى محمد**: دا ابومحمد نافع دي چې د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه مولى دي.[4]

⑥ **أبوقتاده**: دا مشهور صحابى حضرت ابوقتاده الحارث بن ربعى الانصارى رضي الله عنه دي.[5]

**د حديث مبارک ترجمه**: حضرت ابوقتاده رضي الله عنه فرمائى چې مونږ د حنين په كال (۸ هجرى كښې) نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره د حنين طرفته اووتلو، چې كله زمونږ مخامخ كيدل د دشمن سره اوشو نو مسلمانانو ته (په شروع كښې) ناكامى اوشوه. ما اوكتل چې يو مشرک په يو مسلمان باندې غالب راغلې دې نو زه راواپس شوم او د هغهٔ د څټ رګ مې په توره اووهلو

---

[1] كشف البارى: ۲/۸۰)_

[2] كشف البارى: ۱/۲۹۰، و: ۲/۸۰)_

[3] د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب البيوع، باب بيع السلاح فى الفتنة وغيرها)_

[4] د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب جزاء الصيد، باب لا يعين المحرم الحلال....)_

[5] د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء، باب النهى عن الاستنجاء باليمين)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو هغه زما طرفته متوجه شو او دومره زور ئې راته راکړو چې ما ته د مرګ بوئې محسوس شو، بیا هغه مړ شو او زهٔ ئې هم پریخودم!

ددې نه پس زهٔ حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاؤ شوم،او د هغوی نه مې تپوس اوکړو چې د خلقو څهٔ اوشو؟هغوی اوفرمائیل چې دا د الله تعالی فیصله وه،(کومه چې پوره شوه) ددې نه پس مسلمانان دوباره راواپس شو،(او فتح ئې حاصله کړه)،بیا نبی علیه السلام تشریف فرما شو او اعلان ئې اوکړو چې، "**من قتل قتیلاً،له علیه بینة،فله سلبه**".

(ددې اعلان په اوریدو سره)زهٔ اودریدم او ما اووئیل چې زما دپاره به څوک ګواهي ورکړي؟بیا کیناستم نبی علیه السلام بیان اعلان اوکړو نو زهٔ بیا اودریدم.... دریم ځل نبی علیه السلام اعلان اوکړو نو یو سړي اووئیل،یا رسول الله!دې رښتیا وائی او ددهٔ سلب ما سره دې.لیکن تاسو دوی زما په حق کښې راضی کړئ (چې دې ئې هم ماسره پریږدی)

(ددې سړی دې خبرې اوریدو سره)حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه اوفرمائیل.نه،د الله قسم!د الله تعالی په زمرو کښې چې یو زمرې د الله تعالی او د هغهٔ د رسول له طرفه قتال کوی.نبی علیه السلام به هیڅکله دا خوښه نهٔ کړی چې د هغهٔ سلب تاسو ته درکړي.نبی علیه السلام د حضرت صدیق اکبر تصدیق اوفرمائیلو او سلب ئې ابوقتاده ته ورکړو.ابوقتاده وائی چې ما په هغې سلب باندې(چې زره وه)په قبیله بنی سلمه کښې یو باغ واخستو د اسلام قبلولو نه پس دا د تولو نه اول مال وو چې ما ذخیره کړو.ددې حدیث تشریح په کتاب المغازی کښې د غزوه حنین لاندې راغلې ده.[1]

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت په دې معنی کښې دې چې حضرت ابوقتاده رضي الله عنه ته کوم سلب ورکړې شو په هغې کښې خمس نهٔ وو جاري کړې شوې.[2]

**سلب شرعی حق دې یا د امامت حق؟**د باب په شروع کښې دا مسئله تیره شوې ده چې قاتل د مقتول د سلب حقدار وی او دا چې ددې دپاره د امام اجازت شرط دې یا نهٔ؟

ددې مسئلې د نور وضاحت دپاره مونږ د ابن قیم رحمه الله د کلام خلاصه نقل کوو.فرمائی چې په غزوه حنین کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا جمله هم ارشاد فرمائیلې وه،"**من قتل قتیلاً،له علیه بینة،فله سلبه**"اوس د فقهاؤ اختلاف شو چې د سلب د مستحق کیدو بنیاد شریعت دې یا شرط(یعنی چې امام شرط اولګوی او اجازت ورکړی)؟

① امام شافعي او احمد خو د شریعت د حق کیدو قائل دی.

② امام مالک او امام ابوحنیفه د شرط قائل دی.

اوس د اختلاف ماخذ څهٔ دې او د فقهاؤ اختلاف په کوم بنیاد باندې دې؟

---

[1] کشف الباري،کتاب المغازی:۵۴۰_۵۴۱)_

[2] عمدة القاري:۱۵/۶۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ماخذ او بنياد دا دې چې د نبي عليه السلام مختلف حيثيتونه دي.نبي عليه السلام مبارک امام هم دې او حاکم هم دې،مفتي هم دې او رسول هم دې اوس نبي عليه السلام بعضې خبرې د رسالت د منصب لائق ارشاد فرمائي نو هغه عام شريعت جوړ شي او د هغې اطلاق په ټولو باندې وی.بعضې خبره د افتاء د منصب مناسب ارشاد اوفرمائي،ددې واضح مثال د حضرت هند بنت عتبه چې د ابوسفيان رضي الله عنه بي بي ده،مسئله ده.دا بي بي نبي عليه السلام ته راغله او د خپل خاوند د بخل او په نان نفقه کښې ئې د تنګئ کولو شکايت اوکړو نو نبي عليه السلام اوفرمائيل،"خذ مايكفيك،وولدك بالمعروف"دا فتوى ده.حکم او فيصله نۀ ده،ورنه نبي عليه السلام به مدعى عليه هم طلب کړې وو.د دعوې د جواب ذکر کولو حکم به ئې فرمائيلې وو او حضرت هند رضي الله عنها نه به ئې ګواهان هم طلب کړې وو.

کله به څۀ خبره نبي عليه السلام د امامت د منصب شايان شان فرمائيله،چې په هغې کښې به د امت د هغه وخت.د هغه ځائې او د هغه کيفيت او د حالت کتلو سره فيصله فرمائيله،بيا به وروستو امامانو هم ددې رعايت ساتلو،د هغه مصلحت پيش نظر،کوم باندې چې به نبي عليه السلام د زمانې،مکان يا د حالت په اعتبار سره تلو،ددې ځائې نه د فقهاؤ اختلاف پيدا کيږي،ددې ډير مثالونه دي،چې په هغې کښې يو مثال د"من قتل قتيلاً...."دې.

اوس دا ارشاد کوم قسم کښې داخل دې،په دې کښې د امت د فقهاؤ اختلاف دې،نو هغه حضرات کوم چې ددې خبرې قائل دی چې دا ارشاد د امامت د منصب مطابق وو نو د هغوی په نزد دا حکم د امام سره متعلق دې او د امام په اجازت سره مشروط دې،او کوم حضرات چې ددې خبرې قائل دی چې دا ارشاد د رسالت او د نبوت د منصب شايان شان وو نو د هغوی په نزد دا د شريعت حکم دې چې څوک قاتل هم وی نو هغه به د مقتول د سلب مستحق وی،خواه د امام اجازت وی يا نۀ.

ابن قيم رحمه الله فرمائي:

"وفي هذه الغزوة أنه قال:"من قتل قتيلاً،له عليه بينة،فله سلبه"[1].وقاله في غزوة أخرى قبلها،فاختلف الفقهاء،هل هذا السلب مستحق بالشرع أو بالشرط؟على قولين،هما روايتان عن أحمد.

أحدهما:أنه له بالشرع،شرطه الامام أو لم يشرطه،وهو قول الشافعي.

والثاني:أنه لايستحق إلا بشرط الامام،وهو قول أبي حنيفة.

وقال مالك رحمه الله:لايستحق إلا بشرط الامام بعد القتال.فلو نص قبله،لم يجز،قال مالك:ولم يبلغني أن النبي صلى الله عليه وسلم قال ذلك إلا يوم حنين،وإنما نفل النبي صلى الله عليه وسلم بعد أن برد القتال.

ومأخذ النزاع أن النبي صلى الله عليه وسلم كان هو الامام،والحاكم،والمفتي،وهو الرسول،فقد يقول الحكم بمنصب الرسالة،فيكون شرعاً عاماً إلى يوم القيامة،كقوله:"من أحدث في أمرنا هذا ماليس منه فهو رد"[2]

[1] متفق عليه،مر تخريجه سابقًا)_

[2] اخرجه البخاري،كتاب الصلح،باب اذا اصطلحوا على صلح جور.....رقم (٢٦٩٧).....[بقيه بر صفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وقوله: "من زرع في أرض قوم بغير إذنهم فليس له من الزرع شئ وله نفقته"[1]. وكحكمه "بالشاهد، واليمين"[2]" وبالشفعة فيما لم يقسم"[3].

وقد يقول بمنصب الفتوى، كقوله لهند بنت عتبة امرأة أبي سفيان. وقد شكت اليه شح زوجها، وأنه لا يعطيها مايكفيها: "خذى مايكفيك وولدك بالمعروف"[4]، فهذه فتيا لا حكم، إذلم يدع بأبي سفيان، ولم يسئله عن جواب الدعوى، ولا سئلها البينة.

وقد يقوله بمنصب الامامة، فيكون مصلحة للامة في ذلك الوقت، و ذلك المكان، وعلى تلك الحال، فيلزم من بعده من الائمة مراعاة ذلك على حسب المصلحة التي راعاها النبي صلى الله عليه وسلم زماناً ومكاناً وحالاً، ومن هاهنا تختلف الائمة في كثير من المواضع التي فيها أثرعنه صلى الله عليه وسلم، كقوله صلى الله عليه وسلم: "من قتل قتيلاً فله سلبه" هل قاله بمنصب الامامة، فيكون حكمه متعلقاً بالائمة، أو بمنصب الرسالة والنبوة، فيكون شرعاً عاماً؟ وكذلك قوله: "من أحيا أرضاً ميتة فهي له"[5] هل هو شرع عام لكل أحد، أذن فيه الامام، أو لم يأذن أو هو راجع الى الائمة، فلا يملك بالاحياء الا باذن الامام؟ على القولين،

فالاول: للشافعي وأحمد في ظاهر مذهبهما.

والثاني: لابي حنيفة، وفرق مالك بين الفلوات الواسعة، وما لا يتشاح فيه الناس، وبين ما يقع فيه التشاح، فاعتبر إذن الامام في الثاني، دون الاول"[6].

..

...بقيه ازحاشيه گذشته] ومسلم، كتاب الاقضية، باب نقض الاحكام الباطلة......رقم (٤٤٩٢)،(١٨)، من حديث عائشة رضى الله عنها)_

[1]) اخرجه احمد: ١٤١/٣، رقم (١٥٩١٥)، وابو داود(٣٤٠٣)، وابن ماجه (٣٤٦٦)، من حديث رافع خديج)_

[2]) اخرجه مسلم (٤٤٧٢)، فى الاقضية: باب القضاء باليمين والشاهد، من حديث ابن عباس)_

[3]) اخرجه البخارى، كتاب البيوع، باب بى الشريك.....رقم (٢٢١٣)، وكتاب الشفعة، باب الشفعة فيما لم يقسم.....رقم (٢٢٥٧)، وفى مواضع اخرى، ومسلم، كتاب المساقاة، باب الشفعة، رقم (٤١٢٨)، وابو داود (٣٥١٤)، من حديث جابر بن عبدالله)_

[4]) اخرجه البخارى، كتاب البيوع، باب من اجرى امر امصار.....رقم (٢٢١١)، والنفقات: باب اذالم ينفق الرجل، فللمراة ان تاخذ بغير علمه، رقم (٥٣٦٤)، ومسلم (٤٤٧٧)، فى الاقضية: باب قضية هند)_

[5]) رواه البخارى، فى المزارعة: باب من احيا ارضا مواتًا، تعليقا، ومالک فى المؤطا موصولا: ٧٤٤/٢، فى الاقضية، باب القضاء فى عمارة الموات، رقم (١٤٢٥)، عن ابن عمر رضي الله عنهما، ورواه غير واحد من الصحابة، انظر جامع الاصول: ٣٤٧/١_٣٥١، الكتاب السادس....)_

[6]) زاد المعاد: ٤٨٩/٣_٤٩١، فصل فى ان من قتل قتيلا فله سلبه)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑲ باب: مَا كَانَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم يُعْطِي الْمُؤَلَّفَةَ قُلُوبُهُمْ وَغَيْرَهُمْ مِنَ الْخُمُسِ وَنَحْوِهِ

**د ترجمة الباب مقصد** دلته امام بخاری رحمه الله د مؤلفة القلوب مسئله بیانوی. دغه شان دا چې نبی ﷺ به د خمس نه مؤلفة القلوب وغیره ته ورکول نو خبره هم هغه راغله چې نبی کریم ﷺ ته د غنیمتونو په معامله کښې مکمل اختیار حاصل وو، چرته چې به ئې مناسب ګڼړله نو خرچ به ئې ترې نه کوو چې په دې کښې مؤلفة القلوب هم داخل دی.

قاضی اسماعیل فرمائی: "فی إعطاء النبی صلی الله علیه وسلم للمؤلفة من الخمس دلالة علی أن الخمس إلی الامام، یفعل فیه مایری من المصلحة"[1].

**مؤلفة القلوب چاته وئیلې کیږی؟** د مؤلفة القلوب مختلف قسمونه دی:

① هغه خلق چې مسلمانان شوې خو وو لیکن اسلام د هغوی زړونو کښې مضبوط شوې نۀ وو. راسخ شوې نۀ وو. نبی ﷺ به دغه خلقو ته مال ورکوو، دې دپاره چې اسلام ددې خلقو په زړونو کښې راسخ شی، ځکه چې قاعده ده چې "الانسان عبد الاحسان"[2].

② دغه خلق خو کافر وو لیکن ددوی په باره کښې دا توقع وه چې کۀ دوی ځان ته نزدې کړې شی نو دوی به اسلام قبول کړی. دې خلقو ته به نبی کریم ﷺ د زړۀ د راښکلو دپاره مال ورکوو.

③ هغه کفار وو د چا په باره کښې چې دا خطره وه چې دوی به خپلو ګاونډیانو مسلمانانو ته تکلیف ورکړی، نو د مصلحت د وجې نه به دوی ته هم مال ورکړې کیدو.

په ترجمة الباب کښې د "المؤلفة قلوبهم" نه مخکښې دوه قسمونه او د "وغیرهم" نه آخری قسم مراد دې[3].

دا رائې چې د وغیرهم نه د مؤلفة القلوب دریم قسم مراد دې، نو دا د بخاری د عام شارحینو رائې ده البته مؤلف رحمه الله چې په ترجمة الباب کښې کوم احادیث ذکر کړې دی، په هغې کښې د حضرت عمر او د حضرت زبیر بن العوام رضی الله عنهما ذکر هم راغلې دې، دوی په دریم قسم کښې شاملول بالکل ممکن نۀ دی، د دوی ایمانی کیفیت خو ښکاره او معلوم دې، پاتې لا دا خبره چې دوی په کافرانو کښې داخل اوګڼړلې شی، ددې وجې نه به دا وئیلې شی چې لفظ د

---

[1] ) فتح الباری: ۶/۲۵۲)_

[2] ) اوګورئ، الاعجاز والایجاز للثعالبی: ۱/۹۲، والتمثیل والمحاضرة له: ما یتمثل به من ذکر الانسان.....، وفوات الوفیات: ۳/۱۵۳، ترجمة السراج الوراق، رقم (۳۷۹))_

[3] ) عمدة القاری: ۱۵/۶۹، وفتح الباری: ۶/۲۵۲، واحکام القرآن للرازی: ۳/۱۵۹. البته ابن قدامه د مؤلفة القلوب شپږ قسمونه بیان کړې دی، دوه د کافرانو او څلور د مسلمانانو. اوګورئ، المغنی: ۶/۳۲۸_۳۲۹، باب قسمة الفیء..... المؤلفة قلوبهم.....فصل، رقم (۵۱۰۷))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وغیرهم عام دي، په دې کښې د مؤلفة القلوب نه علاوه ټول داخل دی.د دریم قسم کافران او ټول مسلمانان او دا به وئیلې شی چې دلته د حضوراکرم ﷺ هغه اختیار کلی بیانولې شی والله أعلم

"ونحوه" کښې ضمیر مجرور د الخمس طرفته راجع دې. "أی ونحو الخمس" ددې نه د خراج مال، جزیه او مال فئ مراد دې(۱).

**د مؤلفة القلوب حصه اوس باقی ده یا نه؟** اوس سوال دادې چې د مؤلفة القلوب حصه باقی ده یا نه؟

د ائمه ثلثه په نزد د معتمد قول مطابق د مؤلفة القلوب حصه اوس هم په څۀ نه څۀ صورت کښې باقی ده، ساقطه نۀ ده.

ددې حضراتو یو قول د احتیاج او د ضرورت د قید سره هم مقید دې، یعنی د هغوی حصه ساقط شوې ده ځکه چې اسلام ته اوس قوت وطاقت اوشان وشوکت حاصل شوې دې لیکن که څۀ وخت د دوی د زړۀ د راښکلو ضرورت پیښ شو نو دوی ته به حصه ورکولې شی(۲).

د حنفیه قول دادې چې مؤلفة القلوب ته به حصه نۀ ملاویږی ځکه چې د دوی د حصې په ساقط کیدلو باندې د صحابه کرامو ﷺ اجماع شوې ده(۳).د احنافو دلیل د حضرت اقرع بن حابس او د عیینه بن حصن ﷺ واقعه ده.

لکه امام بیهقی وغیره روایت نقل کړې دې چې دا دواړه حضرات صدیق اکبر ﷺ ته راغلل او د هغوی نه ئې تقاضه اوکړه،زمکه ئې اوغوښتله او یو خط ئې اولیکۀ.بیا دا دواړه حضرات حضرت عمر ﷺ ته ورغلل چې هغوی هم په دې خط باندې خپله ګواهی درج کړی. حضرت عمر ﷺ هغه خط واخستۀ،په هغې ئې لاړې تهوک کړې او هغه ئې وران کړو.د ورانولو نه پس ئې اوشلوو.دا حضرات د غصې په حالت کښې حضرت صدیق اکبر ﷺ ته راغلل او وې وئیل: "ما ندری،الخلیفة أنت أم عمر؟!" صدیق اکبر ﷺ اوفرمائیل: "هو انشاء الله"، څومره عجیبه جواب ئې ورکړو!!

حضرت عمر ﷺهغوی ته فرمائیلي وو چې اسلام هغه زمانه کښې ذلیل وو،حضور ﷺ به ستاسو زړونه ساتل،اوس الله تعالی اسلام ته عزت ورکړې دې،لاړ شئ!څۀ مو چې خوښه وی هغه کوئ،اسلام اوس ستاسو نه بې پرواه دې،ددې وجې نه په اسلام باندې اوسیږئ، ګنی نو ستاسو او زمونږ مینځ کښې به فیصله توره اوکړی(۴)

---

۱) عمدة القاری:۱۵/۶۹، وفتح الباری:۶/۲۵۲)_

۲) المؤطامع الاوجز:۶/۹۰،کتاب الزکاة،باب اخذ الصدقة ومن یجوز له اخذها،رقم (۶۶/۲۹))_

۳) فتح القدیر:۲/۲۰۱،واحکام القرآن للرازی:۳/۱۶۱،وفتح الملهم:۵/۱۳۳)_

۴) سنن البیهقی الکبری:۷/۳۲،کتاب قسم التصرفات،باب سقوط سهم المؤلفة قلوبهم......رقم (۱۳۱۸۹)، واحکام القرآن للرزای:۳/۱۶۰_۱۶۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه شان وو[1] حضرت عمرفاروق رضی الله عنه موافقت اوکړو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه هم په دې مسئله کښې د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه موافقت اوکړو او په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې چا هم په دې باندې رد اونه کړو، ګویا دا د صحابه کرامو رضی الله عنهم یو قسم اجماع منعقد شوه[2].

ددې واقعې نه معلومه شوه چې دا انتهاء الحکم بانتهاء علته د قبیل نه دې.لکه څنګه چې د رمضان مبارک ختمیدو سره د هغې حکم یعنی روژه هم ختمیږی،دغه شان ذل الاسلام هم دې.یعنی د مال ورکولو چې کوم علت وو د هغې ختمیدلو سره مؤلفة القلوب ته مال ورکول هم ختم شو.ورنه دوباره به د اسلام ذلیل کیدل لازم راشی،وذا لایجوز.

دویم جواب دادې چې دلته د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع شوې ده.د شیخینو موافقت شوې دې او دا اجماع ناسخه ده او مذکوره حکم منسوخ شو[3].

**خبرداری:** ابن رشد په بدایة المجتهد کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل کړې دی چې مؤلفة القلوب ته حصه ورکړې کیدې شی که چرته د امام په دې باندې رائې وی[4].

لیکن عثمانی رحمه الله دا نقل غریب ګرځولې دې او فرمائی:

"لم أجد هذا النقل عن أبي حنيفة، رحمه الله، في كتبنا إلى الآن، وليته ثبت!"[5].

بهرحال په دې مسئله کښې چې د احنافو کوم مسلک دې نو هغه څهٔ د دلیل نه بغیر نهٔ دې[6].

**مؤلفة القلوب ته به د کوم ځائې نه ورکړې کیده؟** ددې نه پس په دې کښې هم د امامانو اختلاف دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به مؤلفة القلوب ته د کوم ځائې نه ورکوله؟

① د امام مالک او د یو جماعت خیال دادې چې هغوی ته به ئې د خمس نه ورکوله

② امام شافعی او د یو جماعت رائې داده چې دې خلقو ته به ئې د خمس الخمس نه ورکوله[1].د امام بخاری رحمه الله رائې هم د امام مالک رحمه الله د رائې موافق ده.کمامر.

**قوله: رواه عبدالله بن زيد، عن النبي صلى الله عليه وسلم: [ر:۴۰۷۵]**

دا خبره عبدالله بن زید د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کړې ده.عبدالله بن زید بن عاصم انصاری.

---

[1]) احکام القرآن:۳/۱۶.وفتح الملهم:۵/۱۳۴.وشرح النقایة:۱/۳۸۵.الزکاة.مصارف الزکاة)_

[2]) شرح النقایة:۱/۳۸۵.وفتح الملهم:۵/۱۳۴)_

[3]) بدایة المجتهد:۱/۲۷۵.کتاب الزکاة.الفصل الاول فی عدد الاصناف.....المسالة الثانیة)_

[4]) فتح الملهم:۵/۱۳۴)_

[5]) ددې مسئلې د نور وضاحت دپاره اوګورئ، احکام القرآن:۳/۱۶۰_۱۶۱. مطلب:فی المؤلفة القلوب. وفتح الملهم:۵/۱۳۳_۱۳۵.والموسوعة الفقهیة:۲۳/۳۱۹،و:۳۶/۱۳)_

[6]) فتح الباری:۶/۲۵۲.دغه شان اوګورئ، کشف الباری،کتاب المغازی:۵۵۳_۵۵۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مازني، مدني رضي الله عنه مشهور صحابي دي[1].

**د مذكوره تعليق مقصد** مؤلف رحمه الله چې په ترجمة الباب كښې خپله كومه دعوى ذكر كړې ده، نو ددې تعليق مقصد د هغې تقويت دې چې هم دا خيز د عبدالله بن زيد نه روايت دې چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به مؤلفة القلوب وغيره ته د خمس وغيره نه وركوله

**د مذكوره تعليق تخريج** په دې تعليق كښې امام بخاري رحمه الله د حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه هغه اوږد حديث شريف طرفته اشاره كړې ده كوم چې مؤلف په مغازي[2] كښې د حنين د قصې لاندې موصولاً ذكر كړې دې[3] د امام بخاري رحمه الله نه علاوه امام مسلم رحمه الله هم په كتاب الزكوة كښې دا حديث موصولاً ذكر كړې دې[4].

**ترجمة الباب سره د تعليق مناسبت** د حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه د حديث ابتدائي جملې دا دي "لما افاء الله على رسوله صلى الله عليه وسلم يوم حنين، قسم في الناس في المؤلفة قلوبهم".

هم په دې الفاظو كښې ترجمة الباب سره د تعليق مطابقت دې ځكه چې په دې كښې مؤلفة القلوب ته د وركړې كيدو تذكره ده[5]. ددې تعليق نه علاوه امام بخاري رحمه الله په باب كښې لس احاديث ذكر كړې دي، په هغې كښې اولنې حديث د حضرت حكيم بن حزام رضي الله عنه دې

۲۹۷۴ [6] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَعُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ حَكِيمَ بْنَ حِزَامٍ رضى الله عنه قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَأَعْطَانِي، ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي، ثُمَّ قَالَ لِي «يَا حَكِيمُ، إِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرٌ حُلْوٌ، فَمَنْ أَخَذَهُ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُورِكَ لَهُ فِيهِ، وَمَنْ أَخَذَهُ بِإِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيهِ، وَكَانَ كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلاَ يَشْبَعُ، وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى». قَالَ حَكِيمٌ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لاَ أَرْزَأُ أَحَدًا بَعْدَكَ شَيْئًا حَتَّى أُفَارِقَ الدُّنْيَا. فَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يَدْعُو حَكِيمًا لِيُعْطِيَهُ الْعَطَاءَ، فَيَأْبَى أَنْ يَقْبَلَ مِنْهُ شَيْئًا، ثُمَّ إِنَّ عُمَرَ دَعَاهُ لِيُعْطِيَهُ فَأَبَى أَنْ يَقْبَلَ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ، إِنِّي أَعْرِضُ عَلَيْهِ حَقَّهُ الَّذِي قَسَمَ اللَّهُ لَهُ مِنْ هَذَا الْفَيْءِ، فَيَأْبَى أَنْ يَأْخُذَهُ. فَلَمْ يَرْزَأْ حَكِيمٌ أَحَدًا مِنَ النَّاسِ بَعْدَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم حَتَّى تُوُفِّيَ. [ر: ۱۳٦۱]

---

[1] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء، باب لا يتوضا من الشک.....)_

[2] ) صحيح البخاري، كتاب المغازي، باب غزوة الطائف، رقم (۴۳۳۰))_

[3] ) فتح الباري: ۲۵۲/۶، وعمدة القاري: ۷۰/۱۵)_

[4] ) صحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب اعطاء المؤلفة قلوبهم على الاسلام، رقم (۲۴۴۶))_

[5] ) فتح الباري: ۲۵۲/۶)_

[6] ) قولهما: ان حكيم بن ..... ۳الحديث مر تخريجه فى كتاب الزكاة، باب الاستعفاف عن المسالة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

① **محمد بن يوسف**: دا محمد بن يوسف فريابى رحمه الله دې. د دوى تذكره په كتاب العلم، "باب ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم....." كښې تيره شوې ده.[1]

② **الاوزاعى** دا مشهور محدث عبد الرحمن بن عمرو الاوزاعى رحمه الله دې. د دوى تفصيلى حالات په كتاب العلم، "باب الخروج فى طلب العلم" كښې تير شوې دى.[2]

③ **الزهرى**: محمد بن مسلم ابن شهاب الزهرى رحمه الله اجمالى تذكره په "بدء الوحى" كښې تيره شوې ده.[3]

④ **سعيد بن المسيب**: دا مشهور محدث حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله دې. د دوى حالات د كتاب الايمان، "باب من قال: إن الايمان....." په ضمن كښې بيان شوې دى.[4]

⑤ **عروه بن الزبير**: د مشهور تابعى حضرت عروه بن الزبير رحمه الله تذكره اجمالى طور په "بدء الوحى" كښې تيره شوې ده.[5]

⑥ **حكيم بن حزام**: دا د نبى عليه السلام صحابى، حضرت حكيم بن حزام رضي الله عنه دې.[6]

**د حديث شريف ترجمه**: حضرت حكيم بن حزام رضي الله عنه فرمائى چې ما د نبى عليه السلام نه طلب اوكړو، نبى عليه السلام ما ته راكړو، بيا ما سوال اوكړو، نبى عليه السلام بيا راكړو، بيا ئې اوفرمائيل، ائې حكيم! دا مال ښائسته او خوشګوار دې، نو كوم سړې چې دا په نيك نيتئ سره اخلى نو د هغهٔ په مال كښې بركت وى او څوك چې ئې لالچ او حرص سره اخلى نو د هغهٔ په مال كښې بركت نهٔ وى، بلكه هغه داسې شى چې خوراک كوى ليكن..... د هغهٔ خيټه نهٔ ډكيږى او پورته لاس د ښكته لاس نه غوره دې. حضرت حكيم فرمائى، ما اووئيل ائې د الله رسوله! قسم په هغه ذات كوم ذات چې تاسو په حقه راليږلې ئې! زهٔ به ستاسو نه پس د هيچا نه وانخلم، تردې چې دنيا پريږدم. نو حضرت ابوبكر به حضرت حكيم راغوښتو چې ورته څهٔ وركړى ليكن هغوى به ترې هيڅ نهٔ اخستل بلكه انكار به ئې كوو. بيا حضرت عمرفاروق رضي الله عنه طلب كړو چې څهٔ ورته وركړى ليكن د هغوى نه ئې هم د اخستلو نه انكار اوكړو (ددې صورت حال په ليدلو سره) عمرفاروق رضي الله عنه اوفرمائيل، ائې د مسلمانانو ډلې! زهٔ په حكيم باندې د هغهٔ حق پيش كوم. كوم چې الله تعالى هغهٔ دپاره په مال فئ كښې كيخوذې دې ليكن هغه ئې د

---

[1] ) كشف البارى: ۳/۲۱۶)_
[2] ) كشف البارى: ۳/۳۵۳)_
[3] ) كشف البارى: ۱/۳۲۶، الحديث الثالث)_
[4] ) كشف البارى: ۲/۱۵۹)_
[5] ) كشف البارى: ۱/۲۹۱، تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ: كشف البارى: ۲/۴۳۶)_
[6] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الزكاة، باب لا صدقة الا عن ظهر غنى)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قبلولو نه انکار کوی دغه شان حضرت حکیم بن حزام د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس ترمرګه پورې د خلقو نه هیڅ هم وانخستل الله اکبر!

**خبرداري** ددې حدیث مبارک تعلق چونکه کتاب الزکوة سره دې، ددې وجې نه ددې تشریح په هلته ذکر کیږی.(۱)

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت** دا حدیث امام بخاری رحمه الله ددې وجې نه دلته ذکر کړې دې چې حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه په مؤلفة القلوب کښې وو.(۲) نبی علیه السلام به په دې بنیاد باندې مختلفو موقعو باندې دوی ته مال وغیره ورکوو، چې د هغې ذکر په "سئلت فاعطان" کښې دې، نو مطابقت اوموندلې شو.(۳)

د باب دویم حدیث د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دې

۲۹۷۵ (۴). حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رضی الله عنه - قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ كَانَ عَلَىَّ اعْتِكَافُ يَوْمٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَأَمَرَهُ أَنْ يَفِيَ بِهِ. قَالَ وَأَصَابَ عُمَرُ جَارِيَتَيْنِ مِنْ سَبْىِ حُنَيْنٍ، فَوَضَعَهُمَا فِي بَعْضِ بُيُوتِ مَكَّةَ - قَالَ - فَمَنَّ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى سَبْىِ حُنَيْنٍ، فَجَعَلُوا يَسْعَوْنَ فِي السِّكَكِ فَقَالَ عُمَرُ يَا عَبْدَ اللَّهِ، انْظُرْ مَا هَذَا فَقَالَ مَنَّ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى السَّبْىِ. قَالَ اذْهَبْ فَأَرْسِلِ الْجَارِيَتَيْنِ. قَالَ نَافِعٌ وَلَمْ يَعْتَمِرْ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الْجِعْرَانَةِ وَلَوِ اعْتَمَرَ لَمْ يَخْفَ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ.

## رجال الحديث

① **ابو النعمان** دا ابو النعمان محمد بن الفضل سدوسی رحمه الله دې د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب قول النبی صلی الله علیه وسلم، الدین النصیحة....." کښې تیره شوې ده.(۵)

② **حماد بن زید** دا حماد بن زید بن درهم رحمه الله دې د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المعاصی من أمر الجاهلیة...." کښې تیر شوې دی.(۶)

③ **ایوب** دا ایوب سختیانی رحمه الله دې د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الایمان" کښې

---

(۱) ددې حدیث بعضې تشریحات، کشف الباری، کتاب الرقاق: ۳۹۷_۲۹۸ کښې راغلې دی۔

(۲) د مؤلفة القلوب د نومونو دپاره اوګورئ: کشف الباری، کتاب المغازی: ۵۵۴، مع حواله جات)_

(۳) عمدة القاری: ۱۵/ ۷۰، والکوثر الجاری: ۶/۱۲۵)_

(۴) قوله: ان عمر.... "الحدیث، مر تخریجه فی الاعتکاف، باب الاعتکاف لیلا)_

(۵) کشف الباری: ۲/ ۷۶۸)_

(۶) کشف الباری: ۲/ ۲۱۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راغلې ده(۱).

④**نافع** دا نافع د ابن عمر رحمه الله مولی دې د دوی تذکره په **کتاب العلم "باب ذکر العلم والفتيا في المسجد"** کښې تیره شوې ده(۲).

⑤**عمر بن الخطاب** د خلیفه ثانی حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اجمالی تذکره په **"بدء الوحی"** کښې بیان شوې ده(۳).

**قوله:** ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه قال: یا رسول الله:

**یو حدیث او درې احکامات:** دا حدیث اصل کښې په درې مختلف حکمونو باندې مشتمل دې، یا داسې اووایئ چې امام بخاری رحمه الله درې حدیثونه په یو حدیث کښې جمع کړې دې، ځکه چې راوی د تولو نافع عن ابن عمر رضي الله عنه دې.

اولنې حکم اعتکاف سره متعلق دې(۴)، چې د هغې تشریح به ددې لاندې راشی. دویم حکم د غزوه حنین د قیدیانو متعلق دې، چې د هغې تشریح دلته مقصوده ده. دا دویم حکم د و اصاب عمر جاریتین نه **قال: اذهب فارسل الجاریتین** پورې دې. دریم حکم عمرې سره متعلق دې، چې د **"قال نافع: ولم يعتمر...."** نه د حدیث شریف د آخره پورې دې. ددې تشریح به په کتاب العمرة کښې راشی(۵).

**قوله:** وأصاب عمر جاريتين من سبي حنين، فوضعهما في بعض بيوت مكة.......

او حضرت عمر رضي الله عنه ته د حنین په قیدیانو کښې دوه وینزې حاصلې شوې، چې هغه دوی د مکې مکرمې په یو کور کښې حصارې کړې. فرمائی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم په هغه قیدیانو باندې احسان اوکړو، نو دا قیدیان د مکې مکرمې په لارو کوڅو کښې په منډو تړرو وو نو عمر رضي الله عنه اوفرمائیل، ائې عبدالله! اوګوره: څۀ خبره ده؟ هغوی جواب کښې اوفرمائیل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم قیدیان آزاد کړې دی، عمر اوفرمائیل، لاړ شه! دواړه وینزې آزادې کړه. په دې حدیث شریف کښې د بنو هوازن د دوو قیدیانو ذکر دې، د قصې تفصیل تیر شوې بابونو او په کتاب المغازی کښې تیر شوې دې(۶).

---

(۱) کشف الباری: ۲/۲۶_

(۲) کشف الباری: ۳/۶۵۱_

(۳) کشف الباری: ۱/۱۳۹. د باب د حدیث په ارسال او اتصال کښې د راویانو اختلاف دې، د بحث دپاره اوګورئ: کشف الباری، کتاب المغازی: ۵۳۸_۵۳۹_

(۴) صحیح بخاری، کتاب الاعتکاف (الصوم)، باب الاعتکاف لیلا، رقم (۲۰۳۲)_

(۵) کتاب الحج (العمرة)، باب کم اعتمر النبی صلی الله علیه وسلم؟_

(۶) کشف الباری، کتاب المغازی: ۵۳۲، باب قول الله تعالی: (ویوم حنین....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دلته دا بیان کړې شوې دی چې د هوازن قیدیان په غنیمتونو کښې تقسیم شو نو دوه وینزې د حضرت عمر رضی الله عنه په حصه کښې راغللې، چې کله د هوازن قیدیانو اسلام قبول کړو نو نبی کریم ﷺ د هغوی د آزادولو حکم اوکړو نو حضرت عمر رضی الله عنه هم د خپلې حصې دواړه وینزې آزادې کړې

**وینزې دوه وې یا یو وه؟** بیا په دې خان پوهه کړئ چې په حدیث شریف کښې د جاریتین ذکر دې چې وینزې دوه وې. او د مسلم شریف[1] په روایت کښې صرف د یوې وینزې ذکر دې په دې دواړو روایتونو کښې تطبیق داسې دې چې وینزې اصل کښې دوه وې لیکن په هغې کښې یوه وینزه هغوی خپل ځوی عبدالله ته هبه کړې وه. دغه هبه کړې شوې وینزې نوم قلابه وو او دویمه وینزه حضرت عمر رضی الله عنه خپل خان سره ساتلې وه لکه ابن اسحاق د نافع عن ابن عمر د طریق نه یو روایت نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دادی

"قال: بعثتُ جاریتي إلی أخوالي في بني جمح، لیصلحوا لي منها، حتی أطوف بالبیت، ثم آتیتهم، فخرجت من المسجد، فإذا الناس یشتدون، قلت: ما شأنکم؟ قالوا: رد علینا رسول الله صلی الله علیه وسلم نساءنا وأبناءنا. فقلت: دونکم صاحبتکم، فهي في بني جمح، فانطلقوا، فأخذوها" (اللفظ للحافظ)[2].

"ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چې ما خپله وینزه قبیله جمح ته خپل ماما کره اولیږله. دې دپاره چې دغه خلق ئې زما دپاره تیاره کړی، تردې چې زهٔ د بیت الله شریف د طواف نه فارغ شم. بیا هغوی ته راغلم او د مسجد نه راووتلم نو اومې کتل چې خلق منډې وهی. ما تپوس اوکړو چې څهٔ خبره ده؟ دا شور او غوغا ولې ده؟ نو هغوی اووئیل چې رسول الله ﷺ زمونږ ښځې او بچې مونږ ته واپس کړې دی. ما اووئیل چې خپلې ښځې ته لاړ شئ. هغه په بنی جمح کښې ده نو دا خلق هلته لاړل او هغه ئې هم خپل خان سره بوتله".

ددې روایت نه معلومه شوه چې یوه وینزه ابن عمر رضی الله عنه ته ورکړې شوې وه[3] والله اعلم بالصواب

**قوله: وَزَادَ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مِنَ الْخُمُسِ:**

او جریر په خپل طریق کښې د "من الخمس" اضافه نقل کړې ده.

**د مذکوره تعلیق مقصد:** ددې تعلیق دوه مقصدونه دی:

یو خو د حماد بن زید پورته ذکرکړې شوې روایت مرسل وو ځکه چې د نافع د عمر رضی الله عنه نه سماع ثابته نهٔ ده بلکه لیدل ئې هم ثابت نهٔ دی او د جریر بن حازم[4] روایت مسند دې ځکه چې په دې کښې هغوی د ابن عمر نه نقل کوی

---

[1]) صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب نذر الکافر، وما یفعل فیه اذا اسلم، رقم (۴۲۹۴))_

[2]) سیرة ابن هشام: ۴/۱۳۳، امر اموال هوازن.....وفتح الباری: ۸/۳۶)_

[3]) فتح الباری: ۸/۳۶)_

[4]) د جریر د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة، باب الخوخة ولممر فی المسجد)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

البته امام دارقطني رحمه الله فرمائي چې د جرير روايت اګرچه موصول او مسند دې او د حماد بن زيد هغه مرسل دې،ليکن راجح روايت د حماد بن زيد دې،ځکه چې هغه د ايوب سختياني په روايتونو کښې د جرير نه زيات ثابت او قوي دې(۱) دويم مقصد دا ښودل دی چې د حضرت عمر په حصه کښې کومې دوه وينزې راغلې وې نو هغه د خمس وې(۲).

**د مذکوره تعليق تخريج** ددې تعليق تخريج امام مسلم رحمه الله په کتاب الايمان(۳) کښې موصولاً او مسنداً کړې دې(۴).

**قوله**: وَرَوَاهُ مَعْمَرٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ فِي النَّذْرِ وَلَمْ يَقُلْ يَوْمَ: [ر:۱۹۳۷]

او د اعتکاف والا حديث معمر د ايوب عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما د طريق نه د نذر په حديث کښې نقل کړې دې او په هغې کښې د يوم اضافه نشته.

**د مذکوره تعليق مقصد** ددې تعليق مقصد دادې چې د اعتکاف والا حديث د معمر د طريق نه هم روايت دې ليکن په هغې کښې د يو ذکر نشته بلکه د مطلق نذر ذکر دې.

**د تعليق تخريج** دا تعليق امام بخاری رحمه الله موصولاً په کتاب المغازی(۵) کښې ذکر کړې دې(۶).

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت**:ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت د حديث په ابتدائی حصه "واصاب عمرجاريتين من سبي حنين" کښې دې ځکه چې دا وينزې د خمس وې چې غير المؤلفة يعنې حضرت عمر رضي الله عنه ته ورکړې شوې.هم دا خبره د جرير په تعليق کښې هم راغلې ده(۷).والله أعلم بالصواب

دريم حديث د حضرت عمرو بن تغلب رضي الله عنه دې.

۲۹۷۲ (۸) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ قَالَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ -رضي الله عنه- قَالَ أَعْطَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَوْمًا وَمَنَعَ آخَرِينَ ،فَكَأَنَّهُمْ عَتَبُوا عَلَيْهِ فَقَالَ «إِنِّي أُعْطِي قَوْمًا أَخَافُ ظَلَعَهُمْ وَجَزَعَهُمْ، وَأَكِلُ أَقْوَامًا

---

(۱) عمدة القاری:۷۱/۱۵،وفتح الباری:۲۵۳/۶،وشرح القسطلانی:۲۲٤/۵،وشرح علل الترمذی لابن رجب، ترجمة حماد بن زيد بن درهم:۴۶۳/۱)_

(۲) عمدة القاری:۷۱/۱۵،وشرح القسطلانی:۲۲٤/۵،والکوثر الجاری:۱۲۵/۶_۱۲۶)_

(۳) صحيح مسلم،کتاب الايمان،باب نذر الکافر.....رقم (٤۲۹٤))_

(۴) تغليق التعليق:۴۸۰/۳)_

(۵) صحيح بخاری،کتاب المغازی،باب قول الله تعالی:(ويوم حنين.....)،رقم ۴۳۲۰))_

(۶) تغليق التعليق:۴۸۰/۳،وفتح الباری:۲۵۳/۶)_

(۷) عمدة القاری:۷۰/۱۵،وفتح الباری:۲۵۲/۶،والکوثر الجاری:۱۲۵/۶_۱۲۶،واللامع:۳۱۲/۷)_

(۸) قوله: حدثنی عمرو..... ":الحديث،مر تخريجه فی کتاب الجمعة،باب من قال فی الخطبة.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

إِلَى مَا جَعَلَ اللّٰهُ فِي قُلُوبِهِمْ مِنَ الْخَيْرِ وَالْغِنَى، مِنْهُمْ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ». فَقَالَ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ مَا أُحِبُّ أَنَّ لِي بِكَلِمَةِ رَسُولِ اللّٰهِ- صلى الله عليه وسلم- حُمْرَ النَّعَمِ.

## رجال الحديث

①**موسی بن اسماعیل** دا موسی بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره اجمالاً د بدء الوحی په "الحدیث الرابع" کښې تیره شوې ده[1].

②**جریر بن حازم** دا جریر بن حازم "بالحاء المهملة والزای" رحمه الله دې[2].

③**حسن** دا مشهور تابعی بزرګ حضرت امام حسن بصری رحمه الله دې د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المعاصی من أمر الجاهلية...." کښې راغلې دی[3].

④**عمرو بن تغلب** دا د نبی علیه السلام صحابی حضرت عمرو بن تغلب نمری رضي الله عنه دې[4].

**قال: أعطى رسول الله صلى الله عليه وسلم قوماً، ومنع آخرين، فكأنهم عتبوا عليه**

حضرت عمرو بن تغلب رضي الله عنه فرمائی چې نبی کریم ﷺ بعضې خلقو ته څۀ ورکړل او بعضو ته نۀ، ګویا که محروم پاتې کیدونکې د نبی علیه السلام نه خفه شو خلیل فرمائی چې عتاب هغې شکایت او د خفګان اظهار ته وئیلې شی چې د ناز په طور سره وی[5].

**قوله: فقال: إني أعطي قوماً أخاف ظلعهم وجزعهم:** نو نبی علیه السلام او فرمائیل چې زۀ هغې خلقو ته ورکوم، چې د کومو خلقو متعلق ما ته د زړۀ د مرض او کمزورتیا او د یقین د کمزورئ او د ژړا، فریاد کولو ویره وی. ظلعهم ظاء او لام سره کوږوالی ته وئیلې شی. دلته ددې نه مراد د ایمان کمزورتیا او د زړۀ مرض دې[6]. په دې جمله کښې نبی کریم ﷺ بعضې خلقو ته د مال ورکولو علت او وجه بیان کړې ده چې د هغوی د ایمان د کمزورتیا د وجې نه هغوی ته مال ورکوم، چې چرته دا خلق واپس نۀ شی.

**قوله: وأكل أقواماً إلى ما جعل الله في قلوبهم من الخير والغنى:** او بعضې قومونه الله تعالی ته حواله کړم د کومو خلقو په زړونو کښې چې الله تعالی خیر او استغنا کیخودلې وی.

مطلب دادې چې د اول قسم خلقو په مقابله کښې دا دویم قسم خلق دی. کوم چې د مال

---

[1]) کشف الباری: ۱/ ۴۳۳)_

[2]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة، باب الخوخة والممر فی المسجد)_

[3]) کشف الباری: ۲/ ۲۲۰)_

[4]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الجمعة، باب من قال فی الخطبة بعد الثناء: اما بعد)_

[5]) عمد القاری: ۱۵/ ۷۱، والقسطلانی: ۵/ ۲۲۴، وکتاب العین: ۲/ ۷۵، باب العین والتاء والیاء....)_

[6]) عمدة القاری: ۱۵/ ۷۱، وارشاد الساری: ۵/ ۲۲۵، وفتح الباری: ۶/ ۲۵۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وغیره نه مستغنی او بې پرواه دی،ددوی زړونه د خیرښیګړې نه ډک دی.دا خلق د مال وغیره نه بغیر هم په خپل ایمان و یقین باندې مضبوط دی او مضبوط به وی.نو د داسې خلقو معامله څۀ ګرانه نۀ ده.نۀ د دوی نه څۀ ویره او خطره شته.

ددې نه علاوه د اول قسم خلق ډیر کم وی بلکه د اولې زمانې نه تر نن زمانې پورې د داسې خلقو ډیروالې او کثرت دې،چې نۀ په پیسو خرخیږی او نۀ دین بدلوی.غالبا د نبی علیه السلام په ارشاد مبارک کښې هم دې دې نکتې طرفته اشاره ده چې د اول قسم خلقو دپاره ئې "قوم"او د دویم قسم خلقو دپاره ئې د"اقوام"لفظ ارشاد اوفرمائیلو چې د جمع صیغه ده او په کثرت او ډیروالی باندې دلالت کوی.

"غنی"باندې کسره ده او الف مقصوره دې،دا د فقر(غریبئ)ضد دې.(۱)

**قوله: منهم عمروبن تغلب:** چې په دوی کښې عمروبن تغلب هم دې.

یعنی الله تعالی دوی هم په دویم قسم خلقو کښې ساتلې دی،دوی د مال وغیره نه بې پرواه دی او زړونه ئې د خیر ښیګړې نه ډک دی،که دوی مال ورهم نه کړې شی نو هیڅ خطره نشته.

**قوله: فقال عمروبن تغلب: ما أحب أن لی بکلمة رسول الله صلی الله علیه وسلم حمر النعم:** نو عمروبن تغلب رضی الله عنه فرمائی چې ما ته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د مذکوره ارشاد په عوض کښې سرۀ اوښان هم خوښ نۀ دی.په **بکلمة** کښې باء د بدلیت او د عوض دپاره ده او **نعم** د نون د فتحې سره دې،او دا د جوهری د قول مطابق د الانعام واحد دې،ددې عام طور سره اطلاق په اوښ باندې کیږی.او **حمر** د حاء د ضمې سره او د میم د سکون سره دې.(۲).بیا دا یاد ساتئ چې حمر منصوب دې،ځکه چې دا د أن اسم مؤخر دې.

**ددې جملې دوه مطلبونه دی:** د حضرت عمرو بن تغلب رضی الله عنه ددې جملې دوه مطلبونه دی:

① **بکلمة رسول الله......** ددې نه مراد هغه کلام دې کوم چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حضرت عمرو بن تغلب په باره کښې ارشاد فرمائیلې وو چې دې هم د هغه خلقو نه دې او په هغوی کښې داخل دې.کومو خلقو ته چې الله تعالی د زړۀ ښیګړه او د مال نه بې پرواهی نصیب کړې ده.نو ددې جملې د وجې نه چې هغوی ته څومره قدرې خوشحالی ملاؤ شوه چې د هغوی د قول مطابق که ددې په بدله کښې ورته سرۀ اوښان هم ملاؤ شوې وو نو دومره قدرې به خوشحاله نۀ وو.

② د کلمې نه مراد هغه جمله ده کومه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د اولنی قسمه خلقو(ضعفاء الایمان ومرضی القلوب)په باره کښې ارشاد اوفرمائیله په دې صورت کښې مطلب دادې چې په دوی کښې زما د نۀ شاملولو د وجې نه چې ما ته په دې باندې کومه خوشحالی ملاؤ شوه نو

---

(۱) پورته حواله جات)_

(۲) الصحاح للجوهری:۱۰۵٤،مادة نعم".وعمدة القاری:۷۱/۱۵.وارشاد الساری:۲۲۵/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغو مره خوشحالی به مانه د سرو اوښانو په ملاویدو باندې هم ملاؤ شوې نۀ وه.(۱) د حمر النعم د تخصیص وجه واضحه ده چې سور اوښ به د عربو په نزد د ټولو نه قیمتی مال وو والله اعلم بالصواب.

وَزَادَ أَبُو عَاصِمٍ عَنْ جَرِيرٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَقُولُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أُتِيَ بِمَالٍ أَوْ بِسَبْيٍ فَقَسَمَهُ. بِهَذَا: [ر: ۸۸۱]

د ابو عاصم نه مراد ضحاک دې، چې په النبیل سره مشهور وو.(۲)

**د مذکوره تعلیق مقصد:** ددې تعلیق مقصد واضح دې. هغه دادې چې د باب په حدیث کښې اختصار دې، دغه شان په دې کښې چې د کوم څیز د ورکولو او د نۀ ورکولو تذکره ده د هغې نه مراد مال یا قیدی دې کوم چې نبی کریم ﷺ تقسیمول. ددې وجې نه د ابو عاصم روایت د باب دحدیث په نسبت زیات واضح دې. دکشمهینی په روایت کښې دسبی په ځائې شیئ یعنی شین سره دې اوهم دا روایت زیات غوره دې ځکه چې دا ټولو څیزونو ته شامل اوعام دې.(۳)

**د مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق امام بخاری رحمه الله په کتاب الجمعه (۴) کښې موصولاً نقل کړې دې.(۵)

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ترجمة الباب سره ددې حدیث شریف مطابقت د حدیث په ابتدائی حصه کښې دې، یعنی "أعطی رسول الله صلی الله علیه وسلم قوماً ومنع آخرین" چې "نبی علیه السلام بعضې خلقو ته مال ورکړو او بعضو ته ئې ورنۀ کړو". ددې نه چې څنګه دا ثابتیږی چې امام ته په دې کارونو کښې مطلق اختیار دې نو دغه شان دا هم ثابتیږی چې نبی علیه السلام به مؤلفة القلوب ته مال ورکوو.

څلورم حدیث شریف د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دې.

۲۹۷۷/۲۹۷۸: (۶) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رضى الله عنه - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنِّي أُعْطِي قُرَيْشًا أَتَأَلَّفُهُمْ، لأَنَّهُمْ حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ».

---

(۱) فتح الباری: ۲۵۳/۶، وعمدة القاری: ۷۱/۱۵، وارشاد الساری: ۲۲۵/۵)_

(۲) د دوی حالاتکشف الباری، باب القراءة والعرض.....: ۱۲۹/۳ کښې راغلي دي_

(۳) فتح الباری: ۲۵۳/۶، وعمدة القاری: ۷۱/۱۵، وارشاد الساری: ۲۲۵/۵)_

(۴) صحیح البخاری، کتاب الجمعة، باب من قال فی الخطبة بعد الثناء......رقم (۹۲۳))_

(۵) عمدة القاری: ۷۱/۱۵، وفتح الباری: ۲۵۴/۶، وتغلیق التعلیق: ۳۴۸۱، وشرح القسطلانی: ۲۲۵/۵)_

(۶) قوله: عن انس.... ": الحدیث اخرجه البخاری ایضا، نفس هذا الباب، رقم (۳۱۴۷)، وکتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ، باب ابن اخت القوم منهم.....رقم (۳۵۲۸)، وکتاب مناقب الانصار، باب مناقب الانصار، رقم (۳۷۷۸)، وباب قول النبی ﷺ للانصار.....رقم (۳۷۹۳)، وکتاب المغازی، ....[بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحدیث

①**ابوالولید** دا ابو الولید هشام بن عبدالملک طیالسی رحمه الله دي د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب علامة الایمان حب الانصار" کښې تیر شوي دي[1].

②**شعبه** دا امیر المؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله دي د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب المسلم من سلم المسلمون من....." کښې تیره شوې ده[2].

③**قتاده** دا قتاده بن دعامه رحمه الله دي.

④**انس** دا د نبی علیه السلام صحابی، حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دي. ددې دواړو حضراتو تذکره په کتاب الایمان، "باب من الایمان أن یحب لاخیه....." کښې تیر شوي دي[3].

**د حدیث شریف ترجمه**: د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې زۀ قریشو ته ورکوم، (نو دا هغوی خپل ځان سره د اموخته (مانوس) کولو دپاره. ځکه چې دا زمانه جاهلیت سره نزدې دی.

پنځم حدیث شریف هم د حضرت انس رضی الله عنه دې.

۲۹۷۸ (۴) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا الزُّهْرِي قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ نَاسًا مِنَ الأَنْصَارِ قَالُوا لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حِينَ أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ -صلى الله عليه وسلم- مِنْ أَمْوَالِ هَوَازِنَ مَا أَفَاءَ، فَطَفِقَ يُعْطِي رِجَالاً مِنْ قُرَيْشٍ الْمِائَةَ مِنَ الإِبِلِ فَقَالُوا يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَدَعُنَا، وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ قَالَ أَنَسٌ فَحُدِّثَ رَسُولُ اللَّهِ بِمَقَالَتِهِمْ، فَأَرْسَلَ إِلَى الأَنْصَارِ، فَجَمَعَهُمْ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ، وَلَمْ يَدْعُ مَعَهُمْ أَحَدًا غَيْرَهُمْ، فَلَمَّا اجْتَمَعُوا جَاءَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «مَا كَانَ حَدِيثٌ بَلَغَنِي عَنْكُمْ». قَالَ لَهُ فُقَهَاؤُهُمْ أَمَّا ذَوُو آرَائِنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَلَمْ يَقُولُوا شَيْئًا، وَأَمَّا أُنَاسٌ مِنَّا حَدِيثَةٌ أَسْنَانُهُمْ فَقَالُوا يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَتْرُكُ الأَنْصَارَ، وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله

---

بقیه ازحاشیه گذشته] باب غزوة الطائف، رقم (۴۳۳۱_۴۳۳۴، و۴۳۳۷)، وکتاب اللباس، باب القبة الحمراء من ادم، رقم (۵۸۶۰)، وکتاب الفرائض، باب مولی القوم من انفسهم.....رقم (۶۷۶۲)، وکتاب التوحید، باب قول الله تعالی: (وجوه یومئذ ناضرة....)، رقم (۷۴۴۱)، ومسلم، کتاب الزکاة، باب اعطاء المؤلفة.....رقم (۲۴۳۶_۲۴۴۲). والترمذی، کتاب المناقب، باب فضل الانصار وقریش، رقم (۳۹۰۱)._

[1]) کشف الباری: ۳۸/۲)_

[2]) کشف الباری: ۶۷۸/۱)_

[3]) کشف الباری: ۳/۲_۴)_

[4]) قوله: اخبرنی انس.... الحدیث، مر تخریجه فی الحدیث السابق آنفًا)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عليه وسلم - « إِنِّي أُعْطِي رِجَالاً حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ بِكُفْرٍ، أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالْأَمْوَالِ وَتَرْجِعُونَ إِلَى رِحَالِكُمْ بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، فَوَاللَّهِ مَا تَنْقَلِبُونَ بِهِ خَيْرٌ مِمَّا يَنْقَلِبُونَ بِهِ». قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ رَضِينَا. فَقَالَ لَهُمْ «إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِي أُثْرَةً شَدِيدَةً، فَاصْبِرُوا حَتَّى تَلْقَوُا اللَّهَ وَرَسُولَهُ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى الْحَوْضِ». قَالَ أَنَسٌ فَلَمْ نَصْبِرْ. [۳۵۶۷، ۳۳۲۷، ۳۵۸۲، ۴۰۷۶، ۴۰۷۹، ۴۰۸۲، ۵۵۲۲، ۶۳۸۱، ۷۰۰۳]

## رجال الحديث

① **ابو اليمان** دا ابو اليمان حضرت حکم بن نافع رحمه الله دي

② **شعيب** دا شعيب بن ابی حمزه رحمه الله دي ددې دواړو حضراتو حالات اجمالاً د بدء الوحی په "الحديث الثالث" کښې تير شوي دی.(۱)

③ **زهری** دا محمد بن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دي ددوی حالات هم د بدء الوحی د "الحديث الثالث" په ضمن کښې بيان شوي دی.(۲)

④ **انس** د حضرت انس رضی الله عنه تذکره په کتاب الايمان، "باب من الايمان..... "کښې تيره شوې ده.(۳)

**خبرداری**: امام بخاری رحمه الله د باب لاندې دحضرت انس رضی الله عنه مشهور حديث اجمالاً او تفصيلاً دواړو طريقو سره نقل کړې دې، ددې تشريح په مغازی کښې راغلې ده.(۴)

د باب شپږم حديث د حضرت جبير بن مطعم رضی الله عنه دی

۲۹۷۹ :(۵) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ أَنَّهُ بَيْنَا هُوَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَمَعَهُ النَّاسُ مُقْبِلاً مِنْ حُنَيْنٍ عَلِقَتْ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الأَعْرَابُ يَسْأَلُونَهُ حَتَّى اضْطَرُّوهُ إِلَى سَمُرَةٍ، فَخَطِفَتْ رِدَاءَهُ، فَوَقَفَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ « أَعْطُونِي رِدَائِي، فَلَوْ كَانَ عَدَدُ هَذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ، ثُمَّ لاَ تَجِدُونِي بَخِيلاً وَلاَ كَذُوبًا وَلاَ جَبَانًا». [ر ۲۶۶۶]

---

۱) کشف الباری:۱/ ۴۷۹_۴۸۰)_

۲) کشف الباری:۱/ ۳۲۶)_

۳) کشف الباری:۲/ ٤)_

۴) کشف الباری، کتاب المغازی:۵۵۲_۵۵۹)_

۵) قوله: اخبرنی جبير.....="مر تخريجه فی الجهاد، انظر کشف الباری، کتاب الجهاد:۱/۲۲۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

①عبدالعزيز بن عبدالله الاويسى دا عبد العزيز بن عبد الله اويسى رحمه الله دې د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب الحرص على الحديث" کښې تېره شوې ده.[1]

②ابراهيم بن سعد دا ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله دې

③صالح دا صالح بن کیسان رحمه الله دې ددې دواړو حضراتو تذکره په کتاب الایمان، "باب من كره أن يعود في الكفر..... " کښې تېره شوې ده.[2]

④ابن شهاب دا محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې د دوی تذکره په "بدء الوحی" کښې تېره شوې ده.[3]

⑤عمر بن محمد بن جبير بن مطعم دا د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه نوسې عمر بن محمد رحمه الله دې. د دوی حالات په کتاب الجهاد، "باب الشجاعة في الحرب والجبن" کښې تېر شوې دی.[4]

⑥محمد بن جبير دا محمد بن جبير بن مطعم نوفلى رحمه الله دې.[5]

⑦جبير بن مطعم دا ابو محمد جبير بن مطعم نوفلى رضي الله عنه دې.[6]

**د حدیث شریف ترجمه:** حضرت جبير رضي الله عنه فرمائي چې د حنین نه د واپسئ دوران کښې کله چې زۀ د رسول الله مبارک صلى الله عليه وسلم سره ووم او نور خلق هم ورسره وو، بدوی خلق نبی علیه السلام پورې وينختل. هغوى د نبى عليه السلام نه مال غوښتۀ، تردې چې هغوی نبی علیه السلام د کیکر یو اونې سره په پناه اخستلو باندې مجبور کړو نو کیکر د نبی عليه السلام څادر مبارک رابنکۀ. ددې وجې نه نبی عليه السلام اودريدۀ او وې فرمائيل، زما څادر ما ته راکړه. که ماسره ددې ازغی دار اونو برابر هم څناور (څاروی) وو نو ټول به ما په تاسو کښې تقسیم کړې وو، بیا به تاسو ما نۀ بخیل ګڼړئ، نۀ دروغژن او نۀ بزدل.

ددې حدیث شریف تفصیلی تشریح چونکه په کتاب الجهاد [7] کښې تېره شوې ده، ددې وجې نه مونږ دلته صرف په ترجمه باندې اکتفا کړې ده.

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ددې حديث شريف مطابقت ترجمة الباب سره په

---

[1] ) كشف البارى:۳/ ۳٤)_

[2] ) كشف البارى:۲/ ۱۲۰_۱۲۱)_

[3] ) كشف البارى:۱/ ۳۲۶، الحديث الثالث)_

[4] ) كشف البارى، كتاب الجهاد:۱/ ۲۲۳)_

[5] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب الاذان، باب الجهر فی المغرب)_

[6] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب الغسل، باب من افاض على راسه ثلاثًا)_

[7] ) كشف البارى، كتاب الجهاد:۱/ ۲۲٤_۲۲۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې جمله کښې ده، "لقسمته بینکم"[1] چې "مال به ستاسو مینځ کښې تقسیم کړې وو" څکه چې دا بانديچيان هم په مؤلفة القلوب کښې دی ددې وجې نه دا جمله نبی ﷺ د هغوی د تسلی او د زړه د ساتلو دپاره ارشاد فرمائیلې ده.

اووم حدیث د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دی

۲۹۸۰[2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضی الله عنه قَالَ كُنْتُ أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَعَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيظُ الْحَاشِيَةِ، فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَذَبَهُ جَذْبَةً شَدِيدَةً، حَتَّى نَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ أَثَّرَتْ بِهِ حَاشِيَةُ الرِّدَاءِ مِنْ شِدَّةِ جَذْبَتِهِ، ثُمَّ قَالَ مُرْ لِي مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي عِنْدَكَ. فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ، فَضَحِكَ ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ.[۵۷۳۸، ۵۴۷۲]

## رجال الحدیث

① **یحیی بن بکیر**: دا یحیی بن عبدالله بن بکیر رحمه الله دی. د دوی حالات **بدء الوحی** کښې "**الحدیث الثالث**" کښې تیر شوې دی[3].

② **مالک**: دا امام دارالهجرة امام مالک بن انس رحمه الله دې. د دوی حالات **بدء الوحی** کښې "**الحدیث الثانی**" کښې دی[4].

③ **اسحاق بن عبد الله**: دا مشهورتابعی ابویحیٰ اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه انصاری رحمه الله دې ددوی تذکره په **کتاب العلم**، "**باب من قعد حیث ینتهی به المجلس**" کښې تیره شوې ده[5].

④ **انس بن مالک**: د حضرت انس رضی الله عنه تذکره په **کتاب الایمان**، "**باب من الایمان أن یحب......**" کښې تیرې شوې دی[6].

**قوله: قال: كنت أمشي مع النبي صلى الله عليه وسلم، وعليه برد نجراني غليظ**

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/۷۳، حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی لقسمة بینکم "فیه الترجمة: حیث لم یکن هؤلاء کملا فی ایمانهم، والا لما فعلوا ما فعلوا". لامع الدراری:۷/۳۱۳)_

[2]) قوله: عن انس.... "الحدیث، اخرجه البخاری ایضا، کتاب اللباس، باب البرود والحبرة والشملة، رقم (۵۸۰۹)، وکتاب الادب، باب التبسم والضحک، رقم (۶۰۸۸)، ومسلم، کتاب الزکاة، باب اعطاء من سال بفحش وغلظة، رقم (۲۴۲۹_۲۴۳۰)، وابن ماجه، کتاب اللباس، باب لباس رسول الله ﷺ، رقم (۳۵۵۳))_

[3]) کشف الباری:۱/۳۲۳)_

[4]) کشف الباری:۱/۲۹۰، والایمان:۲/۸۰)_

[5]) کشف الباری:۳/۱۸۲)_

[6]) کشف الباری:۲/۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الحاشية: حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چې زهٔ نبی کریم ﷺ سره روان ووم، د دوی په بدن مبارک باندې د نجران جوړ کړې شوې یو څادر وو، چې د هغې غاړې پلنې وې نجران د یمن د یو ښار نوم دې، چې د هغې څادرونه به مشهور وو او برد د هغې څادر نوم دې چې د هغې جمع برود او ابراد دهٔ(۱).

**قوله: فأدركه أعرابي، فجذبه جذبة شديدة، حتى نظرت إلى صفحة عاتق النبي صلى الله عليه وسلم، قد أثرت به حاشية الرداء، من شدة جذبته:** نو یو اعرابی نبی ﷺ اونیولو او ډیرې سختئ سره ئې د نبی ﷺ څادر مبارک راښکهٔ نو ما اوکتل چې د نبی ﷺ په څټ مبارک باندې د هغې څادر د راښکلو د وجې نه نښې جوړې شوې.

دلته په دې روایت کښې **جذبه** راغلې دې، او د مسلم شریف په روایت کښې **جبذه** راغلې دې(۲)، البته د دواړو معنی یوه ده، یعنی راښکل.

عاتق خو څټ ته وئیلې شی او د صفحه معنی ده غاړه او کناره، یعنی د څټ غاړه(۳).

**قوله: ثم قال: مر لي من مال الله الذي عندك:** بیا هغهٔ اووئیل چې تاسو سره د الله تعالی درکړې شوې کوم مال دې، د هغې نه ماته د راکولو حکم اوکړئ.

مطلب دادې چې تاسو د خپل بیت المال ذمه دارانو ته اووایئ چې د الله تعالی په مال کښې ماته هم څهٔ راکړی، ستاسو د خپل مال نه نهٔ، نهٔ ستاسو د والد صاحب د ګټلې شوې مال نه، بلکه د هغه مال نه کوم چې ستاسو په خپل محنت سره ګټلې شوې نهٔ دې لکه په یو روایت کښې دا الفاظ هم دی: "لا من مالك، ولا من مال أبيك"(۴). او بعضې حضراتو وئیلې دی چې ددې نه مراد د زکوة مال دې، ځکه چې نبی ﷺ به ددې نه په مؤلفة القلوب باندې خرچ کوو.(۵)

**قوله: فالتفت إليه، فضحك، ثم أمر له بعطاء:** نبی ﷺ د هغهٔ طرفته متوجه شو، بیا ئې اوخندل، بیا ئې هغهٔ ته د څهٔ(مال) ورکولو حکم اوفرمائیلو.

مطلب دادې اول خو ئې د حیرانتیا په طور سره ورته اوکتل، بیا ئې د مزې په طور اوخندل(۱) ددې حدیث شریف نه د نبی کریم ﷺ د لوئې صبر او برداشت ښهٔ اظهار کیږی چې نبی ﷺ

---

(۱) عمدة القاري: ۱۵/۷۳، وفتح الباري: ۱۰/۵۰۶، وشرح القسطلاني: ۵/۲۲۶)_
(۲) مسلم شريف، كتاب الزكاة، باب اعطاء من سال بفحش وغلظة، رقم (۲۴۲۹_۲۴۳۰))_
(۳) عمدة القاري: ۱۵/۷۳، وشرح القسطلاني: ۵/۲۲۶، وفتح الملهم: ۵/۱۳۵)_
(۴) فتح الباري: ۱۰/۵۰۶، وفتح الملهم: ۵/۱۳۶)_
(۵) پورته حواله جات)_
(۶) فتح الملهم: ۵/۱۳۶، والكوثر الجاري: ۶/۱۲۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مبارک به د خلقو په تکلیفونو او بیوقوفتوب باندې څومره قدرې د صبر نه کار اخستلو.(۱).
**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت** ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت په آخري جمله کښې دې. "**ثم أمرله بعطاء**" چې نبي ﷺ د دغه باندیچی په عجیبه انداز سره د سوال کولو باوجود هم هغهٔ ته د مال ورکولو حکم اوفرمائیلو .هم دا د زړهٔ ساتل دی.(۲).
**یو اهمه فائده** د حضرت انس رضي الله عنه دا حديث امام بخاري رحمه الله صرف د امام مالک د طریق نه نقل کړې دې.کوم چې د اسحاق بن عبدالله نه روايت کوی.هم دا حدیث امام مسلم رحمه الله هم نقل کړې دې.هغوی دا د امام مالک نه علاوه د امام اوزاعی.همام بن منبه او عکرمة بن عمار د طریق نه هم نقل کړې دې لیکن هلته هم اصل روایت د مالک دې.او د نورو حضراتو طرق د بعضې زیاتی فائدو د بیانولو په غرض سره نقل کړې شوې دی.(۳)
بیا په دې ځان پوهه کړئ چې دا حدیث د مؤطا په مشهورو نسخو کښې نشته.
امام دارقطني رحمه الله فرمائی: "**لم أر هذا الحديث عند أحد من رواة الموطا،إلا عند يحيى بن بكير ومعن بن عيسى،و رواه جماعة من رواة الموطا عن مالك،لكن خارج الموطا**"(۴).
چې "د مؤطا کوم راویان دی نو په هغوی کښې د یو کس په نسخه کښې هم ما دا روایت نهٔ دې لیدلې،سوا د یحیی بن بکیر او معن بن عیسی د نسخې نه او د مؤطا د راویانو یو جماعت(دله)دا حدیث د امام مالک نه نقل کړې دې،لیکن د مؤطا نه علاوه".
او ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چې د مؤطا دوو راویانو مصعب بن عبدالله زبیری او سلیمان بن صرد هم په خپلو خپلو نسخو کښې دا حدیث ذکر کړې دې(۵).البته د برصغیر په نسخو کښې دا حدیث نهٔ موندلې کیږی. **والله اعلم بالصواب**
د باب اتم حدیث د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې.

۲۹۸۱:(۶) **حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنه قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ حُنَيْنٍ آثَرَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- أُنَاسًا فِي الْقِسْمَةِ**

---

(۱) پورته حواله جات.وفتح الباري:۵۰۶/۱۰.وعمدة القاري:۷۳/۱۵)_
(۲) عمدة القاري:۷۳/۱۵.وفتح الباري:۲۵۴/۶.ولا مع الدراري:۳۱۳/۷)_
(۳) فتح الباري:۵۰۶/۱۰. او په صحیحینو کښې د حدیثِ د خایونو پیژندګلو وړاندې په تخریج کښې کړې شوې ده)_
(۴) فتح الباري:۵۰۶/۱۰)_
(۵) پورته حواله ددې حدیث مزید تشریح دپاره اوګورئ: کشف الباري،کتاب الادب،باب التبسم والضحک:۴۸۷_۴۹۱)_
(۶) قوله: عن عبدالله(رضي الله عنه)":الحديث.اخرجه البخاري ايضا.كتاب احاديث الانبياء،باب(بلا ترجمة)بعد باب حديث الخضر...رقم(۳۴۰۵)وكتاب المغازي،باب غزوة الطائف،رقم(۴۳۳۵_۴۳۳۶).[بقيه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فَأَعْطَى الأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ مِائَةً مِنَ الإِبِلِ، وَأَعْطَى عُيَيْنَةَ مِثْلَ ذَلِكَ، وَأَعْطَى أُنَاسًا مِنْ أَشْرَافِ الْعَرَبِ، فَآثَرَهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْقِسْمَةِ. قَالَ رَجُلٌ وَاللَّهِ إِنَّ هَذِهِ الْقِسْمَةَ مَا عُدِلَ فِيهَا، وَمَا أُرِيدَ بِهَا وَجْهُ اللَّهِ. فَقُلْتُ وَاللَّهِ لأُخْبِرَنَّ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم -. فَأَتَيْتُهُ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ «فَمَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ يَعْدِلِ اللَّهُ وَرَسُولُهُ رَحِمَ اللَّهُ مُوسَى قَدْ أُوذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا فَصَبَرَ»

[٣٢٢٤، ٤٠٨٠، ٤٠٨١، ٥٧١٢، ٥٧٤٩، ٥٩٣٣، ٥٩٧٧].

## رجال الحديث

① **عثمان بن ابى شيبة** دا عثمان بن محمد بن ابى شيبه كوفى رحمه الله دې

② **جرير** دا جرير بن عبد الحميد ضبى رازى رحمه الله دې

③ **منصور** دا منصور بن معتمر سلمى كوفى رحمه الله دې.ددې درې واړو حضراتو محدثينو تذكره په كتاب العلم، "باب من جعل لاهل العلم....." كښې تفصيل سره تيره شوې ده(١).

④ **ابووائل** دا ابووائل شقيق بن سلمه اسدى كوفى رحمه الله دې.د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب خوف المؤمن من أن يحبط......" كښې تير شوې دى(٢).

⑤ **عبدالله** د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" كښې راغلې دى(٣).

**قوله**: قال: لما كان يوم حنين، آثر النبى صلى الله عليه وسلم أناساً فى القسمة، فأعطى الاقرع بن حابس مئة من الابل، وأعطى عيينة مثل ذلك:

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائى چې د غزوه حنين په موقع باندې په تقسيم كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم بعضې خلقو ته ترجيح وركړه،لكه اقرع بن حابس ته ئې سل اوښان وركړل،هم دومره ئې عيينه بن حصن ته هم وركړل.

په دې عبارت كښې د فى القسمة نه مراد قسمة الخمس دې،نۀ چې قسمة الغنيمة،ځكه چې په غنيمت كښې خو حصه متعين او معلومه وى،كومه چې د مجاهدينو وى(٤).

---

بقيه ازحاشيه گذشته] .وكتاب الادب، باب من اخبر صاحبه بما يقال فيه.رقم (٦٠٥٩).وباب الصبر على الاذى.رقم(٦١٠٠).وكتاب الاستئذان.باب اذا كانوا اكثر من ثلاثة.....رقم (٦٢٩١).وكتاب الدعوات.باب قول الله تعالى:(وصل عليهم).....رقم (٦٣٣٦). ومسلم.كتاب الزكاة.باب اعطاء المؤلفة قلوبهم.....رقم (٢٤٤٧_٢٤٤٨))_

[١]) كشف البارى:٣/٢٦٦_٢٧٢)_

[٢]) كشف البارى:٢/٥٥٩)_

[٣]) كشف البارى:٢/٢٥٧)_

[٤]) الكوثر الجارى:٦/١٢٩)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**اقرع بن حابس** دا اقرع بن حابس بن عقال بن محمد بن سفیان تمیمی دارمی رضی الله عنه دې[1]. دوی په مؤلفة القلوب کښې وو.نبی کریم ﷺ سره په فتح مکه.غزوه حنین او طائف کښې شریک وو[2].

ذهبی رحمه الله فرمائی چې د دوی اصل نوم فراش وو.او اقرع ئې لقب دې.د دوی دا لقب په نوم باندې غالب شو.دوی د عربو په اشرافو کښې وو.حضرت عبد الله بن عامر رضی الله عنه دوی د يو لښکر امیر جوړ کړې وو او د خراسان په طرف ئې لیږلې وو.هلته دوی زخمی شو او د زخمونو د طاقت نۀ لرلو د وجې نه هلته وفات شو.[3] رضی الله عنه وأرضاه.

**عیینة** دا عیینه "بضم العین، مصغرالعین" بن حصن بن حذیفة بن بدر الفزاری دې دوی هم په مؤلفة القلوب کښې وو[4].امام ذهبی وائی چې دوی هم په خپل قوم کښې سید او مطاع وو. لیکن په طبیعت کښې ئې تیزی وه.[5]. رضی الله عنه وأرضاه.

ددې حدیث مبارک تفصیلی تشریح په کتاب المغازی او کتاب الادب وغیره کښې راغلې ده.[6]

**ترجمة الباب سره مطابقت**:ددې حدیث مطابقت ترجمة الباب سره بالکل واضح دې.په دې کښې د تقسیم ذکر هم دې او د اقرع او عیینه رضی الله عنهما ذکر هم دې.کوم چې په مؤلفة القلوب کښې وو.

د باب نهم حدیث شریف د حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنهما دې

۲۹۸۲ [7] حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ أَسْمَاءَ ابْنَةِ أَبِي بَكْرٍ - رضى الله عنهما - قَالَتْ كُنْتُ أَنْقُلُ النَّوَى مِنْ أَرْضِ الزُّبَيْرِ الَّتِي أَقْطَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى رَأْسِي، وَهْيَ مِنِّي عَلَى ثُلُثَىْ فَرْسَخٍ. وَقَالَ أَبُو ضَمْرَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَقْطَعَ الزُّبَيْرَ أَرْضًا مِنْ أَمْوَالِ بَنِي النَّضِيرِ.[۴۹۲۶]

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/ ۷۴.والاستیعاب:۱/ ۷۰.باب اقرع.رقم (۶۹))_

[2]) عمدة القاری:۱۵/ ۷۴)_

[3]) پورته حواله)_

[4]) پورته حواله جات.والکوثر الجاری:۶/۱۲۹.والاستیعاب:۲/۱۳۵.رقم (۲۰۶۶) )_

[5]) عمدة القاری:۱۵/ ۷۴.وایضاانظر الاستیعاب:۲/۱۳۵)_

[6]) کشف الباری،کتاب المغازی:۵۵۷.د غه شان اوګورئ،کتاب الادب:۴۴۶)_

[7]) قوله: عن اسماء..... ":الحدیث،اخرجه البخاری ایضا،کتاب النکاح،باب الغیرة،رقم (۵۲۲۴). ومسلم، کتاب السلام،باب جواز ارداف المرأة الاجنبیة.....رقم (۵۶۹۲_۵۶۹۳))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

①**محمود بن غيلان** دا محمود بن غيلان "بفتح المعجمة وسكون المثناة تحت" رحمه الله دي [1]۔
②**ابواسامه** دا ابو اسامه حماد بن اسامه رحمه الله دي د دوی تذکره په كتاب العلم، "باب فضل من علم وعلم" کښې تيره شوې ده [2]۔
③**هشام** دا هشام بن عروة بن زبير قرشي رحمه الله دي
④**أبي** ددې نه مراد حضرت عروة بن زبير رحمه الله دي ددې دواړو حضراتو تذکره د بدء الوحی په "الحديث الثاني" کښې راغلې ده [3]۔
⑤**اسماء بنت ابی بکر** د حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما حالات تفصيل سره په كتاب العلم، "باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد......." کښې تير شوي دی [4]۔

**د حديث شريف ترجمه**: حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما فرمائی چې ما د هغې زمکې نه په سربانډې د لرګو بنډلې منتقل کولې کومه زمکه چې نبی عليه السلام حضرت زبير رضي الله عنه ته د جائيداد په طور ورکړې وه. او ددې زمکې او زما د کور مينځ کښې فاصله دوه ثلث فرسخه وه النوی د نواة جمع ده، بنډل ته وئيلې شی. او **اقطعة**: د **إقطاع الارض** نه ده. ددې معنی ده جائيداد ورکول. او على راسی جار مجرور أنقل سره متعلق دې. او بعضې حضراتو دا حال ګرځولې دې...... حال كونها على راسى....... [5]۔

"فرسخ" درې ميله مسافت ته وئيلې شی [6] نو د **ثلثی فرسخ** معنی شوه دوه ميله.

**قوله**: وقال أبو ضمرة عن هشام عن أبيه أن النبي صلى الله عليه وسلم أقطع الزبير أرضا من أموال بني النضير: او ابوضمره د هشام عن ابيه د طريق نه نقل کوی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم حضرت زبير رضي الله عنه ته د بنونضير په زمکو کښې زمکه ورکړې وه.

ابو ضمره "بفتح الضاد وسكون الميم" نه مراد حضرت انس بن عياض رحمه الله دي [7]۔

**د مذكوره تعليق مقصد**: دا تعليق امام بخاری رحمه الله د دوو فائدو بيانولو دپاره نقل کړې دې

---

[1] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب مواقيت الصلاة، باب النوم قبل العشاء لمن غلب)_
[2] ) كشف الباري: ۳/ ۴۱۴)_
[3] ) كشف الباري: ۱/ ۲۹۱، دغه شان اوګورئ: ۲/ ۴۳۲_ ۴۴۰)_
[4] ) كشف الباري: ۳/ ۴۸۷)_
[5] ) عمدة القاري: ۱۵/ ۷۵، وشرح القسطلاني: ۵/ ۲۲۷)_
[6] ) القاموس الوحيد، مادة فرسخ")_
[7] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب الوضوء، باب التبرز في البيوت)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

①ابو اسامه دا حدیث موصولا نقل کړې دې.او ابوضمره په دې معامله کښې ددهٔ مخالفت کړې دې او دا ئې مرسلا نقل کړې دې
②په دې تعلیق کښې د هغې زمکې تعیین او نبودنه شوې ده کومه چې حضرت زبیر رضي الله عنه ته ورکړې شوې وه چې هغه د یهودیانو وه او په مال فئ کښې وه
دې وضاحت سره د علامه خطابي رحمه الله هغه اشکال هم ختم شو.کوم چې وائي چې معلومه نه ده چې نبي عليه السلام د مدینې منورې زمکه د جائیداد په طور څنګه ورکړه.چې د کومې اوسیدونکي په رضا او خوښه باندې اسلام کښې داخل شوې نه وو.دا زمکه خو د انصارو وه. په دې کښې نبي عليه السلام څنګه تصرف اوکړو؟
ددې اشکال نقل کولو نه پس علامه خطابي رحمه الله ددې یو احتمالي جواب هم ذکر کړې دې چې کیدې شي دا په هغه زمکو کښې وه.کومې زمکې چې انصارو نبي عليه السلام ته حواله کړې وې چې په مونږ کښې ددې زمکو د اوبهٔ کولو او ددې د ساتلو طاقت نشته.د اوبو وغیره هلته څهٔ انتظام نهٔ وو.لهذا په دې زمکو باندې تاسو د خپلې رائې مطابق تصرف اوکړئ نو ددې وجې نه حضرت زبیر رضي الله عنه ته ورکړې شوې زمکه په دغه زمکو کښې وه هذا رائ الخطابي.(۱)
لیکن ددې اشکال جواب هم هغه دې کوم چې په تعلیق کښې ذکر شو چې دا زمکه د انصارو نهٔ وه بلکه د مدینې منورې د یهودیانو وه او په مال فئ کښې وه.(۲)
**یو اشکال او د هغې جواب:** دلته په روایت کښې د اقطاع ارض ذکر دې.او د ابوداؤد شریف په روایت کښې دی چې حضرت اسماء فرمائي چې: "أن رسول الله صلی الله علیه وسلم اقطع الزبیر نخلا"(۳)چې په جاګیر کښې نبي عليه السلام د کهجورو باغ ورکړې وو
په دې باندې دا اشکال کیږي چې د جاګیر ورکولو دستور دادې چې امام په خالي زمکه کښې جاګیر ورکوی.دې دپاره چې جاګیردار د هغې زمکې خیال اوساتي او هغه دوباره ژوندئ او آباده شي.باغ خو د مخکښې نه آباد وی نو هغه څنګه او ولې نبي عليه السلام په جاګیر کښې ورکړو؟
ددې جواب دادې چې ابوعبیده قاسم بن سلام د ابن سیرین رحمه الله نه نقل کړې دی.حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دا زمکه یو سړی ته ورکړې وه.هغهٔ دا آباده کړه او دا زمکه په شنو شنو اونو بوټو کښې بدله شوه.ددې نه پس هغې سړی نبي عليه السلام ته عرض اوکړو چې یا رسول الله:ددې زمکې د مشغولتیا د وجې نه زهٔ ستاسو په خدمت کښې حاضریدې نهٔ شم.ددې وجې نه تاسو دا زمکه زما نه واپس واخلئ.(۴)

---

(۱) اعلام الحدیث:۲/۱۴۵۸_۱۴۵۹.وفتح الباری:۶/۲۵۴.وعمدة القاری:۱۵/۷۵)_
(۲) فتح الباری:۶/۲۵۴.وعمدة القاری:۱۵/۷۵.دغه شان اوګورئ.بذل:۱۰/۳۱۳.وشرح السنة:۴/۴۱۳. کتاب البیوع.رقم (۲۱۸۶))_
(۳) ابو داؤد مع البذل:۱۰/۳۱۳.کتاب الخراج.....باب فی اقطاع الارضین.رقم (۳۰۶۹))_
(۴) کتاب الاموال.رقم (۶۷۶).بحواله تعلیقات مصنف ابن ابی شیبة.محمد عوامة:۱۷/۵۲۷.رقم (۳۳۶۵۹)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې وجې نه کيدې شي چې هم دغه زمکه نبی ﷺ حضرت زبير رضي الله عنه ته ورکړې وی. والله اعلم
**د مذکوره تعليق تخريج** ددې تعليق متعلق حافظ ابن حجر رحمه الله په هدى السارى کښې فرمائيلي دی چې "و رواية أبي ضمرة بإرسالها لم أجدها"[1]

ولكن.... الرواية بإرسالها رواها ابن سعد في الطبقات: ۳/۱۰۳، ومن بني اسد بن عبد العزى بن قصى: الزبير بن العوام، والبلاذرى في فتوح البلدان: ۱/۳۲، اموال بني النضير، وانظر ايضا تعليقات الشيخ محمد عوامة على المصنف: ۱۷/۵۲۸، رقم(۳۳۶۹۵))_.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت** په ترجمة الباب کښې دوه الفاظ دی. "وغيرهم" او "نحوه" ددې حديث مناسبت د ترجمة الباب لفظ وغيرهم سره هم کيدې شی او نحوهم سره هم کيدې شی وغيرهم سره داسې چې د باب په شروع کښې مونږ دا وئيلې دی چې که وغيرهم عام اومنلې شی نو دا ډيره غوره ده چونکه نبی ﷺ ته په دغه مالونو کښې پوره اختيار حاصل وو، ددې وجې نه به نبی ﷺ مسلمان او غير مسلم دواړو ته مال ورکوو په دې بنياد باندې حضرت زبير رضي الله عنه ته مذکوره جائيداد ورکړې شوې وو.
او نحوه سره ئې هم مطابقت کيدې شی چې په نحوه کښې چونکه خراج، فئ او جزيه وغيره ټول داخل دی. ددې وجې نه چې کوم حضرات مثلاً علامه خطابی(في قول)[2] دا وائی چې مذکوره زمکه د خمس نه ورکړې شوې وه نو مطابقت به من الخمس سره وی او کوم حضرات چې دې ته مال فئ وائی نو د هغوی په نزد به مناسبت د نحوه سره وی، ځکه چې فئ هم په دې کښې داخل دې او هم ددې حضراتو دا قول راجح دې. ځکه چې مشهور قول د بنو نضير د مال فئ دې. والله أعلم بالصواب

د باب لسم حديث شريف د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دې.

۲۹۸۳ ( ) حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لَمَّا ظَهَرَ عَلَى أَهْلِ خَيْبَرَ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ الْيَهُودَ مِنْهَا، وَكَانَتِ الأَرْضُ لَمَّا ظَهَرَ عَلَيْهَا لِلْيَهُودِ وَلِلرَّسُولِ وَلِلْمُسْلِمِينَ، فَسَأَلَ الْيَهُودُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يَتْرُكَهُمْ عَلَى أَنْ يَكْفُوا الْعَمَلَ، وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «نُقِرُّكُمْ عَلَى ذَلِكَ مَا شِئْنَا». فَأُقِرُّوا حَتَّى أَجْلاَهُمْ عُمَرُ فِي إِمَارَتِهِ إِلَى تَيْمَاءَ وَأَرِيحَا. [ر ۲۲۱۳]

---

[1] ) هدى السارى:۵۷، كتاب الجهاد، الفصل الرابع من المقدمة، هذا ما قاله الحافظ!)_
[2] ) اعلام الحديث للخطابى:۲/۱۴۵۴، رقم (۳۱۳۶)، وشرح السنة:۴/۴۱۳، رقم (۲۱۸۶))_
[3] ) قوله: عن ابن عمر.... ":الحديث، مر تخريجه في كتاب الاجارة، باب اذا استاجر ارضا....)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحدیث

① احمد بن المقدام دا احمد بن المقدام بن سلیمان عجلی بصری رحمه الله دي[1].

② فضیل بن سلیمان دا فضیل بن سلیمان نمیری بصري رحمه الله دي[2].

③ موسی بن عقبه دا د مغازی مشهور امام موسی بن عقبه رحمه الله دي[3].

④ نافع دا د ابن عمر رضي الله عنهما مولی نافع رحمه الله دي د دوی حالات په کتاب العلم، "باب ذکر العلم والفتیا فی المسجد" کښې تیر شوي دي[4].

⑤ ابن عمر د ابن عمر رضي الله عنهما حالات په کتاب الایمان، "باب الایمان......" کښې راغلي دي[5].

**د حدیث شریف ترجمه:** حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چې حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه یهود و نصاری د حجاز نه بهر ویستلي وو (ددې نه مخکښې) کله چې نبی علیه السلام خیبر په یهودیانو باندې فتح موندلې وه نو نبی علیه السلام د خیبر نه د هغوی د بهر ویستلو اراده فرمائیلې وه او کله چې د خیبر دا زمکه نبی علیه السلام فتح کړه نو دا د یهودیانو وه، د رسول الله وه او د مسلمانانو وه، نو (کله چې یهودیانو ته دا خبر ملاؤ شو چې ددې ځائې نه زمونږ د ویستلو اراده کړې شوې ده) هغوی نبی علیه السلام ته درخواست اوکړه چې مونږ ددې ځائې نه بهر نۀ کړې شو، په دې شرط باندې چې په زمکه کښې به کار یهودیان کوی او په پیداوار کښې به ستاسو نیمه حصه وی، نبی علیه السلام اوفرمائیل (ټهیک ده) مونږ تاسو په دې خبره باندې پرېږدو لیکن کوم وخت پورې چې زمونږ خوښه وی، دغه شان هغوی (د هغوی په زمکو باندې) برقرار پرېخودلې شو، تردې چې حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په دور کښې دوی د تیماء و أریحا طرفته جلاوطن کړل.

**د حدیث د بعضو حصو تشریح:** د باب په روایت کښې راغلي دی، "وکانت الارض لما ظهر علیها للیهود وللرسول وللمسلمین" په اکثرو نسخو کښې عبارت دغه شان دې، البته د ابن السکن په نسخه کښې لله وللرسول...... دې ښکاره خبره ده چې دا تعارض دې چې په اکثرو نسخو کښې لفظ د یهود دې او د ابن السکن په نسخه کښې لفظ د الجلالة یعنی لله دې.

دا تعارض په دوو طریقو سره دفع کړې شوې دې.

① طریقه د ترجیح چې د ابن السکن روایت راجح او صحیح دې

[1]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب البیوع، باب من لم یر الوساوس.....)_
[2]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة، باب المساجد التی علی طرق المدینة....)_
[3]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب اسباغ الوضوء)_
[4]) کشف الباری: ۶۵۱/۴)_
[5]) کشف الباری: ۶۳۷/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

② البته ابن ابی صفرة وائی چې د اکثرو نسخه هم صحیح ده. یعنی د للیهود الفاظ.

په دې صورت کښې به اشکال داوی چې بیا به د لما ظهر علیها معنی څهٔ وی؟ځکه چې د مسلمانانو د غلبې نه پس ددې څهٔ مطلب شو چې د یهودیانو زمکه؟

**د اشکال جوابات:** ددې اشکال مختلف جوابونه دی:

① د لما ظهرعلیها نه مراد دا دې چې کله د خیبر اکثر علاقه فتح شوه او هغه وخت پورې یهودیانو د مصلحت درخواست نهٔ وو کړې. واضحه خبره داده چې دغه پورې زمکه د یهودو وه او د مسلمانانو هم لیکن کله چې د یهودیانو له طرفه د مصلحت درخواست راغئ او په شرطونو باندې صلح اوشوه نو زمکه د الله او د هغهٔ د رسول ﷺ شوه.

②دا هم احتمال دې چې دلته مضاف محذوف وی، یعنی ثمرة الارض چې د زمکې پیداوار د یهودیانو او د نبی اکرم ﷺ وو.

③ لفظ د "ارض" مفتوحه او غیرمفتوحه(فتح شوې او غیرفتح شوې)دواړو ته شامل دې او د ظهور نه مراد غلبه ده چې مسلمانان په یهودیانو باندې غالب وو، په دې صورت کښې به زمکه د یهودیانو، د رسول الله مبارک او د مسلمانانو وی، یعنی فتح شوې زمکه د مسلمانانو او غیرفتح شوې زمکه د یهودیانو[1].

**قوله:** تيماء وأريحا: تیماء "بالفتح والمد" د شام طرفته یو وړوکې ښار دې، دا د شام او د وادی القری مینځ کښې چې د حاجیانو کومه لاره ده هلته واقع ده[2].

اریحاسره متعلق وضاحت د کتاب الخمس په شروع کښې تیر شوې دې[3].

**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت:** ظاهر کښې خو ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت نهٔ ښکاری ځکه چې په دې کښې نهٔ د مؤلفة القلوب ذکر شته او نهٔ د مال ورکولو؟

نو بعضې حضراتو وئیلې دی چې مطابقت موجوددې، په حدیث مبارک کښې راغلې دی، "وكانت الارض لما ظهرعليها لليهود وللرسول وللمسلمين" ددې الفاظو نه مصنف ترجمه ثابته کړې ده. هغه ځکه چې هرکله دغه زمکه د الله تعالی او د رسول وه نو په هغې کښې دوی ته د تصرف کولو حق هم حاصل وو، چې چاته نبی علیه السلام ورکول اوغواړی نو ورکولې شی، په دې کښې مؤلفة القلوب هم داخل دی او غیرمؤلفة القلوب هم داخل دی. کماذکرناقبل.

البته د تیولو نه غوره توجیه د حضرت گنگوهی رحمه الله ده، کومه چې هغوی په لامع کښې ذکر کړې ده. د هغې خلاصه داده چې د خیبر زمکه یهودیانو ته په مزارعت باندې ورکړې شوې وه، اوس چې به کله نبی علیه السلام خارص د خرص دپاره لیږلو نو ورته به ئې حکم کوو چې د خرص

---

[1] ) فتح الباری:۲۵۵/۶، وعمدة القاری:۷۵/۱۵)_

[2] ) معجم البلدان:۶۷/۲، باب التاء والیاء وما یلیهما)_

[3] ) اوګوری: باب قول النبی ﷺ:احلت لکم الغنائم....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نه پس ربع يا ثلث ددې يهوديانو دپاره پريږدئ هم دا وركول دى او ددې وركولو مقصد ښكاره خبره ده چې د زړونو ساتل وو.

بيا چې د وركولو دا كوم عمل دې نو دا به د خمس او د خمس په شان مالونو نه وو، ځكه چې كوم پيداوار به هم حاصليدۀ نو اول به د هغې خمس ويستلې شو. بيا په مجاهدينو كښې تقسيميدۀ، اوس په دې ځان پوهه كړئ چې مزارعت په نيمه باندې وو. بيا خارص ته حكم وو چې د ثلث يا ربع وغيره نصف نه علاوه هم د دوى دپاره پريخودلې شى. گويا اكثره حصه يهوديانو ته لاړه او د مسلمانانو په حصه كښې، دغه شان په خمس كښې كمې راغئ. نو په خمس كښې هم يهوديانو ته ملاؤ شوه او د مسلمانانو (مجاهدينو) په حصه كښې هم هغوى ته ملاؤ شوه ځكه چې د مجاهدينو او د خمس دواړو حصې په واضحه توگه سره د ثلث يا ربع وركولو د وجې نه كمې شوې وې. د حضرت الفاظ دادى:

"ولعل ايراد هذه الرواية ههنا لاجل ان النبى ﷺ كان يامر اصحابه ان يتركوا لهم بعد الخرص ربعا او ثلثا، كما تشهد به الروايات، وليس ذلك الا اعطاء؛ فكان هذا الحديث مما يناسب الباب باعتبار اعطاء الغير المؤلفة ان اريد به المؤمنون، وان كان اعم ممن آمن، ولم يكمل ايمانه بعد، وممن لم يكن مؤمنا بعد، فهو من قبيل اعطاء المؤلفة، وكان ذلك اعطاء من الخمس ونحوه معا؛ لان ما كان يجئ الى المسلمين كان يخمس منه اولا، ثم يقسم بين الغانمين على حسب حصصهم، فما انتقص من نصيبهم وجباياتهم بترك الربع والخمس والثلث ونحوه انتقص بحسبه من الخمس ايضا، فكان هذا الحط لهم من المسلمين اعطاء ايضا".

مولانا يحيى رحمه الله ددې عبارت د نقل كولو نه پس فرمائى:

"فافهم، فانه غريب، وكم للاستاذ مثل ذلك من عجيب!"[1].

## ⑳ باب: مَا يُصِيبُ مِنَ الطَّعَامِ فِي أَرْضِ الْحَرْبِ

**د ترجمة الباب مقصد:** كه يو مجاهد ته په دارالحرب كښې د خوراك دپاره څۀ ملاؤ شى، يا د خپلې سورلۍ دپاره گياۀ ملاؤ شى نو د هغې خوړل او استعمالول به ددې مجاهد دپاره جائز وى يا نۀ؟ دا اختلافى مسئله ده.

① د جمهور فقهاؤ په نزد ددې خوراك او استعمال جائز دې، په خوراك كښې هر هغه څيز داخل دې د كوم څيز خوړل چې عام طور سره د خلقو عادت وى، خواه د غنيمت د تقسيم نه وړاندې وى يا وروستو، د امام اجازت وى يا نۀ وى، ددې وجه دا ده چې په دارالحرب كښې د خوراك څكاك د څيزونو ملاويدل عام طور سره گران وى، ددې وجې نه د ضرورت له كبلې دې ته جائز وئيلې شوې دى، بيا د جمهورو په نزد كه ضرورت نۀ وى نو بيا هم جائز دى.

② البته بعضې حضراتو مثلاً امام زهرى او اوزاعى وغيره دا د امام اجازت سره مقيد كړې دى. او سليمان بن موسى دا فرمائى چې ابتداءً خو صحيح دى ليكن كه امام منع اوكړى نو

[1] لامع الدرارى: ٧/٣١٣_٣١٤، وانظر ايضا تعليقاته: ٧/٣١٣.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بیا جائز نۀ دی.هم دا قول د امام محمد رحمه الله نه هم روایت دې.امام بخاری رحمه الله دې ترجمة الباب سره د جمهور علماؤ تائید کړې دې او دا فرمائی چې په دې څیزونو کښې به خمس وغیره نۀ جاری کیږی،بلکه د مجاهدینو دپاره به ددې خوراک او څناورو باندې خوړل وغیره جائز او مباح وی(۱).

③: د احنافو په نزد په دې کښې نور وسعت هم شته.هغوی په دې حکم کښې دا څیزونه هم داخل ګنړی لرګی،اسلحه،اس،او هغه تیل چې تقسیم شوې نۀ وی(۲).

بیا د جمهورو په نزد پورته ذکر شوې حکم دارالحرب سره خاص دې،دا څیزونه څان سره دارالاسلام ته راوړل جائز نۀ دی،که داسې اوکړې شو نو دا څیزونه به په غنیمت کښې داخلول ضروری وی(۳).

اوس د باب احادیث اوګورئ،امام بخاری رحمه الله د جمهورو د مؤقف ثابتولو دپاره دلته درې حدیثونه ذکر کړې دی،چې په هغې کښې اولنې د باب حدیث د حضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه دې.

۲۹۸۴:(۴)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلاَلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ -رضى الله عنه- قَالَ كُنَّا مُحَاصِرِينَ قَصْرَ خَيْبَرَ، فَرَمَى إِنْسَانٌ بِجِرَابٍ فِيهِ شَحْمٌ، فَنَزَوْتُ لآخُذَهُ، فَالْتَفَتُّ فَإِذَا النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- فَاسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ.[۳۹۷۷، ۵۱۸۹]

## رجال الحدیث

①ابوالولید: دا ابوالولید هشام بن عبدالملک طیالسی رحمه الله دې.د دوی تذکره په دې کتاب الایمان،"باب علامة الایمان حب الانصار"کښې تیر شوې دی(۵).

---

(۱) فتح الباری:۲۵۵/۶،وشرح النووی علی مسلم:۹۷/۲،واعلاء السنن:۱۲۹/۱۲،وعمدة القاری: ۷۶/۱۵، والاوجز :۱۵۷/۹،والدر المختار:۲۵۴/۳،والمغنی:۴۴۵/۸،وشرح السیر الکبیر:۱۲۰/۲،باب ما یستعمل فی دار الحرب،ویؤکل ویشرب)_

(۲) الدر المختار:۲۵۴/۳)_

(۳) ددې مسئلې د نور وضاحت او شرطونو دپاره اوګورئ، السیر الکبیر مع شرحه: ۱۲۰/۲_۱۲۳، والمغنی: ۲۲۳/۹_۲۲۴،=رقم (۷۵۵۴)،والاوجز:۱۵۱/_۱۶۳،واعلاء السنن:۱۳۷/۱۲،والموسوعة الفقهیة: ۳۰۷/۱_۳۰۹، (غنیمة:الاخذ من المغنیمة.....)،رقم (۱۸))_

(۴) قوله: عن عبدالله..... "الحدیث:اخرجه البخاری ایضا،کتاب المغازی،باب غزوة خیبر،رقم (۴۲۱۴)، وکتاب الذبائح والصید،باب ذبائح اهل الکتاب وشحومها.....رقم (۵۵۰۸)،ومسلم،کتاب الجهاد، باب جواز الاکل من طعام الغنیمة.....رقم (۴۶۰۵_۴۶۰۶)،وابو داود،کتاب الجهاد،باب اباحة الطعام فی ارض العدو، رقم (۲۷۰۲)،والنساءی،کتاب الضحایا،باب ذبائح الیهود،رقم (۴۴۴۰))_

(۵) کشف الباری:۳۸/۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲ شعبه: دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج عتکی رحمه الله دي د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المسلم من سلم........" کښې تیر شوي دی(۱).

۳ حمید بن هلال: دا حمید بن هلال عدوی بصری رحمه الله دي(۲).

۴ عبدالله بن مغفل: دا د نبی علیه السلام صحابی حضرت عبدالله بن مغفل (بزنة محمد) رضی الله عنه دي(۳).

**قوله: قال: كنا محاصرين قصر خيبر، فرمى إنسان بجراب فيه شحم:** حضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه فرمائی چې مونږ د خیبر د محل محاصره کړې وه چې (د پورته خائې نه) یو سړی د څرمنې یو تهیلئ راویشتله، چې په هغې کښې وازګه وه.

جراب مزود ته وائی، یعنی د لارې د توښې تهیلئ، کومه چې د څرمن نه جوړه شوې وی. دا د جیم کسرې او فتحې دواړو سره لوستلې شی، صحیح کسره ده. ددې جمع أجربه وجُرُب ده(۴).

**قوله: فنزوت لآخذه:** ما د هغې د نیولو دپاره تیزئ سره توپ اووهلو.

نزوت نون او زای سره" ددې معنی ده توپ وهل، دا د باب نصر نه دي(۵).

د ابوداؤد(۶) د سلیمان بن المغیره په روایت کښې دا هم اضافه ده: "فالتزمته، فقلت: لا أعطي اليوم أحداً من هذا شيئاً" چې "ما هغه تهیلئ اونیوله او ما اووئیل چې نن ورځ به زهٔ هیچاته هم ددې نه څهٔ نهٔ ورکوم".

او د ابن وهب یو روایت چې د معضل سند (۷) سره روایت دې، هغې کښې هم دا راغلې دی چې حضرت کعب بن عمروبن زیدانصاری رضی الله عنه هغه تهیلئ د هغوی نه واخسته. چې په دې باندې نبی علیه السلام حضرت کعب ته اوفرمائیل چې هغهٔ ته خپله تهیلئ ورکړه(۸).

**قوله: فالتفت، فإذا النبي صلى الله عليه وسلم، فاستحيت منه:** زهٔ واپس شوم نو اومې لیدل چې اچانک نبی علیه السلام هلته موجود وو نوماته د نبی علیه السلام نه حیا راغله (یعنی اوشرمیدم).

---

[۱] ) كشف الباري: ۶۷۸/۱)_
[۲] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الصلاة، باب يرد المصلي من مربين يديه)_
[۳] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب مواقيت الصلاة، باب من كره ان يقال للمغرب....)_
[۴] ) عمدة القاري: ۷۶/۱۵، وفتح الباري: ۲۵۶/۶)_
[۵] ) پورته حواله جات، والقاموس الوحيد، مادة نزو")_
[۶] ) سنن ابى داود، كتاب الجهاد، باب اباحة الطعام فى ارض العدو، رقم (۲۷۰۲))_
[۷] ) والمعضل_بفتح الضاد_: ما سقط من سنده اثنان فصاعدا مع التوالى كقول مالك (ابن انس): قال رسول الله صلى الله عليه وسلم (فقد ترک فيه: نافعا، ثم ابن عمر)، وقول الشافعي: قال ابن عمر كذا (فقد ترک فيه: مالكا، ثم نافعا)=". قواعد فى علوم الحديث للعثمانى: ۴۱، من الديباج المذهب: ۳۷، وتعليقات عبد الفتاح ابى غدة على قواعد....)
[۸] ) فتح الباري: ۲۵۶/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"اذا" مفاجاتيه ده. او مطلب دادې چې کله زۀ واپس شوم نو اچانک مې نبی ﷺ اوليدلو نو ماته حيا راغله، ځکه چې نبی ﷺ زما کار ليدلې وو او کوم الفاظ چې ما وئيلې وو هغه ئې اوريدلې وو.(۱). ددې نه هغه عزت او توقير هم واضح شو کوم چې د نبی ﷺ دپاره د صحابه کرامو ﷺ په زړونو کښې وو. دغه شان دا هم معلومه شوه چې دې حضراتو به د غيرت او حيا نه خلاف کارونو نه ځنګه ځان بچ ساتلو او د داسې کارونو نه به لرې لرې اوسيدل.(۲).

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** ترجمة الباب سره ددې حديث مطابقت د نبی ﷺ په انکار نۀ کولو کښې دې چې نبی ﷺ هغوی اوليدل چې د دشمن د زمکې نه خوراک کوی، ددې باوجود ئې ورته هم هيڅ اونۀ وئيل، بلکه د مسلم شريف په روايت کښې خو دا هم راغلې دی: "**فاذا رسول الله صلى الله عليه وسلم متبسماً**"(۳) چې نبی ﷺ خندل. او دا خبره د نبی ﷺ په رضامندئ باندې دلالت کوی. ددې نه علاوه د ابوداؤد طيالسی(۴) په روايت کښې دا اضافه هم ده، "**فقال: هولك**" چې نبی ﷺ اوفرمائيل چې دا تهيلئ ستاسو ده.(۵)

ددې حديث د نور وضاحت دپاره اوركوئ، **كشف البارى، كتاب المغازى: ۴۲۲_۴۲۳، وكتاب الذباءح والصيد، باب ذباءح اهل الكتاب: ۲۷۴_۲۷۶_**.

ددې ټول تفصيل نه ددې کار جواز معلوميږی.

دويم حديث د حضرت ابن عمر ﷺ دې.

**۲۹۸۵**(۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ كُنَّا نُصِيبُ فِي مَغَازِينَا الْعَسَلَ وَالْعِنَبَ فَنَأْكُلُهُ وَلَا نَرْفَعُهُ.

## رجال الحديث

① **مسدد:** دا مسدد بن مسرهد ﷫ دې. د دوی حالات په **كتاب الايمان، "باب من الايمان أن يحب لاخيه......"** کښې تير شوې دی.(۷).

---

(۱) پورته حواله، عمدة القارى: ۷۶/۱۵، والكوثر الجارى: ۱۳۰/۶_

(۲) پورته حواله جات_

(۳) مسلم شريف، كتاب الجهاد، باب جواز الاكل من.....، رقم (۴۶۰۵)_

(۴) مسند ابى دواد الطيالسى: ۴۹۱/۱، وما اسند عن عبدالله بن مغفل ﷺ، رقم (۹۵۹)_

(۵) فتح البارى: ۲۵۶/۶، وعمدة القارى: ۷۶/۱۵_

(۶) قوله: عن ابن عمر ﷺ: "الحديث، تفرد به البخارى، ولم يخرجه الا فى هذا الموضوع) تحفه الاشراف: ۲۷۰/۶، رقم (۷۵۵۸)_

(۷) كشف البارى: ۲/۲_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

③حماد بن زید: دا حماد بن زید بن درهم رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب المعاصی من أمرالجاهلیة......." کښې راغلې ده.(١).

④ایوب: دا ایوب سختیانی رحمه الله دې. د دوی تفصیلی تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الایمان" کښې راغلې ده.(٢).

⑤نافع: دا حضرت ابن عمر رضی الله عنهما مولی حضرت نافع رحمه الله دې. د دوی تفصیلی حالات په کتاب العلم، "باب ذکر العلم والفتیا فی المسجد" کښې تیر شوې دی.(٣).

⑥ابن عمر رضی الله عنه: د حضرت ابن عمر رضی الله عنه حالات په کتاب الایمان، "باب الایمان...... " کښې راغلې دی.(٤).

**قوله: عن ابن عمر رضی الله عنهما قال: کنا نصیب فی مغازینا....:** د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې، فرمائی چې مونږ به په خپلو جنګونو کښې شهد او انګور حاصلول او هغه به مو خوړل.

دا روایت اسماعیلی او ابونعیم هم نقل کړې دې، د دوی په روایت کښې د "الفواکه" اضافه هم ده. دغه شان اسماعیلی یو بل روایت د ابن المبارک رحمه الله د طریق نه نقل کړې دې. په هغې کښې د غوړو تذکره هم شته.(٥).

ددې نه علاوه یو بل روایت د جریر بن حازم رحمه الله د طریق نه هم روایت دې. په هغې کښې دی "أصبنا طعاماً وأغناماً یوم الیرموک، فلم یقسم.(٦)" چې د غزوه یرموک په موقع باندې مونږ ته خوراک او چیلۍ حاصلې شوې، چې تقسیم نهٔ شوې، یعنی هغه په غنیمت کښې شاملولو سره تقسیم نهٔ شوې، بلکه دا څیزونه مونږ سره پاتې شو.

د یرموک والا دا روایت موقوف دې، ځکه چې په دې کښې وضاحت دې چې دا د نبی علیه السلام د زمانې واقعه ده. لیکن په دې موقوف روایت کښې هم څهٔ حرج نشته ځکه چې د مرفوع روایت موافق دې.(٧).

---

(١) کشف الباری:٢/٢١٩_

(٢) کشف الباری:٢/٢٦_

(٣) کشف الباری: ٤/٦٥١_

(٤) کشف الباری:١/٣٦٧_

(٥) فتح الباری:٦/٢٥٦،وعمدة القاری:١٥/٧٦،وکذا فی روایة سعید بن منصور فی سننه:٢/٢٧١، لفظ الثمار". وهو متناول للفواکه،رقم (٢٧٣٥)،وشرح الزرقانی:٣/٢٣،وسنن البیهقی الکبری:٩/١٠١،کتاب السیر. باب السریة تاخذ العلف.....رقم (١٧٩٩٤))_

(٦) تاریخ مدینه دمشق لابن عساکر:٣١/٨٣،حرف العین)_

(٧) عمدة القاری:١٥/٧٦،وفتح الباری:٦/٢٥٦)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: ولا نرفعه:** او دا به مونږ نۀ جمع كول.
ددې جملې يو مطلب خو دادې چې مونږ به دا نۀ ذخيره كوله.دويم مطلب دادې چې مونږ به دا د غنيمت ذمه دار يا نبى عليه السلام ته نۀ حواله كوو ،نۀ به مو د هغې د خوراک اجازت طلب كوو ځكه چې د مخكښې نه به د داسې قسم څيزونو د استعمال اجازت وو.(۱).
**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:**ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت بالكل ښكاره دې.(۲).حضرت ابن عمر رضى الله عنهما د نبى عليه السلام د زمانې د جنګونو په باره كښې فرمائى چې مونږ به د خوراک څكاک عام څيزونه استعمالول،او دا د جواز دليل دې.والله أعلم
د باب دريم حديث شريف د حضرت عبدالله بن ابى اوفى رضى الله عنه دې.

۲۹۸۲:(۳)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى -رضى الله عنهما- يَقُولُ أَصَابَتْنَا مَجَاعَةٌ لَيَالِيَ خَيْبَرَ، فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ خَيْبَرَ وَقَعْنَا فِي الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ، فَانْتَحَرْنَاهَا فَلَمَّا غَلَتِ الْقُدُورُ، نَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- اكْفَئُوا الْقُدُورَ، فَلاَ تَطْعَمُوا مِنْ لُحُومِ الْحُمُرِ شَيْئًا. قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَقُلْنَا إِنَّمَا نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- لأَنَّهَا لَمْ تُخَمَّسْ. قَالَ وَقَالَ آخَرُونَ حَرَّمَهَا الْبَتَّةَ. وَسَأَلْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ فَقَالَ حَرَّمَهَا الْبَتَّةَ.[۳۹۸۳- ۳۹۸۶، ۵۲۰۵]

## رجال الحديث

①**موسى بن اسماعيل:**دا موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله دې.د دوى حالات د بدء الوحي په "الحديث الرابع" كښې تير شوې دى.(۴).
②**عبدالواحد:**دا عبدالواحد بن زياد عبدى بصرى رحمه الله دې.د دوى تذكره په كتاب الايمان،"باب الجهادمن الايمان" كښې تيره شوې ده.(۵).
③**الشيبانى:**دا سليمان بن ابى سليمان كوفى شيبانى رحمه الله دې(۶).

---

(۱) پورته حواله جات،وشرح القسطلانى:۵/۲۲۸)_
(۲) عمدة القارى:۱۵/۷۶،والكوثر الجارى:۶/۱۳۱)_
(۳) قوله: سمعت ابن ابى اوفى..... "الحديث،اخرجه البخارى ايضا،كتاب المغازى،باب غزوة خيبر،رقم (۴۲۲۰و۴۲۲۲،و۴۲۲۴)،وكتاب الذبائح والصيد،باب لحوم الحمر الانسية،رقم (۵۵۲۶)،ومسلم،كتاب الصيد والذبائح،باب تحريم اكل لحم الحمر الانسية(۵۰۱۰_۵۰۱۱)،والنسائى،كتاب الصيد،باب تحريم اكل لحوم الحمر الاهلية،رقم (۴۳۴۴)،وابن ماجه،كتاب الذبائح،باب لحوم الحمر الاهلية،رقم (۳۱۹۲))_
(۴) كشف البارى:۱/۴۳۳)_
(۵) كشف البارى:۲/۳۰۱)_
(۶) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الحيض،باب مباشرة الحائض)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ابن ابی اوفی: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه دي[1].
خبرداري: د حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه ددي حديث تشريح په کتاب الذبائح والصيد کښې راغلي ده.[2].

**قوله: قال عبدالله: فقلنا إنما نهى النبي صلى الله عليه وسلم، لأنها لم تخمس. قال: وقال آخرون: حرمها البتة:** عبدالله وائی نو مونږ اووئيل چې نبی عليه السلام ددې خرونو د غوښې د خوړولو نه ددې وجې نه منع اوفرمائيله چې ددې خمس نۀ وو ويستلې شوې، فرمائی: او بعضې نورو صحابه کرامو اووئيل چې نبی عليه السلام مطلقاً ددې خرونو تحريم فرمائيلې دې يعنی دا خرونه مطلقاً حرام دی.
مطلب دادې چې کله نبی عليه السلام ددغه خرونو دغوښې نه ډک، او جوشيدلې کټوو د راغورزولو حکم اوکړو او د هغې د خوراک نه ئې منع اوفرمائيله نو ددې د حرمت د علت په باره کښې د صحابه کرامو دوه رائې پيدا شوې.
د بعضې صحابه کرامو رضي الله عنهم رائې داوه چې چونکه دا په غنيمت کښې شاملول پکار وو او په دې کښې تقسيم جاری شوې نۀ وو، ددې وجې نه نبی عليه السلام منع اوفرمائيله ځکه چې دا د غنيمت حصه ده او په دې کښې تصرف جائز نۀ دې.
او د بعضې نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم رائې دا وه چې نبی عليه السلام ددې د خوراک نه مطلقاً منع فرمائيلې ده او مطلب دادې چې دا د خوراک څيز نۀ دی.[3].
په دې عبارت کښې د عبدالله نه مراد ابن ابی اوفی رضي الله عنه دې، لکه د مغازی په روايت کښې په بل طريق سره ددې وضاحت راغلې دې.[4].

**قوله: وسئلت سعيد بن جبير فقال: حرمها البتة:** او ما د سعيد بن جبير رحمه الله نه تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چې نبی عليه السلام دا قسم خرونه مطلقاً حرام ګرځولې دی. ددې جملې ويونکې (قائل) شيبانی دې.[5] او دا فرمائی چې هرکله ما په دې مذکوره مسئله کښې د صحابه کرامو دوه رائې اوليدې نو د تحقيق کولو دپاره ما د حضرت سعيد بن جبير نه تپوس اوکړو چې ددې ممانعت څۀ وجه وه؟ نو هغوی اوفرمائيل، حرمها البتة.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** ددې حديث مطابقت هم ترجمة الباب سره واضح دې. ځکه چې په دې سلسله کښې د ماکولاتو (د خواکه څکاک څيزونه وغيره) طرفته د

---

[1]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء، باب من لم ير الوضوء الا من المخرجين....)_
[2]) کشف الباری، کتاب الذبائح والصيد: ۲۹۳_۲۹۵)_
[3]) فتح الباری: ۲۵۷/۶، وعمدة القاری: ۷۷/۱۵)_
[4]) پورته حواله جات، وکتاب المغازی، باب غزوة خيبر، رقم (۴۲۲۰))_
[5]) عمدة القاری: ۷۷/۱۵، وفتح الباری: ۲۵۷/۶، وشرح القسطلانی: ۲۲۸/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

صحابه کرامو عادت د جلدئ وو، که داسې نۀ وه نو دې حضراتو به د نبی علیه السلام په موجودګئ کښې د داسې قسم قدم پورته کولو نه ځان ساتلو. دلته داسې اونۀ شوه نو ددې نه ثابته شوه او معلومه شوه چې د جنګ دوران کښې د خوراک څکاک د عام څيزونو خوراک جائز دې[1]. والله أعلم بالصواب

**وبه تم كتاب الخمس، ويليه كتاب (أبواب) الجزية والموادعة إن شاء الله.**

..........................................

بسم الله الرحمن الرحيم

# ۶۲ـ أبواب الْجِزْيَةِ وَالْمُوَادَعَةِ

**د نسخو اختلاف:** د بخاری شریف د نسخو په اکثرو روایتو کښې عنوان "باب الجزية..... "راغلې دې او لفظ د "کتاب" سره عنوان صرف د ابو نعیم او ابن بطال په نسخو کښې مذکور دې. او هم دا زیات مناسب دې لکه څنګه چې د حافظ رحمه الله رائې ده[2]. او بسمله (بسم الله الرحمن الرحيم) هم د ابوذر نه سوا په ټولو نسخو کښې موجوده ده[3].

## ① باب: الْجِزْيَةِ وَالْمُوَادَعَةِ مَعَ أَهْلِ الْحَرْبِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته د امام بخاری رحمه الله مقصد د جزیه احکامات او کافرانو سره د صلح کولو احکامات بیانول دی، کماقاله العینی[4].

لکه اهل حرب سره د وخت او د حالاتو په مناسبت سره صلح کیدې شی او کوم خلق چې ذمیان دی، د هغوی نه به جزیه اخستلې شی. تفصیل راروان دې.

**د جزیة لغوی معنی:** د لغت عالمانو او د حدیث شارحینو ددې لفظ درې معنې بیان کړې دی:

① لفظ "جزية" د جزأ يجزئ تجزية نه مشتق دې، ددې معنی ده تقسیمول او یو څیز حصه حصه کول، جزیه هم په ذمیانو باندې تقسیمیږی.

② دا کلمه د جزاء نه مشتق ده، ددې معنی ده بدله، ځکه چې د جزیې د ادا کولو په بدله کښې ذمیانو ته په دارالاسلام کښې د اوسیدلو او د پاتې کیدلو اجازت ورکولې شی.

---

[1] ) پورته حواله جات، والکوثر الجاری: ۱۳۱/۶)_
[2] ) عمدة القاری: ۷۷/۱۵، وفتح الباری: ۲۵۸،۲۵۹/۶، وشرح ابن بطال: ۳۲۷/۵)_
[3] ) عمدة القاری: ۱۵/وفتح الباری: ۲۵۸/۶، وارشاد الساری: ۲۲۹/۵)_
[4] ) عمدة القاری: ۷۷/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

(۳)دا د اجزاء، افعال نه ده. ددې معنی ده کفایت کول. وجه تسمیه ددې داده چې جزیه ادا کول هم د دغه سړي د عزت، ناموس، مال وجان د حفاظت دپاره کافي کیږي، په کوم سړي باندې چې جزیه مقرر کړې شي.[1]

**اصطلاحي معنی:** جزیه هغه مقرر مال دې کوم چې د کافر نه په دارالاسلام کښې د اوسیدلو د وجې نه او ددې په عوض کښې اخستلې شي.[2]

یا داسې اووایئ چې جزیه هغه مال دې کوم چې د ذمي د وجې نه په اهل کتابو باندې مقررولې شي.[3]

**د موادعة معنی او مراد:** موادعه د باب مفاعله مصدر دې ددې معنی ده پریخودل، او دلته ددې نه مراد دا دې چې د څۀ مصلحت په بناء باندې اهل حرب سره قتل وقتال د یو معلومې مودې پورې پریخودل.[4]

بیا د امام بخاری رحمه الله په دې الفاظو کښې "الجزیة والموادعة مع أهل الذمة والحرب" کښې لف نشرمرتب دې، ځکه چې د جزیه تعلق د ذمیانو سره او د موادعت تعلق د اهل حرب سره دې.[5]

**د جزیه مشروعیت:** ددې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چې د جزیه ثبوت او ددې مشروعیت د قرآن کریم، احادیث نبویه او د اجماع نه دې او د قیاس تقاضه هم داده. لکه د قرآن کریم دا آیت کریمه ﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ﴾ کوم چې امام بخاری رحمه الله هم دلته ذکر کړې دې، د جزیه د مشروعیت دپاره اصل اصیل دې.[6]

او په سنت کښې هم ددې په مشروعیت باندې ډیر احادیث مبارکه دی، مثلاً د حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه نه روایت دې چې هغوی د "جنګ نهاوند" په موقع باندې د کسری فوج ته د خطاب په وخت فرمائیلې وو:

"أمرنا نبینا رسول ربنا أن نقاتلکم حتی تعبدوا الله وحده أو تؤدوا الجزیة......"[7]

---

[1]) پورته حواله، وفتح الباری:۲۵۹/۶، ومعجم مقاییس اللغة:۱۴۵۵، والجامع لاحکام القرآن للقرطبی: ۱۱۴/۸، البنایة:۲۳۸/۷، باب الجزیة)_

[2]) اعلاء السنن:۴۲۹/۱۲)_

[3]) عمدة القاری:۷۷/۱۵، والنهایة فی غریب الحدیث والاثر:۷۱/۱)_

[4]) عمدة القاری:۷۷/۱۵، وفتح الباری:۲۵۹/۶، وتحفه الباری:۵۶۵/۳)_

[5]) پورته حواله جات)_

[6]) فتح الباری:۲۵۹/۶، وعمدة القاری:۷۸/۱۵، واعلاء السنن:۴۲۹/۱۲)_

[7]) اعلاء السنن:۴۳۰/۱۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دغه شان د امت مسلمه هم په دې باندې اجماع ده چې د ذمیانو نه به جزیه وصولیږي.[1]
هر چې قیاس دې نو د قیاس تقاضه هم داده چې د دوی نه جزیه وصول کړې شي، ځکه چې هرکله دا خلق زمونږ د مسلک او د دین تابع نهٔ دی نو زمونږ د ملک (دارالاسلام) نه د فائدې اخستلو کښې به دوی ته خامخا څهٔ نه څهٔ ورکول وی. دا خو د جزیه د وصولۍ ظاهری وجه شوه.[2]
ددې نه علاوه د جزیه په وصولولو کښې یو باطنی حکمت هم دې او هغه دا چې کله دوی جزیه ادا کړی او د وطن دویم نمبر خلق شمار شی نو د دوی نفس ته به خفگان اورسی او دوی په طبیعتونو کښې به د اسلام طرفته میلان پیدا شی، دې دپاره چې دوی هم ایک نمبر خلق شمار شی، دغه شان دوی چې کله د مسلمانانو سره لین دین او میل ملاپ ساتی او خپل مینځ کښې په معاملاتو کښې شرکت کوی نو دوی ته به د اسلام په صفتونو باندې د خبریدو موقع ملاؤ شی، نو ممکنه ده چې دا څیز د دوی د اسلام قبلولو سبب جوړ شی.[3]
دجزیه مشروعیت په اتمه (۸) هجرئ کښې اوشو یا په نهمه (۹) کښې، دواړه اقوال موجود دی.[4]
**یو شبهه او د هغې جواب:** ممکنه ده چې په ملحدینو کښې یو روشن خیال سړې دا شبهه پیش کړی چې د ذمیانو نه جزیه وصولول د دوی په کفر باندې رضامندی ده او دغه شان دوی لره په شرکیه مذهب باندې قائم اوسیدل مباح گرځولې شوې دی، د جزیه د ادا کولو په وجه باندې د اسلام په بدله کښې په کفر باندې د دوی برقرار اوسیدل څنگه صحیح کیدې شی؟
ددې شبهې جواب ډیر واضح دې، هغه دا چې جزیه نهٔ د اسلام بدل دې او نهٔ د اسلام قیمت، بلکه دا یو قسم ټیکس دې، چې په دارالاسلام کښې د اوسیدلو د وجې نه د دوی نه وصولولې شی، دوی ته د جان ومال، د عزت او ناموس د حفاظت ضمانت ددې جزئې په ادا کولو باندې ورکولې شی، او په معاملاتو کښې د دوی نه د اسلام د لحاظ ساتلو ضمانت اخستلې شی چې دا ذمیان به ددې احترام کوی.
دغه شان د دوی نه د جزیه د وصولولو مطلب بالکل دا نهٔ دې چې د دوی په کفر باندې رضامندی اختیارولې شی بلکه دا خو د هغوی په کفر اختیارولو باندې یو دنیوی سزا ده ځکه چې په دې کښې د دوی ذلت دې،
لکه د الله تعالی ارشاد مبارک دې: (...حتی یعطوا الجزیة وهم صاغرون)[5].
او د دوی نه جزیه اخستلو سره دوی ژوندی پریخودل خو داسې دی چې بغیر د جزیه اخستلو مونږ دوی پریږدو او دوی باندې څهٔ غرض نهٔ لرو، ځکه چې عقلاً هم دا خبره صحیح نهٔ ده چې

---

[1]) المغنی لابن قدامة: ۹۲۶۳/، وپورته حواله)_
[2]) احکام القرآن: ۱۳۳/۳، سورة التوبة، فصل، واعلاء السنن: ۴۳/۱۲، الجواب عن شبهة الملحدین فی الجزیة)
[3]) فتح الباري: ۲۵۹/۶)_
[4]) پورته حواله)_
[5]) التوبة: ۲۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دوی تیول قتل کړې شي، که دا کار صحيح وو نو الله تعالی به يو کافر د يو لمحې دپاره هم ژوندې نۀ وو پریخودلې، اوس که الله تعالی دوی ژوندی ساتلې دی نو ددې مطلب هم دادې چې دوی ته دا سزا ورکړې شي، دې دپاره چې دوی ته د کفر نه د توبې کولو توفيق ملاؤ شي او د ايمان طرفته رغبت ملاؤ شي، نو هرکله چې د الله تعالی دا مقصد دی نو په دې کښې هيڅ باك نشته چې د الله تعالی له طرفه دوی ته مهلت ورکړې شي، دا خو د الله تعالی په علم کښې ده چې بعضې به په دوی کښې ايمان راؤړی او بعضې به د دوی په نسلونو کښې ايمان راؤړی، نو ددې جزيه په وصولولو کښې او کفارو لره ژوندی پريخودلو کښې د الله تعالی ډير لوئې مصلحت دې.

بيا په دې کښې د مسلمانانو هم ډيرې فائدې دی، ځکه چې که چرته مسلمانان کافرو لره بالکل ژوندی نۀ پريږدی نو په دې کښې هم د مسلمانانو حرج دې، مثلاً په زمکو کښې زمینداری او د مجاهدينو خدمت به څوک کوی؟ دغه شان د اسلامی لښکر د خوراک څکاک انتظام به څوک کوی؟ د پلونو جوړول او د قلعه ګانو د جوړولو فريضه به څوک ادا کوی؟ ددې وجې نه دا ټولې خبرې هم په ذهن کښې ساتل پکار دی.[1]

وقول الله تعالى: قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ التوبة: ۲۹ أَذِلَّاءُ. و: المسكنة/البقرة: ۶۱/و/آل عمران: ۱۱۲/: مصدر المسكين، يقال: فلان أسكن من فلان: أحوج منه، ولم يذهب إلى السكون.

او د الله تعالی قول چې په اهل کتابو کښې څوک ايمان نۀ راؤړی او نۀ په قيامت باندې ايمان لری او نۀ هغه څيزونه حرام ګڼړی کوم څيزونه چې الله تعالی او د هغۀ رسول حرام ښودلې دی او نۀ رښتونې دين قبلوی، دوی سره جنګ اوکړئ، تردې چې دوی ماتحت شی او رعيت جوړيدلو سره جزيه ورکول منظور کړی.

**دايت کريمه شان نزول او مختصر تشريح:** هرکله چې په مشرکانو باندې اهل اسلام ته غلبه حاصله شوه، خلق ډلې ډلې اسلام کښې داخل شو، په جزيرۀ عرب کښې د مسلمانانو جرړې او بنياد مضبوط شو او د الله تعالی آخری دين، دين محمدی ﷺ ښۀ خور شو او ښۀ ترقی ئې اوکړه نو دا آيت نازل شو، کوم کښې چې الله تعالی اهل کتاب يهوديانو او عيسايانو سره د قتال کولو حکم فرمائيلې دې، هم دا وجه وه چې نبی علیه السلام اسلامی لښکر روميانو سره د قتال دپاره تيار کړو او خلقو ته ئې په دې کښې د شرکت کولو دعوت ورکړو، چې ددې په نتيجه کښې د غزوۀ تبوک واقعه پيښه شوه، ددې واقعه مشهوره ده.[2]

---

[1]) هذا ملخص ما قاله الرازی فی احكام القرآن: ۳/۱۳۳، فصل سورة التوبة، والعثمانی فی اعلاء السنن: ۱۲/۴۳۰، وكذا انظر البناية شرح الهداية: ۷/۲۳۸ و ۲۴۱)_

[2]) عمدة القاری: ۱۵/۷۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"يد "ائمه لغت ددې د شلو نه زياتې معنې بيان کړې دى.ليکن دلته د "يد "نه مراد قهر او غلبه ده [1].يا د نفس خوشحالى ده او هر هغه سړې چې د يو ظالم جابر اطاعت اختيار کړى او هغهٔ ته د زړهٔ په رضامندئ سره د لاس په ذريعه څهٔ ورکړى نو وئيلې شى: "أعطاه عن يد"

اوس به د (حتى يعطوا الجزية عن يد) معنى داوى: "تردې چې د زړهٔ په خوشئ سره جزيه ادا کړى".

او د قهر او غلبې د معنې په اعتبار سره به مطلب دا وى چې جزيه ادا کوونکى به د مغلوب او مقهور کيدو د وجې نه جزيه ادا کوى.ددې يو بل مطلب هم بيان کړې شوې دې چې جزيه دوى په خپل لاس باندې ادا کړى،د چا په ذريعې سره ئې نهٔ ورکوى.[2]. والله اعلم

أذلاء:دا د امام بخارى رحمه الله په نزد د (وهم صاغرون) تفسير دې،يعنى "صاغرون"معنى ذليل او حقير کيدل دى.لکه ابوعبيدپه خپل کتاب "المجاز"کښې ليکلې دى "الصاغر: الذليل، الحقير" [3] والمسكنة مصدر المسكين،يقال: أسكن من فلان أحوج منه.

او مسکنة د مسکين مصدر دې،لکه څنګه چې وئيلې شى أسكن من فلان يعنى هغه د فلانى نه زيات محتاج دې.د امام بخارى رحمه الله مشهور عادت دې چې هغه د څهٔ لړ مناسبت د وجې نه د قرآن کريم نور آيتونه هم د باب لاندې ذکر کوى او د هغې تفسير او تشريح کوى.دلته هم د مصنف رحمه الله ذهن بل طرفته منتقل شو او هغوى هم د اهل کتابو په باره کښې نازل شوې د يو بل آيت (وضربت عليهم الذلة والمسكنة) [4] تفسير شروع کړو چې لفظ "مسکنة" د مسکين مصدر دې لکه څنګه چې د أسكن من فلان معنى په أحوج من فلان سره بيانولې شى [5].

**قوله: ولم يذهب إلى السكون:** او امام بخارى د سکون طرفته تګ اونهٔ کړو

مطلب دادې چې امام بخارى رحمه الله د مسکين اشتقاق د سکون نه اونهٔ کړو ،بلکه هغوى دا د مسکنة نه ماخوذ نبودلې دې.ددې جملې ويونکې (قائل) څوک دې؟

ددې په باره کښې د حافظ صاحب رحمه الله خيال دادې چې ددې جملې صحيح قائل د بخارى راوى فربرى رحمه الله دې.[6].

**ترجمة الباب سره د آيت کريمه مناسبت:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چې ترجمة الباب سره دآيت کريمه مناسبت دآيت کريمه په دې حصه کښې دې: (حتى يعطوا الجزية عن يد وهم صاغرون) [7]

---

[1] ) پورته حواله،وتحفة البارى:۵۶۵/۳،والقاموس الوحيد،مادة "يدى"_
[2] ) فتح البارى:۲۵۹/۶،واحكام القرآن:۱۲۹/۳)_
[3] ) فتح البارى:۲۵۹/۶،وتحفة البارى:۵۶۵/۳،والقسطلانى:۲۲۹/۵،وعمدة القارى:۷۸/۱۵)_
[4] ) البقرة:۶۱)_
[5] ) عمدة القارى:۷۸/۱۵،وتحفة البارى:۵۶۵/۳،والقسطلانى:۲۲۹/۵،وفتح البارى:۲۵۹/۶)_
[6] ) فتح البارى:۲۵۹/۶)_
[7] ) عمدة القارى:۷۸/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: وَمَا جَاءَ فِي أَخْذِ الْجِزْيَةِ مِنَ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَىٰ وَالْمَجُوسِ وَالْعَجَمِ:** او د یهودیانو، نصاری، مجوسیانو او عجمیانو نه د جزئې د وصولولو په بیان کښې دا کتاب دې. دا د ترجمة الباب باقی حصه ده.

**جزیه به د چانه اخستلې شی؟** ددې ځائې نه اختلافی مسئله شروع کیږی چې جزیه به د کومو خلقو نه اخستلې شی، آیا صرف د اهل کتابو نه یا د نورو مذهبونو د تابعدارو خلقو نه هم؟ تفصیل لاندې ذکر کولې شی:

① د امام شافعی او احمد رحمة الله علیهما مذهب دادې چې جزیه به صرف د اهل کتابو او مجوسیانو نه اخستلې شی.[1] پاتې شو بت پرست، اهل هوی او باقی ټول کفار، نو د دوی نه به جزیه نهٔ قبلیږی، ددې ټولو خلقو له طرفه به صرف اسلام قابل قبول وی.[2]

هرچه مجوسیان دی نو چونکه د نبی کریم ﷺ نه ثابت دی چې هغوی د مجوسیانو نه جزیه اخستلې وه نو د سنت په ذریعې سره به په کتاب الله کښې تخصیص اوشی او د جزیه په حکم کښې به مجوسیان هم داخل شی.[3]

② د امام مالک رحمه الله مذهب دادې چې د جزئې حکم هر کافر ته شامل دې. ددې وجې نه به د هرکافر نه جزیه وصولولې شی، خواه کتابی وی یا مجوسی وی، هندو وی یا سیک. عرب وی یا عجم.[4]

لیکن د هغوی په نزد مرتد په دې عام کښې داخل نهٔ دې، یعنی د هغهٔ په حق کښې جزیه قابل قبول نهٔ ده، دده دپاره خو دوه صورتونه جائز دی، توبه یا قتل.

هم دا مذهب د امام اوزاعی او د شام د فقهاء کرامو هم دې.[5]

دې حضراتو په دې سلسله کښې استدلال د حضرت بریده رضی الله عنه د روایت نه کړې دې، کوم چې امام مسلم رحمه الله وغیره نقل کړې دې، حضرت بریده رضی الله عنه فرمائی:

"كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا أمر أميراً على جيش أو سرية أوصاه في خاصته بتقوى الله ومن معه من المسلمين خيراً، ثم قال: ......وإذا لقيت عدوكم من المشركين فادعهم إلى ثلاث خصال ـ أو خلال...... فإن هم أبوا فسلهم الجزية، فإن هم أجابوك فاقبل منهم، وكف عنهم......"[6].

---

[1]) پورته حواله، وفتح الباری:۶/۲۵۹، والاوجز:۶/۱۹۱، والمغنی:۹/۲۶۳، وکتاب الام:۲/۴/۱۷۴)_

[2]) المغنی:۹/۲۶۶، رقم:(۷۶۴۲))_

[3]) الفتح:۶/۲۵۹_۲۶۰، وکتاب الام:۲/۴/۱۷۲_۱۷۳، وعمدة القاری:۱۵/۷۸، واحکام القرآن:۳/۱۲۰)_

[4]) المدونة الکبری:۲/۴۶، وفتح الباری:۶/۲۵۹، وعمدة القاری:۱۵/۷۸)_

[5]) فتح الباری:۶/۲۵۹، وعمدة القاری:۱۵/۷۸)_

[6]) الحدیث اخرجه مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب تامیر الامام علی البعوث ووصیة.... رقم (۴۵۲۱_۴۵۲۴)، و ابو داود، اول کتاب الجهاد، باب فی دعاء المشرکین، رقم (۲۶۱۲_۲۶۱۳)، والترمذی، ابواب السیر، باب ما جاء فی وصیة ﷺ فی القتال، رقم (۱۶۱۷)، وابن ماجه، ابواب الجهاد، وصیة الامام، رقم (۲۸۵۸)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى "دنبى عليه السلام عادت مباركه خو دا وو، چې كله به ئې څوک دلښكر يا دسريې امير مقررولو، نوعادت مباركه دا وو چې مذكوره امير ته به ئې د خپل ذات او د عامو مسلمانانو په باره كښې د الله تعالى نه د ويريدو وصيت فرمائيلو، بيا به ئې ارشاد فرمائيلو...... او كله چې دشمن سره مخامخ شئ نو تاسو هغوى ته د دريو څيزونو دعوت وركړئ...... كه هغوى انكار اوكړى نو د هغوى نه جزيه طلب كړئ، كه په دې باندې راضى شى نو د هغوى نه جزيه قبول كړئ او هغوى سره څۀ غرض مۀ ساتئ......"

ددې حديث د عموم نه دا حضرات استدلال كوى چې دا حديث ټولو مشركينو او كافرانو ته عام دې، لكه څنګه چې دلته نبى عليه السلام د مشركين لفظ استعمال فرمائيلې دې، لهذا د كوم ځائې شرک چې هم وى، هر قسم شرک چې وى نو هغه ددې حديث په عموم كښې داخل دې.[1] اهل كتاب هم ښكاره خبره ده چې د هغوى اكثره حصه خلق مشركان دى، څوک عزير عليه السلام ته ابن الله وائى او څوک عيسى عليه السلام ابن الله منى.

دغه شان دا حضرات ددې خبرې نه هم دليل نيسى چې نبى عليه السلام د هجر د مجوسيانو نه جزيه وصول كړې ده، او دا ددې خبرې تقاضه كوى چې دلته د آيت كريمه د مفهوم مخالف اعتبار نۀ دې كړې شوې، بلكه مفهوم مخالف لره اعتبار وركول دلته پريخودلې شوې دى، نو هر كله چې ددې حديث په ذريعې سره د اهل كتابو تخصيص اوكړې شو نو معلومه شوه چې په آيت كريمه كښې مذكوره كلمات (من أهل الكتاب) څۀ مفهوم مخالف نشته.[2]

③ د احنافو حضراتو كثرالله سوادهم مذهب د جزيه په اخستلو كښې دادې چې د اهل كتاب، مجوسيانو او د عجم د بت پرستو نه به جزيه اخستلې شى، هرچه د عربو بت پرست دى نو د هغوى نه به جزيه نۀ اخستلې كيږى، د هغوى دپاره اسلام دې يا توره، دريم هيڅ صورت نشته، دغه شان د مرتدينو نه به هم جزيه نۀ قبليږى.[3]

غالباً امام بخارى رحمه الله هم ددې مسلک قائل دې ځكه چې دلته هغوى د ترجمة الباب لاندې كوم الفاظ ذكر كړې دى، د هغې نه هم دا معلوميږى.[4]

د احنافو مذهب د مالكيه په شان دې، فرق صرف دادې چې هغوى د مشركين عرب نه هم د

---

[1] ) شرح ابن بطال:۵/ ۳۳۰،واحكام القرآن للرازى:۳/ ۱۱۸_۱۲۱)_

[2] ) شرح ابن بطال:۵/ ۳۳۰،وفتح البارى:۶/ ۲۶۰)_

[3] ) الهداية مع فتح القدير:۵/ ۲۹۱،وعمدة القارى:۱۵/ ۷۸،واحكام القرآن:۳/ ۱۲۱)_ قال الامام محمد بن الحسن الشيبانى رحمه الله:"ثم كل من يجوز استرقاقه من الرجال يجوز اخذ الجزية منه بعقد الذمة؛كاهل الكتاب وعبدة الاوثان من العجم،ومن لا يجوز استرقاقه لا يجوز اخذ الجزية منه؛كالمرتدين وعبدة الاوثان من العرب. والاصل فيه حديثان...."السير الكبير مع شرحه للسرخسى:۲/ ۳/ ۱۳۲،باب قتل الاسارى والمن عليهم،رقم الباب(۱۰۷))_

[4] ) عمدة القارى:۱۵/ ۷۸،واوجز المسالک:۶/ ۱۹۲،وفيض البارى:۳/ ۴۷۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جزیه اخستلو قائل دی او احناف ددې قائل نهٔ دی.ددې حضراتو مستدل یو خو هم دغه آیت کریمه دې کوم چې امام بخاری رحمه الله هم په باب کښې ذکر کړې دې.

دویم مستدل د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه حدیث دې کوم چې ددې تذکره ده چې هغوی د هجر د مجوسیانو نه جزیه اخستلې وه.دا حدیث باب کښې راروان دې[1].بیا قیاس هم د احنافو تائید کوی،هغه دا چې اهل کتاب،مجوسیان او عجمی بت پرستو لره غلامان جوړول جائز دی نو د دوی نه جزیه قبلول به هم جائز وی.ددې عکس مرتد دې چې هغهٔ لره غلام جوړول جائز نهٔ دی لهذا د هغهٔ نه جزیه اخستل هم جائز او صحیح نهٔ دی[2].

**د مشرکینو د عرب د تخصیص وجوهات:** هرچه د مشرکین عرب او د مرتدینو نه جزیه نهٔ اخستل دی نو ددې وجه داده چې د هغوی د کفر نوعیت او کیفیت لږ مختلف دې ځکه چې د هغوی کفر لږ زیات سخت دې،او ګورئ:نبی علیه السلام د مشرکینو د عرب مینځ کښې لوئې شوې وو،قرآن کریم هم د هغوی په ژبه کښې نازل شوې وو،ددې وجې نه معجزات د هغوی په حق کښې زیات ښکاره وو،ددې ټولو باوجود د اسلام نهٔ قبلولو مطلب چې ضد،بغض او طاقت ښودل نهٔ دی نو نور څهٔ دی؟[3].

دغه شان د مرتد معامله ده،هغهٔ د هدایت نه پس تیارهٔ،د اسلام او اطاعت نه پس د خپل حقیقی رب انکار کړې دې،حالانکه دهٔ ته د اسلام د صفتونو هم معلومات وو،ددې وجې نه به د دهٔ نه جزیهٔ نهٔ اخستلې کیږی،په سزا کښې به د زیاتی او اضافې په طور سره ددهٔ په حق کښې صرف توره یا صرف اسلام قابل قبول وی.

علامه رازی رحمه الله په احکام القرآن کښې نور وجوهات هم ددې تخصیص دپاره ذکر کړې دی:

① امام معمر رحمه الله د علامه زهری رحمه الله نه نقل کړې دی چې نبی علیه السلام بت پرستو سره په جزیه باندې صلح کړې وه،البته ددې نه هغه بت پرست جدا وو کوم چې عرب وو.

② د الله تعالی ارشاد دې(فاقتلوا المشركين حيث وجدتموهم)[4] دا آیت کریمه د عرب د بت پرستو په باره کښې نازل شوې وو،ددې وجې نه دوی به یا خو قتلولې شی یا به دوی اسلام قبلوی[5].دغه شان ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چې د مشرکینو د عرب په باره کښې زمونږ دا

---

[1] ) الفقه الحنفی وادلته:۳۹۹/۲،والهدایة مع فتح القدیر:۲۹۲/۵)_

[2] ) شرح ابن بطال:۳۳۰/۵،والهدایة مع فتح القدیر:۲۹۲/۵)_

[3] ) مرقاة المفاتیح:۵۵۵/۷،الفصل الثالث من باب الجزیة،والهدایة مع فتح القدیر:۲۹۲/۵،واوجز المسالک:۱۹۷/۶،والمبسوط للسرخسی:۱۲۶/۱۰،باب المرتدین)_

[4] ) التوبة:۵)_

[5] ) احکام القرآن:۱۲۱/۳،مطلب فی الصابئین،والاوجز:۱۹۳/۶،و۱۹۵،والمصنف لعبد الرزاق: ۳۲۶/۱۰، رقم (۱۹۲۵۹)،وانظر کذلک کتاب السیرالکبیرمع شرح السرخسی:۱۳۲/۳/۲،باب(۱۰۷)قتل الاساری والمن علیهم)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دلیل دي.﴿تقاتلونهم أو يسلمونهم﴾[1] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي عليه السلام اوفرمائیل: "لایقبل من مشرکی العرب إلا الاسلام أو السیف"[2].

**د کومو خلقو نه به جزیه نهٔ اخستلې کیږي؟** وړاندې چې کوم بحث اوشو نو د هغې تعلق دې سره وو چې جزیه په کومو خلقو باندې واجبه ده. اوس بحث دادې چې جزیه په کومو خلقو باندې واجبه نهٔ ده، نو په دې سلسله کښې د حضراتو احنافو رحمهم الله دلیل دادې چې د عربو په بت پرستو، مرتدینو، ښځو، ماشومانو، معذور خلقو، نابینا، شیخ فانی او په کار باندې قدرت او طاقت نهٔ لرونکی فقیرانو باندې جزیه واجبه نهٔ ده[3].

د عرب بت پرستو او مرتدینو نه د جزیه نهٔ اخستلو چې کومه وجه وه نو هغه مونږ وړاندې بحث کښې ذکر کړه، هرچه د ښځو، ماشومانو، معذورو خلقو او د شیخ فانی وغیره نه جزیه نهٔ اخستل دی او په دوی باندې د نهٔ واجب کیدلو چې کومه معامله ده نو د هغې وجه داده چې دوی په جنګونو کښې نهٔ شی قتلولې، او قانون دادې چې کوم سړې د سزا په طور نهٔ قتلیږي نو د هغهٔ نه د جزیې مطالبه هم نهٔ کیږي، چونکه جزیه خو ددې وجې نه لازمه شوې وه چې قتل ترینه ساقط کړې شی، ددې وجې نه چې د کوم سړي قتل واجب نهٔ دې نو په هغهٔ باندې جزیه هم لازمه نهٔ ده او دا هغه کسان دی چې د دوی قتل جائز نهٔ دې، ددې وجې نه په دوی باندې جزیه ادا کول هم لازم نهٔ دی.

د حضرت عمر رضي الله عنه مولی حضرت اسلم فرمائی: "کتب عمر رضي الله عنه الی امراء الجزیة: ان لا یضعوا الجزیة الاعلی من جرت علیه المواسی، ولا یضعوا الجزیة علی النساء والصبیان....."[4].

چې "حضرت عمر رضي الله عنه د جزیې وصولولو ذمه دارانو ته اولیکل چې هغوی جزیه لازمی نهٔ کړي سوا د هغه سړي چې د چا په سر باندې چاړهٔ چلیدلې وی، یعنی بالغ وی او په ښځو او ماشومانو باندې جزیه لازمه نهٔ کړئ".

فقیرغیرمعتمل، یعنی هغه فقیر چې د څهٔ پیشې او صنعت وغیره باندې پوهیدلو باوجود په کار باندې قدرت نهٔ لری، د داسې فقیر نه د جزیه نهٔ اخستلو وجه داده چې حضرت عمر رضي الله عنه دا شرط لګولې وو چې د هغه فقیر نه به جزیه اخستلې کیږي څوک چې په کار باندې قدرت لری، لکه صله بن زفر فرمائی چې حضرت عمر رضي الله عنه د ذمیانو یو بوډا اولیدلو چې سوال کوی (خیر غواړی) حضرت تپوس اوکړو چې تا ته څهٔ تکلیف دې؟ سوال ولې کوې؟ نو بوډا

---

[1] ) الفتح:۱۶)_

[2] ) کتاب الخراج لابی یوسف القاضی، ومرقاة المفاتیح:۷/۵۵۵، وعن الحسن قال: امر رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یقال العرب علی الاسلام، ولا یقبل منهم غیره....". اعلاء السنن:۱۲/۴۵۰، والفقه الحنفی وادلته:۲/۴۰۰)_

[3] ) الفقه الحنفی وادلته:۲/۴۰۰، والهدایة مع فتح القدیر:۵/۲۹۳_۲۹۴)_

[4] ) سنن البیهقی:۹/۳۳۳، کتاب الجزیة، باب من یرفع عنه الجزیة، رقم (۱۸۷۰۰)، والهدایة مع فتح القدیر:۵/۲۹۴، والفقه الحنفی وادلته:۲/۴۰۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اووئیل چې ماسره مال نشته او زما نه جزیه اخستلې کیږی.ددغه پیسو پوره کولو دپاره سوال کوم.حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چې مونږ تاسو سره انصاف اونۀ کړو ځکه چې مونږ ستاسو ځوانی اوخوړه او اوس ستاسو نه جزیه هم اخلو.بیا خلیفه خپلو ټولو کسانو ته اولیکل چې د شیخ فانی نه جزیه مۀ اخلئ.(۱).

دغه شان د مملوک،مکاتب،مدبر،ام ولد او راهب کوم چې خلقو سره میل ملاپ نۀ ساتی، دوی نه به هم جزیه نۀ اخستلې کیږی.(۲).

وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ قُلْتُ لِمُجَاهِدٍ مَا شَأْنُ أَهْلِ الشَّأْمِ، عَلَيْهِمْ أَرْبَعَةُ دَنَانِيرَ وَأَهْلُ الْيَمَنِ عَلَيْهِمْ دِينَارٌ قَالَ جُعِلَ ذَلِكَ مِنْ قِبَلِ الْيَسَارِ.

او ابن عیینه د ابن ابی نجیح نه روایت کوی چې ما د مجاهد نه تپوس اوکړو چې ددې څۀ وجه ده چې په اهل شام باندې خو څلور دیناره لازم دی او په اهل یمن باندې صرف یو دینار لازم دې؟نو هغوی اوفرمائیل چې دا د مالدارئ او د غریبئ په حساب سره مقرر کړې شوې ده.یعنی شامی خلق چونکه مالدار دی ددې وجې نه د هغوی نه څلور دیناره اخستلې شی او یمنی خلق غریب دی نو د هغوی نه یو دینار اخستلې شی.

**د مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق امام عبدالرزاق رحمه الله په خپل مصنف کښې موصولاً "أخبرنا ابن عيينة عن ابن أبي نجيح" د سند سره نقل کړې دې.(۳).دغه شان ابوعبید رحمه الله هم په کتاب الاموال کښې دا بلاغاً روایت کړې دې.(۴).

**د مذکوره تعلیق مقصد:** امام بخاری رحمه الله دا اثر دلته ذکر کولو سره د جزیه په وصولئ کښې د فرق طرفته اشاره کړې ده.د ذمیانو نه چې کومه جزیه وصولولې شی نو ددې به څومره مقدار وی،په دې کښې هم د ائمه اربعه اختلاف دې.

① د امام ابوحنیفه او په یو روایت کښې د امام احمد(۵) مذهب دادې چې خلق درې قسمه وی: مالدار، متوسط او فقیران،د مالداروخلقونه به کال کښې اتۀ څلویښت دینارونه

---

(۱) نصب الراية:۴۵۳/۳،باب الجزية،الحديث الرابع،وكتاب الاموال لابن زنجويه:۱۱۶۲،باب من تجب عليه الجزية ومن تسقط عنه،رقم (۱۶۵)وكنز العمال:۲۱۳/۴،كتاب الجهاد،رقم (۱۱۴۷۳)اعلاء السنن: ۴۶۲/۱۲، والهداية مع فتح القدير:۲۹۴/۵،والفقه الحنفى و ادلته:۴۰۱/۲)_

(۲) الهداية مع فتح القدير:۲۹۴/۵،و۲۹۵،باب الجزية،وقال ابن رشد فى بداية المجتهد:۴۰۴/۱،الفصل السابع فى الجزية: فانهم اتفقوا على انها انما تجب بثلاثة اوصاف:الذكورية،والبلوغ،والحرية،وانها لا تجب على النساء والصبيان،اذا كانت انما هى عوض من القتل انما هو متوجه بالامر نحو الرجال البالغين،اذ قد نهى عن قتل النساء والصبيان،وكذلك اجمعوا انها لا تجب على العبيد")_

(۳) المصنف لعبد الرزاق:۳۳۰/۱۰،كتاب اهل الكتابين،باب كم يؤخذ منهم فى الجزية،رقم: (۱۹۲۷۱)، وتغليق التعليق:۴۸۲/۳،وعمدة القارى:۷۹/۱۵)_

(۴) كتاب الاموال،باب فرض الجزية،ومبلغها.....:۵۱/۱،وتغليق التعليق:۴۸۲/۳)_

(۵) المغنى لابن قدامة:۹۲۶۷/،واعلاء السنن:۴۳۱/۱۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اخستلې شی (يا څلور ديناره) د هرې مياشتې په حساب سره. دا درې درهمه جوړيږي. د متوسط قسم خلقو نه به څلور ويشت درهمه (يا دوه ديناره) يعنی هره مياشت كښې دوه ديناره او د فقيرانو نه به دولس ديناره (يا يو دينار) مياشت كښې يو دينار [1].

② د امام ثوری، ابوعبيد، په يو روايت كښې د امام احمد رحمهم الله مذهب دادې چې د جزيې څۀ خاص مقدار متعين نۀ دې، د امام په رائې باندې منحصره ده چې كم وصولوی يا زياته [2].

③ د امام شافعی رحمه الله مسلک دادې چې د مالدار او فقير دواړو نه به يو دينار وصولولې شی [3]. البته امام ته دا اختيار دې چې مماكست او كړی يعنی د جزيې رقم د زياتولو كوشش او كړی، تردې چې څلور ديناره د دوی نه واخستلې شی [4].

④ د امام مالک رحمه الله غوره قول دادې چې د سرو زرو والو نه به څلور ديناره او د چاندئ والو نه به څلويښت درهمه اخستلې شی [5]. او كۀ ددې طاقت نۀ وی نو د ضرورت په قدر به كمولې شی [6].

⑤ په حنابله كښې د امام ابوبكر غوره مسلک دادې چې د جزيې كم از كم مقدار يو دينار دې، او د زيات مقدار حد ئې مقرر نۀ دې، د امام احمد نه هم يو دا روايت مروی دې [7].

**د مذهبونو دلائل:** د احنافو دليل د حضرت عمر رضی الله عنه هغه فيصله ده كومه چې هغوی مختلفو ګورنرانو او عاملينو ته ليږلې وه، لكه ابوعون محمد بن عبيد الله الثقفی رحمه الله ليكی:

**"وضع عمر بن الخطاب رضی الله عنه فی الجزية علی رؤوس الرجال، علی الغنی ثمانية وأربعين درهماً، وعلی المتوسط أربعة وعشرين درهماً، وعلی الفقير اثنی عشر درهماً".**

امام ابوبكر بن ابی شيبه دا روايت په خپل "مصنف" كښې مرسلاً روايت كړې دې [8]. او ابن زنجويه په "كتاب الاموال" كښې دا مسنداً روايت كړې دې او په دې مسند روايت كښې په يو راوی مندل باندې كلام دې ليكن مرسل روايت كه مسنداً روايت كړې شی، خواه

---

[1] ) فتح الباری:۶/ ۲۶۰، واعلاء السنن:۱۲/ ۴۳۱، والهداية مع فتح القدير:۵/ ۲۸۹)_

[2] ) المغنی لابن قدامة:/ ۲۶۷، رقم (۷۶۴۰)، واعلاء السنن:۱۲/ ۴۳۱)_

[3] ) احكام القرآن للجصاص:۳/ ۱۲۵، واعلاء السنن:۱۲/ ۴۳، و كتاب الام: ۴/ ۲۷۹)_

[4] ) فتح الباری:۶/ ۲۶۰، وشرح النووی علی مسلم:۲/ ۸۲)_

[5] ) شرح الزرقانی علی المؤطا:۲/ ۱۴۰، جزية اهل الكتاب والمجوس، وبداية المجتهد:۱/ ۴۰۴، الفصل السابع فی الجزية، واوجز المسالک:۶/ ۲۰۴)_

[6] ) پورته حواله جات، وفتح الباری:۶/ ۲۶۰)_

[7] ) المغنی لابن قدامة:/ ۹۲۶۷، واعلاء السنن:۱۲/ ۴۳۱)_

[8] ) المصنف لابن ابی شيبة:۱۷/ ۴۰۶، كتاب السير ما قالوا فی وضع الجزية، رقم (۳۳۳۱۱)، او پورته حواله جات)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په ضعیف طریق سره وی نو د ټولو په نزد حجت او دلیل وی.[1]

دغه شان حارثه بن مضرب، د حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت کوی:

"انه بعث عثمان بن حنیف، فوضع علیهم ثمانیة وأربعین درهماً، وأربعة وعشرین، واثنی عشر......"[2].

چې "حضرت عمر رضي الله عنه عثمان بن حنیف روان کړو، نو هغوی په ذمیانو باندې اته څلویښت درهمه، څلور ویشت درهمه او دولس درهمه مقرر کړل"

دا حدیث مرسلاً او موصولاً متعدد طُرقو سره روایت شوې دې او دا صحیح او مشهور حدیث دې، علامه ابن قدامه رحمه الله په المغنی کښې فرمائي چې ددې حدیث په صحت او شهرت کښې هیڅ شک و شبهه نشته خواه صحابه کرام رضي الله عنهم وی یا غیر صحابه، د ټولو په نزد ددې صحت منلې شوې دې، هیڅ یو منکر ددې انکار نۀ دې کړې او په دې کښې د چا اختلاف هم نشته، په دې حدیث باندې د حضرت عمر رضي الله عنه نه پس خلیفه ګانو هم عمل کړې دې، چې ددې خبرې دلیل دې چې په دې باندې اجماع شوې ده او ددې خلاف عمل کول جائز نۀ دی تردې چې په خپله د امام شافعی رحمه الله نه روایت دې چې په دې حدیث باندې عمل کول مستحب دی.[3].

د امام ثوری او ابوعبید وغیره وینا داده چې د جزیې د مقدار په سلسله کښې د نبی علیه السلام او د حضرت عمر رضي الله عنه نه مختلف قسم احکامات روایت شوې دی، لکه نبی علیه السلام حضرت معاذ رضي الله عنه ته دا حکم ورکړې وو چې د هر بالغ نه یو دینار وصول کړی[4]. دغه شان نبی علیه السلام د نجران نصارو سره په دوه زره جوړو باندې صلح کړې وه، د نیمو جوړو ادا کول په صفر کښې وو او باقی نیمې په رجب کښې ادا کول ضروری وو.[5]. او حضرت عمر رضي الله عنه د جزیې درې طبقې مقرر کړې وې چې په مالدار سړی باندې اته څلویښت درهمه، په متوسط باندې څلورویشت او په فقیر باندې دولس درهمه[6].

دغه شان کله چې حضرت عمر رضي الله عنه د بنوتغلب نصارو سره صلح اوکړه نو په هغې کښې دا فیصله هم شوې وه چې مسلمانان په زکوة کښې څۀ ادا کوی نو دوی به د هغې دوچند په

---

[1] ) کتاب الاموال لابن زنجویه: ۲۱۰/۱، باب ارض العنوة تقر بایدی.....رقم (۲۵۸)، اعلاء السنن: ۴۳۱/۱۲)

[2] ) پورته حواله، ص: ۴۳۳، ۴۳۴، وفتح الباري: ۲۶۰/۶)_

[3] ) المغنی لابن قدامة: ۹۲۶۸/، واعلاء السنن: ۴۳۲/۱۲_۴۳۳)_

[4] ) حدیث معاذ اخرجه الترمذی، ابواب الزکاة، باب ما جاء فی زکاة البقر، رقم (۶۲۳)، وابو داود، ابواب الزکاة، باب زکاة السائمة، رقم (۱۵۷۶)، والنسائی، کتاب الزکاة، باب زکاة البقر، رقم (۲۴۵۲_۲۴۵۵)، وابن ماجه، کتاب السنة، باب اجتناب الرای والقیاس، رقم (۵۵)، وابواب الزکاة، باب صدقة البقر، رقم (۱۸۰۳))_

[5] ) الحدیث اخرجه ابو داود فی سننه، کتاب الخراج.....باب فی اخذ الجزیة، رقم (۳۰۴۱))_

[6] ) المصنف لابن ابی شیبة: ۴۰۶/۱۷، رقم (۳۳۳۱۱)، والمغنی: ۹۲۶۷/، واعلاء السنن: ۴۳۱/۱۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جزیه کښې ادا کوی.(۱).ددې ټولو واقعاتو نه دا ثابته شوه چې د جزیې معامله امام ته حواله ده چې هغه څنګه غواړی نو هغه شان فیصله به کوی.که د جزیې څۀ مقرره حد مقرر او متعین وو نو دا اختلاف به نۀ پیدا کیدۀ او دا هم ممکنه نۀ ده چې که په متعین مقدار کښې اختلاف وی چې یو کس یو څۀ وصول کړی او بل کس بل څۀ وصول کړی.(۲).

**د جمهورو له طرفه جواب:** په دې مسئله کښې اګرچه د جمهورو اختلاف دې چې جزیه به څومره مقدار کښې وی؟لیکن په دې کښې هیڅ اختلاف نشته چې د د جزیې حد مقرر دې،په دې سلسله کښې صرف امام ثوری،ابوعبید وغیره رحمهم الله ددې قائل دی چې دا د امام په رائې باندې منحصر ده چې د ذمیانو نه څومره جزیه وصول کړې شی.نو د جمهورو له طرفه دې حضراتو ته دا جواب ورکړې شوې دې چې اصل کښې جزیه په دوه قسمه ده:

① **الجزیة بالتراضی:** دا هغه قسم دې چې د دوو ډلو مینځ کښې د صلحې په صورت کښې د دواړو په رضامندئ سره فیصله کړې شی،په دې کښې به ددې خلقو نه هغه څیز اخستلې شی په کوم څیز باندې چې صلح شوې ده،په دې کښې تعدی(زیاتوالې)جائز نۀ دې،ددې دلیل د نبی ﷺ اهل نجران سره صلح ده،کوم چې نصاری وو،دویم دلیل د حضرت عمر رضی الله عنه هغه عمل دې کوم چې اوس تیر شو چې هغوی د مسلمانانو د زکوة دوچند مال د بنوتغلب نه وصول کړې وو.

② **الجزیة بالغلبة علی الکفار:** دا هغه قسم دې چې په دې کښې د وخت امام په کافرانو باندې په جنګ کښې د غلبې او تسلط حاصلولو نه پس،په دې کافرانو باندې د مالدار او فقیر وغیره په اعتبار سره جزیه مقرروی(۳).

ملاعلی قاری رحمه الله د علامه ابن الهمام په حوالې سره لیکی:

"**الجزیة علی ضربین: جزیة توضع بالتراضی والصلح علیها، فتقدر بحسب ماعلیه الاتفاق ،فلا یزاد علیه تحرزا عن الغدر،واصله صلح رسول الله ﷺ اهل نجران وهم قوم من النصاری بقرب الیمن علی مافی ابی داود عن ابن عباس رضی الله عنهما قال: صالح رسول الله ﷺ اهل نجران علی الفی حلة، الحدیث(۴) .وصالح عمر رضی الله عنه نصاری بنی تغلب علی ضعف ما یؤخذ من المسلم من المال(۵)،والضرب الثانی :جزیة یبتدئ الامام بتوظیفها اذا غلب علی الکفار...... ".(۱)**

---

[1] ) المغنی:۹۲۶۷/،واعلاء السنن:۴۳۱/۱۲،والمرقاة:۶۶/۸،واوجز المسالک:۲۰۷/۶)_

[2] ) المغنی:۹۲۶۷/،واعلاء السنن:۴۳۱/۱۲)_

[3] ) الفقه الحنفی وادلته:۳۹۸/۲،والمرقاة:۶۶/۸، والاوجز:۲۰۷/۶، والبنایة:۲۳۸/۷،باب الجزیة)_

[4] ) رواه ابو داود،کتاب الخراج......باب فی اخذ الجزیة،رقم (۳۰۴۱))_

[5] ) انظر المصنف لابن ابی شیبة:۵۶۲/۶،کتاب الزکاة،فی نصاری بنی تغلب:ما......رقم (۱۰۶۸۴)والسنن الکبری للبیهقی:۹۳۶۳/_۳۶۴،کتاب الجزیة،باب نصاری العرب تضعف...... ......[بقیه برصفحه آئنده.....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چونکه د دواړو قسمونو نوعیت جدا جدا دې، ددې وجې نه ئې احکامات هم جدا جدا شو، د صلحې په صورت کښې ذمیانو ته هم څۀ اختیار حاصل دې لیکن د شکست په صورت کښې هغوی ته هیڅ اختیار نشته، په دې سلسله کښې به د وخت امام فیصله کوی، دغه فیصله به د احنافو په نزد د حضرت عمر رضی الله عنه د فیصلې په رڼا کښې وی، د شوافعو په نزد به د حضرت معاذ رضی الله عنه د حدیث مطابق او د امام مالک رحمه الله په نزد د هغوی د دلیل په بنیاد باندې فیصله کیږی.

**د شوافعو دلیل:** د حضرات شافعیه رحمهم الله مشهور دلیل په دې سلسله کښې د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه هغه حدیث دې کوم چې اوس تیر شو چې:

"أن النبی صلی الله علیه وسلم إلی الیمن أمره أن یأخذ...... ومن كل حالم یعنی محتلماً. دیناراً أو عِدله من المعافر، ثیاب تكون بالیمن" (اللفظ لابی داؤد)[1]

یعنی "کله چې نبی علیه السلام حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه د یمن طرفته روان کړو نو ورته ئې حکم اوکړو چې......او د هربالغ سړی نه یو دینار یا ددې برابر معافری کپړې واخله (دا د یمنی کپړو یو قسم دې)

**د شوافعو د دلیل جواب:** دا د شوافعو دلیل دې، لیکن دا زمونږ خلاف څکه حجت نۀ دې چې مونږ هم په دې باندې د عمل کولو قائل یو او دا په فقیر باندې محمول کوو[2]. دغه شان حضرت معاذ رضی الله عنه چې د اهل یمن نه یو دینار اخستلې وو نو ددې وجې د هغوی غریبی وه څکه چې یمنی خلق غریبان وو، په دې باندې دلیل د حضرت امام بخاری رحمه الله هغه تعلیق دې کوم چې د باب په ابتداء کښې تیر شو.......

"قال ابن عیینة عن ابن أبی نجیح : قلت لمجاهد: ماشان أهل الشام علیهم أربعة دنانیر وأهل الیمن علیهم دینار؟ قال: جعل ذلك من قبل الیسار"[3].

او امام ابوبکرجصاص رحمه الله فرمائی چې د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث په صلح باندې محمول دې، ددې دلیل دادې چې ددې حدیث په بعضې طُرُق کښې د "حالمة"[5] اضافه هم موجود ده

---

بقیه ازحاشیه گذشته] رقم (۱۸۷۹۴_۱۸۷۹۶)، وکتاب الخراج لیحیی بن آدم، رقم (۲۰۶_۲۰۸)، والخراج لابی یوسف القاضی ۱۲۹_۱۳۱، فصل فی شان نصاری بنی تغلب.....ونصب الرایة فی تخریج احادیث الهدایة: ۴۵۵/۳، باب الجزیة، من کتاب السیر)_

[1]) مرقاة المفاتیح: ۶۶/۸، واوجز المسالک: ۲۰۷/۶، وفتح القدیر: ۲۸۸/۵_۲۸۹)_

[2]) الحدیث صححه الترمذی والحاکم فی کتاب الزکاة، زکاة البقر: ۳۹۸/۱، ومر تخریجه آنفا. وفتح الباری: ۲۶۰/۶)_

[3]) اعلاء السنن: ۴۳۳/۱۲، والمسوی: ۱۶۷/۲، واوجز المسالک: ۲۰۹/۶)_

[4]) اعلاء السنن: ۱۲ی/۴۳۲، والمغنی: /۹۲۶۸، واوجز المسالک: ۲۰۸/۶)_

[5]) المصنف لعبد الرزاق: ۳۳۰/۱۰، رقم (۱۹۲۲۸)، وکان معمر یقول: هذا غلط، قوله: حالمة "لیس علی النساء شیء،" کذا فی نصب الرایة: ۴۴۳/۳، رقم (۶۰۴۲))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او په دې باره کښې خو څۀ اختلاف نشته چې د ښځې نه به جزیه صرف د صلحې په صورت کښې اخستلې کېږي[1].هم دا خبره صاحب هدایه علامه مرغیناني رحمه الله هم فرمائیلې ده، لکه هغوی لیکي: "وما رواه محمول على أنه كان ذلك صلحاً، ولهذا أمره بالاخذ من الحالمة، وإن كانت لا يؤخذ منها الجزية......"[2].

او دا خو معلومه ده چې یمن د صلحې په ذریعې سره فتح شوې وو دا نۀ چې عنوةً[3].

**د مالکیه دلیل:** امام مالک رحمه الله د خپل مذهب دپاره د استدلال په طور دا روایت پیش کړې دې، کوم چې د "نافع عن أسلم مولى عمر بن الخطاب" د طریق نه مروي دې:

"أن عمر بن الخطاب رضي الله عنه ضرب الجزية على أهل الذهب أربعة دنانير، وعلى أهل الوَرِق أربعين درهماً، مع ذلك أرزاق المسلمين، وضيافة ثلاثة أيام"[4].

چې "حضرت عمر رضي الله عنه په سرو زرو والو باندې څلور دیناره، په چاندئ والو باندې څلویښت درهمه، دې سره اسلامي لښکر ته خوراک ورکول او درې ورځې میلمستیا د جزیې په طور مقرر کړې وه".

که دا اثر اوکتلې شي نو هم دا خبره وړاندې راځي چې د سرو زرو والو نه به څلور دیناره اخستلې شي، د چاندئ والو نه څلویښت درهمه او په دې کښې د مالدار یا د فقیر څۀ تقسیم نشته. ددې نه علاوه اثر کښې نور دوه څیزونه هم دي، یو دا چې اسلامي لښکر ته د خوراک څکاک څیزونه ورکول چې په ذمیانو باندې به دا څیز هم واجب وي چې کله اسلامي لښکر د هغوی په علاقو باندې تیرېږي نو د هغوی د خوراک څکاک انتظام به هم کوي[5].

دویم څیز درې ورځې میلمستیا ده، ددې مطلب دادې چې کوم مسلمانان ددې خلقو په علاقو باندې تیرېږي نو ورته به دا خلق روټئ او سالن وغیره ورکوي او د هغوی دپاره به د داسې رهائش بندوبست او انتظام کوي چې د ګرمئ او یخنئ نه محفوظ وي[6]. لیکن په دې څیزونو باندې عمل اوس د مالکیه په نزد نشته لکه علامه دردیر مالکي رحمه الله فرمائي:

"وسقطت إضافة المجتاز عليهم من المسلمين ثلاثاً من الايام، وإنما سقطت عنهم للظلم الحادث عليهم من ولاة الامور......"[7].

---

[1] ) احکام القرآن:۱۲٦/۳،واعلاء السنن:۴۳۲/۱۲،واوجز المسالک:۲۰۸/٦)_
[2] ) الهدایة مع فتح القدیر:۲۹۱/۵)_
[3] ) اعلاء السنن:۴۳۲/۱۲،کتاب الاموال لابن زنجویه:۱۲۹/۱،رقم (۱۱۰)،والاوجز:۲۱۰/٦)_
[4] ) الموطا:۲۷۹/۱،کتاب الزکاة،باب جزیة اهل الکتاب......رقم (۴۳)،والاوجز:۲۰۴/٦_۴۱۱)_
[5] ) المنتقی:۱۷۴/۲،والاوجز:۲۱۰/٦)_
[6] ) التمهید لابن عبدالبر:۱۳۱/۲)_
[7] ) اوجز المسالک:۴۱۱/٦،والشرح الکبیر للدردیر مع الدسوقي:۵۲۱/۲،فصل فی عقد الجزیة

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى "په ذميانو باندې د تيريدونكو مسلمانانو درې ورځې د ميلمستيا اضافه اوس ختمه شوه اوددې وجه داده چې حكمرانان به په دوى باندې نوې نوې طريقوسره ظلم وستم كوى".

**د مالكيه د دليل جواب:** دا خو د مالكيه دليل وو، ليكن ددې جواب ډير واضح دې، هغه دا چې كه په دې اثر باندې مكمل عمل اوكړې شى نو ددې مطلب هم هغه دې د كوم چې احناف قائل دى، ځكه چې مسلمانانو ته د خوراك فراهمى او درې ورځې ميلمستيا كه څلويښتو سره ملاؤ كړې شى نو دا د اتۀ څلويښت درهمو برابر جوړيږى(۱).

**ترجيح راجح:** د احنافو دمذهب د دليل په طورباندې مونږ وړاندې د حضرت عمر رضي الله عنه فيصله نقل كړې وه كومه چې د حارثه بن مضرب او محمد بن عبيدالله الثقفى رحمهما الله وغيره نه مروى ده، په دې روايت شوې آثارو كښې د انسانانو د دريو طبقاتو (مالدار، متوسط او فقير) تفصيل بيان شوې دې، ددې وجې نه د عمل په اعتبار سره هم دغه آثار به راجح وى، ځكه چې په دې كښې زيادت روايت شوې دې او دغه شان د هرې طبقې حكم په كښې هم موجود دې.

بيا دا خبره هم ده چې كوم حضرات د طبقاتو په حساب سره د جزيه مقرر كيدو قائل دى نو هغوى په دې روايت باندې هم عمل كوى كوم كښې چې صرف د اتۀ څلويښتو درهمو تذكره ده، يعنى د حضرت عمرو بن ميمون اودى رحمه الله اثر، ددې برخلاف حضرات شافعيۀ چونكه په اتۀ څلويښت درهمو باندې انحصار كړې دې ددې وجې نه هغوى ددې اثرونو او رواياتو پريخودونكى شو، په كومو كښې چې د طبقاتو تميز او په هغې كښې په هرې طبقې باندې د مقرره مقدار د تخصيص تذكره ده. هم ددې په بيان كښې امام جصاص رازى رحمه الله فرمائى:

"فكان الخبر الذى فيه تفصيل الطبقات الثلاث أولى بالاستعمال، لما فيه من الزيادة، وبيان حكم كل طبقة، ولان من وضعها على الطبقات فهو قائل بخبر الثمانية والاربعين، ومن اقتصر على الثمانية والاربعين، فهو تارك للخبر الذى فيه ذكر تميز الطبقات، وتخصيص كل واحد بمقدار منها....."(۲). والله أعلم بالصواب

۲۹۸۷: (۳) ۳۱۵٦ - حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرًا قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَعَمْرِو بْنِ أَوْسٍ، فَحَدَّثَهُمَا بَجَالَةُ سَنَةَ سَبْعِينَ - عَامَ حَجَّ مُصْعَبُ بْنُ الزُّبَيْرِ بِأَهْلِ الْبَصْرَةِ - عِنْدَ دَرَجِ زَمْزَمَ قَالَ كُنْتُ كَاتِبًا لِجَزْءِ بْنِ مُعَاوِيَةَ عَمِّ الأَحْنَفِ، فَأَتَانَا كِتَابُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَبْلَ مَوْتِهِ بِسَنَةٍ فَرِّقُوا بَيْنَ كُلِّ ذِي مَحْرَمٍ مِنَ الْمَجُوسِ. وَلَمْ

---

(۱) احكام القرآن للرازى: ۳/۱۲٦، والاوجز: ٦/۲۰۸، و۲۱۰، واعلاء السنن: ۱۲/٤۳۲)_

(۲) احكام القرآن: ۳/۱۲٦، والاوجز: ٦/۲۰۸، واعلاء السنن: ۱۲/٤۳۳)_

(۳) قوله: سمعت عمرا" الحديث، اخرجه الترمذى، كتاب السير، باب ما جاء فى اخذ الجزية من المجوس، رقم (۱۵۸٦)، وابو داؤد، كتاب الخراج والفئ والامارة، باب فى اخذ الجزية من المجوس، رقم (۳۰٤۳). والنسائى فى الكبرى، كتاب السير، رقم (۸۷٦۸))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يَكُنْ عُمَرُ أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوسِ . حَتَّى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَخَذَهَا مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ.

## رجال الحديث

①علي بن عبدالله: دا مشهور د حديثو امام علي بن عبدالله بن المديني رحمه الله دي، د دوی تذكره په كتاب العلم، "باب الفهم في العلم" كښې تيره شوې ده.[1]

②سفيان: دا مشهور محدث سفيان بن عيينه بن ابی عمران كوفی رحمه الله دې، د دې مختصر حالات د "بدء الوحی" په اولنی حديث كښې او تفصيل سره په كتاب العلم، "باب قول المحدث: حدثنا....." كښې تير شوې دی.[2]

③عمرو: د مشهور تابعی حضرت عمرو بن دينار رحمه الله تذكره په كتاب العلم كښې راغلې ده.[3]

**قوله: قال: كنت جالساً مع جابر بن زيد و عمرو بن أوس:** حضرت عمرو بن دينار رحمه الله فرمائی چې زۀ د جابر بن زيد او عمرو بن اوس رحمهما الله سره ناست ووم.

د جابر بن زيد نه مراد ابو الشعثاء جابر بن زيد بصری رحمه الله دې.[4] او د عمرو بن اوس نه مشهور تابعی عمرو بن اوس بن ابی اوس رحمه الله مراد دې.[5]

**قوله: فحدثهما بجالة سنة سبعين عام حج مصعب بن الزبير بأهل البصرة عند درج زمزم:** په ۷۰ هجرئ كښې، چې په دې كښې مصعب بن زبير اهل بصره سره حج كړې وو، په دې كال باندې د زمزم كوهی پوړو سره بجالة جابر بن زيد او عمرو بن اوس ته بيان اوكړو.

**بجالة:** دا مشهور تابعی بجاله بفتح الباء الموحدة، بعدها جيم: بن عبدة بن سالم[7] تميمی عنبری بصری رحمه الله دې.[6]

دوی د جزء بن معاويه كاتب وو او د احنف بن قيس تره وو.[8] دې د حضرت عمر، حضرت عبد الرحمن بن عوف، حضرت عمران بن حصين او حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهم نه هم

---

[1] ) كشف الباری: ۲۹۷/۳)_

[2] ) كشف الباری: ۲٦۰/۱، و ۱۰۲/۳)_

[3] ) كشف الباری: ۳۰۹/٤، باب كتابة العلم)_

[4] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الغسل، باب من افاض علی راسه.....)_

[5] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب التهجد، باب من نام عند السحر)_

[6] ) تعليقات تهذيب الكمال: ۸/٤، و تعليقات تهذيب التهذيب: ٤۱۷/۱، و توضيح المشتبه: ۷۳/٤)_

[7] ) تهذيب الكمال: ۸/٤، و تهذيب التهذيب: ٤۱۷/۱، و فتح الباری: ۲٦۰/٦)_

[8] ) پورته حواله جات، و طبقات ابن سعد: ۱۳۰/۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حدیث روایت کوی.د دوی نه په روایت کوونکو کښې عمروبن دینار،عوف الاعرابی،قتاده بن دعامه او قشیر بن عمرو رحمهم الله تعالی وغیره شامل دی.(۱).

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی: "مکی ثقة"(۲)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: "هوشیخ"(۳)

علامه جاحظ د دوی تذکره د بصرې په عبادت ګزارو کښې کړې ده.(۴).

دغه شان مجاهد بن موسی او ابن حبان رحمهما الله هم د دوی توثیق فرمائیلې دی.(۵).

البته امام ربیع بن سلیمان د امام شافعی رحمه الله په حوالې سره نقل کړې دی چې امام صاحب د دوی په باره کښې فرمائیلې وو: "بجالة رجل مجهول"(۶).

علامه بیهقی رحمه الله لیکلې دی چې امام شافعی رحمه الله په "کتاب الحدود" کښې لیکلی دی چې دې مجهول دې او مشهور نۀ دې،دغه شان دا هم مشهوره نۀ ده چې جزء بن معاویه نومې څوک سړې د حضرت عمر رضی الله عنه عامل وو.بیا امام شافعی رحمه الله دا په "کتاب الجزیه" کښې ذکر کړه او وې فرمائیل: "حدیث بجالة متصل ثابت،لانه أدرك عمر،وكان رجلاً فی زمانه،کاتباً لعماله".

ددې نه معلومه شوه چې امام شافعی رحمه الله هم د خپلو سابقه خبرو نه رجوع کړې وه چې بجاله مجهول دې،د کتاب الجزیه د عبارت نه معلومه شوه چې دې مجهول نۀ دې،

علامه بیهقی دې بیانولو سره لیکی: "وکان الشافعی رحمه الله لم یقف علی حال بجالة حین صنف کتاب الحدود،ثم وقف علیه حین صنف کتاب الجزیة،إن کان صنفه بعده"(۷).

امام بخاری،ابوداؤد،ترمذی او نسائی رحمهم الله د دوی روایات اخستلې دی.(۸).صحیح بخاری شریف کښې ددوی ذکرصرف دې ځائې کښې راغلې دې.(۹).رحمه الله رحمة واسعة.

---

(۱) تهذیب الکمال: ٤/٨_٩،والجرح والتعدیل:٢/٣٦٢،رقم (١٧٣٧))_

(۲) تهذیب الکمال: ٤/٩،والجرح والتعدیل:٢/٣٦٢،رقم (١٧٣٧))_

(۳) پورته حواله جات)_

(۴) تهذیب الکمال: ٤/٩،وتهذیب التهذیب:١/٤١٧)_

(۵) تعلیقات تهذیب الکمال: ٤/٩،وتهذیب التهذیب:١/٤١٧_٤١٨)_

(۶) پورته حواله جات،وکتاب الام:٧/١٢/٥٢٢،کتاب الحدود،باب حد الذمیین اذا زنوا،رقم (٢٣٢٨٦))_

(۷) السنن الکبری للبیهقی:٨/٢٤٨،کتاب الحدود،باب حد المذمیین،رقم (١٧١٢٣)،وکتاب الجزیة،باب المجوس اهل کتاب ......:٩/١٨٩،رقم (١٨٦٥٣)،وکتاب الام:٢/٤/١٧٤،کتاب الجزیة،من یلحق باهل الکتاب، رقم (١٣١٩٣)،وتعلیقات تهذیب الکمال:٤٩/)_

(۸) تهذیب الکمال:٤٩/)_

(۹) فتح الباری:٦/٢٦٠،وعمدة القاری:١٥/٨٠)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مصعب بن الزبير دا د مشهور صحابي حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه ځوئي حضرت مصعب بن الزبير بن العوام قرشي اسدي رحمه الله دي[١].

ابوعيسى او ابو عبدالله د دوى كنيت دي[٢]. د دوى مور بى بى رباب بنت انيف كلبيه ده[٣].

ډير زيات بهادر وو او ډير زيات حسين وجميل، د خپل سخاوت د وجې نه به ورته "آنية النخل" (د شهدو ګبين يا لوښې) وئيلې كيدو، ليكن دې سره سره وينه تويونكې هم وو، مختار بن عبيد الثقفي سره ئې جنګ اوكړو او هغه ئې قتل هم كړو[٤].

دې د خپل پلار شريك ورور حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه له طرفه د عراقيينو (عراق وشام) امير مقرر شوې وو، دا مقرر كيدل يو اعتبار سره د مصعب د يو تمنا نتيجه وه، چې د الله تعالى په نزد قبوله شوه. لكه ابن ابى الزناد د خپل پلار نه روايت كوى چې هغوى اوفرمائيل: د حجر په مقام باندې څلور حضرات جمع شو: عبدالله، مصعب، عروه (د حضرت زبير بن العوام ځامن) او ابن عمر رضي الله عنهم. حضرت ابن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چې تمنا اوكړئ، د خپل خپل خواهش اظهار اوكړئ چې پته اولګى چې څوک څۀ غواړى؟ عبدالله بن زبير رضي الله عنه اوفرمائيل چې زما خواهش د خلافت حصول دې او حضرت عروه بن زبير رحمه الله اوفرمائيل چې زما تمنا او خواهش خو دا دې چې زما په ذريعې سره علم خور شى او زما نه خلق فائده حاصله كړى. او مصعب بن زبير رحمه الله اوفرمائيل چې زما خواهش د اهل عراق د امارت حصول دې او عائشه بنت طلحه وسُكينه بنت الحسين په خپله نكاح كنبې راوستل. حضرت ابن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چې زما تمنا خو صرف دا ده چې زما مغفرت او بخښنه اوكړې شى. راوى وائى چې هر كس چې كومه تمنا كړې وه نو هغه ورته حاصله شوه، پاتې شو حضرت ابن عمر رضي الله عنه نو د هغوى به هم مغفرت كړې شوې وى[٥].

اسماعيل بن ابى خالد رحمه الله فرمائى: "ما رأيت أميراً قط أحسن من المصعب"[٦].

امام شعبي رحمه الله فرمائى: "ما رأيت أميراً قط على منبر احسن من مصعب"[٧].

اوس تير شو چې دې ډير زيات حسين وجميل وو، مدائنى رحمه الله فرمائى: "كان يحسد على الجمال"[٨]. چې د حسن د وجې نه به ورسره حسد كولې شو.

---

[١] ) سير اعلام النبلاء: ٤/ ١٤٠)_
[٢] ) پورته حواله، وطبقات ابن سعد: ٥/ ١٨٢)_
[٣] ) سير اعلام النبلاء: ٤/ ١٤١، وطبقات ابن سعد: ٥/ ١٨٢)_
[٤] ) سير اعلام النبلاء: ٤/ ١٤١، وطبقات ابن سعد: ٥/ ١٨٣)_
[٥] ) سير اعلام النبلاء: ٤/ ١٤١، وحلية الاولياء: ٢/ ١٧٦، رقم (الترجمة (١٧١))_
[٦] ) سير اعلام النبلاء: ٤/ ١٤١)_
[٧] ) پورته حواله و فوات الوفيات: ٤/ ١٤٣، رقم (٥٢٥))_
[٨] ) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د اموی خلیفه عبدالملک بن مروان او د مصعب بن زبیر د فوجونو مینځ کښې یو سخت او فیصله کن جنګ اوشو، مصعب خو دې دپاره وتلې وو چې شام به دوباره اخلو او د عبدالملک مقصود دفاع وه، ددې دواړو ټکراؤ د عراق یو وړوکې ښار "اوانا"[1] سره نزدې د دیرالجاثلق[2] په مقام باندې اوشو، چې آخرکار په دې کښې فتح عبدالملک ته اوشوه او مصعب قتل شو. دا د ۷۲هجرئ جمادی الاولی واقعه ده او دا د جمعرات ورځ وه، دې وخت کښې د مصعب عمر څلویښت کاله وو.[3]

د قتل نه پس د هغهٔ سر کټ کړې شو او د عبد الملک وړاندې پیش کړې شو؛

عبد الملک بن مروان وائی: "رایت بقصر الکوفة رأس الحسین الشهید، ثم رأس ابن زیاد، ثم رأس المختار، ثم رأس مصعب بین یدی عبد الملک"[4].

**حدیث شریف سره متعلق یو اصولي بحث:** دلته حدیث سره متعلق یو خبره باندې ځان پوهه کړئ چې د حضرت عمرو بن دینار رحمه الله الفاظ دا وو:

"فحدثها بجالة....." چې بجاله دغه دواړو ملګرو ته بیان کړه......ددې نه معلومه شوه چې بجاله دا روایت عمرو ته نهٔ وو بیان کړې او هغه مقصود بالتحدیث هم نهٔ وو، ددې باوجود عمرو د بجاله نه روایت کوی، دغه شان اوریدلې شوې حدیث روایت کول جائز دی او دا بالاتفاق د تحمل د وجوهو نه ده.[5]

البته په دې کښې اختلاف دې چې په داسې صورت کښې "حدثنا" وئیل جائز دی یا نهٔ؟نو جمهور ددې د جواز قائل دی او امام نسائی او بعضې حضرات ددې نه منع کوی، او علامه برقانی رحمه الله فرمائی چې د "حدثنا" په ځائې "سمعت فلاناً" وئیل پکار دی.[6]

**د درج معنی:** "درج" د دال او د راء فتحې سره، د درجة جمع ده، پوړو ته وئیلې شی[7]، په المغرب کښې دی: "درج السلم: رتبة، الواحدة: درجة"[8].

---

[1]) قال ابن خلکان: او انا بلیدة کثیرة البساتین والشجر، نزهة من نواحی دجیل بغداد، بینها وبین بغداد عشرة فراسخ من جهة تکریت..... "معجم البلدان: ۱/ ۲۷۴، باب الهمزة والواو.....)_

[2]) دیر الجاثلیق: دیر قدیم البناء، رحب الفناء، من طسوج مسکن قرب بغداد فی غربی دجلة، وهو راس الحدبین السواد وارض تکریت. معجم البلدان: ۲/ ۵۰۲، باب الدال والیاء.....)_

[3]) سیر اعلام النبلاء: ۴/ ۱۴۳، وطبقات ابن سعد: ۵/ ۱۸۳)_

[4]) سیر اعلام النبلاء: ۴/ ۱۴۳)_

[5]) عمدة القاری: ۱۵/ ۷۹_ ۸۰، وفتح الباری: ۶/ ۲۶۰)_

[6]) عمدة القاری: ۱۵/ ۸۰، وفتح الباری: ۶/ ۲۶۰)_

[7]) عمدة القاری: ۱۵/ ۸۰، والصحاح للجوهری: ۳۳۷، مادة درج")_

[8]) المغرب: ۲۸۴، الدال مع الراء)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله**: قال: كنت كاتباً لجزء بن معاوية عم الاحنف: بجاله فرمائی چې زهٔ د احنف د ترهٔ جزء بن معاویه کاتب ووم.

**جزء بن معاويه**: دا جزء "بفتح الميم وسكون الزائ، وفي آخره همزة"[1].

دا ابن معاویه بن حصین بن عبادة بن النزال بن مرة تمیمی رضي الله عنه دې[2]. دې د حضرت عمر رضي الله عنه له طرفه د هواز عالم وو او د ترمذی شریف په روایت کښې راغلې دی چې جزء د "تنادر" عامل وو[3]. لیکن حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چې تنادر هم د هواز یو کلې دې[4]. د دوی په صحابی کیدو کښې اختلاف دې، حافظ ابن حجر رحمه الله د دوی شمار په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې کړې دې، د ابن الاثیر جزری رحمه الله رائې هم داده، البته ابن عبدالبر رحمه الله د دوی د صحبت انکار کړې دې[5]. لیکن حافظ د دوی قول رد کولو سره فرمائی چې دغه زمانه کښې به خلیفه ګانو هغه کسان عاملان مقررول څوک چې به صحابه کرام رضي الله عنهم وو[6]. غیر صحابه به عام طور باندې عاملان نهٔ وو، ددې وجې نه غوره هم دا معلومیږی چې دا صحابی وو. د بلاذری د وضاحت مطابق حضرت جزء رضي الله عنه د حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه د خلافت زمانې پورې ژوندې وو او دوی د زیاد له طرفه څهٔ ذمه داریٔ هم ادا کړلې[7].

**الاحنف**: دا مشهور مخضرم تابعی حضرت احنف بن قیس رحمه الله دې، د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المعاصی من أمر الجاهلية......" کښې تیر شوې دی[8].

**قوله**: فأتانا كتاب عمر بن الخطاب قبل موته بسنة: نو مونږ ته د حضرت عمر رضي الله عنه خط د دوی د وفات نه یو کال مخکښې راغئ.

**عمربن الخطاب**: د دویم خلیفه حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه اجمالی تذکره د "بدء الوحی" د اولنی حدیث لاندې راغلې ده[9].

---

[1] ) ددې لفظ په ضبط کښې د محدثینو او د اهل نسب اختلاف دې، د محدثینو چې کوم مشهور قول دې نو مونږ هغه ذکر کړې دې، د نورو اقوالو دپاره اوګورئ عمدة القاری: ۷۹/۱۵، وفتح الباری: ۲٦۰/٦، والاكمال لابن ما كولا: ۷۹/۲_۸۱، باب جری وجزی.....)_

[2] ) الاصابة: ۲۳٤/۱، والاستيعاب بهامش الاصابة: ۲۵۹/۱)_

[3] ) انظر الجامع للترمذی، كتاب السير، باب فی اخذ الجزية من المجوس، رقم (۱۵۸٦)، ولكن المثبت فی رواية الترمذی مناذر "بدل تنادر" ولعل المثبت هو الصحيح، انظر معجم البلدان: ۱۹۹/۵، باب الميم والنون.....)

[4] ) فتح الباری: ۲٦۰/٦)_

[5] ) الاصابة: ۲۳٤/۱، والاستيعاب بهامش الاصابة: ۲۵۹/۱، واسد الغابة: ۱۷۸/۱، باب الجيم والزاری)_

[6] ) الاصابة: ۲۳٤/۱)_

[7] ) پورته حواله)_

[8] ) كشف الباری: ۲۲۳/۲)_

[9] ) كشف الباری: ۲۳۹/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پورته ذکر کړې شوې واقعه د ۲۲هجرۍ ده ځکه چې د حضرت عمر رضی الله عنه وفات په ۲۳هجرۍ کښې شوې دې[1].

**قوله:** فرقوا بين كل ذي محرم من المجوس: په مجوسيانو کښې چې چا خپل ذی محرم سره وادۀ کړې وی نو هغه ترينه جدا کړئ.

مجوس، د مجوسی جمع ده چې د مجوسيت طرفته ئې نسبت شوې دې او مجوسيان په زړو تيرو شوو باطلو فرقو کښې يوه فرقه ده او دا کلمه د منج گوش معرب دې چې د يو سړی نوم دې، د هغۀ واړۀ واړۀ غوږونه وو، ددې فرقې نسبت د هغۀ طرفته کيږی او "مجوس" ورته وئيلې شی، دا هغه سړې وو چې دۀ مجوسيت ايجاد کړو او خلق ئې ددې طرفته راؤبلل. د مجوسيانو نسبت (د خپل وهم مطابق پيغمبر) زرتشت طرفته هم کيږی او ددې وجې نه دوی ته زرتشی هم وئيلې کيږی. د مشهور قول مطابق دوی د اور عبادت کوی او قتاده رحمه الله فرمائی چې دوی د نمر، سپوږمۍ او د اور عبادت کوی.

د خپلې ترقۍ په زمانه کښې دوی د دنيا په مختلفو ځايونو کښې آتش کدې (د دوی د عبادت ځايونه) جوړې کړې، چې هلته به دوی د اور عبادت کوو، نن هم په هغې کښې څۀ موجودې دی. او ددې مذهب منونکی ددې خبرې هم قائل وو چې يو خالق د خير دې او بل خالق د شر دې، د خير د خالق نوم يزدان او د شر د خالق نوم اهرمن دې[2].

**ايا مجوس په اهل کتابو کښې داخل دی؟** د امت ذ فقهاء کرامو په دې خبره کښې اختلاف دې چې مجوس اهل کتابو کښې داخل دی يا نۀ؟

ددې اختلاف دارومدار په دې مسئله باندې دې، وړاندې تير شو چې د مجوسيانو نه به جزيه اخستلې کيږی يا نۀ؟ او په کوم بنياد باندې به ترينه اخستلې کيږی؟

د مجوسيانو متعلق حضرات شوافع دا وائی چې دوی هم اهل کتاب دی، ددې په دليل کښې هغوی د حضرت علی رضی الله عنه دا اثر پيش کوی:

"كان المجوس أهل كتاب يعرفونه، وعلم يدرسونه، فشرب أميرهم الخمر، فوقع على أخته، فرآه نفر من المسلمين، فلما أصبح قالت أخته: أنك قد صنعت بها كذا وكذا، وقد رآك نفر لا يسترون عليك، فدعا أهل الطمع، فأعطاهم، ثم قال لهم: قد علمتم أن آدم أنكح بنية بناته، فجاء اولئك الذين رأوه، فقالوا: ويلاً للابعد، إن في ظهرك حداً، فقتلهم، وهم الذين كانوا عنده، ثم جاءت امرأة، فقالت له: بلى، قد رايتك، فقال لها: ويحا لبغي بني فلان، قالت: أجل، والله لقد كنت بغية، ثم تبت، فقتلها، ثم أسري على ما في قلوبهم وعلى كتبهم، فلم يصبح عندهم شيئ"[3]. (اللفظ لعبد الرزاق).

---

[1]) فتح الباري: ۶/(۲۶۱)_

[2]) د مذکوره تفصيلاتو دپاره اوګورئ، اوجز المسالک: ۶/۱۹۱. ولسان العرب: ۶/۲۲۳، مادة: مجس". و روح المعانی: ۱۷/۱۲۹. سورة الحج: ۱۷. تفسير قوله تعالى: (والنصارى والمجوس) و دائره معارف اسلاميه (اردو): ۱۸/۵۸۸)_

[3]) انظر المصنف لعبد الرزاق، کتاب اهل الکتابين، باب هل يقاتل اهل الشرک .... [بقيه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

یعنی ”مجوس د یو کتاب حاملین وو، چې په هغې باندې پوهیدل، هغه ئې لوستلو، یوه ورځ د هغوی امیر شراب اوڅکل، نو په خپله خور باندې ورغئ، نو د مسلمانانو یوې ډلې هغه اولیدهٔ، چې کله سحر شو نو د هغهٔ خور اووئیل چې تا ماسره داسې داسې کړې دی او حق خبره دا ده چې یو داسې ډلې تهٔ لیدلې ئې چې په تا باندې به پرده وانهٔ چوي. نو هغهٔ اهل طمع (علماء سوء) راؤبلل، بیا ئې هغوی ته اووئیل چې تاسو ته ښهٔ پته ده چې آدم علیه السلام به د خپلو ځامنو نکاح د خپلو لونړو سره کولې (لهذا ماهم داسې کړی دی نو په دې کښې څهٔ حرج دې؟) نو هغه خلق راغلل، چاچې دا سړې خپلې خور سره مبتلا لیدلې وو، وې وئیل چې د منحوس دپاره دې هلاکت وی، په تا باندې حد واجب شوې دې. نو هغوی دې قتل کړهٔ، دا هغه خلق وو چې دهٔ سرهٔ وو، بیا یو ښځه راغله، هغې اووئیل: او اما تاسو لیدلې ئې، نو امیر هغې ښځې ته اووئیل: د بنی فلان د زناکارې دپاره دې هلاکت وی، هغې ښځې اووئیل: صحیح ده (بالکل) په خدائې قسم ازهٔ زناکاره ووم، بیا ما توبه اوکړه، هغهٔ هغه ښځه هم قتل کړه، بیا ددغه خلقو په زړونو کښې چې څهٔ وو او د هغوی په کتابونو کښې چې څهٔ وو هغه اوچت کړې شو، دغه شان دوی سره هیڅ څیز روغ پاتې نهٔ شو“.

دا خو د شوافعو دلیل شو، لیکن ددې اثر په صحت کښې کلام دې، بعضې حضراتو دا متصل ښودلې دې او بعضو منقطع ښودلې دې[۱]. او بعضې علماء حضرات خو ددې اثر د صحت بالکل قائل نهٔ دی، لکه علامه ابن قیم او حافظ ابن بطال رحمة الله علیهما دې اثر ته غیرصحیح او غیرثابت وئیلې دی[۲]. بیا که چرته ددې صحت تسلیم هم کړې شی نو ددې مطلب هم دادې چې د دوی اسلاف هم اهل کتاب وو، ځکه چې د مذکوره اثر مضمون هم دادې چې دا خلق اول اهل کتاب وو، لیکن وروستو بیا کتاب د دوی د سینو نه اوویستلې شو، نو اوس څنګه دوی اهل کتاب شو؟

د دوی په اهل کتاب نهٔ کیدو باندې هغه روایت هم دلالت کوی کوم چې د حسن بن محمد رحمه الله نه روایت دې، چې ”لا تؤکل لهم ذبیحة، ولا تنکح لهم امرأة“[۳]. چې ”نهٔ به د دوی ذبیحه خوړلې شی او نهٔ د دوی د ښځو سره نکاح جائزه ده“.

نو که دوی اهل کتاب وو نو ددوی ذبیحه خوړل او د دوی ښځو سره نکاح کول به خامخا

---

بقیه ازحاشیه گذشته] حتی یؤمنوا.....؟رقم (۱۹۲۶۲)، وکتاب اهل الکتاب، اخذ الجزیة من المجوس، رقم (۱۰۰۲۹)، وفتح الباری: ۲۶۱/۶، وعمدة القاری: ۱۵/ ۸۰، وکتاب الام: ۱۷۳/۴/۲، وسنن البیهقی الکبری، کتاب الجزیة، باب المجوس اهل الکتاب..... ۹۱۸۹/، رقم (۱۸۶۵۰))_

[۱]) اعلاء السنن: ۴۳۹/۱۲)_

[۲]) زاد المعاد فی هدی خیر العباد: ۱۵۴/۳، وشرح ابن بطال: ۳۳۱/۵. دلته اوګوری، نصب الرایة: ۲۵۶/۲، والجوهر النقی: ۹۱۹۰/)_

[۳]) احکام القرآن: ۱۲۱/۳، وطبقات ابن سعد: ۲۶۳/۱، والمصنف لابن ابی شیبة: ۴۰۷/۱۷، کتاب السیر، ما قالوا فی المجوس.....رقم (۳۳۳۱۳))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جائز وو لکه څنګه چې الله تعالی د نورو اهل کتابو سره دا کارونه مباح ګرځولي دي[1].
په دې باره کښې چې مجوس په اهل کتابو کښې داخل نۀ دی د احناف حضراتو رحمهم الله دليل د قرآن کريم نه خو دا دې (أن تقولوا إنما أنزل الكتاب على طائفتين من قبلنا)[2].دې آيت کريمه کښې اهل کتاب ته په دوو ډلو کښې منحصر وئيلې شوې دی، که مجوس هم په اهل کتاب کښې وو نو بيا خو دا درې ډلې شوې، حالانکه دا خبره د آيت کريمه خلاف ده، ددې وجې نه د آيت کريمه په رنړا کښې مجوس په اهل کتابو کښې داخل نۀ دی[3].
د احنافو دويم دليل هغه روايت دې کوم چې په مؤطا وغيره کښې د جعفر بن محمد بن علی عن ابيه د طريق نه روايت دې:
"أن عمر بن الخطاب رضي الله عنه ذكر المجوس، فقال: ما أدرى كيف أصنع فى أمرهم؟ فقال عبد الرحمن بن عوف: أشهد لسمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: سنوا بهم سنة أهل الكتاب"[4].
يعنی: "حضرت عمر رضي الله عنه د مجوسيانو تذکره اوکړه، بيا ئې اوفرمائيل چې ماته ددې مجوسيانو په سلسله کښې علم نشته چې زۀ څۀ اوکړم؟ نو حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه اوفرمائيل چې ما د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه اوريدلې دی چې دوی سره د اهل کتابو په شان سلوک اوکړئ".
دا روايت اګرچه منقطع دې ځکه چې د محمد ملاقات نۀ د عمرفاروق رضي الله عنه سره ثابت دې او نۀ د عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه سره ليکن ددې معنی د حسان نورو مختلفو طرقو د وجې نه متصل ده[5].دغه شان ابوعلی الحنفی هم دا روايت د امام مالک د طريق نه نقل کړې دې، چې د هغې تخريج بزار او دارقطنی رحمة الله عليهما وغيره کړې دې او دا روايت مرسل دې چې زمونږ په نزد حجت دې[6].او په دې روايت کښې خو صراحتاً د "فى الجزية" لفظ هم موجود دې[7].بيا په طبرانی کښې د مسلم بن العلاء الحضرمی د طريق نه ددې ګواه هم موجود دې چې "سنوا بالمجوس سنة أهل الكتاب[8].

---

[1]) احکام القرآن للجصاص:۳/۱۲۱،واوجز المسالک:۶/۱۹۴)_
[2]) الانعام:۱۵۶)_
[3]) احکام القرآن للجصاص:۳/۱۲۱،واوجز المسالک:۴/۱۹۴)_
[4]) المؤطا،کتاب الزکاة،باب جزية اهل الکتاب.....،رقم (۴۲)،ومصنف ابن ابی شيبة:۷/۷۱_۲۷،فی الزکاة، فی المجوس يؤخذ منهم.....،رقم (۱۰۸۷۰)،و۱۷/۴۰۹،کتاب السير (۳۳۳۱۹)،وسنن البيهقی الکبری: ۹/۱۸۹،کتاب السير،رقم (۱۸۶۵۴))_
[5]) اوجز:۶/۲۰۰،والتعليق الممجد علی مؤطا محمد:۱۷۶،کتاب الزکاة،باب الجزية)_
[6]) اوجز۶/۲۰۰،والتمهيدلابن عبدالبر:۲/۱۱۵،ومسند البزار:۳/۲۶۴،مسند عبدالرحمن بن عوف،رقم (۱۰۵۶)
[7]) فتح الباری:۶/۲۶۱،والاوجز:۶/۲۰۱)_
[8]) مجمع الزوائد:۶/۱۳،کتاب الجهاد،ماجاء فی الجزية،والطبرانی فی الکبير:۱۹/۴۳۷[بقيه برصفحه آئنده..

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دغه شان ددې نه علاوه هم ددې خبرې خيال ساتئ چې شوافع ددې خبرې خو قائل دى چې مجوسيانو سره نكاح كول او د هغوى ذبيحه خوړل جائز نهٔ دى ليكن بياهم دا وائى چې دا خلق اهل كتاب دى،كه دوى اهل كتاب وو نو دا كارونه به هم جائز وو؟[1].دغه شان د باب حديث هم په خپله په دې باندې دلالت كوى چې مجوس اهل كتابو كښې داخل نهٔ دى او دوى د"اهل الكتاب"په عموم كښې شامل نهٔ دى ورنه حضرت عمر رضی الله عنه چې د دوى نه د جزيې په وصولئ كښې كوم توقف كوى نو ددې څهٔ مطلب دې؟[2].ددې وجې نه صحيح هم دا معلوميږى چې مجوس په اهل كتاب كښې داخل نهٔ دى،صرف د جزيې په وصولئ كښې دوى د اهل كتابو سره شريك دى،دا هم ددې وجې نه چې نبى عليه السلام د دوى نه جزيه اخستلې ده،ددې وجې نه نهٔ چې دوى په اهل كتابو كښې داخل دى[3].والله اعلم بالصواب.

**يو اشكال او د هغې جواب:** د حديث شارحينو دلته يو اشكال ذكر كړې دې چې د هغې تقرير دا دې چې د ذميانو دينى عقائدو او شعائرو سره تعرض نهٔ شى كيدې،مثلاً د مجوسيانو په نزد چونكه محرماتو سره نكاح كول جائز دى ددې وجې نه خليفه او د خليفه نائبان ددوى په دې كار كښې مداخلت نهٔ شى كولې[4].او دلته د باب په حديث كښې راغلې دى چې حضرت عمر رضی الله عنه د مجوسيانو د هغې جوړو د جدا كولو حكم كړې.وو كوم چې خپل مينځ كښې محرم وو نو دا خو د هغوى په مذهبى عقيدو كښې مداخلت شو چې شرعى لحاظ سره صحيح نهٔ كار نهٔ دې.

ددې اشكال جواب دادې چې دلته دوه جداجدا څيزونه دى،يو خو دا چې ذميان خپل مذهبى معاملات پوره كوى.دويم دا چې ذميان ددې معاملاتو اظهار هم د مسلمانانو په وړاندې اوكړى نو اولنې څيز خو جائز دې ليكن ددې دويم كار(يعنى د مسلمانانو په وړاندې د ښكاره كولو)اجازت بالكل نشته،د حضرت عمر رضی الله عنه د حكم مطلب هم دا وو چې دوى خپل مينځ كښې محرماتو سره نكاح خو كولې شى ليكن د عامو مسلمانانو په وړاندې ددې اظهار نهٔ شى كولې،نهٔ ددې دپاره اجتماعات منعقد كولې شى،دغه شان څنګه چې د مسلمانانو د ودونو ښادو اعلان كيږى نو دغه شان اعلان هم نهٔ شى كولې.

ددې مثال هغه شرطونه دى،كوم چې د امين الامه حضرت ابوعبيده بن الجراح رضی الله عنه له طرفه د دمشق د فتح كولو نه پس په نصارى باندې لګولې شوې وو،په هغې كښې بعضې شرطونه دا وو چې هغوى صليب ښكاره نهٔ شى آويزاندولې،د خپلو مخصوص خوشحالو (اخترونو)

---

بقيه ازحاشيه گذشته] رقم (۱۰۵۹)، مسلم بن العلاء الحضرمى)_

[1]) المنتقى:۲۷۶/۳،كتاب الزكاة،جزية اهل الكتاب،رقم (۶۸۱)،والاوجز:۲۰۲/۶،وشرح ابن بطال:۳۳/۵)

[2]) عمدة القارى:۸۰/۱۵،واعلام الحديث للخطابى:۱۴۶۲/۲)_

[3]) احكام القرآن:۱۱۹/۳_۱۲۱)_

[4]) وفى الشامية:۲۹۷/۳: نتركهم وما يدينون"فصل فى الجزية،مطلب ليس المراد منه......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اعلان نهٔ شی کولې.د گرجو دروازې مسلمانانو دپاره نهٔ شی بندولې،وغیره وغیره[1].
دې دپاره چې عام مسلمانان په فتنه کښې مبتلا نهٔ شی او د هغوی د شان و شوکت نه متاثره نهٔ شی[2].والله أعلم

**قوله: ولم يكن عمر أخذ الجزية من المجوس حتى شهد عبد الرحمن بن عوف:**
او حضرت عمر رضي الله عنه د مجوسیانو نه جزیه نهٔ وه اخستلې تردې چې حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه[3] گواهی ورکړه.......

**مذکوره جمله باندې سندی بحث:** پورته ذکر شوې جمله یا خو د حضرت عمر رضي الله عنه د هغه خط حصه ده د کوم خط تذکره چې پورته په حدیث کښې تیره شوه،په دې صورت کښې به د روایت حیثیت "رواية عمر عن عبد الرحمن بن عوف" وی یعنی حضرت عمر،د حضرت عبد الرحمن نه روایت کوی لکه د ترمذی شریف[4] په روایت کښې ددې وضاحت هم شته چې "فجاءنا كتاب عمر: انظر مجوس من قبلك،فخذ منهم الجزية،فان عبد الرحمن بن عوف أخبرني........".
لیکن اصحابو د "اطراف الحديث" دا حدیث په بجاله عن عبد الرحمن کښې ذکر کړې دې[5].
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ددې حضراتو دا کار صحیح نهٔ دې،ځکه چې د حدیث په ټولو طرقو کښې هیڅ یو طریق کښې هم دا خبره ذکر نهٔ ده چې بجاله دا روایت د حضرت عبد الرحمن بن عوف نه اخستلې دې بلکه د ترمذی شریف پورته ذکر شوې روایت خو په دې باب کښې واضح دې،ددې وجې نه دا روایت په "عمر بن الخطاب عن عبد الرحمن" کښې ذکر کول مناسب وو نهٔ چې په "بجالة عن عبد الرحمن" کښې[6].
**هَجَر:** دا کلمه د هاء او د جیم فتحې سره ده،د نبی عليه السلام په زمانه کښې په دې نوم سره څو علاقې وې،چې په هغې کښې هجربحرین،هجرنجران،هجرجازان او هجرمازن وغیره شامل دی.لیکن دلته هجربحرین مراد دې،دې وخت کښې دلته مجوسیان په لوئې تعداد کښې آباد وو،په ۸ یا ۱۰ هجرئ کښې د نبی عليه السلام په ژوند مبارک کښې دا علاقه د حضرت علاء بن

---

[1] انظر نص تلك الشروط فى تهذيب تاريخ دمشق الكبير:۱/۱۵۰،باب كيف كان امر دمشق.....؟)_
[2] اعلام الحديث:۲/۱۴۶۳،وفتح البارى:۶/۲۶۱،وعمدة القارى:۱۵/۸۰،واعلاء السنن:۱۲/۴۴۱_۴۴۲، وتحفة البارى:۳/۵۶۵،وارشاد السارى:۵/۲۳۰)_
[3] دحضرت عبد الرحمن بن عوف حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب الجنائز،باب الكفن من جميع المال)_
[4] الحديث اخرجه الترمذى فى ابواب السير،باب فى اخذ الجزية من المجوس،رقم (۱۵۸۷)،وابو داؤد، كتاب الخراج.....باب فى اخذ الجزية من المجوس،رقم (۳۰۴۳)،والنسائى فى الكبرى،رقم (۸۷۶۸))_
[5] انظر مثلا:تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف:۷/۲۰۷)_
[6] فتح البارى:۶/۲۶۱،والنكت الظراف على الاطراف:۷/۲۰۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الحضرمی رضي الله عنه په لاسونو مبارکو فتح شوې وه(۱). د مجوسیانو نه په جزیه اخستلو کښې چې کله د حضرت عمر رضي الله عنه تردد پیدا شو نو حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ورته ددې علاقې حواله ورکړه چې نبی کریم ﷺ ددې علاقې د مجوسیانو نه جزیه اخستلې وه.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت په دې جمله کښې دی: "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أخذها من المجوس"(۲) په دې کښې د مجوسیانو نه د جزیه اخستلو تذکره ده، چې د مصنف رحمه الله مقصود دی.

۲۹۸۸ (۳) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَوْفٍ الْأَنْصَارِيَّ وَهُوَ حَلِيفٌ لِبَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - بَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ إِلَى الْبَحْرَيْنِ يَأْتِي بِجِزْيَتِهَا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - هُوَ صَالَحَ أَهْلَ الْبَحْرَيْنِ، وَأَمَّرَ عَلَيْهِمُ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ، فَقَدِمَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ، فَسَمِعَتِ الْأَنْصَارُ بِقُدُومِ أَبِي عُبَيْدَةَ فَوَافَتْ صَلَاةَ الصُّبْحِ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، فَلَمَّا صَلَّى بِهِمُ الْفَجْرَ انْصَرَفَ، فَتَعَرَّضُوا لَهُ، فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ رَآهُمْ وَقَالَ «أَظُنُّكُمْ قَدْ سَمِعْتُمْ أَنَّ أَبَا عُبَيْدَةَ قَدْ جَاءَ بِشَيْءٍ». قَالُوا أَجَلْ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «فَأَبْشِرُوا وَأَمِّلُوا مَا يَسُرُّكُمْ، فَوَاللَّهِ لَا الْفَقْرَ أَخْشَى عَلَيْكُمْ، وَلَكِنْ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ، فَتَنَافَسُوهَا كَمَا تَنَافَسُوهَا وَتُهْلِكَكُمْ كَمَا أَهْلَكَتْهُمْ». [۶۰۶۱، ۳۷۹۱]

## رجال الحديث

①**ابواليمان،** ②**شعيب:** د حضرت ابو اليمان حكم بن نافع او د شعيب ابن ابى الحمزه الحمصى رحمهما الله حالات د بدء الوحى په شپږم حديث کښې تير شوې دی(۴).

---

(۱) معجم البلدان:۵/۳۹۳،باب الهاء والجيم......وعمدة القارى:۱۵/۸۰_وذكر ابن سعد فى طبقاته (۱/۲۶۳): ان النبى ﷺ بعد قسمة الغنائم بالجعرانة ارسل العلاء الى المنذر بن ساوى عامل البحرين. يدعوهم الى الاسلام،فاسلم،وصالح مجوس تلك البلادعلى الجزية".فتح البارى:۶/۲۶۲،وهذه العبارة تدل على انها كانت فى سنة تسع؛لان النبى ﷺ نزل بالجعرانة سنة تسع من الهجرة)_

(۲) عمدة القارى:۱۵/۷۹)_

(۳) قوله_عمرو بن عوف الانصارى رضي الله عنه ":الحديث،اخرجه البخارى ايضا فى صحيحة،فى كتاب المغازى، باب بلا ترجمة،بعد باب شهود الملائكة بدرا،رقم (۴۰۱۵)،وفى كتاب الرقاق،باب مايحذر من زهرة الدنيا والتنافس فيها،رقم (۶۴۲۵)،ومسلم فى صحيحة،كتاب الزهد،باب الدنيا سبحن المؤمن وجنة الكافر،رقم (۷۴۲۵_۷۴۲۶)،والترمذى،فى ابواب صفة القيامة (باب حدث:والله ما الفقر اخشى عليكم)،رقم (۲۴۶۲)، وابن ماجه فى سننه،كتاب الفتن،باب فتنة المال،رقم (۳۹۹۷))_

(۴) كشف البارى:۱/۴۷۹_۴۸۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

③**زهري**: دا امام ابن شهاب زهري رحمه الله دې،د دوی تذکره په "بدء الوحی" کښې راغلې ده.[1]

④**عروة بن الزبير**:دا مشهور تابعی حضرت عروه بن زبير بن العوام رحمه الله دې.د دوی حالات د "بدء الوحی" په دويم حديث کښې ذکر شوې دی.[2]

⑤**مسور بن مخرمة**:دا مشهور صحابی حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه دې.[3]

⑥**عمرو بن عوف الانصاري**:دا حضرت عمرو بن عوف الانصاری رضي الله عنه دې.دوی د اسلام کښې اولنو صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې او د بنو عامر بن لوئی ملګرې او د بدر په شريکانو کښې دی.[4]دوی د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه روايت کوی.د دوی نه روايت کوونکې صرف حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه دې.[5]او د دوی نه صرف يو حديث روايت دې کوم چې په باب کښې ذکر شوې دې.[6]په ائمه سته کښې د امام ابوداؤد رحمه الله نه علاوه باقی ټولو حضراتو د دوی نه روايت اخستلې دې.[7]د حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه د خلافت په دور کښې دوی وفات شو.[8] رضی الله عنه وأرضاه

**دې ولې انصاري دې؟**:دلته يو سوال دا پيدا کيږی چې حضرت عمرو بن عوف رضي الله عنه څنګه انصاری دې،حالانکه د اهل مغازی په نزد دا مشهوره ده چې دوی مهاجر وو،ددې خبرې تائيد ددې جملې نه هم کيږی:"وهوحليف لبنی عامربن لؤی"ددې جملې نه خو دا معلوميږی چې دوی مکی وو؟

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې سوال دوه جوابونه ذکر کړې دی:

①کيدې شی چې دوی د معنې په اعتبار سره په انصاری باندې مشهور وی،ددې خبرې نه خو هيڅ څيز مانع نهٔ دې چې د دوی تعلق اوس يا خزرج سره وی،بيا ئې په مکه مکرمه کښې اوسيدل اختيار کړې وی او هلته ئې بعضې قبيلو سره اتحاد کړې وی نو په دې اعتبار سره مهاجر او انصاری دواړه شو.

②لفظ د "الانصاري" وهم دې او دا د شعيب ابن ابی حمزه تفرد دې،ځکه چې په صحيحينو کښې دا حديث د امام زهري رحمه الله نه د هغوی پنځه شاګردان نقل کوی،شعيب بن ابی

---

[1] ) کشف الباري:۱/۳۲۶،الحديث الثالث)_
[2] ) کشف الباري:۱/۲۹۱،و:۲/۴۳۶)_
[3] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ،کتاب الوضوء،باب استعمال فضل وضوء الناس)_
[4] )تهذيب الكمال:۲۲/۱۷۴،والطبقات:۴/۳۶۳،وتهذيب التهذيب:۸/۸۵والاستيعاب:۲/۱۰۴،رقم (۱۹۵۲)
[5] ) الطبقات:۴/۳۶۳،وتهذيب الكمال:۲۲/۱۷۵،والجرح والتعديل:۶/۳۱۳،باب العين،رقم (۱۳۴۰))_
[6] ) تهذيب الكمال:۲۲/۱۷۵)_
[7] ) پورته حواله)_
[8] ) فتح الباري:۶/۲۶۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حمزه،معمر بن راشد ،یونس بن یزید ،موسی بن عقبه او صالح بن کیسان رحمهم الله[1] په دوی کښې د شعیب نه علاوه څوک هم د"الانصاری"لفظ نۀ روایت کوی،ددې وجې نه د حافظ صاحب یقین په دې باندې دې چې مذکوره لفظ وهم دې[2].او علامه عینی رحمه الله اولنې احتمال راجح ګرځولې دې چې دې انصاری هم دې او مهاجر هم.د علامه قسطلانی رحمه الله رائې هم داده[3].

**یو اهم خبرداری:** د امام موسی بن عقبه رحمه الله نه د حضرت عمرو بن عوف د نوم په سلسله کښې دوه اقوال روایت دی،لکه هغوی په خپل کتاب"المغازی"کښې د دوی نوم تصغیر سره عمیر بن عوف نقل کړې دې او د بخاری شریف د کتاب الرقاق روایت چې د موسی نه روایت دې په هغې کښې د تصغیر نه بغیر عمرو موجود دې[4].ددې وجې نه ممکنه ده چې دا دواړه نومونه د دوی وی،کله ورته عمیر وئیلې شوې وی او کله ورته عمرو[5].ابن عبد البر رحمه الله لیکلې دی چې دوی ته عمیر هم وئیلې کیږی[6].البته عسکری رحمه الله د عمیر او د عمرو مینځ کښې تفریق کړې دې،دا دواړه ئې جدا جدا شخصیات ګرځولې دې لیکن صحیح داده چې دا د یو صحابی دوه نومونه دی[7].

**قوله:** أن رسول الله بعث أبا عبيدة بن الجراح(۸) إلى البحرين يأتي بجزيتها.: چې رسول الله ﷺ بحرین ته د جزیې دوصولۍ دپاره حضرت ابو عبیده بن الجراح رضی الله عنه روان کړو.

"بحرین"نن صبا یو مستقل ریاست دې لیکن په دغه زمانه کښې دا علاقه په عراق کښې شامله وه،دا د بصرې او د هجر مینځ کښې واقع دې،ددې اوسیدونکې دغه وخت کښې ډیر مجوسیان وو[9] کما مرقبل ایضاً.

**قوله:** وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم هو صالح أهل البحرين،وأمر عليهم العلاء (۱۰)بن الحضرمي.: او نبی کریم ﷺ د بحرین اوسیدونکو سره صلح کړې

---

[1]) تحفة الاشراف:۸/۱٦۸،مسند عمرو بن عوف الانصاری.....)_

[2]) فتح الباری:٦/٢٦٢)_

[3]) عمدة القاری:۱۵/۸۱،وارشاد الساری:۵/ ۲۳۰)_

[4]) انظر صحیح البخاری،کتاب الرقاق،باب ما یحذر من زهرة الدنیا......رقم (٦٤٢٥))_

[5]) عمدة القاری:۱۵/۸۱،وفتح الباری:٦/٢٦٢)_

[6]) الاستیعاب:۲/ ۱۰٤،رقم (۱۹۵۲))_

[7]) عمدة القاری:۱۵/۸۱،وفتح الباری:٦/۲٦۲،و تهذیب التهذیب:۸/۸٦)_

[8]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الشرکة،باب الشرکة فی الطعام......)_

[9]) فتح الباری:٦/۲٦۲)_

[10]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ،کتاب الشهادات،باب من امر بانجاز الوعد)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وه او په هغوی باندې ئې حضرت علاء بن الحضرمی امیر مقرر کړې وو. په حدیث شریف کښې د مذکوره صلحې واقعه "سنة الوفود" یعنی د ۹هجرئ ده[۱].

**د مذکوره واقعې تفصیل:** د جعرانه نه په واپسئ باندې نبی کریم ﷺ حضرت علاء بن الحضرمی رضی الله عنه د منذر بن ساوی العبدی په طرف روان کړو. مقصد هغهٔ ته د اسلام دعوت ورکول وو او د هغهٔ په نوم ئې یو خط هم اولیکهٔ. منذر نبی علیه السلام ته جوابی خط اولیکهٔ، چې په هغې کښې د هغهٔ د اسلام د قبلولو اطلاع وه، دا ئې هم لیکلې وو چې:

"وإني قد قرأت كتابك على أهل هجر، فمنهم من أحب الاسلام، وأعجبه، و دخل فيه، ومنهم من كرهه، وبأرضي مجوس ويهود، فأحدث إلي في ذلك أمرا".

یعنی: "ما ستاسو خط اهل هجر ته اولوستلو، بعضو خو اسلام خوښ کړو، هغوی ته خوښ شو او ښهٔ پرې اولګیدهٔ او په اسلام کښې داخل شو او بعضو ناخوښه کړو او زما په حکومت کښې مجوسیان او یهودیان هم دی، د هغوی په باره کښې تاسو ما ته څهٔ اولیکئ چې د هغوی متعلق ستاسو څهٔ حکم دې؟".

نو نبی کریم ﷺ ورته په جواب کښې خط اولیکلو چې ترڅو تاسو حکومت ښهٔ طریقې سره جاری ساتئ او د حکومتی کارونو خیال ساتئ نو مونږ به تاسو نهٔ معزوله کوو او کوم سړې چې هم په مجوسیت او یهودیت باندې برقرار اوسیږی نو هغهٔ دپاره به جزیه ادا کول ضروری وی...... [۲].

**قوله: فقدم أبوعبيدة بمال من البحرين:** نو حضرت ابوعبیده رضی الله عنه څهٔ مال سره د بحرین نه واپس شو.

حضرت ابوعبیده رضی الله عنه چې د بحرین نه واپس کیدو نو ځان سره ئې د هغې ځائې نه څهٔ مال هم راوړلو، د هغې مال مقدار څهٔ وو؟ نو په دې سلسله کښې حضرت ابن ابی شیبه رحمه الله د حمید بن هلال د طریق نه مرسلاً روایت کړې دې چې ددغه مال مقدار اتهٔ لاکه وو، دا حضرت علاء رضی الله عنه راستولې وو او دا د ټولو نه اولنې خراج وو، کوم چې د نبی علیه السلام خدمت مبارک کښې پیش کړې شو[۳].

**خبرداري:** د ابن ابی شیبه په نسخو کښې د مذکوره مال مقدار اتهٔ لاکه راغلې دې، او حافظ د ابن ابی شیبه نه یو لاک نقل کړې دې اود ابن سعد، یعقوب بن سفیان او د حاکم په روایتونو کښې د مذکوره مال مقدار اتیا زره ذکر شوې دې. والله أعلم بالحقیقة.

اوګورئ: تعلیقات الشیخ محمد عوامة علی المصنف: ۱۹/۵۳۲_.

---

[۱]) فتح الباری: ۶/۲۶۲، وشرح القسطلانی: ۵/۲۳۰، وعمدة القاری: ۱۵/۸۱)_

[۲]) الطبقات الکبری لابن سعد: ۴/۳۶۳)_

[۳]) المصنف لابن ابی شیبة: ۱۹/۵۳۳، کتاب الاوائل، باب اول ما فعل......رقم (۳۶۹۵۵)، وفتح الباری: ۱/۵۱۷، رقم (۴۲۱)، کتاب الصلاة......وهدی الساری: ۳۹۶، کتاب الصلاة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فسمعت الانصار بقدوم أبي عبيدة، فوافقت صلاة الصبح مع النبي ﷺ، فلما صلى بهم الفجر انصرف، فتعرضوا له، فتبسم رسول الله صلى الله عليه وسلم حين رآهم، وقال: أظنكم قد سمعتم أن أباعبيدة قد جاء بشئ

چې انصارو د حضرت ابوعبيده د واپسئ واوريدل نو هغوی د سحر مونځ نبی کريم ﷺ سره اوکړو، کله چې نبی ﷺ هغوی ته د سحر مونځ اوکړو نو د واپسئ دپاره راتاؤ شول نو انصار ورته مخامخ راغلل، چې نبی ﷺ هغوی اوليدل نو وې خاندل او ارشاد ئې اوفرمائيلو، زما خيال دادې چې تاسو خلقو د ابوعبيده، د بحرين نه، د واپسئ اوريدلې دی چې هغوی څان سره څۀ راؤړلې دی.

**د حديث نه مستنبط يوه فائده:** د مذکوره پورتنی عبارت نه دا يو خبره مستنبط شوه چې صحابه کرام، مهاجرين وانصار، ﷺ به په ټولو مونځونو کښې د نبی ﷺ سره په جماعت کښې نۀ شريکيدل، البته، دا چې څۀ واقعه به پيښه شوه او دا چې صحابه کرامو ﷺ به په خپلو خپلو مساجدو کښې مونځ کوو، ځکه چې د هرې قبيلې خپل خپل مسجد وو چې هلته به هغوی جمع کيدل، ددې وجې نه چې هرکله نبی کريم ﷺ هغوی اوليدل چې د سحر په مانځۀ کښې ټول جمع دی نو دوی ته معلومه شوه چې دا ټول د څۀ کار په غرض سره راغلې دی او قرينه هم ددې کار په تعيين باندې دلالت کوی چې هغوی ته د مال و دولت ضرورت وو نو چې په دې مال کښې د هغوی دپاره هم څۀ گنجائش اوشی، البته د هغوی دا خواهش وو چې مهاجرينو ته هم په دې کښې څۀ حصه ملاويدل پکار دی، ددې وجې نه کله چې هغوی ته نبی ﷺ په بحرين کښې د جاگيردارو پيش کش اوکړونو انصارو هم دا اوفرمائيل:

"حتى تقطع لاخواننا من المهاجرين مثل الذى تقطع لنا"[1]. هرکله چې مال راغئ نو انصارو سوچ اوکړو چې په دې مال کښې د مهاجرينو هم حق دې.

او دا هم احتمال دې چې نبی ﷺ په خپله دوی سره وعده کړې وی چې کله مال راشی نو زۀ به ترينه تاسو خلقو ته درکوم، لکه حضرت جابر بن عبدالله انصاری ﷺ سره نبی ﷺ وعده کړې وه چې د بحرين نه مال راشی نو زۀ به تاسو ته درکوم، بيا دا وعده د نبی ﷺ د وفات نه پس حضرت ابوبکر صديق ﷺ پوره کړې وه[2]. خلاصه دا شوه چې انصارو خو يا په خپله د مال باره کښې واوريدل نو راغلل چې په دې مال کښې زمونږ هم حق دې يا چونکه نبی کريم ﷺ ورسره وعده کړې وه ددې وجې نه حاضر شو[3].

**قوله: قالوا: أجل يارسول الله:** انصارو په جواب کښې اووئيل، آوجی! يا رسول الله! امام اخفش ﷫ فرمائی چې اجل په معنی کښې د نعم په شان دې، البته په دې دواړو کښې

---

[1] اوگورئ: صحيح البخاری، کتاب المساقاة، باب القطائع، رقم (۲۳۷۶)).

[2] انظر صحيح البخاری، کتاب الکفالة، باب من تکفل عن ميت......رقم (۲۲۹۶)).

[3] فتح الباری: ۶/ ۲۶۲_۲۶۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فرق دادې چې د نعم استعمال د جوابِ استفهام دپاره وی ځکه چې ددې استعمال په دې ځائې کښې غوره دې او چې کله تصدیق مقصود وی نو هلته د اجل استعمال د نعم په ځائې زیات غوره دې[1].

**قوله: قال: فأبشروا، وأملوا ما يسركم:** نبی علیه السلام اوفرمائیل، خوشحاله شه او د هغه څیز امید ساته چې تا خوشحاله کړی.

"ابشروا" صورتاً خو امر دې لیکن معناً خبر دې، مطلب دادې چې د کوم مقصود دپاره تاسو ماته راغلې ئې، هغه حاصل شو او مال به تاسو ته ملاؤ شی[2].

**قوله: فوالله، لا الفقر أخشى عليكم، ولكن أخشى عليكم أن تبسط عليكم الدنيا، كما بسطت على من كان قبلكم، فتنافسوها كما تنافسوها، وتهلككم كما أهلكتهم:** په خدائې قسم ماته ستاسو د نهرې لوږې خطره نشته بلکه دا ویره ده چې دنیا به په تاسو باندې فراخه کړې شی، لکه څنګه چې ستاسو نه مخکښې امتونو باندې کړې شوې وه، تاسو به هم په دې کښې دغه شان رغبت اوکړئ څنګه چې هغوی رغبت کړې وو. بیا به تاسو دنیا د هغوی په شان هلاک کړی.

د "تنافس" معنی ده په یو څیز کښې رغبت ساتل او هغه څیز خپل ځان سره خاص کول. او په حدیث مبارک کښې دا خبره وئیلې شوې ده چې په دنیا کښې رغبت ساتل بعضې وخت کښې انسان د هلاکت په طرف روان کړی او ددې وجې نه آخرت برباد شی[3].

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** د باب مطابقت د حدیث دې لاندې جملو سره موندلې شی:

① "**أن رسول الله صلى الله عليه وسلم بعث أبا عبيدة...... يأتي بجزيتها**" ځکه چې په دې کښې د جزیه ذکر دې او د ترجمې اولنې جزء جزیه ده.

② "**فقدم أبوعبيدة بمال من البحرين**" ځکه چې د بحرین نه کوم مال راغلې وو نو هغه د جزئې وو، دغه شان د بحرین اوسیدونکی دغه وخت کښې مجوسیان وغیره وو. ددې وجې نه د ترجمة الباب جزء "**الجزية**" او "**المجوس**" دواړو سره مناسبت موجود دې[4]. **والله أعلم بالصواب**

••

[1] ) فتح الباری: ۶/۲۶۳)_
[2] ) پورته حواله)_
[3] ) پورته حواله. عمدة القاری: ۱۵/۸۱، وارشاد الساری: ۵/۲۳۱. دلته اوګوره، کشف الباری، کتاب المغازی: ۱۶۶)
[4] ) عمدة القاری: ۱۵/۸۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲۹۸۹ :(١) حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوبَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ الرَّقِّي حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ الثَّقَفِي حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِي وَزِيَادُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ قَالَ بَعَثَ عُمَرُ النَّاسَ فِي أَفْنَاءِ الْأَمْصَارِ يُقَاتِلُونَ الْمُشْرِكِينَ، فَأَسْلَمَ الْهُرْمُزَانُ فَقَالَ إِنِّي مُسْتَشِيرُكَ فِي مَغَازِيَّ هَذِهِ. قَالَ نَعَمْ، مَثَلُهَا وَمَثَلُ مَنْ فِيهَا مِنَ النَّاسِ مِنْ عَدُوِّ الْمُسْلِمِينَ مَثَلُ طَائِرٍ لَهُ رَأْسٌ وَلَهُ جَنَاحَانِ وَلَهُ رِجْلَانِ، فَإِنْ كُسِرَ أَحَدُ الْجَنَاحَيْنِ نَهَضَتِ الرِّجْلَانِ بِجَنَاحٍ وَالرَّأْسُ ، فَإِنْ كُسِرَ الْجَنَاحُ الْآخَرُ نَهَضَتِ الرِّجْلَانِ وَالرَّأْسُ ، وَإِنْ شُدِخَ الرَّأْسُ ذَهَبَتِ الرِّجْلَانِ وَالْجَنَاحَانِ وَالرَّأْسُ ، فَالرَّأْسُ كِسْرَى ، وَالْجَنَاحُ قَيْصَرُ، وَالْجَنَاحُ الْآخَرُ فَارِسُ، فَمُرِ الْمُسْلِمِينَ فَلْيَنْفِرُوا إِلَى كِسْرَى.

## رجال الحديث

① **الفضل بن يعقوب**: دا د امام بخاري رحمه الله خاص شيخ، الفضل بن يعقوب رخامى بغدادى رحمه الله دي(٢).

② **عبدالله بن جعفر الرقى**: دا امام عبدالله بن جعفر بن غيلان القرشى رحمه الله دي. ابوجعفر او ابو عبدالرحمن د دوى كنيت دي. د آل عقبه بن ابى معيط آزاد كرده غلام وو(٣).

د دوى نسبت د رقه طرفته شوې دى او ددې وجې نه ورته الرقى "بفتح الراء المشددة، وكسر القاف المشددة" وئيلې كيږى، دا په عراق كښې د فرات مشرقى غاړې سره يو مشهور ښار وو، اوس ختم شوې دې(٤). دوى د عبيد الله بن عمرو، ابو المليح حسن بن عمر الرقى، عبد العزيز الدراوردى، معتمر بن سليمان او د موسى بن اعين رحمهم الله نه روايت كوى. د دوى نه په روايت كوونكو كښې احمد ابن ابراهيم الدروقى، ابو الازهر نيسابورى، اسماعيل بن عبد الله الرقى، على بن الحسين الرقى، أيوب بن محمد الوزان، سلمة بن شبيب، دارمى، عمرو الناقد، فضل بن يعقوب رخامى، محمد بن حاتم بن ميمون، محمد بن جبلة، ابو زرعة الدمشقى او ابوحاتم رحمهم الله وغيره شامل دى.(٥).

---

[1] ) قوله: بعث عمر": الحديث، اخرجه البخارى ايضا فى صحيحه، فى كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى: (يا ايها الرسول بلغ ما انزل اليک.....) رقم (٧٥٣٠)، وتحفة الاشراف بمعرفة الاطراف: ١٩/٨)_

[2] ) د دوى د حالاتو دپاره اوگورئ، كتاب البيوع، باب التجارة فى البر)_

[3] ) تهذيب الكمال: ٣٧٦/١٤، وتهذيب التهذيب: ٥١٧٣، وتاريخ البخارى الكبير: ٦٢/٥، رقم (١٥٠)، و اكمال مغلطاى: ٢٨٥/٧، رقم (٢٨٥٣)، والطبقات: ٤٨٦/٧)_

[4] ) عمدة القارى: ٨٢/١٥)_

[5] ) شيخانو او شاگردانو دپاره اوگورئ، تهذيب الكمال: ٣٧٧_٣٧٨)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام حاتم رحمه الله فرمائي: "ثقة، وهو أحب إلى من على بن معبد الذى كان بمصر"[1].

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي: "ثقة"[2]

امام عجلى رحمه الله هم دوى ته "ثقه" وئيلې دى[3]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائي: "ثقة، حافظ"[4]

ابن شاهين رحمه الله هم په خپل كتاب كښې "الثقات" كښې ذكر كړې دې[5].

امام نسائى رحمه الله فرمائي: "ليس به باس قبل أن يتغير"[6].

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: "ثقة، لكنه تغير بأخرة، فلم يفحش اختلاطه"[7]. ابن حبان رحمه الله هم دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى او وائى چې په آخر عمر كښې دوى ته اختلاط واقع شوې وو[8].

ليكن دا اختلاط او ذهنى كمزورى نقصان ده نۀ دې، دا ځكه چې دې حضراتو يعنى حافظ صاحب او ابن حبان رحمهما الله په خپله ددې خبرې اعتراف كړې دې چې اختلاط نقصان ده نۀ دې، بلكه كم وو او كله كله به وو، چې د رواياتو دپاره نقصان ده نۀ دې. په ائمه سته كښې ټولو حضراتو د دوى روايات اخستلې دى[9]. چې دا په خپله د ثقاهت يو دليل دې.

په ۲۱ يا ۲۳ شعبان ۲۲۰ هجرئ كښې په رقه كښې ددوى انتقال اوشو[10] رحمه الله تعالى رحمة واسعة

(۳) **المعتمر بن سليمان:** دا معتمر" د عين سكون سره، د تاء فتحې سره او د ميم كسرې سره، ابن سليمان رحمه الله دې. په ټولو نسخو كښې هم دا نوم راغلې دې، په مستخرج اسماعيلى وغيره كښې ددې حديث په سند كښې هم د بخارى په شان دې، يعنى معتمر، او د دمياطى رحمه الله خيال دادې چې صحيح نوم معمر "بفتح المهمله، و تشديد المفتوحة بغير مثناة" دې، هغوى ددې

---

[1]) الجرح والتعديل:۲۹/۵، رقم (۱۰۴)، وتهذيب الكمال:۳۷۸/۱٤)_

[2]) الجرح والتعديل:۲۸/۵، رقم (۱۰۴)، وتهذيب الكمال:۳۷۸/۱٤)_

[3]) اكمال مغلطاى:۲۸۶/۷، وتهذيب التهذيب:۱۷٤/۵)_

[4]) الكاشف للامام الذهبى:۳۷۸/۱، رقم (۲۶۶۷))_

[5]) تعليقات تهذيب الكمال:۳۷۸/۱٤، واكمال مغلطاى:۲۸۵/۷)_

[6]) تهذيب الكمال:۳۷۸/۱٤، و تهذيب التهذيب:۱۷۳/۵، وميزان الاعتدال:۴۰۳/۲، رقم:(۴۲۴۹))_

[7]) تقريب التهذيب:۴۸۳/۱، رقم (۳۲۶٤)، وهدى السارى:۵۸۰، الفصل التاسع، حرف العين)_

[8]) كتاب الثقات:۳۵۱/۸)_

[9]) تقريب:۴۸۳/۱، وتهذيب الكمال:۳۷۶/۱٤)_

[10]) الثقات لابن حبان:۳۵۲/۸، والطبقات الكبرى:۴۸۶/۷، الكاشف:۱/ وتهذيب الكمال:۳۷۸/۱٤، و ميزان الاعتدال:۴۰۳/۲، رقم (۴۲۴۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دلیل دا پیش کړې دي چې عبد الله بن جعفر رقی د معتمر بن سلیمان نه روایت نۀ کوی.د هغوی ملاقات ثابت نۀ دې.

حافظ و عینی فرمائی چې صرف دا وجه چې عبدالله رقی دې او معتمر بصری دې،د دوی ملاقات ممکن نۀ دې.نو دومره قدرې خبره د صحیح روایتونو د رد کولو دپاره کافی نۀ ده،که مونږ دا اومنو چې دا دواړه د یو بل په ښارونو کښې نۀ دی داخل شوې نو آیا په یو حج یا یو غزوه کښې به هم د دوی ملاقات نۀ وی شوې؟!......بیا د دمیاطی اعتراض په خپله د هغۀ د قول معارض دې،ځکه چې که معمر کیدل صحیح اوګرځولې شی،چې رقی نۀ دې او روایت کوی د سعید بن عبیدالله نه چې بصری دې نو بعینه هم هغه اعتراض دلته هم کیږی چې که د رقی ملاقات د بصری سره ممکن نۀ دې نو د بصری ملاقات هم د رقی سره ډیر مشکل دې،حالانکه داسې څۀ خبره نشته.دواړه صورتونه ممکن دی.

ددې نه علاوه کومو حضراتو چې د بخاری په رجالو باندې کار کړې دې،په هغوی کښې چا هم د بخاری په رجالو کښې د معتمر بن سلیمان ذکر نۀ دې کړې.بلکه ټولو د بخاری په رجالو کښې متفقه طور باندې د معتمر بن سلیمان تیمی بصری ذکر کړې دې.

اصیلی،ابن قرقول وغیره هم معتمر کیدل راجح ښودلې دي[1].دلته د علامه کرمانی رحمه الله نه تسامح شوې ده ځکه چې هغوی د بعضې حضراتو نه نقل کولو کښې معتمر ته اول معمر اووئیل، بیا ابن راشد یعنی معمر بن راشد(د عبدالرزاق صنعانی شیخ)دا عجیبه خبره ده، ځکه چې د عبدالله بن جعفر رقی روایت خو د معمر بن راشد نه هډو ثابت نۀ دې[2].

④**سعید بن عبیدالله الثقفی**:دا سعید بن عبیدالله بن جبیر بن حیة الثقفی الجبیری البصری رحمه الله دې[3].دې د خپل تره زیاد ،بکر بن عبد الله المزنی،حسن بصری،حکم بن اعرج او عبدالله بن بریده رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.او د دوی نه د دوی ځوئې اسماعیل،معتمر بن سلیمان،ابوعبیده الحداد ،بشر بن السری،خالد بن الحارث،روح بن عباده او مکی بن ابراهیم رحمهم الله تعالی وغیره روایت کوی[4].

امام احمد ،یحیی بن معین او ابو زرعة رحمهم الله تعالی فرمائی: "ثقة"[5].

امام نسائی رحمه الله فرمائی: "لیس به باس"[6].

امام ابن حبان رحمه الله د دوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې[7].

---

[1]) فتح الباری:۲۶۳/۶،وعمدة القاری:۸۲/۱۵)_

[2]) پورته حواله جات،وشرح الکرمانی:۱۲۶/۱۳)_

[3]) تهذیب الکمال: ۵۴۵/۱۰،وتهذیب التهذیب: ۶۱/۴،والتاریخ الکبیر:۴۹۵/۳،رقم (۱۶۵۴))_

[4]) د شیخانو او شاګردانو دپاره اوګورئ،تهذیب الکمال:۵۴۵/۱۰_۵۴۶)_

[5]) الجرح والتعدیل:۳۸/۴،رقم (۱۶۷)،وخلاصة الخزرجی:۱۴۱)_

[6]) تهذیب الکمال: ۵۴۶/۱۰،وتهذیب التهذیب: ۶۱/۴)_

[7]) تهذیب الکمال: ۵۴۶/۱۰،والثقات لابن حبان:۲۵۹/۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: "ثقة"[1].

ابن شاهين رحمه الله هم د دوى ذكر په كتاب الثقات كښې كړې دې[2].

البته امام دارقطنى رحمه الله په دوى باندې جرح كړې ده او وئيلې ئې دى چې دا مضبوط راوى نه دې، هغه روايات به دوى مسند أنه روايت كول كوم چې نورحضرات موقوفاً روايت كوى[3].

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله هم د دوى په باره كښې ليكى: "صدوق، ربما وهم"[4].

په دې سلسله كښې په امام بخارى رحمه الله باندې اعتراض ددې وجې نه نۀ شى كيدې چې هغوى د سعيد بن عبيدالله دوه روايات په خپل صحيح بخارى كښې اخستلې دى.يو په اشربه[5] كښې، چې د هغې شواهد موجود دى، د باب دويم حديث، چې په كتاب التوحيد[6] كښې هم مختصراً راغلې دې، البته ددې شاهد هم موجود دې، ددې وجې نه د باب د حديث هم دا مضمون د حضرت معقل بن يسار رضى الله عنه نه هم روايت دې.د حضرت معقل بن يسار رضى الله عنه روايت ابن ابى شيبه[7] د قوى سند سره روايت كړې دې[8].د بخارى نه علاوه ترمذى، نسائى او ابن ماجه رحمهم الله تعالىٰ هم د دوى نه روايات اخستلې دى[9].

⑤**بكر بن عبدالله المزنى**:دا بكر بن عبدالله المزنى البصرى رحمه الله دې[10].

⑥**زياد بن جبير**:دا زياد بن جبير بن حية الثقفى الجبيرى البصرى رحمه الله دې[11].

⑦**جبيربن حيه**:دا جبير بن حيه بن مسعود بن معتب بن مالک بن عمرو بن سعد بن عوف ثقفى بصرى رحمه الله دې.دا د حضرت عروه بن مسعود ثقفى رضى الله عنه ورارۀ دې[12].د دوى كنيت ابوفرس يا ابوفرش او ابو زياد دې[13].دوى د حضرت عمر بن الخطاب، حضرت عبدالله بن

---

[1]) الكاشف:۱/۴۴۱)_
[2]) الكمال مغلطاى:۵/۳۲۶،رقم (۲۰۱۱))_
[3]) پورته حواله،وتهذيب التهذيب:۴/۶۱،والمغنى فى الضعفاء:۱/۴۰۹،وميزان الاعتدال:۲/۱۵۰)_
[4]) تقريب التهذيب:۱/۳۵۹،رقم (۲۳۶۶،وتعليقات تهذيب الكمال:۱۰/۵۴۶)_
[5]) صحيح بخارى،كتاب الاشربة،رقم (۵۵۸۴))_
[6]) صحيح بخارى،كتاب التوحيد،رقم (۷۵۰۳))_
[7]) المصنف:۱۸/۲۸۷_۲۹۱،كتاب البعوث والسرايا،توجيه النعمان بن مقرن الى نهاوند،رقم (۳۴۴۸۵)، ددې قصې د مزيد تخريج دپاره اوګورئ،تعليقات محمد عوامة على المصنف:۱۸/۲۸۸)_
[8]) هدى السارى:۵۷۰،الفصل التاسع فى سياق اسماء من طعن......باب السين)_
[9]) تهذيب الكال:۱۰/۵۴۶)_
[10]) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ،كتاب الغسل،باب عرق الجنب.....)_
[11]) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ،كتاب الحج،باب نحر الابل المقيدة......)_
[12]) تهذيب الكمال:۴/۵۰۲،وتهذيب التهذيب:۲/۲۶)_
[13]) طبقات ابن سعد:۷/۱۸۸،واكمال مغلطاى ۳/۱۶۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عمر، حضرت مغيره بن شعبه او د حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه نه روايت كوي.د دوی نه بكربن عبدالله المزني او د دوی څوئې زياد روايت كوي.(١)

ابوالشيخ فرمائي: "جبير د طائف اوسيدونكې وو او هلته د يو مكتب معلم، بيا د هغه ځائې نه عراق ته منتقل شو، په عراق كښې په ديوان خانه كښې كاتب جوړ شو، چې كله زياد بن ابي سفيان د عراق والي جوړ شو نو هغوی د جبير اكرام او اعزاز اوكړو، خپل نزديكت ئې وركړو، دغه شان د دوی شان اوچت شو او زياد دوی د اصفهان والي جوړ كړو." (٢).

سبط ابن العجمي رحمه الله فرمائي: "ثقة جليل" (٣).

ابن حبان رحمه الله د دوی شمار په كتاب الثقات كښې جليل القدر تابعينو كښې كړې دې(٤).

دغه شان ابن خلفون په الثقات كښې د دوی ذكر اوكړو او وې فرمائيل: "كان ثقة" (٥).

اكثرو امامانو د رجال دوی تابعي ښودلې دې، ليكن د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې داده چې جبير بن حيه صحابي دې، ددې وجې نه حافظ صاحب د دوی تذكره د "الاصابة" په اولني قسم كښې كړې ده.

د هغوی وينا داده چې د صحيح بخاري د روايت نه دا ثابتيږي چې د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه كښې چې كوم فتوحات وو نو په هغې كښې جبير شريک شوې وو. او امام بخاري رحمه الله مذكوره روايت د "زائدة بن أبي زياد بن جبير عنه" د طريق نه نقل كړې دې(٦). او ما څوک نۀ دی ليدلې چې هغوی د دوی ذكر په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې كړې وی حالانكه دې د هغوی په شرطونو باندې پوره دې. دا ځكه چې د بنو ثقيف يو سړې هم د نبي عليه السلام په حيات مبارک كښې ژوندې نۀ وو، مګر دا چې هغوی اسلام قبول كړې وو او په حجة الوداع كښې ئې شركت كړې وو (دې هم ثقفي دې). البته ابو موسى المدني د دوی شمار په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې كړې دې، د دوی يو حديث ئې هم ذكر كړې دې بيا ليكي چې حديث مرسل دې او دا خبره ئې صحيح ښودلې ده چې دا تابعي دې صحابي نۀ دی(٧). ليكن زما په نزد د دوی صحابيت ناممكن نۀ دې، لكه كوم سړی چې د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه خلافت كښې په فتوحاتو كښې شركت كړې وی نو هغه به دغه وخت خامخا ځوان وی او په كومه واقعه كښې چې دې حاضر وو نو هغه د نبي عليه السلام د وفات نه پس لس كال تيريدلو نه مخكښې پيښه

---

(١) الجرح والتعديل:٢/٤٤٥، وتهذيب الكمال:٤/٥٠٢، واكمال مغلطای:٣/١٦٧)_

(٢) تهذيب الكمال:٤/٥٠٢، وتهذيب التهذيب:٢/٢٦)_

(٣) حاشيه سبط ابن العجمي على الكاشف:١/٢٨٩)_

(٤) تهذيب التهذيب:٢/٦٣)_

(٥) اكمال مغلطای:٣/١٦٧)_

(٦) لعل الحافظ رحمه الله اراد حديث الباب، ولكن طريقه يخالف لما قاله الحافظ، والله اعلم)_

(٧) اكمال مغلطای:٣/١٦٧، والاصابة:١/٢٢٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شوې ده،ددې وجې نه کم از کم د دوی ليدل به خامخا ثابت وی او دا خبره د صحابيت د شرف د حصول دپاره کافی ده[1].د حضرت جبير انتقال د اموی خليفه عبد الملک بن مروان په زمانه کښې اوشو[2].ابن عساکر رحمه الله ليکلې دی چې د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه د شهادت په دويمه جمعه باندې حجاج بن يوسف خطبه ورکړه.او وې وئيل چې زما وهم او ګمان دادې چې تاسو خلق د حق او باطل مينځ کښې د تميز کولو قابل پاتې نۀ شوئ.زۀ ستاسو نه د دريو څيزونو باره کښې تپوس کوم که د دغه سوالونو جوابونه تاسو صحيح راکړل نو ښۀ خبره ده،ورنه زۀ به په تاسو باندې جزيه لازم کړم او تاسو به ددې اهل هم يئ.

سوالات دادی چې هغه کوم څيزدې چې دهغې نه هيڅ يوڅيز مستغنی(بې پرواه)کيدې نۀ شی؟ هغه کوم څيز دې چې په کنيت سره پيژندلې شی اوهغه کوم بچې دې چې دهغۀ پلار نشته؟ نو حضرت جبير بن حيه اودريدو او وې فرمائيل چې ائې اميره!که ستا دا مذکوره اراده او عزم نۀ وې نو ما به تا ته جواب نۀ وو درکړې،پاتې شو هغه څيز چې د هغې نه هيڅ يو څيز مستغنی نۀ دې نو هغه نوم(اسم)دې،هغه څيز چې کنيت سره پيژندلې شی نو هغه أم الجنين ده او هغه ماشوم چې پلار ئې نه وو نو هغه حضرت عيسى عليه السلام دې.

حجاج اووئيل ائې متکلمه!تاسو څوک يئ؟وې فرمائيل:جبير بن حيه ثقفی.حجاج اووئيل چې ستاسو صحيح جوابونه هم غلط شو،ددې نزدې رشته دارئ باوجود تاسو څنګه زما نه لرې يئ(ځکه چې حجاج په خپله هم ثقفی وو)؟وې فرمائيل:ائې امير!تۀ به د خپل قوم دپاره هميشه باقی نۀ ئې او نۀ ستا دا عزت هميشه دپاره دې،ځکه چې زمانه د مختلفو حالاتو ښکار کيږی او نن مونږ ستاسو نه د فائدې حاصلولو سره دا نۀ غواړو چې صبا مونږ ته د هغې سزا ملاويږی.راوی وائی چې حجاج دوی ته ډير انعام ورکړو[3].

**قوله:قال:بعث عمر الناس في أفناء الامصار يقاتلون المشركين:** حضرت جبير بن حيه فرمائی چې حضرت عمر رضي الله عنه خلق لوئې لوئې ښارونو ته روان کړل چې دوی به مشرکانو سره قتال کوی.

"أفناء" د "فنو" بكسر الفاء وسكون النون "جمع ده،ددې معنى ده ډله،د کمې او معمولی درجې خلق،دغه شان هغه سړې چې د هغۀ هيڅ قبيله نۀ وی نو هغۀ ته هم "فنو" وئيلې شی[4].علامه کرمانی رحمه الله د "الامصار" په ځائې "الانصار" نقل کړې دې او دا ئې وئيلې دی چې په بعضې نسخو کښې "الامصار" راغلې دې.په دې ځان پوهول پکار دی چې هم "الامصار" صحيح دې، د دوی د ذکرکرده کلمې دلته هيڅ معنى نۀ جوړيږی،ځکه چې انصار خو د مخکښې نه

---

[1] الاصابة:۲۲۵/۱،وتعليقات تهذيب الكمال:۵۰۳/٤،وفتح البارى:۲٦۳/٦)_

[2] تهذيب الكمال:۵۰۳/٤،وتهذيب ۶۳/۲،والتقريب:۱۵٦/۱،رقم (۹۰۱))_

[3] اكمال مغلطاى:۱٦۸/۳)_

[4] فتح البارى:۲٦٤/٦،وعمدة القارى:۸۳/۱۵،والنهاية:٤۸۸/۳،باب الفاء مع النون)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مسلمانان وو نو هغوی سره د جنګ کولو څۀ مطلب؟او ددې نه پس په حدیث شریف کښې متصل "یقاتلون المشرکین" هم راغلي دي[1].

**قوله**: فأسلم الهرمزان: نو هرمزان اسلام قبول کړو.

دلته د حدیث شریف په سیاق کښې ډیر زیات اختصار دې،ځکه چې د هرمزان د اسلام د قبولیت واقعه فوراً نۀ وه پیښه شوې بلکه ددې نه مخکښې څو جنګونه شوې وو،د واقعاتو تفصیل چونکه ډیر زیات دې ددې وجې نه مونږ به دهغې د خلاصې پیش کولو کوشش کوو.

**د هُرمُزان د اسلام د قبلولو واقعه**: هُرمُزان "بضم الهاء وسکون الراء وضم المیم وتخفیف الزای وفی آخره نون" [2] د عجم په لوئې لوئې بادشاهانو کښې وو،د دوی په حکومت کښې ډیرې زیاتې علاقې شاملې وې،مثلاً اهواز،جندی سابور،سوس،سرق،نهربین،نهرتیری او مناذر وغیره.

د قادسیه په مقام باندې د مسلمانانو او د ایرانیانو چې کوم مشهور جنګ "جنګ قادسیه" شوې وو،په دې جنګ کښې د ایرانیانو په لښکر کښې دې هم شامل وو،دا لښکر یزدجر روان کړې وو.د مسلمانانو د لښکر مشر حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه او د ایرانیانو د لښکر مشر رستم وو،ایرانی لښکر په دوه لاکه جنګجو باندې مشتمل وو،دوی سره درې دیرش(۳۳)هاتیان هم وو او هرمزان د میمنه مشر وو.

د ابن اسحاق رحمه الله وینا ده چې د مسلمانانو لښکر صرف په اووۀ یا اتۀ زره کسانو باندې مشتمل وو،د دواړو ډلو مینځ کښې خطرناک او ډیر زیات سخت جنګ اوشو،داسې جنګ اوشو چې تاریخ ددې مثال ددې نه مخکښې نۀ وو لیدلې،د مسلمانانو د لښکر یوې ډلې په دغه ورځ باندې ډیره زیاته بهادری اوښودله او د بې مثاله بهادرئ نمونې ئې پیش کړې،په دوی کښې حضرت طلیحه الاسدی،حضرت عمرو بن معدیکرب،حضرت قعقاع بن عمرو،حضرت جریر بن عبدالله البجلی،حضرت ضرار بن خطاب،حضرت خالد بن عرفطة رضی الله عنهم او نور ډیر حضرات شامل وو.

د دواړو ډلو مینځ کښې دا جنګ د ګُل په ورځ یکم محرم ۱۴ هجرئ باندې اوشو.اسلامی لښکر سره د الله مدد داسې شامل حال شو چې الله تعالی یو طوفان راولیږو،چې هغې د ایرانیانو او فارسیانو خیمې اوویستلې او د رستم تخت ئې د هغۀ د فوجیانو په وړاندې الټه کړو،نو هغه په یو خچر باندې سور شو او اوتختیدۀ،لیکن مسلمانانو هغه رالاندې کړو او جهنم ته ئې اورسوو،دغه شان ایرانی لښکر ته شکست اوشو،مسلمانانو د دوی یو لویه ډله قتل کړه.د ایرانی لښکر یوه حصه په زنځیرونو کښې تړلې شوې وه،چې د هغې تعداد شل زره وو،دا ټول تباه وبرباد شو،دا د تختیدو نه پس قصه ده،او صرف د جنګ دوران

[1]) شرح الکرمانی:۱۲۷/۱۳،وارشاد الساری:۲۳۱/۵،وفتح الباری:۲۶۴/۶،وعمدة القاری:۸۳/۱۵،ومثله قال ابن بطال ایضا،انظر شرحه:۳۳۴/۵)_

[2]) عمدة القاری:۸۳/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې لس زره ايرانيان مړهٔ كړې شول، مسلمانان مسلسل دوى پسې لګيدلې وو تردې چې آخركار د بادشاه تخت "مدائن" ته ورغلل، چرته چې د كسرى محل وو.
هرمزان هم په تختيدونكو كښې شامل وو، د مسلمانانو او د هرمزان مينځ كښې هم يو معركه اوشوه، بيا د دواړو فريقو مينځ كښې صلح اوشوه، او دا صلح او معاهده څو ورځې پس هرمزان ماته كړه او د كردو يو ډلې نه ئې امدد ترلاسه كړو، نو مسلمانان بيا د دوى په مقابله كښې راغلل او مسلمانانو ته واضحه فتح ملاؤ شوه، د هرمزان په حكومت كښې چې كوم ځايونه شامل وو نو په هغې كښې په اهواز، مناذر او نهرتيرى باندې اسلامى بيرغ اولګولې شو او دا د ۱۲ يا ۱۷ هجرئ واقعه ده.
د مذكوره علاقو نه چې هرمزان اوتختيدهٔ نو د تُستر په لاره روان شو او هلته په قلعه كښې پټ شو، د مشورې دپاره مسلمانانو حضرت عمر ﷛ ته خط اوليګهٔ چې څهٔ طريقه اختيار كړې شى؟نو د امير المؤمنين ﷛ په حكم باندې د هرمزان مقابله كولو دپاره حضرت جزء بن معاويه ﷛ روان شو او مسلسل هرمزان پسې لګيدلې وو تردې چې زمكه ئې په هرمزان باندې تنګه كړه، هرمزان چې كله عاجز شو نو بيا ئې د صُلحې درخواست اوكړهٔ، ددې درخواست د منظورئ دپاره حضرت عمر ﷛ ته پيغام روان كړې شو، د كوم ځائې نه چې د رامهرمز، تُستر، جندى سابور او د نورو ښارونو باره كښې منظورى راغله چې صلح دې اوكړې شى.
دلته د ايران بادشاه يزدجر به هر وخت ايرانيان راپورته كول چې دا عرب ستاسو په ښارونو باندې غالب راغلې دى، د دوى د مقابلې دپاره پاسئ، نو هغهٔ اهل فارس او اهل اهواز ته اوليګل چې د مسلمانانو سره د جنګ دپاره تيار او متحرک شئ. دا خبر حضرت عمر ﷛ ته هم اورسيدهٔ، دغه وخت حضرت سعد ﷛ په كوفه كښې وو، حضرت عمر ﷛ دوى ته خط اوليكهٔ چې د حضرت نعمان بن مقرن سره يو لښكر د اهواز په طرف اوليږه. حضرت ابو موسى اشعرى ﷛ ته ئې هم اوليكل، دغه وخت دوى په بصره كښې وو، چې د اهواز په طرف يو لښكر روان كړئ او ددې امير حضرت سهيل بن عدى ﷛ مقرر كړه، او وې فرمائيل چې ددې دواړو ډلو اصل امير به حضرت ابو سبرة بن ابى رهم وى.
نو حضرت نعمان بن مقرن ﷛ كوفى لښكر ځان سره روان كړو او د بصرې په لښكر باندې وړاندې شو، تردې چې رامهر ته اورسيدل او هلته هرمزان هم وو، دې د خپل فوج سره د اسلامى لښكر په طرف راووتهٔ، سابقه معاهده ئې ماته كړه، دواړه فوجونه مخامخ شو او سخت جنګ اوشو، چې په دې كښې هرمزان ته شكست اوشو او هغه د تُستر په طرف اوتختيدهٔ، چې كله بصرى لښكر ته ددې واقعې اطلاع اوشوه چې د حضرت نعمان ﷛ په قيادت كښې هرمزان ته شكست شوې دې او هغه د تستر په طرف تختيدلې دې نو دوى د تُستر په طرف روان شو، چې هلته كوفى لښكر هم دوى سره ملاؤ شو، د حضرت ابو سبرة بن ابى رهم ﷛ په قيادت كښې بصرى او كوفى لښكرونو د تُستر محاصره اوكړه، دا محاصره څو مياشتو پورې جارى وه، دې دروان كښې د دواړو ډلو يو لوئې تعداد قتل شو، آخر يو ورځ يو ايرانې حضرت ابوموسى اشعرى ﷛ ته راغئ او وې وئيل چې كه تاسو ددې ښار

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوسيدونكو ته امان وركړئ نو زۀ به ښار باندې تاسو ته قبضه دركړم،حضرت دا خبره منظوره كړه،نو هغۀ مسلمانانو ته هغه ځائې اوښودۀ د كوم ځائې نه چې ښار كښې دننه د دجله د يو شاخ اوبۀ داخليدې،دغه لاره باندې د مسلمانانو يوه ډله د بطخو په شان تيزئ سره دننه داخله شوه،هغوى څوكيداران قتل كړل،د ښار لوئې دروازې ئې پرانستې، مسلمانانو د تكبير نعره اوچته كړه او ټول په ټوله د سحر په وخت كښې داخل شو،چې هركله هرمزان دا صورت حال اوليدۀ نو په قلعه كښې ئې پناه واخسته،څۀ صحابه كرام ﷡ دۀ پسې اولګيدل،دې دوران كښې د هرمزان په لاس حضرت براء بن مالک او مجزاه بن نور ﷠ شهيدان شو،چې كله هرمزان په قلعه كښې يو مكان كښې محصور شو او د يو څو كسانو نه علاوه څوک هم پاتې نۀ شو نو هغۀ اووئيل چې زما په تركش كښې اوس هم ۱۰۰ غشى دى،تاسو كښې چې څوک هم وړاندې راځي نو زۀ به ئې قتل كړم،چونكه د خپلو سلو كسانو د قتلولو نه پس زما په قتلولو كښې تاسو ته څۀ فائده نشته،ددې وجې نه ماته امان راكړئ او حضرت عمر ﷛ ماته راورسوئ،زما په باره كښې د هغوى مرضى ده چې څۀ فيصله كوى.

د هرمزان دا مطالبه حضرت ابوسبرة بن ابى درهم ﷛ منظور كړه او حضرت انس او احنف بن قيس ﷠ ئې په دې باندې مامور كړل چې دې مدينې منورې ته اورسوى،دې حضراتو دې روان كړو،مدينې منورې ته چې كله نزدې شو نو دۀ خپل ځان شاهانه لباس باندې مزين كړو،د عجم د بادشاهانو موافق ئې تاج او زيورات وغيره واغوستل،ددې نه پس په مدينه منوره كښې داخل شو،دا ټول د حضرت عمر ﷛ كور ته اورسيدل،هغه ځائې كښې دوى ته اووئيلې شو چې هغوى په مسجد كښې تشريف فرما دى او د كوفې د يو وفد انتظار كوى،د هغه ځائې نه مسجدنبوى ﷺ ته راغلل نو وې ليدل چې هغه سړې چې د هغۀ د رعب او دبدبې د وجې نه ټوله دنيا رپيږى،د خاورو په فرش باندې خوب كوى،ټوپۍ ئې ځان ته تكيه كړې ده او په مسجد كښې علاوه د هغوى نه څوک هم نشته،دره يئ په لاس كښې نيولې ده،هرمزان تپوس اوكړو چې عمر چرته دې؟جواب ملاؤ شو:هم دا عمر دې!خلقو رو رو خبرې كولې چې آرام كښې خلل واقع نۀ شى،هرمزان اووئيل چې د دوى محافظ او دربارى چرته دې؟جواب ملاؤ شو:"ليس له حجاب،ولا حرس،ولا كاتب،ولا ديوان"ډير حيران شو او وې وئيل دا خو نبى كيدل پكار دى!د عوامو د كثرت او د هغوى د تګ راتګ د وجې نه د حضرت عمر ﷛ سترګې مباركې اوغړيدې،نو كيناستلو،بيا ئې د هرمزان په طرف اوكتل او وې فرمائيل:"الهرمزان؟"خلقو جواب وركړو:آوجى!هرمزان دې.لاندې باندې ئې ورته اوكتل او وې فرمائيل:"اعوذ بالله من النار،واستعين بالله"بيا ئې اوفرمائيل:"الحمد لله الذى أذل بالاسلام هذا واشياعه".

وفد عرض اوكړو چې دا د اهواز بادشاه دې،دوى سره خبرې اترې اوكړئ.وې فرمائيل،اول ترينه دا زيورات وغيره كوز كړئ،نو خلقو د هرمزان لباس بدل كړو،ددې نه پس ورته

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اميرالمؤمنين مخاطب شو او وې فرمائيل چې تا د غدارئ او بدعهدئ څۀ نتيجه بياموندله؟هرمزان اووئيل ائې عمر! د جاهليت په زمانه کښې الله تعالى مونږ دواړه تنها پريخودلې وو،ددې وجې نه هغه وخت مونږ په تاسو باندې غالب راغلې وو.ځکه چې الله تعالى هغه وخت نۀ تاسو سره وو او نۀ مونږ سره وو،اوس چونکه تاسو ته د الله تعالى مدد حاصل دې،ددې وجې نه تاسو په مونږ باندې غالب راغلئ.په جواب کښې امير المؤمنين اوفرمائيل چې د جاهليت په زمانه کښې تاسو په مونږ باندې ځکه غالب وئ چې تاسو متحد وئ،مونږ جدا جدا.بيا ئې اوفرمائيل چې تا دا څو ځله بدعهدى او وعده خلافى اوکړه،ددې په سلسله کښې ستا څۀ عذر دې؟جواب کښې ئې اووئيل چې ماته ددې خبرې ويره ده چې د پوره خبرې ختمولو نه وړاندې تاسو ما قتل نۀ کړئ،وې فرمائيل چې د قتل ويره مۀ کوه،نو ددې نه پس هرمزان اوبۀ طلب کړې،اوبۀ راوړلې شوې،چې کله هرمزان اوبۀ څکل غوښتل نو د هغۀ لاسونه رپيدل او وې وئيل چې ماته ويره ده چې د اوبو څکلو دوران کښې تاسو ما قتل نۀ کړئ،اميرالمؤمنين اوفرمائيل،مۀ ويريږه،اوبو څکلو پورې به تاسو ته هيڅ هم نۀ وئيلې کيږى.په دې باندې هرمزان تولې اوبۀ واړولې،حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چې دۀ ته دوباره اوبۀ ورکړئ،قتل او تنده دواړه په دۀ باندې مۀ جمع کوئ.نو هرمزان اووئيل چې اوس ماته د اوبو ضرورت نشته،ما خو لږه تسلى حاصلول غوښتل، اميرالمؤمنين اوفرمائيل چې زۀ به تا قتلوم.هرمزان اووئيل چې تاسو ماته امان راکړې دې، ځنګه به ما قتل کړئ؟وې فرمائيل،دروغ وئ،ما تا ته کله امان درکړې دې؟دلته حضرت انس رضي الله عنه اووئيل چې اميرالمؤمنين! دې رښتيا وائى،اميرالمؤمنين اووئيل ائې انسه! خوار شې آيا زۀ هغه کس ته امان ورکړم چې هغۀ براء او مجزاه قتل کړې دى؟د خلاصى څۀ صورت پيش کړه ورنه د سزا دپاره تيارشه،حضرت انس اووئيل،امير المؤمنين! تاسو دوى ته دوه ځله امان ورکړې دې ځکه چې تاسو اول اوفرمائيل، "لا باس عليك حتى تخبرنى" بيا مو دا اوفرمائيل: "لا باس عليك حتى تشربه" دا خو امان دې،نورو حاضرينو هم د حضرت انس رضي الله عنه تائيد اوکړو،په دې باندې امير المؤمنين د هرمزان طرفته متوجه شو او وې فرمائيل چې تا ما سره دهوکه کړې ده ليکن په خدائې قسم! چې زۀ به ستا په دهوکه کښې رانشم مګر دا چې تۀ اسلام قبول کړې،نو هرمزان اسلام قبول کړو،اميرالمؤمنين د هغۀ دپاره د کال دوه زره رقم مقرر کړو او په مدينه منوره کښې ئې د اوسيدو اجازت ورکړو.

هرمزان ته چونکه عربى نۀ ورتله،ددې وجې نه ددې دواړو مينځ کښې د ترجمانئ کولو ذمه دارى حضرت مغيره بن شعبه او حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنهما پوره کړه.حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائى چې وروستو د دوى په اسلام کښې حسن و جمال راغلې وو،دوى به هر وخت د حضرت عمر رضي الله عنه سره وو،کله به هم د هغوى نه نۀ جدا کيدو،د اميرالمؤمنين د شهادت نه پس څۀ کسانو دا الزام اولګوو چې د ابولؤلؤ فيروز په لمسولو او دهوکه کولو کښې ددۀ پټ لاس وو،په دې بنياد باندې حضرت عبيدالله بن عمر رضي الله عنهما دا دواړه قتل کړل.

حافظ ابن کثير رحمه الله مزيد فرمائى چې کله حضرت عبيدالله بن عمر رضي الله عنهما ددوى د قتل کولو

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دپاره توره اوچت کړو نو دوی "لا اله الا الله" اووئیل حضرت عمر رضی الله عنه ته دې ډیر ګران وو او په جنګی کارونو کښې به ئې ددوی نه مشوره اخستله. کما فی حدیث الباب أیضاً[1].

**قوله: فقال: إني مستشيرك في مغازي هذه:** نو حضرت عمر رضی الله عنه هرمزان ته اووئیل چې زۀ په خپلو جنګی کارونو کښې ستاسو نه مشوره اخستل غواړم. د "مغازی" یاء مشدد ده. دویمه یاء د متکلم د ضمیر ده.[2].

د "مغازی" نه د حضرت عمر رضی الله عنه څۀ مراد وو؟ ددې وضاحت د طبرانی او د مصنف ابن ابی شیبه[3] د معقل بن یسار رضی الله عنه د روایت نه کیږی چې حضرت عمر رضی الله عنه د فارس، اصفهان او د آذربیجان په باره کښې د هرمزان نه تپوس اوکړو، مشوره ئې ورسره اوکړه چې د کومې علاقې نه د جنګ ابتداء اوکړې شی، وجه ښکاره ده، چونکه هرمزان هم ددې علاقو سره تعلق ساتلو، ددې وجې نه په دې سلسله کښې معلومات ورته هم زیات وو.[4].

**قوله: قال: نعم، مثلها ومثل من فيها من الناس من عدو المسلمين مثل طائر له رأس، وله جناحان، وله رجلان:** هرمزان اووئیل چې آوجی! ددې جنګونو او د هغه کسانو، څوک چې په دې جنګونو کښې د مسلمانانو د دشمن په صورت کښې شریك وی، ددوی مثال دهغې مرغئ په شان دې چې دهغې یو سر، دوه وزرې او دوه خپې وی.

نعم حرف ایجاب دې، علامه کرمانی او عینی رحمهما الله فرمائی چې په کوم روایت کښې "نعم" د فعل مدح په صورت کښې راغلې دې، که دغه روایت صحیح وی نو مطلب به داوی چې ددې د ټولو نه ښه مثال د مرغئ په شان دې......

د فعل مدح کیدو په صورت کښې به تقدیری عبارت داسې وی: "**نعم المثل مثلها**" او په **مثلها** کښې چې کوم ضمیر مجرور دې، هغه د ارض طرفته راجع دې کوم چې د کلام د سیاق نه ذهن ته راځی او **مثلها** د مبتدا کیدو د وجې نه مرفوع دې او وړاندې جمله "**مثل طائر.....**" خبر دې.[5].

---

[1] ) تفصیلی واقعاتو دپاره اوګورئ، العمدة:۱۵/۸۳، والفتح:۶/۲۶۴، والبدایة والنهایة:۷/۸۲_۸۸، والکامل لابن الاثیر:۲/۳۸۹_۳۹۲، سنة سبع عشرة، ذکر فتح را مهر مز......والفاروق لشبلی:۱۴۳_۱۴۵)_

[2] ) فتح الباری:۶/۲۶۴، وعمدة القاری:۱۵/۸۳)_

[3] ) المصنف لابن ابی شیبة:۱۸/۲۸۸، کتاب البعوث والسرایا، باب فی النعمان بن مقرن الی نهاوند، رقم (۳۴٤۸۵)، ومجمع الزوائد:۶/۲۱۵)_

[4] ) فتح الباری:۶/۲۶٤، وعمدة القاری:۱۵/۸۳، وارشاد الساری:۵/۲۳۱)_

[5] ) شرح الکرمانی:۱۳/۱۲۷، وعمدة القاری:۱۵/۸٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:** فإن كسر أحد الجناحين نهضت الرجلان بجناح والراس،فإن كسر الجناح الآخر نهضت الرجلان والراس،وإن شدخ الراس،ذهبت الرجلان والجناحان والراس: كه ددې مرغۍ يو وزر مات كړې شي نو دواړه خپې،لاس او وزرې به اوچتوى او دا مرغۍ به حركت كوى،كه دويم وزر ئې هم مات كړې شي نو خپې او سر به اوچتوى،بيا به هم حركت كوى.او كه سر ورله مات كړې شي نو دواړو خپې،دواړې وزرې او سر هرڅۀ به ختم شي.

مطلب دادې چې كه ددې مرغۍ په دواړو وزرو كښې يو وزر مات كړې شي نو بيا هم څۀ فرق نۀ راځي،په دويم وزر،سر او دواړو خپو سره به د حركت كولو قابله وى،دغه شان كه دويم وزر ئې مات كړې شي نو بيا به هم سر او خپې اوچتولې شى ليكن كه سر ورله مات كړې شي نو قصه ختمه شوه،په دې صورت كښې به د خپو او د وزرو حيثيت بالكل ختم شى،ځكه چې اصل څيز خو سر دې.

د "شدخ" معنى ده ماتول،علامه ابن الاثير رحمه الله فرمائى،چې دننه نه خالى څيز ماتولو ته شدخ وئيلې دى، "تقول: شدخت راسه فانشدخ"[1].

**قوله:** فالراس كسرى،والجناح قيصر،والجناح الآخر فارسك: نو سر ئې كسرى دې،او يو وزر قيصر او دويم وزر ئې د فارس قوم دې.

**يو اشكال او د هغې جوابات:** تاريخى طور باندې دا خبره منلې شوې ده چې د قيصر سلطنت جدا وو او د كسرى جدا وو،قيصر د روم بادشاه وو او كسرى د ايران بادشاه وو،ددې وجې نه دا وينا څنګه صحيح كيدې شى چې سر خو كسرى دې او قيصر ئې وزر يعنى تابع دې حالانكه په حقيقت كښې خو قيصر د هغۀ تابع نۀ وو.

ددې اشكال جواب دا شوې دې چې د كسرى مثال د سر وو،ځكه چې په دغه زمانه كښې ددۀ نه لوئې بادشاه نۀ وو،د دنيا لوئې لوئې بادشاهانو به ددۀ نه ويره كوله او ددۀ نه به ويريدل،دغه شان دې د دوى دپاره سر شو.دا جواب علامه كرمانى،عينى او قسطلانى رحمهم الله كړې دې[2].ليكن د حافظ ابن حجر رحمه الله وينا داده چې د بخارى شريف دا روايت صحيح نۀ دې،صحيح روايت هغه دې كوم چې امام طبرى رحمه الله د حضرت معقل بن يسار رضى الله عنه نه روايت كړې دې،په هغې كښې دى: "فإن فارس اليوم رأس وجناحان" او دا روايت د ابن ابى شيبه د روايت هم موافق دې كوم چې وړاندې تيرشو چې حضرت عمر رضى الله عنه هرمزان سره كومه مشوره كړې وه نو هغه د فارس،اصفهان او د اذربيجان په باره كښې وه او هم دا خبره راجحه هم ده[3].

---

[1]) پورته حواله جات،والنهاية فى غريب الحديث والاثر:۴۵۱/۲،باب الشين مع الدال)_

[2]) شرح الكرمانى:۱۲۷/۱۳،وعمدة القارى:۸۴/۱۵،وشرح القسطلانى:۲۳۱/۵)_

[3]) تاريخ ابن جرير الطبرانى:۵۲۰/۲،سنة احدى وعشرين،ومجمع الزوائد:۲۱۴/۶،ومصنف ابن ابى شيبة: ۲۸۸/۱۸،كتاب البعوث والسرايا......رقم (۳۴۴۸۵))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې وجه داده چې قيصر به په شام كښې وو يا شمالي علاقو كښې. عراق، فارس او مشرق وغيره سره د هغهٔ څهٔ تعلق نهٔ وو، ددې وجې نه دلته د قيصر د ذكر كولو هيڅ معنى نشته. بيا حافظ صاحب د علامه كرمانى رحمه الله وغيره په رد كښې فرمائى چې كه كسرى د ټولو بادشاهانو سردار اوګرځولې شى په داسې حال كښې چې هغه د مشرق بادشاه وو، او د روم شاه قيصر د هغهٔ نه كم اوګرځولې شى او په دې بنياد باندې قيصر ته د كسرى وزر اووئيلې شى نو بيا هم دا مناسب وه چې دويم وزر هغه بادشاهان اوګرځولې شى كوم چې د قيصر په مقابله كښې ښى طرفته وو، مثلاً د هندوستان او د چين بادشاهان ليكن د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه حديث په دې خبره باندې دلالت كوى چې د هرمزان مراد هم هغه علاقې وې چې د كومو په باره كښې هغهٔ ته معلومات حاصل وو، ګويا كه د ايران فوج په دغه وخت كښې په دريو ښارونو كښې وو، ددې فوج زياته او لويه حصه په هغه ښار كښې اوسيده كوم ځائې چې كسرى موجود وو، ددې وجې نه كسرى سر شو او باقى ښارونو ته به وزر اووئيلې شى، ځكه چې دې د دغه ټولو سردار وو.[1] هم دا تحقيقى خبره معلوميږى ځكه چې د حافظ صاحب په رائې كښې وزن زيات دې.

**قوله**: فمر المسلمين فلينفروا إلى كسرى: نو تاسو مسلمانانو ته حكم وركړئ چې هغوى د كسرى په طرف لاړ شى.

د تاريخ طبرى د مبارک بن فضالة په روايت كښې دى چې هرمزان اووئيل چې تاسو ترينه وزر پرې كړئ، سر به نرم شى، دا رائې حضرت عمر رضي الله عنه ناخوښه كړه او وې فرمائيل چې اول به ترينه سر كټ كوم. ددې روايت په بنياد باندې دا خبره كيدې شى چې هرمزان ورته اول د دواړو وزرو د كټ كولو مشوره وركړې وه ليكن هركله چې حضرت عمر رضي الله عنه دا مشوره ناخوښه او رد كړه نو هرمزان دوباره صحيح مشوره وركړه چې اول مقابله كسرى سره كول پكار دى لكه څنګه چې د باب په حديث شريف كښې دى.[2]

وَقَالَ بَكْرٌ وَزِيَادٌ جَمِيعًا عَنْ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ قَالَ فَنَدَبَنَا عُمَرُ وَاسْتَعْمَلَ عَلَيْنَا النُّعْمَانَ بْنَ مُقَرِّنٍ، حَتَّى إِذَا كُنَّا بِأَرْضِ الْعَدُوِّ، وَخَرَجَ عَلَيْنَا عَامِلُ كِسْرَى فِي أَرْبَعِينَ أَلْفًا، فَقَامَ تُرْجُمَانٌ فَقَالَ لِيُكَلِّمْنِي رَجُلٌ مِنْكُمْ. فَقَالَ الْمُغِيرَةُ سَلْ عَمَّا شِئْتَ. قَالَ مَا أَنْتُمْ قَالَ نَحْنُ أُنَاسٌ مِنَ الْعَرَبِ كُنَّا فِي شَقَاءٍ شَدِيدٍ وَبَلاَءٍ شَدِيدٍ، نَمَصُّ الْجِلْدَ وَالنَّوَى مِنَ الْجُوعِ، وَنَلْبَسُ الْوَبَرَ وَالشَّعَرَ، وَنَعْبُدُ الشَّجَرَ وَالْحَجَرَ، فَبَيْنَا نَحْنُ كَذَلِكَ، إِذْ بَعَثَ رَبُّ السَّمَوَاتِ وَرَبُّ الأَرَضِينَ تَعَالَى ذِكْرُهُ وَجَلَّتْ عَظَمَتُهُ إِلَيْنَا نَبِيًّا مِنْ أَنْفُسِنَا، نَعْرِفُ أَبَاهُ وَأُمَّهُ، فَأَمَرَنَا نَبِيُّنَا رَسُولُ رَبِّنَا -صلى الله عليه وسلم- أَنْ نُقَاتِلَكُمْ حَتَّى تَعْبُدُوا اللَّهَ وَحْدَهُ أَوْ تُؤَدُّوا الْجِزْيَةَ، وَأَخْبَرَنَا نَبِيُّنَا -صلى الله عليه وسلم- عَنْ رِسَالَةِ رَبِّنَا أَنَّهُ مَنْ قُتِلَ مِنَّا صَارَ إِلَى الْجَنَّةِ فِي نَعِيمٍ لَمْ يَرَ مِثْلَهَا

[1]) فتح البارى: ۶/ ۲۶۴)_

[2]) پورته حواله، وتاريخ طبرى: ۲/ ۵۲۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قَطُّ، وَمَنْ بَقِيَ مِنَّا مَلَكَ رِقَابَكُمْ. فَقَالَ النُّعْمَانُ: رُبَّمَا أَشْهَدَكَ اللَّهُ مِثْلَهَا مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَلَمْ يُنَدِّمْكَ وَلَمْ يُخْزِكَ، وَلَكِنِّي شَهِدْتُ الْقِتَالَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ فِي أَوَّلِ النَّهَارِ انْتَظَرَ حَتَّى تَهُبَّ الْأَرْوَاحُ وَتَحْضُرَ الصَّلَوَاتُ. [۷۰۹۲]

**قوله: وقال بكر وزياد جميعاً: عن جبير بن حية، قال: فندبنا عمر:** او بكر او زياد دواړه د حضرت جبیربن حیه نه نقل کوی چې هغوی اوفرمائیل چې حضرت عمرمونږ طلب کړو. مطلب دادې چې هرکله د هرمزان او د حضرت عمر رضی الله عنه مشوره اوشوه او حضرت عمر رضی الله عنه د جنګی حکمت عملئ فیصله اوکړه نو بیا ئې دیته عملی جامه اغوستلو دپاره مجاهدین راوبلل او ورته ئې د جهاد دپاره د جمع کیدو اووئیل[1].

**قوله: واستعمل علينا النعمان بن مقرن:** او حضرت نعمان بن مقرن رضی الله عنه ئې زمونږ امیر مقرر کړو.

**حضرت نعمان بن مقرن رضی الله عنه:** دا مشهور صحابی حضرت نعمان بن مقرن بن عائذ بن میجا بن هجیربن نصر المزنی رضی الله عنه دې[2]. البته د ابن سعد رحمه الله رائې دا ده چې مقرن د دوی نیکۀ دې، د دوی د والد نوم هغوی عمرو ذکر کړې دې یعنی نعمان بن عمرو بن مقرن[3].

د دوی کنیت ابوعمرو یا ابوحکیم دې[4].

دوی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی. د دوی نه په روایت کوونکو کښې د دوی ځوئې معاویه بن النعمان، جبیر بن حیه الثقفی، مسلم بن هیثم عبدی، معقل بن یسار مزنی او ابوخالد والبی رحمهم الله وغیره شامل دی[5].

د دوی د ټولو نه اول غزوه "غزوۀ خندق" ده، په فتح مکه کښې هم د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره شریک وو، په دې موقع باندې د قبیله مزینه بیرغ د دوی په لاس کښې وو[6].

حضرت سوید بن مقرن رضی الله عنه د دوی ورور دې، مصعب بن عبدالله زبیری رحمه الله فرمائې چې حضرت نعمان رضی الله عنه خپلو اووۀ[7] ورونړو سره هجرت کړې وو[6]. دا اووۀ واړه ورونړه په "البكاؤون" سره مشهور وو، حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې د ایمان څۀ کورونه

---

[1]) عمدة القاري: ۱۵/ ۸٤، وارشاد الساري: ۵/۲۳۲)_
[2]) تهذیب الکمال: ۲۹/ ٤۵۸، وسیر اعلام النبلاء: ۲/۳۵۶، وطبقات ابن سعد: ۶/۱۸)_
[3]) طبقات ابن سعد: ۶/۱۸، واکمال مغلطای: ۱۲/۶۳)_
[4]) تهذیب الکمال: ۲۹/٤۵۹، وسیر اعلام النبلاء: ۲/۳۵۶)_
[5]) تهذیب الکمال: ۲۹/ ٤۵۹)_
[6]) پورته حواله، وطبقات ابن سعد: ۶/۱۸، واکمال مغلطای: ۱۲/۶۳)_
[7]) تهذیب الکمال: ۲۹/ ٤۵۹، وعمدة القاري: ۱۵/ ۸٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دی او د نفاق هم څۀ کورونه دی، د آل مقرن کورنۍ د ایمان په کورونو کښې ده(۱). د حضرت نعمان رضی الله عنه نه په خپله روایت دې، فرمائی چې د قبیله مزینه څلور سوه کسانو سره مونږ د نبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو(۲).
علامه ابن عبدالبر رحمه الله وغیره لیکلې دی چې حضرت نعمان رضی الله عنه بیا په بصره کښې رهائش اختیار کړو او د هلته نه کوفې ته منتقل شو، ددې ځائې نه حضرت سعد رضی الله عنه دوی د "کسکر" په طرف روان کړل، چرته چې دوی د "زندورد" او سیدونکو سره صلح اوکړه او مدینې منورې ته ئې د قادسیه د فتحې خوشخبری راوړه، ددې نه پس چې کله دې اطلاع حضرت عمر رضی الله عنه پریشان کړو چې د اصفهان، همذان، رې، اذربیجان او د نهاوند ایرانیان جمع شوې دی نو هغوی د نبی علیه السلام ملګرو سره مشوره اوکړه، حضرت علی رضی الله عنه دا رائې ورکړه چې اهلِ کوفه ته پیغام ورکړئ چې د هغوی ۲/۳ حصه خو اسلامی لښکر سره لاړه شی او ۱/۳ حصه ښځو وغیره سره پاتې شی او اهل بصره ته هم پیغام ورکړئ. حضرت عمر رضی الله عنه د دوی نه تپوس اوکړو چې ددې خلقو امیر څوک شی؟ حضرت علی اوفرمائیل چې تاسو په رائې کښې زمونږ نه زیات افضل او زیات پوهه ئې. نو حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چې زۀ به په دوی باندې داسې سړې امیر مقرر کړم چې ددې اهل هم وی. امیرالمؤمنین ددې نه پس مسجد طرفته روان شو نو حضرت نعمان رضی الله عنه ئې هلته په مانځه کښې مشغول بیاموندلو.
ددې نه پس د ابن ابی شیبه په روایت کښې دی چې امیرالمؤمنین کیناستلو او انتظار ئې کوو چې کله دې د مانځه نه فارغ شو نو امیرالمؤمنین ورته اووئیل چې زۀ تا لره امیر جوړول غواړم؟ هغوی اووئیل چې کۀ دا ولایت او امارت د ټیکس د وصولۍ دپاره دې نو نه، لیکن د غازی په طور قبول دې. حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل: "فانك غاز" او دوی سره حضرت زبیر، حذیفه، ابن عمر، الاشعث او عمرو بن معدیکرب رضی الله عنهم هم اووتل.
د کوفې او د بصرې لښکر اخستلو سره دوی د ایرانیانو طرفته ورغلل، هلته د دوی په لاس اصفهان فتح شو، ددې نه پس د نهاوند غزوه چې په ۲۱ هجری کښې اوشوه، په هغې کښې دوی شهید شو، ددې نه پس د لښکر قیادت حضرت حذیفه رضی الله عنه سمبال کړو، آخر دا چې کامیابی او کامرانی حاصله شوه(۳). د دوی شهادت د جمعة المبارک په ورځ باندې اوشو، چې د هغې خبر حضرت عمر رضی الله عنه مسلمانانو ته د منبر نه ورکړو او بیا ئې د حضرت نعمان رضی الله عنه په یاد کښې ډیر زیات اوژړل(٤). رضی الله عنه وارضاه

---

(۱) تهذیب الکمال:۲۹/۴۵۹، وطبقات ابن سعد:۶/۲۰، واکمال مغلطای:۱۲/۶۳)_
(۲) تهذیب الکمال:۲۹/۴۵۹، والاستیعاب:۲/۲۹۹_۳۰۰، باب النعمان)_
(۳) تهذیب الکمال:۲۹/۴۵۹، والاستیعاب:۲/۳۰۰، والمصنف لابن ابی شیبة:۱۸/۲۸۹، کتاب البعوث والسرایا......رقم (۳٤٤۸۵)، وفتح الباری:۶/۲۶٤)_
(٤) سیر اعلام النبلاء:۲/۳۵۷، وذکر الذهبی فی ذلک حکایة ایضا.....[بقیه برصفحه آئنده....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:** حتى إذاكنا بأرض العدو: تردې چې مونږ د دشمن په زمکه کښې وو

د"ارض العدو"نه مراد نهاونددې،لکه څنګه چې د طبرى وغيره په روايت کښې ددې وضاحت دې[۱].

**د نهاوند تعارف:** نُهاوند "بضم النون وتخفيف الهاء وفتح الواو وسكون النون وفى آخرة دال مهملة"[۲]د همدان په جنوب کښې يو ښار دې،ددې تعمير چونکه نوح عليه السلام کړې وو،ددې وجې نه دې ته"نوح اوند"وئيلې کيدۀ،يعنى"عمرها نوح عليه الصلوة والسلام"بيا حاء په هاء سره بدله کړې شوه،دا ښار خپلو نهرونو او د باغاتو د وجې نه مشهور وو.[۳].

**قوله:** وخرج علينا عامل كسرى فى أربعين ألفاً: او د کسرى ګورنر څلويښت زره کسانو سره زمونږ مخامخ شو.

د طبرى په روايت کښې ددې عامل نوم بندار،او د ابن ابى شيبه په روايت کښې ذوالحاجبين مذکور دې،شايد په دې دواړو نومونو کښې يو د دوى لقب وى[۴].

بيا په دې ځائ پوهه کړئ چې د باب په حديث کښې دى:"وخرج علينا عامل كسرى فى أربعين ألفاً"دا د هغې لښکر تعداد دې کوم چې په اهل فارس او کرمان باندې مشتمل وو.د اصل لښکر تعداد يونيم لاک وو چې په هغې کښې د اهل نهاوند حصه ۲۰زره.د اهل اصفهان ۲۰زره، اهل قم وقاشان ۲۰زره،د اهل ذربيجان ۳۰ زره او د نورو علاقو ۲۰ زره حصه وه. ددې ټولو مجموعه يولاک پنځوس زره جوړيږى[۵].

---

بقيه ازحاشيه گذشته] وتهذيب التهذيب:۱۰/۴۵۶)_وفى الطبرانى:(۲/۵۲۱): وكتب الى عمر بالفتح مع رجل من المسلمين،فلماه اتاه قال له:ابشر يا امير المؤمنين بفتح،اعزالله به الاسلام واهله،و اذل به الكفر واهله، فحمد الله عزوجل،ثم قال:النعمان بعثک؟ قال: احتسب النعمان يا امير المؤمنين.قال:فبكى عمر،و استرجع، قال: و من ويحک؟قال:فلان و فلان حتى عدله ناسا كثيرا،ثم قال:و آخرين يا اميرالمؤمنين لا تعرفهم.فقال عمر_وهو يبكى_:لا يضرهم ان لا يعرفهم عمر،ولكن الله يعرفهم"

[۱]) عمدة القارى:۱۵/۸۴،وفتح البارى:۶/۲۶۴،وتاريخ الطبرانى:۲/۵۲۰)_

[۲]) علامه عينى رحمه الله دا کلمه دغه شان ضبط کړې ده(۱۵/۸۴) او علامه ياقوت حموى نون لره مفتوح يا مکسور وئيلې دې(معجم البلدان:۵/۳۱۵) او علامه عينى رحمه الله ددې انکار کړې دې چې نون مفتوح وى يا مکسور)_

[۳]) پورته حواله جات)_

[۴]) تاريخ طبرى:۲/۵۲۰،ومصنف ابن ابى شيبة:۱۸/۲۸۹،کتاب البعوث والسرايا.....رقم (۳۴۴۸۵)، والفتح: ۶/۲۶۴. البته علامه عينى اوياقوت الحموى رحمهما الله يو دريم نوم هم ذکرکړې دې، الفيروزان" چې مصحف کيدو سره په عمدة القارى کښې"الغيرزان"جوړ شوې دې،کيدې شى چې د طباعت غلطى وى.اوګورئ،عمدة:۱۵/۸۴،ومعجم البلدان:۵/۳۱۶،دغه شان اوګورئ، البداية والنهاية:۷/۱۱۰)

[۵]) عمدة القارى:۱۵/۸۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:فقام ترجمان،فقال:لیکلمنی رجل منکم، فقال المغیرة:سل عما**

**شئت:** نو ترجمان اودریدهٔ،وې وئیل په تاسو کښې دې یو کس ماسره خبرې اوکړي، حضرت مغیره رضی الله عنه اوفرمائیل تپوس اوکړه چې څهٔ تپوس کول غواړې.

دلته په روایت کښې اختصار دې،مینځ کښې واقعات ذکر نهٔ دی،ددې تفصیل دادې چې هرکله دواړه ډلې جمع شوې نو بندار خپل قاصد د مسلمانانو په طرف روان کړو چې خپل یو کس راواستوئ،چې هغهٔ سره مونږ خبره اوکړو نو مسلمانانو حضرت مغیره رضی الله عنه روان کړو، د دواړو ډلو مینځ کښې فاصله یو نهر وو،حضرت مغیره رضی الله عنه روان شو او نهر نه واؤړیدلو، هلته بندار خپلو ملګرو سره مشوره اوکړه چې د مسلمانانو قاصد ته څنګه کینم؟هغوی ورته اووئیل چې د بادشاهت شکل وصورت اختیار کړه،نو هغه په خپل تخت باندې کیناستهٔ، په سر باندې ئې تاج کیخودهٔ،شهزادګان د هغهٔ مخامخ په دوو قطارونو کښې اودریدل،او د سرو زرو بنګړي او د ریښمو لباس ئې په بدن باندې وو،بیا هغهٔ حضرت مغیره رضی الله عنه ته دننه د داخلیدو اجازت ورکړهٔ، نو دوو کسانو دوی ځان سره اونیول او دننه لاړل،دوی سره خپله توره او نیزه هم وه، حضرت مغیره رضی الله عنه توره په قالین باندې راښکهٔ،دې دپاره چې دا خلق زما ددې کار نه اثر واخلي چې دې خلقو لره به زما توره زخمي کوي[1].

**قوله:قال:ما أنتم؟:** بندار اووئیل:تهٔ څهٔ ئې؟

بندار حضرت مغیره رضی الله عنه ته داسې خطاب اوکړهٔ چې کلمه د"ما"ئې استعمال کړه کومه چې د غیرذوی العقول دپاره وضع شوې ده،دا د حقارت په طور سره چې ستا څهٔ حیثیت دې چې مونږ سره د جنګ کولو دپاره راغلي ئې؟[2].

د ابن ابی شیبه په روایت کښې دا اضافه هم ده چې بندار اووئیل،ائې عربو!لوږې او مشقت تاسو خلق تنګ کړئ نو دلته راغلئ،که تاسو غواړئ نو مونږ تاسو ته د لارې خرچه وغیره درکولې شو،تاسو خپل ښار ته واپس لاړ شئ.حضرت مغیره رضی الله عنه فرمائی چې ددهٔ په خبرې اوریدو سره ما د الله تعالی تعریف او ثناء بیان کړه،بیا مې اووئیل چې تا زمونږ متعلق څهٔ اووئیل نو په دې کښې غلطي نشته،مونږ هم دغه شان وو[3].

**قوله:قال:نحن أناس من العرب،کنا فی شقاء شدید،نمص الجلد والنوی من الجوع ونلبس الوبر والشعر،ونعبد الشجر والحجر:** حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه اوفرمائیل مونږ د عرب قوم څهٔ کسان یو،مونږ ډیر سخت د بدبختئ ښکار وو،مونږ به د

---

[1]) فتح الباری:۲۶۵/۶،وتاریخ الطبرانی:۵۲۰/۲،والمصنف لابن ابی شیبة:۲۸۹/۱۸،کتاب البعوث.....رقم (۳۴۴۸۵)،ومجمع الزوائد:۲۱۴/۶)_

[2]) العمدة:۸۵/۱۵،والفتح:۲۶۵/۶،وتحفة الباری:۵۶۵/۳،وارشاد الساری:۲۳۲/۵)_

[3]) عمدة القاری:۸۵/۱۵،وفتح الباری:۲۶۵/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لوړې د وجې نه د اونو پهټ او هډوکی چوپل،د وړئ او د ويختو لباس به مونږ اغوستلو او کانړو ،اونو عبادت به مو کوو.

"الوبر"ددې مفردوبرة دې،داوښ،سوې وغيره نرم ويختو اووړئ وغيره دپاره استعماليږي[1]

**قوله:** فبينا نحن كذلك، إذ بعث رب السموات ورب الارضين ـ تعالى ذكرُه،وجلت عظمته ـ إلينا نبيا من أنفسنا،نعرف أباه وأمه: مونږ په دې حال كښې وو چې د اسمانونو او د زمكو رب.......د هغهٔ ذكر دې اوچت او عظمت دې لوئې وى......زمونږ طرفته هم زمونږ په نسل كښې يو نبى راواستوو،چې مونږ د هغهٔ مور پلار پيژنو.

يعنى مونږ ددې بدبختئ او د غريبئ ښكار وو،حقيقى رب مونږ هيركړې وو چې رب ذوالجلال په مونږ باندې رحم اوكړو او هغهٔ هم زمونږ په نسل كښې يو سړې منتخب كړو او زمونږ د هدايت دپاره ئې راواستوو،چې هغه مونږ ډير ښهٔ پيژنو،د هغوى د حسب نسب د شرافت هم مونږ ته ښهٔ پته ده چې په مونږ ټولو كښې اشرف او د نسب په اعتبار سره د ټولو نه غوره او په خبرو اترو كښې د ټولو نه زيات رښتونې انسان دې.[2]

**قوله:** فأمر نبينا ورسول ربنا صلى الله عليه وسلم أن نقاتلكم حتى تعبدوا الله وحده، أو تؤدوا الجزية: نو زمونږ نبى او زمونږ د رب پيغمبر ﷺ مونږ ته حكم راكړو چې مونږ تاسو سره قتال اوكړو تردې چې تاسو ديو خدائې عبادت اوكړئ يا تاسو مونږ ته جزيه راكړئ.

ددې حديث نه هم معلومه شوه چې د مجوسيانو نه جزيه اخستل صحيح دى،د كوم چې حضرت مغيره رضي الله عنه وضاحت كوى ځكه چې د هغوى مخاطب خلق مجوسيان وو.[3]

**قوله:** وأخبرنا نبينا عن رسالة ربنا أنه من قتل منا صار إلى الجنة في نعيم لم ير مثلها قط، ومن بقي منا ملك رقابكم: دغه شان زمونږ نبى مونږ ته زمونږ د رب له طرفه دا پيغام هم راكړو چې په مونږ كښې څوک مقتول او شهيد شى نو هغه به نيغ جنت ته ځى،په داسې نعمتونو كښې[به وى]،چې د هغې مثال بالكل ليدلې شوې نهٔ دې.او څوک چې ژوندې پاتې شى نو هغه به ستاسو د سرونو مالک وى.

يعنى مونږ په هر صورت كښې كامياب يو،كه شهادت راته ملاؤ شو نو جنت دې،چې د هغې هيڅ مثال نشته كه ژوندى پاتې شو نو ستاسو د سرونو مالكان به يو،د نبى عليه السلام په وينا مباركه باندې چونكه زمونږ سل فيصده يقين دې،ددې وجې نه مونږ ددې ځائې نه تلونكى او واپس كيدونكى نهٔ يو،نهٔ ستاسو نه ويريدونكى يو،په طبرى كښې د حضرت مغيره رضي الله عنه نه هم دا مفهوم او معنى روايت شوې ده،

---

[1] ) القاموس الوحيد،مادة:"وبر"_

[2] ) المصنف لابن ابى شيبة:۲۸۹/۱۸، والعمدة:۸۵/۱۵،وفتح البارى:۲۶۵/۶،وابن بطال:۳۳۵/۵)_

[3] ) فتح البارى:۲۶۵/۶، وارشاد السارى:۲۳۲/۵،وشرح الكرمانى:۱۲۸/۱۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وانا والله، لا نرجع إلى ذلك الشقاء، حتى نغلبكم على ما فى أيديكم"[1]

"وفيه فصاحة المغيرة، من حيث ان كلامه مبين لاحوالهم فيما يتعلق بدنياهم: من المطعوم والملبوس، وبدينهم من العبادة، وبمعاملتهم من الاعداء: من طلب التوحيد او الجزية، ولمعادهم فى الآخرة الى كونهم فى الجنة، وفى الدنيا الى كونهم ملوكا للرقاب..... "انظر الكواكب الدرارى: ۱۳/۱۲۸)_

**فقال النعمان[2]: ربما أشهدك الله مثلها مع النبى ﷺ فلم يندمك ولم يخزك، ولكنى شهدت القتال مع رسول الله ﷺ، كان إذا لم يقاتل فى أول النهار، انتظر حتى تهب الارواح، وتحضر الصلوات**

په دې باندې حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه اوفرمائيل (ائې مغيره!) تاسو ډير وخت نبى كريم ﷺ سره په جنګونو كښې پاتې شوې ئې، هلته تاسو الله تعالى د پښيمانتيا او د رسوائى نه محفوظ ساتلې ئې او زۀ هم په څو جنګونو كښې د نبى كريم ﷺ سره شريک پاتې شوې يم، ستاسو عادت دا وو چې كه د ورځې په شروع كښې به مو قتال نۀ شروع كوو نو د مونځ نه پس به تاسو د مناسب هواګانو د چليدو انتظار كولو.

**د حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه په دې پورتنى ارشاد كښې د شارحينو اختلاف:** د حضرت نعمان رضي الله عنه پورته ذكر شوې ارشاد مبارک په دوو حصو يعنى "**ربما أشهدك الله ......ولم يخزك**" او "**ولكنى شهدت......الخ**" باندې مشتمل دې، اوس ددې دواړو حصو په خپل مينځ كښې څې كوم ربط او تړون دې نو په هغې كښې د شارحينو اختلاف دې چې ددې جملو مطلب او مقصد څۀ دې؟

د علامه ابن بطال رحمه الله ميلان دې طرفته دې چې د اولنۍ جملې مفهوم هم مستقل دې او د دويمې جملې مفهوم هم مستقل دې، ددې دواړو مينځ كښې هيڅ تړون نشته، لكه دوى د اولنۍ جملې "**ربما أشهدك الله مثلها.....**" تشريح داسې كوى چې حضرت نعمان حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنهما ته اوفرمائيل چې مغيره! تاسو تير شوې وخت كښې په دغه شان مشكل حالاتو كښې نبى كريم ﷺ سره پاتې شوې يئ، هغوى سره تاسو جنګونو كښې هم وئ، ليكن هغه مصيبتونو او پريشانو چرته تاسو پښيمانه نۀ كړئ كوم چې نبى عليه السلام ته پيښ شوې وو، نۀ دې خبرې تاسو پريشانه كړئ چې تاسو ولې د غزواتو نه ژوندى راغلئ، ځكه چې ددغه مصيبتونو او پريشانو په مقابله كښې كوم نعمتونه او شهادت ملاويدل وو نو د هغې تاسو ته ښۀ علم وو.

او د حضرت نعمان رضي الله عنه دا ارشاد "**ولكنى شهدت القتال مع رسول الله ﷺ**" دا د يو نوې كلام ابتداء او د نوې قصې شروع كول دى، چې په دې كښې حضرت نعمان رضي الله عنه خپل فوج ته د

---

[1]) فتح البارى: ۶/۲۶۵، وعمدة القارى: ۱۵/۸۵، وقال العلامة الكرمانى شارحا لكلام المغيرة:)_

[2]) قوله: النعمان "الحديث، اخرجه الترمذى ايضا، كتاب السير، ما جاء فى الساعة التى يستحب فيها القتال، رقم (۱۶۱۳)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نبی کریم ﷺ په باره کښې دا وئیلې دی چې که نبی علیه السلام به د جنګ ابتداء د ورځې په شروع کښې نۀ کوله نو د جنګ نه به منع شو. تردې چې د الله تعالی د مدد، هواګانې اوچلیږی او د مونځ وخت شی.ددې معنې د تائید دپاره علامه ابن بطال رحمه الله دوه حدیثونه پیش کړې دی، کوم چې د حماد بن سلمه عن النعمان بن مقرن د طریق نه روایت دې چې "کان النبی صلی الله علیه وسلم إذالم یقاتل أول النهار أخر القتال، حتی تزول الشمس وتهب ریاح النصر"(۱).

علامه ابن بطال رحمه الله مزید دا فرمائی چې غوره وختونه د مانځه وختونه دی. چې په دې کښې اذان هم دې او په حدیث شریف(۲) کښې راغلې دی: "الدعاء بین الاذان والاقامة لایرد". چې د "اذان او اقامت مینځ کښې کومه دعا اوغوستلې شی نو هغه نۀ رد کیږی". مطلب دا شو چې د اذان او اقامت او دغه شان د مونځ نه پس د دعا موقع ملاؤ شی نو دا به د الله تعالی د امداد موجب وی.(۳).

لیکن د حافظ ابن حجر، علامه عینی او حافظ کرمانی رحمهم الله قول دادې چې دا دواړه جدا جدا جملې خو دی لیکن ددې په خپل مینځ کښې تړون هم شته او دویمې جملې نه نوې قصه نۀ شروع کیږی، لکه څنګه چې د علامه ابن بطال رحمه الله خیال دې.(۴). لکه په طبری کښې چې د مبارک بن فضاله کوم روایت دې، په هغې کښې مبارک د زیاد بن جبیر په واسطې سره د حضرت نعمان رضی الله عنه د دواړو جملو مینځ کښې ربط او تعلق بیان کړې دې او ددې د سیاق نه دا خبره واضحه کیږی چې دویمه جمله د قصې په طور جمله مستانفه نۀ ده. ددې خلاصه داده چې حضرت مغیره په حضرت نعمان رضی الله عنه د لښکر په امیر باندې د قتال په شروع کولو کښې تاخیر کولو باندې اعتراض اوکړو، چې د هغې جواب حضرت نعمان رضی الله عنه مذکوره جملو کښې ورکړو(۵).

د مبارک بن فضاله د روایت خلاصه داده چې ایرانیانو مسلمانانو ته دا پیغام واستوو چې نهر نه تاسو راواوړئ یا به مونږ درشو؟ کوم نهر چې د دواړو مینځ کښې فاصله وه، نو

---

[1] ) پورته حواله، واخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه:۱۸/۲۹۰، کتاب البعوث......رقم (۳٤٤٨۵)، من طریق عفان عن حماد عن ابی عمران الحونی عن علقمه عن معقل بن یسار.....)_

[2] ) الحدیث، اخرجه ابو داود فی الصلاة، باب فی الدعاء بین الاذان والاقامة، رقم (۵۲۱)، والترمذی فی الصلاة، باب ما جاء ان الدعاء لا یرد بین الاذان والاقامة، رقم (۲۱۲)، وفی الدعوات، باب فی العفو والعافیة، رقم (۳۵۹٤_۳۵۹۳)، عن انس رضی الله عنه )_

[3] ) شرح ابن بطال:۵/۳۳۵، وفتح الباری:۶/۲۶۵، وعمدة القاری:۱۵/۸۵)_

[4] ) قال العلامة الکرمانی رحمه الله: فان قلت: ما معنی الاستدراک، واین توسطه بین کلامین متغایرین؟ قلت: کان المغیرة قصد الاشتغال بالقتل اول النهار بعد الفراغ من المکالمة مع الترجمان، فقال النعمان: ان وان شهدت القتال مع رسول الله ﷺ، لکنک ما ضبطت انتظاره للهبوب". شرح الکرمانی:۱۳/۱۲۹)_

[5] ) فتح الباری:۶/۲۶۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت نعمان رضي الله عنه مسلمانانو ته حکم اوکړو چې تاسو ورشئ او حمله پرې اوکړئ.دغه شان دواړه لښکرې مخامخ شوې او یو بل ته نزدې راغلې،ایرانیانو د خپل فوج په وروستنئ حصه کښې د اوسپنې میخونه وغیره ښخ کړل دې دپاره چې فوج واپس نۀ شي،حضرت مغیره رضي الله عنه چې هرکله د دشمن کثرت اولیدۀ نو وې فرمائیل،د نن په شان ناکامي ما هیڅ کله نۀ ده لیدلې خکه چې زمونږ دشمن د تیارئ کولو او ساه اخستلو دپاره آزاد پریخودلې شوې دې،په خدائې قسم!که معامله زما په لاسونو کښې وې نو ما به په دوی باندې په حمله کولو کښې جلدي کړې وه(١).او د ابن ابی شیبه په روایت کښې دی،راوی وائی چې مونږ د هغوی په وړاندې صف بندی اوکړه نو هغوی په مونږ باندې ډیر زیات غشي اوورول،تردې چې مونږ ته ئې په رارسیدلو کښې جلدي اوکړه نو حضرت مغیره رضي الله عنه حضرت نعمان رضي الله عنه ته اوفرمائیل چې ددې ایرانیانو له طرفه په حمله کولو کښې جلدي شوې ده،ددې وجې نه که تاسو هم حمله اوکړئ نو مناسب به وی.په دې باندې حضرت نعمان رضي الله عنه اوفرمائیل چې تاسو خو د فضیلتونو او د مناقبو مالک یئ او حقیقت دادې چې په دغه شان جنګونو کښې تاسو د نبی علیه السلام سره شریک پاتې شوې یئ(٢).

ددې نه پس د طبری په روایت کښې دی چې په خدائې قسم!ما په دوی باندې په حمله کولو کښې جلدي د هغه څیز د وجې نه اونۀ کړه کوم څیز چې ما په رسول الله صلی الله علیه وسلم کښې اولیدۀ(٣).

خلاصه دا شوه چې حضرت نعمان رضي الله عنه په قتال کښې کوم تاخیر اوکړو نو د هغې وجه د نبی علیه السلام فعل وو چې نبی علیه السلام به چونکه دغه شان کول نو ددې وجې نه حضرت نعمان هم دغه شان اوکړل او د نمر د زوال لنتظار ئې اوکړو.بیا چې علامه ابن بطال رحمه الله د بعضې جملو کومه تشریح کړې ده،هغه هم د اشکال نه خالي نۀ ده،لکه د "فلم یندمك" تشریح هغوی دا کړې وه چې کوم تکلیفونه او سختئ نبی علیه السلام ته پیښې شوې وې نو هغې سره تاسو د پریشانئ او د پښیمانتیا ښکار نۀ شوئ(٤).

حافظ رحمه الله فرمائی چې ما ته چې کومه خبره صحیح ښکاری نو هغه داده چې د "فلم یندمك" نه مراد د نمر د زوال پورې تاخیر او صبر کول دی،کوم چې حضرت مغیره اوکړو،په دې باندې الله تعالی دوی شرمنده نۀ کړل.ددې نه علاوه ابن بطال رحمه الله د "ولم یخزك" په تشریح کښې یو بله نسخه اختیار کړه او "ولم یحزنك" روایت کولو سره ئې ددې وضاحت شروع کړو، لیکن صحیح روایت دلته د خاء معجمه سره او د نون نه بغیر "ولم یخزك" دې،هم دا د

(١) پورته حواله،وعمدة القاری:١٥/٨٥،وتاریخ الطبری:٢/٤٢٠)_

(٢) المصنف لابن شیبة:١٨/٢٩٠،کتاب البعوث......رقم (٣٤٤٨٥)،ومجمع الزوائد:٦/٢١٥)_

(٣) تاریخ الامم والملوک للطبری:٢/٥٢١،سنة احدی وعشرین)_

(٤) شرح ابن بطال:٥/٣٣٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مستملى روايت دې او ماقبل سره زيات مناسب هم دې،دغه شان د عبدالقيس د وفد په روايت كښې "غير خزايا ولا ندامى" چې كومه جمله ده نو دا د هغې په شان هم ده.(١)

ددې نه علاوه د ابن بطال رحمه الله د كلام نه دا هم معلومېږى چې د "مثلها" كوم ضمير دې نو دوى دا د "شدة" يعنى د عصائب طرفته راجع كوى،كوم چې محذوف دې حالانكه نورو حضراتو د "مثلها" ضمير مجرور "وقعة" يا "غزوة" طرفته راجع كړې دې(٢)،يعنى په دغه شان غزواتو كښې الله تعالى تاسو ته د شركت موقع دركړه البته علامه عينى رحمه الله د ابن بطال رحمه الله په تقليد كښې ضمير د شدة طرفته راجع كړې دې،بيا چې كومه تشريح كړې ده نو هغه ئې د نورو شارحينو موافق كړې ده او هم دې ته ئې راجح وئيلې دى چې د ابن بطال رحمه الله تشريح د كلام د سياق سره موافق نۀ ده.(٣) والله أعلم

**د"حتى تهب الارواح" معنى او مطلب:** د "تهب" مصدر "هبوباً" دې او دا د واحد مؤنث غائب صيغه ده،ددې فاعل الارواح دې او د هبوب معنى ده،هوا وغيره چليدل.

"الارواح" د "ريح" جمع ده چې اصل كښې روح وو،د واؤ ساكن ماقبل چونكه مكسور دې ددې وجې نه واؤ په ياء سره بدل شو او ريح جوړ شو،ځكه چې د يو څيز جمع هغه څيز لره خپل اصل طرفته كرځوى،البته ابن جنى رحمه الله وئيلې دى چې د ريح جمع أرياح هم راځى.(٤) او دلته د ارواح نه مراد ارواح النصر دې،يعنى تردې چې د الله تعالى د نصرت او د مدد هواګانې اوچليږى. كما مرقبل عن ابن بطال رحمه الله تعالى(٥).

**د"وتحضر الصلوات" مراد:** دلته په روايت كښې "وتحضر الصلوات" وارد شوې دې او د ابن ابى شيبه په روايت كښې "وتزول الشمس" راغلې دې(٦)،كوم چې روايت بالمعنى دې ځكه چې د نمر د زوال نه پس د ماسپخين د مونځ وخت شروع كيږى.(٧)

**د غزوهٔ نهاوند اختتام:** وړاندې تير شو چې حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه او نورو بعضې ملګرو په حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه باندې اعتراض كړې وو چې دې قتال نۀ شروع كوى؟ بيا ئې په دې باندې اصرار هم اوكړو ليكن حضرت نعمان رضي الله عنه په خپله خبره باندې مضبوط ولاړ وو او چې كله د نمر زوال اوشو نو مسلمانانو له ئې جمع وركړه،بيا په خپل آس باندې سور

(١) پورته حواله،والفتح:٦/٢٦٥،والعمدة: ١٥/٨٥،والكواكب الدرارى:١٣/١٢٩،وارشاد السارى:٥/٢٣٢)

(٢) شرح الكرمانى:١٣/١٢٨،وارشاد السارى:٥/٢٣٢)_

(٣) عمدة القارى:١٥/٨٥)_

(٤) پورته حواله،وفتح البارى:٦/٢٦٥،وشرح القسطلانى:٥/٢٣٢)_

(٥) شرح ابن بطال:٥/٣٣٥)_

(٦) المصنف:١٨/٢٩٠،كتاب البعوث والسرايا.....رقم (٣٤٤٨٥)،وكذا فى مجمع الزوائد:٦/٢١٦)_

(٧) فتح البارى:٦/٢٦٥،وعمدة القارى:١٥/٨٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شو او د هر بیرغ قبیلې ته ورغلو ،هغوی ته ئې د صبر او د ثابت قدمئ تلقین ورکړو ،بیا ئې لښکر ته اوفرمائیل چې اول به زۀ د نعره تکبیر آواز اوچت کړم نو تاسو خلق به د حملې کولو دپاره تیار شئ، چې دویم تکبیر اوچت کړم نو تیاری به مکمل او پوره کړئ ځکه چې ددې نه پس به هیڅا ته د تیارئ کولو موقع نۀ ورکړې کیږی، بیا په دریم تکبیر سره به فوراً په دشمن باندې حمله کوئ.ددې نه پس حضرت نعمان رضی الله عنه واپس خپل ځائې ته تشریف راؤړلو.

دویم طرفته دشمن هم زبردسته تیاری کړې وه،ددې وجې نه هغوی یو ډیر لوئې لښکر او ډیرې زیاتې اسلحې سره صف بندی اوکړه،د ایرانی لښکر په روستنئ حصه کښې د اوسپنې میخونه اچولې شوې وو،دې دپاره چې خپل فوجیان اونۀ تختې او نۀ وروستو واپس شی.ددې نه پس حضرت نعمان رضی الله عنه اولنې تکبیر اوچت کړو،خلق د حملې دپاره تیاریدل شروع شو ،هغوی دویم تکبیر اووئیل او خپله بیرغ ئې اوخوزولو ،خلق تیار شوې وو ،بیا ئې دریم تکبیر اووئیل نو ټولو په یوځائې په دشمن باندې حمله اوکړه،د حضرت نعمان رضی الله عنه د امر لاندې چې کوم کسان وو هغوی په دشمن باندې داسې حمله اوکړه لکه ځنګه چې اوږې باز په ښکار باندې حمله کوی،داسې سخت جنګ شروع شو چې بیا ددې نه پس وروستنی جنګونو کښې ددې مثال ډیر کم مِلاویږی،د نمر د زوال نه تر د تیارې خوریدو پورې د دشمن دومره کسان مړۀ شو چې د هغوی وینې زمکه لونده کړه،داسې چې ځناور او سورلئ هم په هغې کښې خویدلې.

د بعضې خلقو د خیال مطابق د حضرت نعمان رضی الله عنه اس په دې وینه کښې اوخویدۀ،چې د هغې نه وجې نه هغوی راپریوتل،یو غشې راغې چې د هغې د وجې نه حضرت نعمان رضی الله عنه شهید شو ،د دوی ورور حضرت سوید بن مقرن رضی الله عنه[1] ،نه علاوه چاته هم د دوی د شهادت پته نۀ وه،بیا حضرت سوید دوی په څادر باندې پټ کړل او د شهادت خبر ئې پټ اوساتلو.

ددې نه پس حضرت سوید رضی الله عنه بیرغ قائم مقام امیر حضرت حذیفه بن یمان رضی الله عنه ته حواله کړه، حضرت حذیفه حضرت سوید د نعمان بن مقرن رضی الله عنه په ځائې مقرر کړو او ورته ئې اووئیل چې د صورتحال د واضح کیدو پورې د حضرت نعمان د شهادت خبر پټ اوساتئ، ددې دپاره چې په اسلامی لښکر کښې بزدلی پیدا نۀ شی.

چې کله د شپې تیارۀ په خوریدو شوه نو مشرکانو تختیدل شروع کړل،مسلمانانو د هغوی تعاقب اوکړو،دا مشرکان په خپلو کنستې شوې کندو کښې پریوتل،د جنګ په دوران کښې د قتل کیدونکو نه علاوه چې کوم مشرکان په دې کندو وغیره کښې پریوتلو سره هلاک شو نو د هغوی تعداد د یو لاک نه زیات ښودلې شی.د ایرانی لښکر مشر بندار د جنګ دوران کښې خویدلې وو ،په موقع باندې د هغه ځائې نه اوتختیدۀ نو حضرت نعیم یا حضرت سوید هغۀ پسې شو او حضرت قعقاع رضی الله عنه ته مخامخ ورغئ نو په یو غر باندې اوختۀ او هلته پټ شو.آخر دا چې د حضرت قعقاع رضی الله عنه په لاس قتل شو.او مسلمانانو ته

---

[1]) د حضرت نعمان د ددې ورور په باره کښې اختلاف دې چې دا څوک وو؟بعضو سوید ،بعضو نعیم او بعضو معقل نوم ښودلې دې.اوګورئ، البداية والنهاية:۷/۱۱۰،وفتح الباری:۶/۲۶۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لويه فتح حاصله شوه، په غنيمت كښې ډير زيات مال په لاس راغئ. د لښكر امير حضرت حذيفه رضي الله عنه قيديان او د مال غنيمت پنځمه حصه د حضرت سائب بن الاقرع سره د اميرالمؤمنين په طرف روان كړل، ددې نه مخكښې حضرت طريف بن سهم رضي الله عنه د فتحې خوشخبرى مدينې منورې ته اورلو دپاره روان شوې وو[1]. دا ښار د اسلامي لښكر په لاسونو باندې فتح شو، مسلمانانو به دا فتح د "فتح الفتوح" په نوم سره يادوله[2].

**د حديث شريف نه مستنبط فائدې** ① د حديث شريف نه د مشورې فضيلت معلوميږى چې لوئې مرتبې والا سړې كمې مرتبې والا سړى سره مشوره اوكړى نو نهٔ په دې كښې څهٔ باك شته او نهٔ په كښې د مشر كس څهٔ توهين شته. دغه شان دا هم ده چې مفضول هم كله كله د افضل سړى امير وى لكه اوګورئ حضرت زبير بن العوام رضي الله عنه په دې لښكر كښې وو د كوم لښكر امير چې حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه وو او دا متفق عليه خبره ده چې حضرت زبير د حضرت نعمان رضي الله عنهما نه غوره دې.[3].

② د حديث شريف نه دا خبره هم معلومه شوه چې په جنګ كښې د ټولو نه مخكښې د لوئې دشمن قصد كول پكار دى، لكه څنګه چې ورته هرمزان مشوره وركړې وه چې د كسرى نه دې شروع اوكړې شى، ځكه چې هركله د طاقتور سړى جرړې كټ كړې شى نو كمزورې به په خپله باندې شكست تسليموى[4].

③ د حديث شريف نه د حضرت نعمان منقبت او د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنهما د جنګ په امورو كښې پيژندګلنه، قوت نفس، بهادرى، فصاحت او بلاغت معلوميږى چې حضرت مغيره د بندار په وړاندې د هغهٔ په دربار كښې كومه خطبه ارشاد فرمائيلې وه، هغه مختصر خو وه ليكن ډيره زياته بليغه او اثرانداز هم وه. ددې وجې نه دا خطبه چې څنګه د هغوى په دنيوى حالاتو مثلاً د خوراك څكاك وغيره په بيان باندې مشتمله ده نو دغه شان په دې كښې د هغوى چې كوم دينى كيفيت د اسلام نه وړاندې وو او كوم چې بيا د اسلام د قبلولو نه پس شو، ددې بيان په كښې هم دې، دغه شان په دې خطبه كښې د هغوى د معتقداتو مثلاً د توحيد، رسالت او د قيامت په ورځ د ايمان بيان هم دې، دغه شان هغه بيان كوم چې رسول

---

[1]) كوم صاحب چې د حضرت عمر رضي الله عنه طرفته خوشخبرى اورلې وه نو د هغوى په باره كښې هم اختلاف دې چې دا څوك وو؟ حافظ ابن كثير او سيف د دوى نوم طريف بن سهم ښودلې دې او د ابن ابى شيبه په روايت كښې د ابوعثمان نهدى نوم راغلې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې ممكنه ده چې دې دواړو حضراتو مدينې منورې ته تشريف اورلې وى. انظر فتح البارى:۶/۲۶۶. والبداية والنهاية:۷/۱۱۰)_

[2]) د غزوهٔ نهاوند د تفصيل دپاره اوګورئ، البداية والنهاية:۷/۱۰۵_۱۱۲. تاريخ الاسلام(اردو)نجيب اكبر آبادى:۱/۳۰۸......)_

[3]) فتح البارى:۶/۲۶۶. وشرح ابن بطال:۵/۳۳٤. وعمدة القارى:۱۵/۸۵)_

[4]) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الله ﷺ د معجزاتو ،پیشن گویانو بیا ددغه پیشن گویانو باره کښې چې فرمائیلې وو نو د هغې په واقع کیدو باندې هم دا خطبه مشتمله ده.[1]

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** د کتاب په شروع کښې چې مؤلف رحمه الله کوم عنوان قائم کړې وو نو هغه "الجزیة والموادعة" وو ،لکه څنګه چې د باب دا آخری حدیث د موادعة یعنی مصالحت سره متعلق دې،نو حضرت نعمان بن مقرن رضی الله عنه چې په جنګ شروع کولو کښې کوم تاخیر اوکړو ،د الله تعالی د مدد د هواګانو او د نمر د زوال چې ئې کوم انتظار کړې وو نو دا موادعة وو یعنی د مصالحت امکان د هغوی په ذهن کښې وو ددې وجې نه هغوی د نمر د زوال پورې جنګ شروع نۀ کړو ،د موادعة معنی هم داده چې په دشمن باندې د فتح یاب کیدو نه مخکښې قتال نۀ شروع کول او قتال دغه وخت پورې پریخودل،دا امکان په ذهن کښې ساتلو سره چې جنګ کیدې هم شی او کیدې نۀ هم شی.[2]

دغه شان ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت د حدیث په دې جمله کښې هم کیدې شی: "حتی تعبدوا الله أو تؤدوا الجزیة" څکه چې په دې کښې د جزیې ذکر دې چې د ترجمې اولنئ حصه ده،لیکن په دې صورت کښې به اشکال دا وی چې بیا خو د "الموادعة" ذکر بیکاره او فضول شو ،څکه چې د باب کوم احادیث تیر شو،په هغه ټولو کښې د ترجمې او د حدیث تعلق د "جزیة" لفظ سره وو ،دلته هم که چرته تعلق لفظ "جزیة" سره وی نو الموادعة سره د کوم حدیث تعلق دې؟که د هیڅ یو حدیث تعلق او ربط نشته نو ددې د ذکر کولو څۀ فائده؟

غالباً دې څیزلره په ذهن کښې ساتلو سره شارحینو اولنئ توجیه ذکر کړې ده. والله اعلم بالصواب

## (۲) باب: إِذَا وَادَعَ الإِمَامُ مَلِكَ القَرْيَةِ هَلْ يَكُونُ ذَلِكَ لِبَقِيَّتِهِمْ؟

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله یوه بله مسئله ذکر کول غواړی،هغه دا چې د وخت خلیفه که چرته د یو ښار یا د یو کلي والي یا بادشاه سره صلح اوکړی نو آیا دا صلح به ددغه کلي او ښار اوسیدونکو ته هم شامله وی یا نۀ؟او ددغه ځائې اوسیدونکی خلق وغیره به په دې صلح کښې داخل وی یا نۀ؟

جوابِ استفهام دلته محذوف دې،یعنی "یکون" چې دا صلح به ددغه ځائې اوسیدونکو ته هم شامل وی.[3] امام بخاری رحمه الله په مذکوره مسئله باندې د حضرت ابو حمید الساعدی رضی الله عنه حدیث د دلیل په طور باندې پیش کړې دې،په دې کښې صراحةً دا خبره مذکوره خو نۀ ده البته ددې حدیث په بعضې طرقو کښې ددې وضاحت موجود دې او غالباً هم دې طرفته

---

[1] ) الفتح:۶/۲۶۶،والکرمانی:۱۳/۱۲۸،وعمدة القاری:۱۵/۸۵،وارشاد الساری:۵/۲۳۲)_

[2] ) المتواری علی تراجم ابواب البخاری:۱۹۷،وعمدة القاری:۱۵/۸۲)_

[3] ) عمدة القاری:۱۵/۸۵،وتحفة الباری:۳/۵۶۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام بخاری رحمه الله د خپل مشهور عادت موافق اشاره کړې ده.لکه ابن اسحاق رحمه الله په "السیرة" کښې فرمائی:

"لما انتهی رسول الله ﷺ إلی تبوك،أتاه یُحنة [1]بن رؤبة،صاحب أیلة،فصالح رسول الله ﷺ،وأعطاه الجزیة......فکتب رسول الله ﷺ لهم کتاباً،فهو عندهم،فکتب لیحنة بن رؤبة:

بسم الله الرحمن الرحیم،هذه أمنة من الله و محمد النبی ﷺ رسول الله لیحنة بن رؤبة واهل أیلة، سفنهم وسیارتهم فی البر والبحر:لهم ذمة الله، وذمة محمد النبی، ومن کان معهم من أهل الشام، وأهل الیمن، وأهل البحر، فمن أحدث منهم حدثاً فانه لا یحول ماله دون نفسه، وانه طیب لمن أخذه من الناس، وانه لایحل أن یمنعوا ماءً یردونه، ولا طریقاً یریدونه، من بر أو بحر" [2].

یعنی "چې کله نبی علیه السلام تبوک ته اورسیدو نو یحنه(یوحنا)بن روبه،د ایله والی نبی علیه السلام ته راغئ،نبی علیه السلام سره ئې مصالحت اوکړو او جزیه ئې په خدمت اقدس کښې پیش کړه......نبی کریم ﷺ ورته یو خط ورکړو،کوم چې هغهٔ سره موجود دې،نبی علیه السلام چې یحنه بن روبة ته کوم خط لیکلې ورکړې وو نو د هغې مضمون دا دې:

"بسم الله الرحمن الرحیم،د ایله د والی او ددې د اوسیدونکو دپاره د الله تعالی او د محمد النبی،رسول الله ﷺ له طرفه دا امان نامه ده،د دوی د کشتو او د ګاډو دپاره،په زمکه او سمندر دواړو کښې،د دوی دپاره د الله تعالی او د محمد النبی ﷺ ذمه داری ده او د هغه چا دپاره هم چې کوم خلق د شام،یمن او د سمندر نه دې خلقو سره دی،په دوی کښې چې څوک هم نوې کار کوی(یعنی د معاهدې خلاف ورزی کوی)نو د هغهٔ مال به د هغهٔ د ذات دپاره حائل او مانع نهٔ جوړیږی تردې چې کوم کس د دهٔ هغه مال واخلی نو دا به د هغهٔ دپاره حلال وی.او دا هم جائز نهٔ دی چې د اوبو یو ګودر یا چینې ته د راتګ نه دوی منع کړې شی،نهٔ دا جائز دی چې دوی یوه لاره اختیار کړی او دوی منع کړې شی،خواه د اوچې لار وی یا د سمندر".

ددې نه استدلال کولو سره جمهور علماء وائی چې یو بادشاه یا والی سره صلح کول به د هغهٔ ټول قوم او ټولو علاقو ته شامل وی،ځکه چې هرکله هغهٔ د صلحې درخواست پیش کړو نو ګویا هغهٔ د خپل نفس،د خپل قوم او د خپلو ټولو علاقو دپاره د صلحې درخواست پیش کړو چې دې ټولو ته حفاظت او امان ملاؤ شی.

علامه ابن بطال رحمه الله لیکی: "والعلماء مجمعون علی أن الامام إذا صالح ملك القریة أنه یدخل فی ذلك الصلح بقیتهم،لانه إنما صالح علی نفسه، ورعیته، ومن یلی أمره، وتشتمل علیه بلده وعمله، ألا تری أن فی

---

[1] ) بیاء مثناة تحتانیة مضمومة.بعدها حاء مهملة مفتوحة.ثم نون مشددة مفتوحة.وآخره هاء)_

[2] ) السیرة النبویة لابن هشام:۲/۴/۵۲۵_۵۲۶.غزوة تبوك.فی سنة تسع.و شرح ابن بطال:۵/۳۳۶.وفتح الباری:۶/۲۶۷.وعمدة القاری:۱۵/۸۶.وارشاد الساری:۵/۲۳۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کتاب النبي تامين ملك ايلة واهل بلده"(١).
البته په دې کښې اختلاف دې چې که چرته بادشاه د يو مخصوص او متعين جماعت دپاره د صلحې درخواست پيش کړي چې دې خاص قسم جماعت ته دې امان ورکړې شي نو په دې کښې به بادشاه هم داخل وي يا نه؟
نو د جمهورو مسلک خو هم دادې چې په دې صورت کښې به دغه بادشاه په دې صلح و امان کښې داخل نه وي ترڅو چې ئې خپل تعيين نه وي کړې،دا حضرات ددې خبرې دليل دا پيش کوي چې د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کښې اشعث بن قيس د څه خلقو سره مرتد شو او په يو محل کښې پټ شو،بيا هغه د اويا کسانو دپاره امان طلب کړو او خليفه ورته امان هم ورکړو،نو دې د محل نه راووتلو او اويا سړي ئې اوشمارل او خپل ځان ئې په دوی کښې شامل نه کړو،حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اوفرمائيل چې ستا دپاره امان نشته،مونږ خو به تا قتلوو،په دې باندې اشعث اسلام قبول کړو او د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه لور سره ئې نکاح اوکړه(٢).
دغه شان کله چې حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه د تُستر يا د سوس محاصره اوکړه نو د هغوی امير اووئيل چې تاسو زما سلو کسانو ته پناه ورکړئ نو زه به ستاسو دپاره د قلعه دروازه پرانځم کړم؟حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه د هغه خبره منظور کړه،نو هغه خپل سل کسان او ملګري شمارل او جدا کول شروع کړل،حضرت ابوموسی رضي الله عنه (په زړه زړه کښې) وئيل،د الله تعالی نه اميد دې چې هغه به ماته په ده باندې قابو راکړي او د سلو کسانو د شمارلو نه پس به دده نه خپل ځان هير شي،نو هم دغه شان اوشوه چې هغه سل کسان شمار کړل،هغوی ئې جدا کړل او خپل ځان ترينه هير شو،حضرت ابوموسی رضي الله عنه هغه ګرفتار کړو نو هغه اووئيل چې تاسو خو ماته امان راکړې وو؟حضرت ابوموسی رضي الله عنه اوفرمائيل چې ما خو تا ته هيڅ قسم امان نه دې درکړې،واوره!الله تعالی د څه دهوکې نه بغير ماته په تا باندې قابو راکړې دې،بيا ئې د هغه سر والوزولو(٣).
اکثر امامان ددې واقعاتو نه استدلال کولو سره هم دا وائي چې د بادشاه يا د امير خپل ځان لره منتخب کول ضروري دي،ورنه په دې مخصوص جماعت کښې به دې داخل نه وي.ليکن په مالکيه کښې د امام اصبغ او د امام سحنون قول دادې چې خپل ځان منتخب کول نه ضروري دي او نه ددې حاجت شته،بلکه په دې باندې قرينه هم کافي ده،ځکه چې بادشاه کله د نورو خلقو دپاره امان طلب کوي نو خامخا هغه خپل ځان هم په دې کښې شاملوي او ددې مقصود هم دادې چې ده ته هم امان حاصل شي(٤).والله اعلم بالصواب

---

[1] ) شرح ابن بطال:۳۳۶/۵،وفتح الباري:۲۶۷/۶)_
[2] ) شرح ابن بطال:۳۳۷/۵،والمتواري:۱۹۸)_
[3] ) شرح ابن بطال:۳۳۶/۵)_
[4] ) شرح ابن بطال:۳۳۷/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۲۹۹۰ (۱) حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى عَنْ عَبَّاسٍ السَّاعِدِيِّ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - تَبُوكَ، وَأَهْدَى مَلِكُ أَيْلَةَ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - بَغْلَةً بَيْضَاءَ، وَكَسَاهُ بُرْدًا، وَكَتَبَ لَهُ بِبَحْرِهِمْ. [ر: ۱۴۱۱]

## رجال الحديث

①سهل بن بكار: دا ابوبشر سهل بن بكار دارمي بصری رحمه الله دي (۲).

②وهيب: دا وهيب بن خالد بن عجلان بصری رحمه الله دي.

③عمروبن يحيى: دا عمرو بن يحيى بن عمارة مازني رحمه الله دي، ددي دواړو حضراتو مختصر حالات په کتاب الايمان، "باب من کره ان يعود في الکفر......" کښې تير شوي دی (۳).

④عباس الساعدی: دا عباس بن سهل ساعدی رحمه الله دي (۴).

⑤ابوحميدالساعدی: دا ابو حميد عبدالرحمن الساعدی رضي الله عنه دي (۵).

**د حديث شريف ترجمه:** حضرت ابوحميد الساعدی رضي الله عنه فرمائي چې مونږ په غزوهٔ تبوک کښې د نبی کريم صلی الله علیه وسلم سره شرکت اوکړو او د ايله ښار (۶) بادشاه نبی کريم صلی الله علیه وسلم ته يو سپين خچر په هديه کښې پيش کړو، نبی علیه السلام هغهٔ ته يو ښکلې څادر ورکړو او هغهٔ ته ئې د هغهٔ د سمندری علاقو په باره کښې امان اوليکلو او ورته ئې ورکړو.

دا د يو اوږد حديث حصه ده، کوم چې په کتاب الزکوة کښې تير شو (۷). امام بخاری رحمه الله د باب د مناسبت د وجې نه ددې يو حصه دلته ذکر کړې ده.

**قوله: وکساه بردا:** په ټولو نسخو کښې واو سره "وکساه" دې او د ابوذر په نسخه کښې فاء سره "فکساه" دې او هم دا غوره دې، ځکه چې د فعل "کساه" فاعل نبی کريم صلی الله علیه وسلم دې.

د دواړو مينځ کښې فرق دادې چې که واو سره "وکساه" اووئيلې شي نو مطلب به داوی چې د ايله بادشاه ورته خچر هم ورکړو او څادر ئې هم ورکړو، حالانکه دا خبره غلطه ده، دا ځکه غلطه ده چې هغهٔ نبی علیه السلام ته صرف خچر ورکړې وو، په جواب کښې ورته نبی علیه السلام څادر

---

[1]) قوله: عن ابی حميد الساعدی رضي الله عنه": الحديث، مر تخريجه في الزکاة، باب خرص التمر)_

[2]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الزکاة، باب خرص التمر)_

[3]) اوګورئ، کشف الباری: ۲/۱۱۵_۱۱۸)_

[4]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الزکاة، باب خرص التمر)_

[5]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلاة، باب فضل استقبال القبلة)_

[6]) قال ابن قر قول: هی مدينة بالشام على النصف ما بين طريق مصر ومكة، على شاطئ البحر، من بلاد الشام". انظر عمدة القاری: ۱۵/۸۶)_

[7]) صحيح البخاری، کتاب الزکاة، باب خرص التمر، رقم (۱۴۸۱))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ورکړو او د هغهٔ د علاقو او د رعايا دپاره ئې ورته امان ورکړو.
او که فاء سره "فکساه" اووئيلې شي نو مطلب ئې بالکل واضح دې چې د بادشاه کار خچر په هديه کښې ورکول وو او د نبی عليه‌السلام کار په هديه کښې څادر ورکول. امان ليکل او ورکول وو او هم دا صحيح خبره ده.[1]

**د بحر نه څهٔ مراد دې؟** دلته په "بحرهم" کښې د بحر نه مراد کلې يا ښار دې، چونکه دوی د سمندر په غاړه باندې اوسيدل ددې وجې نه ئې د دوی د کلی يا د ښار نه تعبير په بحر سره کړې دې او مقصود ددې اوسيدونکی يا ددې علاقې دی.[2] علامه انورشاه کشميری رحمه‌الله ددې "بحرهم" ترجمه په دې الفاظو سره کړې ده: "هغه کلې چې د درياب په غاړه وی".[3]

مدينه منوره هم چونکه سمندر سره نزدې ده، ددې وجې نه حضرت سعد بن عبادة رضي‌الله‌عنه په دې باندې د بحيرة اطلاق اوکړو او وې فرمائيل چې:

"لقد اصطلح أهل هذه البحيرة على أن يتوجوه، فيعصبونه بالعصابة، فلما أبى الله ذلك بالحق الذى أعطاك الله شرق بذلك......".[4]

چې اهلِ مدينه دا فيصله کړې وه چې د عبدالله بن ابی بن سلول تاج پوشی او دستاربندی به کولې شی، دې به د خپلې علاقې چودهری مقررولې شی، د نبی عليه‌السلام د راتګ نه پس دا ټوله قصه ختمه شوه، د عبدالله بن ابی د مشرئ ارمان پوره نهٔ شو، ددهٔ رسئ ددهٔ په غاړه کښې انختې ده ددې وجې نه دا سې قسم شرارتونه کوی.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** علامه ابن المنير رحمه‌الله ليکی چې د بخاری شريف په روايت کښې صيغه د امان ده، نهٔ چې صيغه د طلب چې بادشاه امان طلب کړې وی ليکن ددې باوجود امام بخاری رحمه‌الله د خپل عادت د وجې نه د باب د حديث نه مذکوره استدلال اوکړو چې بادشاه چې د حضوراکرم صلی‌الله‌عليه‌وسلم په خدمت اقدس کښې کومه هديه پيشه کړه نو د هغهٔ مقصد ددې په ذريعې سره د خپل حکومت د بقاء درخواست پيش کول وو او د هغهٔ د حکومت بقاء هم هله ممکنه وه چې هرکله د هغهٔ قوم او رعايا هم باقی وی، نتيجه هم دا شوه چې د هغهٔ دا مصالحت د خپل رعايا دپاره وو.[5] هم دا مقصد د ترجمة الباب هم دې. علامه

---

[1] ) فتح الباری:۲۶۶/۶، وعمدة القاری:۸۶/۱۵، وشرح القسطلانی:۲۳۳/۵)_

[2] ) فتح الباری:۲۶۷/۶، وعمدة القاری:۸۶/۱۵، وشرح القسطلانی:۵ /۲۳۳)_

[3] ) فيض الباری:۴۷۴/۳)_

[4] ) صحيح البخاری، کتاب التفسير، باب(والتسمعن من الذين اوتوا الکتب)......رقم (۴۵۶۶)، والقصة رواها ابن هشام ايضا، ولکن لا يوجد فيها هذه الفظة_اعنى البحيرة_ انظر سيرته:۵۸۸/۳/۲، خروج قوم ابن ابى عليه......وغضب الرسول.....)_

[5] ) فتح الباری:۲۶۷/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عینی رحمه الله د علامه ابن المنیر رحمه الله دا وضاحت اختیار کړې دې[1].او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې ترجمة الباب سره د حدیث شریف د مطابقت دپاره دومره خبره کافي نۀ ده ځکه چې امام بخاري رحمه الله د خپل مشهور عادت موافق د حدیث د ذکر کولو نه بغیر هم دا خپله مدعا حاصلولې شوه.حقیقت کښې امام بخاري رحمه الله د خپل یو بل عادت مطابق دلته دا طریقه اختیار کړې ده چې کله دوی یو حدیث ذکر کولو سره د هغې نورو طُرقو طرفته اشاره کوی،دلته هم دوی د سیرة ابن اسحاق د یو روایت طرفته اشاره کړې ده کوم چې اوس وړاندې تیر شو ،په کوم کښې چې ددې خبرې وضاحت دې چې د ایله ښار بادشاه نبي علیه السلام سره مصلحت اوکړو او جزیه ئې ادا کړه،بیا هغۀ ته نبي علیه السلام یو خط ورکړو چې په هغې کښې هغۀ دپاره د امان ورکولو وضاحت وو.[2].والله اعلم بالصواب

## ③ باب: الْوَصَايَا بِأَهْلِ ذِمَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم

وَالذِّمَّةُ الْعَهْدُ، وَالإِلُّ الْقَرَابَةُ.

**د ترجمة الباب مقصد**: دلته امام بخاري رحمه الله دا بیانول غواړی چې نبي علیه السلام کومو غیرمسلمو سره عهد کړې وو،خواه هرقسم عهد چې وی،نو دوی سره د ښیګړې معامله ساتل پکار دی،بغیر د څۀ وجې دوی لره تنګول پکار نۀ دی او د نبي علیه السلام د عهد پوره والې پکار دې.

**د الوصاة معنی**: **الوصاة "بفتح الواو، والمهملة مخففا"** ددې معنی ده وصیت.او د وصیت مختلف معنې دی چې په هغې کښې یو معنی ده چاسره ښیګړه کول.[3].

**د الذمة او د الال معنی**: بیا ددې نه پس امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب کښې د دوو کلماتو معنې بیان کړې دی لکه څنګه چې د هغوی عادت دې چې په حدیث مبارک کښې کوم لفظ راشي نو که هغه په قرآن کریم کښې هم راغلې وی نو د هغې وضاحت او تفسیر کوی.اولنۍ کلمه"الذمة"ده او دویمه کلمه"الإل"ده.د اولنۍ کلمې معنی ئې کړې ده چې عهد او دویمې کلمې معنی ئې په قرابت (رشته دارئ)سره کړې ده کوم چې د امام ضحاک رحمه الله اختیار کړې شوې تفسیر دې،لکه هغوی د قرآن کریم د آیت مبارکه(لا یرقبون فی مؤمن الا ولا ذمة)[4]تفسیر هم په دې کلماتو سره کړې دې.[5].

امام بخاري رحمه الله چې د "الذمة" کومه معنی بیان کړې ده نو ددې نه علاوه ددې لفظ نورې معنې هم شته،مثلاً:امان،ضمان،حرمت او حق وغیره.اهلِ ذمه ته هم ذمه ددې وجې نه

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/۸۶)_

[2]) فتح الباری:۶/۲۶۷،وایضا ارشاد الساری:۵/۲۳۳)_

[3]) فتح الباری:۶/۲۶۷)_

[4]) التوبة:/۱۰)_

[5]) فتح الباری:۶/۲۶۷،و روح المعانی:۱۰/۳۴۹،سورة التوبة،الآیة:۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وتيلې شي چې هغوی د مسلمانانو په عهد و امان کښې داخل شی.[١]او بعضې حضراتو وئيلې دی چې د "الإل" اطلاق بعضې وخت کښې په عهد باندې هم کيږی.[٢]

٢٩٩١:[٣] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو جَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ جُوَيْرِيَةَ بْنَ قُدَامَةَ التَّمِيمِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رضى الله عنه - قُلْنَا أَوْصِنَا يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. قَالَ أُوصِيكُمْ بِذِمَّةِ اللَّهِ، فَإِنَّهُ ذِمَّةُ نَبِيِّكُمْ، وَرِزْقُ عِيَالِكُمْ.[ر: ١٣٢٨]

## رجال الحديث

①**ادم بن ابی ایاس**:دا ابو الحسن آدم بن ابی ایاس عبدالرحمن عسقلانی رحمه الله دی.

②**شعبه**:دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی رحمه الله دی.ددې دواړو حضراتو حالات په کتاب الایمان، "باب المسلم من سلم المسلمون....." کښې تير شوې دی.[٤]

③**ابوجمرة**:دا ابوجمرة نصر بن عمران بصری رحمه الله دی.د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب أداء الخمس من الایمان" کښې راغلې ده.[٥]

④**جویریه بن قدامة التمیمی**:داجویریه بن قدامه بن مالک بن زهیرتمیمی سعدی رحمه الله دی.[٦] اکثرو امامانو د رجالو دوی تابعی ښودلې دی او په لويو تابعينو کښې ئې د دوی شمار کړې دې.[٧]د دوی نه علاوه يو بل شخصيت دې چې د هغهٔ نوم جاريه بن قدامه دې،دا د حضرت علی رضی الله عنه په ملګرو کښې وو او دا صحابی دې.[٨]اکثر ائمه رجال په دې دواړو شخصياتو کښې جدائی کوی او وائی چې جاريه جدا شخصيت دې او جويريه جدا شخصيت دې،د راجح قول مطابق اولنې صحابی دې او دويم تابعی دې.ليکن د حافظ ابن حجر او حافظ مغلطائی رحمهما الله وغيره ميلان دې طرفته دې چې دا دواړه نومونه د يو شخصيت دی،يا جاريه نوم دې جويريه لقب دې،يا جويريه نوم دې او جاريه لقب دې خو بهرحال دا جدا جدا شخصيات نهٔ دی بلکه د يو سړی دوه نومونه دی او دا صحابی دې.[٩]

---

[١]) عمدة القاری:١٥/٨٦،و روح المعانی:١٠/٣٥٠)_

[٢]) فتح الباری:٦/٢٦٧)_

[٣]) قوله_سمعت عمر...... رضی الله عنه":الحدیث،تفرد به البخاری،انظر تحفة الاشراف:٨/١٩)_

[٤]) کشف الباری:١/٦٧٨)_

[٥]) کشف الباری:٢/٧٠١)_

[٦]) اکمال مغلطای:٣/٢٦١،رقم (١٠٣٦))_

[٧]) الجرح والتعديل:٢/٤٦٣،والثقات:٤/١٦٦،وتهذيب الكمال:٥/١٧٤،وفتح البارى:٦/٢٦٧)_

[٨]) تهذيب الكمال:٤/٨٠،رقم (٨٨٦))_

[٩]) الاصابة:١/٢١٨،وفتح البارى:٦/٢٦٧،وتهذيب التهذيب:٢/١٢٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن حجر رحمه الله په خپل مؤقف باندې دا استدلالات پیش کوی:

① جویریه تمیمی دې او جاریه هم تمیمی دې، ددې وجې نه دا خبره څهٔ لرې نهٔ ده چې دا دواړه شخصیات یو وی.

② د مصنف ابن ابی شیبه[1] په روایت کښې د جویریه په ځائې د جاریه وضاحت موجود دې او حدیث د دواړو یو دې او دواړه دا حدیث د ابوجمرة نه روایت کوی، ددې نه هم ذهن ته دا خبره راځی چې دا دواړه د یو شخصیت نومونه دی[2]. والله اعلم

جویریه بن قدامه د حضرت عمر رضی الله عنه نه روایت کوی. او د دوی نه روایت کوونکې هم صرف ابوجمرة نصر بن عمران رحمه الله دې[3].

په بخاری شریف کښې د دوی ذکر صرف د باب په دې حدیث کښې راغلې دې، باقی پنځو امامانو د دوی نه روایت نهٔ دې اخستلې[4]. رضی الله عنه وأرضاه.

⑤ **عمر بن الخطاب:** د دویم خلیفه، حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه دې. د دوی حالات د "بدء الوحی" په اولنی حدیث کښې تیر شوې دی[5].

**د باب د حدیث شریف ترجمه:** مونږ اووئیل، امیرالمؤمنین! مونږ ته ښهٔ خبره اوکړئ او وصیت اوکړئ، وې فرمائیل، زهٔ تاسو خلقو ته د الله تعالی د عهد سره د خیر ښیګړې وصیت کوم ځکه چې دا ستاسو د نبی صلی الله علیه وسلم د عهد او د ستاسو د اهل وعیال د رزق سبب دې.

**د حدیث شریف مزید تفصیل:** دلته چې امام بخاری رحمه الله کوم روایت ذکر کړو نو هغه ډیر زیات مختصر دې او باب سره د مناسبت د وجې نه ددې په ذکر کولو باندې امام بخاری رحمه الله بس والې کړې دې، پوره حدیث امام جمال الدین مزی رحمه الله په "تهذیب الکمال" کښې نقل کړې دې، جویریه بن قدامه فرمائی:

"حججتُ، فمررتُ بالمدینة، فمررت بالمدینة، فخطب عمر، فقال: انی رایت اللیلة دیکا نقرنی نقرة او نقرتین، فما کان الا جمعة او نحوها حتی اصیب، قال: الشام، ثم اذن لاهل العراق، قال: وکنا آخر من دخل، قال: فکلما دخل قوم بکوا واثنوا. قال: وکنت فیمن دخل فاذا عمامة اوبرد اسود قد عصب علی طعنته، واذا الدماء تسیل، قال: فقلنا: اوصنا، ولم یساله الوصیة احد غیرنا، قال: اوصیکم بکتاب الله؛ فانکم لن تضلوا ما اتبعتموه، قال: قلنا: اوصنا، قال: اوصیکم بالمهاجرین، فان الناس سیکثرون ویقلون، اوصیکم بالانصار؛

[1] ) المصنف لابن ابی شیبة: ۵۹۳/۲۰، کتاب المغازی، رقم (۳۸۲۱۸)، وتعلیقات تهذیب الکمال: ۱۷۶/۵)_
[2] ) تهذیب التهذیب: ۱۲۵/۲، رقم (۲۰۳))_
[3] ) تهذیب الکمال: ۱۷۵/۵)_
[4] ) تهذیب الکمال: ۱۷۶/۵، واکمال مغلطای ک ۲۶۱/۳، رقم (۱۰۳۶))_
[5] ) کشف الباری: ۲۳۹/۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فانهم شعب الاسلام الذى لجا اليه، واوصيكم بالاعراب؛ فانهم اصلكم ومادتكم، ثم سالته بعد ذلك، قال: انهم اخوانكم وعدو عدوكم، و اوصيكم بذمتكم؛ فانها ذمة نبيكم، و رزق عيالكم، قوموا عنى، فما زاد على هؤلاء الكلمات"[1].

يعني: "زهٔ چې د حج د مناسكو نه فارغ شوم او مدينې منورې ته لاړم نو حضرت عمر رضي الله عنه خطبه ارشاد اُوفرمائيله او وې وئيل چې ما د شپې په خوب كښې يو چرګ اوليدو چې هغهٔ په ما يو يو يا دوه ټونګې اولګولې، ددې نه پس تقريباً يو هفته تيره شوې وه چې دوى زخمى شو، راوى وائى چې اميرالمؤمنين اول صحابه كرامو رضي الله عنهم، بيا اهل مدينه ته د ملاقات اجازت وركړو، بيا اهل شام ته، بيا اهل عراق ته او د ټولو نه په آخر كښې ورسره مونږ ملاقات اوكړو، كله چې به يو قوم د ملاقات په غرض داخل شو نو هغوى به ژړل او تعريفونه به ئې كول. راوى وائى چې په ملاقات كوونكو كښې زهٔ هم شامل ووم، چې داخل شوم نو اومې ليدل چې د هغوى په زخم باندې پټكى يا تور څادر سره پټئ تړلې شوې وه او د زخم نه وينه بهيدله، مونږ ورته درخواست اوكړو چې وصيت راته اوكړئ، دا درخواست زمونږ نه علاوه بل چا نهٔ وو كړې، اميرالمؤمنين اوفرمائيل، زهٔ تاسو ته د ښيګړې وصيت په كتاب الله سره كوم ځكه چې ترڅو تاسو ددې تابعدارى كوئ نو ګمراه به نهٔ شئ، مونږ اووئيل نور هم څهٔ اوفرمائې، وې فرمائيل، زهٔ تاسو ته دا وصيت كوم چې مهاجرينو سره ښهٔ سلوک ساتئ، ځكه چې خلق خو به زياتيږى ليكن دا مهاجرين به كميږى او انصارو سره درته د ښيګړې كولو حكم كوم ځكه چې دوى د اسلام هغه كندې دى د چا طرفته چې اسلام پناه اخستې وه او بانډيچيانو سره درته د ښهٔ سلوک وايم ځكه چې هم دغه خلق ستاسو اصل او بنياد دې، ستاسو ورونړه دى او ستاسو د دشمنانو دشمنان دى، دغه شان زهٔ تاسو ته دا حكم كوم چې ذميانو سره ښهٔ سلوک كوئ ځكه چې دا هغه خلق دى چې ستاسو نبى عليه السلام ورسره عهد كړې دې او هم دوى ستاسو اهل وعيال ته د رزق ملاويدلو دپاره سبب جوړيږى، په آخره كښې اميرالمؤمنين اوفرمائيل چې اوس ددې ځائې نه پاسئ، ددې نه پس ئې څهٔ خبره اونهٔ كړه".

**فائده:** د حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت دا واقعه د حضرت عمرو بن ميمون رحمه الله نه هم روايت شوې ده[2] په كوم كښې چې د باب د حديث ددې الفاظو "اوصيكم بذمة الله فانه ذمة نبيكم و رزق عيالكم" په ځائې دا الفاظ منقول دى:

"واوصيه بذمة الله تعالى، وذمة رسوله صلى الله عليه وسلم أن يوفى لهم بعهدهم، وأن يقاتل من ورائهم، ولا يكلفوا إلا طاقتهم".

---

[1] ) تهذيب الكمال: ١٧٥/٥ـ١٧٦. و اخرج اوله الامام البخارى فى تاريخه: ٢٤١/٢، رقم (٢٣٢٥)، ومثله عندابن ابى شيبة فى مصنفه: ٥٩٣/٢٠، كتاب المغازى، ما جاء فى خلافه عمربن الخطاب رضي الله عنه، رقم (٣٨٢١٨)

[2] ) صحيح البخارى، كتاب فضائل اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم، قصة البيعة.....رقم (٣٧٠٠))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"او زما نه پس چې کوم خلیفه راځی، هغې خلیفه ته هم وصیت کوم چې هغه د الله تعالی او د هغهٔ د رسول ﷺ د عهد خیال اوساتی دا سې چې د دوی د عهد پوره والې اوکړی، دړ دوی دپاره جنګ اوکړی او د طاقت او قوت نه زیات بوج په دوی باندې وانهٔ چولې شی"

ددې وجې نه ددې حدیث د پورته ذکر شوې حصې نه دا خبره معلومیږی چې د اهل جزیې نه دې دومره قدرې جزیه وصول کړې شی څومره چې هغوی قوت او طاقت لری او په دې معامله کښې ورسره ظلم او زیاتې اونهٔ کړې شی([1]).

**د "و رزق عیالکم" مطلب:** د باب د حدیث ددې الفاظو "و رزق عیالکم" مطلب دادې چې ددې اهل ذمه او اهلِ خراج نه چې کوم رقم وصولیږی نو هغه ستاسو د اهل وعیال دپاره رزق جوړیږی او د هغې په ذریعې سره تاسو ددې خپل اهل وعیال د ضرورتونو بندوبست کوئ([2]).

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت واضح دې چې ترجمة الباب ذمیانو سره د خیرښیګړې اختیارولو وو او په حدیث شریف کښې هم دغه خبره ده چې حضرت عمر رضی الله عنه ذمیانو سره د خیرښیګړې کولو وصیت کړې وو

## ⑭ باب: مَا أَقْطَعَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم مِنَ الْبَحْرَيْنِ. وَمَا وَعَدَ مِنْ مَالِ الْبَحْرَيْنِ وَالْجِزْيَةِ، وَلِمَنْ يُقْسَمُ الْفَيْءُ وَالْجِزْيَةُ

**د ترجمة الباب وضاحت او مقصد:** دا ترجمة الباب په دریو جزونو باندې مشتمل دې، په دې درې وارو جزونو کښې مصنف رحمه الله درې مختلف قسم احکامات بیان کړې دی او هم ددغه احکاماتو په ترتیب سره ئې درې حدیثونه هم ذکر کړې دی([3]). لکه د اولنی حدیث تعلق اولنی حکم سره، د دویم حدیث تعلق دویم حکم سره او د دریم حدیث تعلق د دریم حکم سره دې. د ترجمة الباب اولنې جزء "ما أقطع النبي صلى الله عليه وسلم من البحرين" دې.

**د "أقطاع" لغوی او اصطلاحی معنی:** "أقطع" د باب افعال نه د ماضی مذکر صیغه ده. وئیلې شی "أقطع فلاناً أرضاً" یعنی چاته زمکه ورکول، د هغهٔ په نوم کول([4]).

د شریعت په اصطلاح کښې د وخت د خلیفه له طرفه د الله تعالی په ورکړې شوې مال کښې چاته څهٔ ورکولو ته "أقطاع" وئیلې شی. لیکن ددې زیات استعمال په دې کیږی چې چاته زمکه د جائیداد په طور باندې ورکړې شی. اوس د خلیفه خوښه ده چې چا ته جائیداد ورکوی، نو هغهٔ لره د دغه جائیداد مالک جوړوی چې هغه دې زمکې لره آباده کړی یا ئې

---

[1]) فتح الباری:۶/۲۶۷)_
[2]) پورته حواله، والکرمانی:۱۳/۱۳۰)_
[3]) فتح الباری:۶/۲۶۸، وعمدة القاری:۱۵/۸۶)_
[4]) القاموس الوحید، مادة: "قطع")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ورته خۀ خاص وخت پورې حواله کړی،ددې وجې نه چاته جائیداد ورکول کله خو د تملیک په طور وی او کله بغیر د تملیک نه وی.

هم ددې وجې نه فوج ته هم "مقطعین" وئیلې شی،یعنی د جائیداد خاوند[1].او دلته د امام بخاری رحمه الله مقصد ددې کار جواز ښودل دی چې خلیفه یو اهل او قابل سړی ته هر وخت کښې زمکه د جائیداد په طور سره ورکولې شی.لکه د نبی کریم ﷺ د بحرین زمکو لره جائیداد جوړول د باب د اولنی حدیث شریف نه ثابت دی،چې نبی علیه السلام ددې اراده کړې وه او په دې معامله کښې ئې انصارو سره څو ځله خبره هم کړې وه چې تاسو خلق دا زمکې واخلئ لیکن هرکله چې هغوی انکار اوکړو نو نبی علیه السلام خپله اراده پریخودله.

**د امام بخاری رحمه الله د استدلال طریقه:** امام بخاری رحمه الله دلته د نبی علیه السلام ددې ارادې نه استدلال کړې دې چې خبره مستقبل کښې کیدله نو هغه ئې په ماضی کښې واخستله ګویا که نبی علیه السلام دغه خلقو ته جائیداد ورکړو،د نبی علیه السلام په حق کښې دا معامله بالکل واضحه ده ځکه چې نبی علیه السلام د یو داسې کار حکم نۀ شی ورکولې چې هغه کار ناجائز وی.

لهذا هم دا معلومه شوه چې دا کار یعنی چا ته جائیداد ورکول د وخت د خلیفه له طرفه صحیح دی.حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی:

"فاما إقطاعه ﷺ من البحرين فالحديث الاول دال على أنه صلى الله عليه وسلم همّ بذلك، وأشار به على الأنصار مراراً، فلما لم يقبلوا تركه، فنزل المصنف ما بالقوة منزلة ما بالفعل، وهو فى حقه صلى الله عليه وسلم واضح لانه لايامر الا بما يجوز فعله"[2].

د باب په حدیث شریف کښې د بحرین نه مراد د عراق مشهور ښار دې(کوم چې اوس مستقل ریاست دې)وړاندې دا خبره تیره شوې ده چې اهل بحرین سره نبی علیه السلام مصالحت کړې وو او په هغوی ئې جزیه لازم کړې وه.بیا په دې حدیث شریف کښې چې د بحرین د زمکو انصارو ته د جائیداد په طور باندې د ورکولو کوم ذکر راغلې دې نو ددې نه مراد دا دې چې ددې زمکو نه کوم خراج او جزیه وصولیږی نو هغه به د انصارو دپاره خاص وی.ددې زمکو آمدن به انصارو ته ځی،دا مطلب او مقصد نۀ دې چې هغوی به ددې زمکو مالکان هم شی ځکه چې دصلحې زمکه نۀ تقسیمیږی اونۀ چاته دجائیداد په توګه ورکړې کیدې شی.[3].والله اعلم

۲۹۹۲ :[4]. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا - رضى الله عنه - قَالَ دَعَا النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - الأَنْصَارَ لِيَكْتُبَ لَهُمْ بِالْبَحْرَيْنِ. فَقَالُوا

---

[1] ) عمدة القاری:۸۶/۱۵، والنهاية لابن الاثير الجزری:۸۲/۴،باب القاف مع التاء)_

[2] ) فتح الباری:۲۶۸/۶،ومثله فی شرح القسطلانی:۲۳۴/۵،وعمدة القاری:۸۷/۱۵)_

[3] ) فتح الباری:۲۶۸/۶،وارشاد الساری:۲۳۳/۵،وعمدة القاری:۸۷/۱۵)_

[4] ) قوله: انسا رضی الله عنه ":الحديث،مر تخريجه فی کتاب المساقاة،باب القطائع)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لَا وَاللّٰهِ حَتّٰى تَكْتُبَ لِإِخْوَانِنَا مِنْ قُرَيْشٍ بِمِثْلِهَا . فَقَالَ ذَاكَ لَهُمْ مَا شَاءَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ يَقُولُونَ لَهُ قَالَ «فَإِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِي أَثَرَةً، فَاصْبِرُوا حَتّٰى تَلْقَوْنِي». [ر ٢٢٤٧]

## رجال الحديث

① **احمد بن يونس**: دا احمد بن عبدالله بن يونس تميمي يربوعي رحمه الله دي.د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب من قال: إن الايمان هو العمل" کښې تيره شوې ده.(۱).

② **زهير**: دا زهير بن معاويه بن حُديج رحمه الله دي.د دوی تفصيلی حالات په کتاب الايمان، "باب الصلوٰة من الايمان" کښې راغلي دی.(۲).

③ **يحيي بن سعيد**: دا مشهور تابعی،د مدينې منورې فقيه،حضرت يحيي بن سعيد الانصاری رحمه الله دي.د دوی مختصر تذکره په "بدء الوحی" کښې او تفصيلی تذکره په کتاب الايمان، "باب صوم رمضان..... " کښې تيره شوې ده.(۳).

④ **انس** رضي الله عنه: د مشهور صحابی حضرت انس بن مالک رضي الله عنه حالات په کتاب الايمان، "باب من الايمان أن يحب لاخيه...... " کښې راغلي دی.(۴).

**د أثرة ضبط او معنی**: د باب په حديث کښې چې د "أثرة" کوم لفظ راغلي دي نو دا مختلفو طريقو سره ضبط کړې شوې دي.

① ابن الاثير رحمه الله دا لفظ همزه او ثاء د دواړو فتحې سره ضبط کړې دي.(۵).

② صاحبِ مطالع او علامه جيانی رحمهما الله دا لفظ د همزه ضمه او د ثاء سکون سره "أُثْرة" ضبط کړې دي.

③ بعضې حضراتو دا د همزه کسره او د ثاء سکون "إِثْرة" سره ضبط کړې دي(۶).

علامه ازهری رحمه الله فرمائی چې د "أثرة" معنی ده استيثار.او د استيثار معنی ده خودغرضی او ذاتی فائده لټول،دا د ايثار ضد دي(يعنی خپل ځان باندې نورو خلقوته ترجيح ورکول).(۷).

---

(۱) کشف الباری:۲/۱۵۹)_
(۲) کشف الباری:۲/۳۶۷)_
(۳) کشف الباری:۱/۲۳۸،و:۲/۳۲۱)_
(۴) کشف الباری:۲/۴)_
(۵) النهاية فی غريب الحديث والاثر:۱/۲۲،باب الهمزة مع التاء)_
(۶) عمدة القاری:۱۵/۸۷)_
(۷) پورته حواله،والقاموس الوحيد،مادة: اثر")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** د ترجمة الباب اولنى جزء سره ددې حديث مناسبت ښکاره دې چې نبى ﷺ انصارو ته د جائيداد ورکولو اراده ښکاره کړه.ددې نه ددې کار جواز معلومېږى.كمامرقبل(١).

د ترجمة الباب دويم جزء"وما وعد من مال البحرين"دې.ددې جزء مقصد دادې چې بادشاه وقت که په جزيه وغيره کښې چا ته خصوصى طور باندې څۀ مال وغيره ورکول اوغواړى نو په شريعت کښې ددې گنجائش شته او ددې اجازت دې.لکه د باب په دويم حديث شريف کښې دا مضمون راغلې دې چې حضرت جابر رضی الله عنه ته نبى ﷺ فرمائيلې وو چې که د بحرين مال راغئ نو مونږ به ترينه تاسو ته دومره دومره درکړو.دا دوى سره د نبى ﷺ وعده وه چې بيا د نبى ﷺ د وفات نه پس د هغوى جانشين مبارک حضرت صديق اکبر رضی الله عنه پوره کړه او دکوم مال وعده چې شوې وه نو هغه ئې حضرت جابر رضی الله عنه ته حواله کړو.

٢٩٩٣:(٢)حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ أَخْبَرَنِي رَوْحُ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ لِي «لَوْ قَدْ جَاءَنَا مَالُ الْبَحْرَيْنِ قَدْ أَعْطَيْتُكَ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا» . فَلَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَجَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ قَالَ أَبُو بَكْرٍ مَنْ كَانَتْ لَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عِدَةٌ فَلْيَأْتِنِي . فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ كَانَ قَالَ لِي «لَوْ قَدْ جَاءَنَا مَالُ الْبَحْرَيْنِ لأَعْطَيْتُكَ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا». فَقَالَ لِي احْثُهْ. فَحَثَوْتُ حَثْيَةً فَقَالَ لِي عُدَّهَا. فَعَدَدْتُهَا فَإِذَا هِيَ خَمْسُمِائَةٍ، فَأَعْطَانِي أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ.[ر: ٢١٧٤]

## رجال الحديث

①**على بن عبدالله:** دا مشهور امام حديث حضرت على بن عبدالله ابن المدينى رحمه الله دې.د دوى تفصيلى حالات په کتاب العلم،"باب الفهم فى العلم"کښې تير شوې دى.(٣).

②**اسماعيل بن ابراهيم:** دا اسماعيل بن ابراهيم بن مقسم رحمه الله دې چې مشهور په"بابن عليه"سره دې.د دوى مختصر تذکره په کتاب الايمان،"باب حب الرسول ﷺ من الايمان"کښې راغلې ده.(٤).

**خبردارې:** د علامه عينى او علامه قسطلانى رحمهما الله نه ددې حديث په سند کښې دا

---

[1]) عمدة القارى:١٥/و ارشاد السارى:٥/٢٣٤)_

[2]) قوله_عن جابر رضی الله عنه ":الحديث،مر تخريجه فى الكفالة،باب من تكفل عن ميت دينا.....)_

[3]) كشف البارى:٣/ ٢٥٦)_

[4]) كشف البارى:٢/٢/١٢)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تسامح اوشوه چې دې دواړو حضراتو اسماعیل بن ابراهیم د "ابن علیه" په ځائې ابومعمر بن اسماعیل بن ابراهیم ګڼړلې دې (۱).حالانکه صحیح خبره داده چې دلته د اسماعیل نه مراد "ابن علیه" دې،ددې وجه داده چې د باب په حدیث کښې د امام بخاری رحمه الله شیخ ابن المدینی رحمه الله دې او د اسماعیل بن ابراهیم شیخ روح بن القاسم او دا منلې شوې خبره ده چې د ابن المدینی په شیخانو کښې چې د اسماعیل بن ابراهیم په نوم سره کوم شیخ دې نو هغه ابن علیه دې.ابن المدینی د ابومعمر نه روایت نۀ کوی،دغه شان د روح بن القاسم په شاګردانو کښې ابومعمر داخل نۀ دې.بلکه د هغوی شاګرد خو ابن علیه دې.(۲).

③**روح بن القاسم**:دا ابوغیاث روح بن القاسم تمیمی عنبری بصری رحمه الله دې.(۳).

④**محمد بن المنکدر**:دا مشهور تابعی محمد بن المنکدر رحمه الله دې.(۴).

⑤**جابربن عبدالله رضی الله عنهما**:دا مشهور صحابی حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه دې.(۵).

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت**:د حضرت جابر رضی الله عنه ددې حدیث شریف مناسبت د ترجمة الباب د دویم جزء سره بالکل واضح دې،د تشریح ضرورت نۀ لری.(۶)

**تنبیه:مرشرح هذا الحدیث فی الخمس،باب ومن الدلیل علی ان الخمس لنوائب المسلمین.....)**_د ترجمة الباب دریم جزء "ولمن یقسم الفئ والجزیة" دې.په دې جزء کښې امام بخاری رحمه الله د حضرت عباس بن عبد المطلب رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې او ددې خبرې طرفته ئې اشاره کړې ده چې د مالِ فئ او د مالِ جزیه مصرفونه څۀ دی؟دا کوم کوم ځائې کښې خرچ کیدې شی او کوم قسم خلق به ددې مستحق وی(۷).ددې مسئلې تفصیل په کتاب الخمس کښې مختلفو ځایونو کښې تیر شوې دې چې د جزیې وغیره مستحق کوم خلق دی.دغه شان د جزیې تعریف هم د کتاب الجزیة په شروع کښې تیر شوې دې.

**د مالِ فئ تعریف**: فئ هغه مال ته وئیلې کیږی چې بغیر د جنګ او د قتال نه د کافرانو نه حاصل کړې شي(۸).بیا چې دلته په فئ باندې د جزیې کوم عطف کړې شوې دې نو دا د عطف الخاص علی العام د قبیل نه دې،ځکه چې جزیه هم د مالِ فئ یو قسم دې.(۹).

---

(۱) عمدة القاری:۸۷/۱۵،وشرح القسطلانی:۲۳۴/۵)_
(۲) انظر تهذیب الکمال:۱۹/۳،و:۹۲۵۲/،و:۶/۲۱،وتحفة الاشراف:۳۵۹/۲،رقم (۲۰۱۵))_
(۳) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ،کتاب الوضوء،باب ما جاء فی غسل البول)_
(۴) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ،کتاب الوضوء،باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوءه.....)_
(۵) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ،کتاب الوضوء،باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین.....)_
(۶) عمدة القاری:۸۷/۱۵)_
(۷) فتح الباری:۲۶۹/۶)_
(۸) عمدة القاری:۸۶/۱۵،وبدائع الصنائع:۱۱۶/۷،کتاب السیر،فصل فی احکام الغنائم.....)_
(۹) عمدة القاری:۸۶/۱۵،وفتح الباری:۲۶۹/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**مال فئ به څنګه تقسیمولې شی؟** دلته دا مسئله هم ده کومه کښې چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف هم دې چې د مال فئ په تقسیمولو کښې به امام او حاکم کومه طریقه اختیاروی؟ په دې کښې درې مذهبونه دی:

① امام به په تقسیم کښې مساوات او برابری اختیاروی، ټولو ته به برابر حصه ورکوی، دا د حضرت ابوبکر و حضرت علی رضی الله عنهما او د حضرت امام شافعی رحمه الله مذهب دې او د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم دا یو روایت دې.

② امام به په تقسیم کښې غوره والې اختیاروی، یعنی امام ته پکار دی چې د مرتبو او د درجاتو خیال او لحاظ اوساتی، چاته زیات ورکړی او چاته کم ورکړی، دا د حضرت عثمان و حضرت عمر رضی الله عنهما مذهب دې، هم دا قول د حضرت امام مالک رحمه الله هم دې.(۱) حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به د اسلام وړاندې والې او د نسب د برترئ وغیره لحاظ ضروری نۀ ګڼړلو او ددې خبرې قائل وو چې ددې کارونو تعلق آخرت سره دې، یو سړې اول اول او وړاندې مسلمان شوې دې نو د هغۀ دا عمل د الله تعالی دپاره دې، ددې اجر او ثواب هم په الله تعالی باندې موقوف دې، ددې وجې نه د مال په مستحق جوړیدلو کښې دا خبرې بنیاد جوړول پکار نۀ دی.

او حضرت عمرفاروق رضی الله عنه به د مرتبو او درجاتو خیال او لحاظ ساتلو، په دې بنیاد باندې به د مال د تقسیمولو په وخت به ئې حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته زیات مال ورکوو او حضرت حفصه رضی الله عنها ته کم، حالانکه دواړه د نبی علیه السلام بیبیانې وې او حضرت حفصه رضی الله عنها ته به ئې فرمائیل چې لورې! ستاسو په نسبت حضرت عائشه رضی الله عنها ته زیات مال ددې وجې نه ورکوم چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته هغه ستاسو په نسبت زیاته محبوبه وه، دغه شان د نبی علیه السلام تعلق ستاسو د پلار په څائې د هغې د والد صاحب حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره زیات وو!

دغه شان حضرت عمرفاروق رضی الله عنه به د خپل څوی حضرت عبدالله بن عمر په نسبت حضرت اسامه بن زید بن حارثه رضی الله عنه ته زیاته حصه ورکوله او ابن عمر ته به ئې فرمائیل چې أسامه ته په تاسو باندې دا فضیلت حاصل دې چې ستاسو په نسبت ورسره د نبی علیه السلام تعلق زیات وو او ستاسو د والد صاحب نه د نبی علیه السلام په نظر کښې د حضرت أسامه والد صاحب زیات خوښ وو(۲).

---

(۱) فتح الباری:۲۶۹/۶، زکرقاة المفاتیح:۱۰۴/۸، وبدایة المجتهد:(۴۰۳/۱)_

(۲) مرقاة المفاتیح:۱۰۴/۸، وانظر للاستزادة: المصنف لابن ابی شیبة:۴۷۲/۱۷_۴۷۶، کتاب السیر، ما قالوا فی الفروض وتدوین الدواوین، رقم (۳۳۵۳۹)، والسنن الکبری للبیهقی:۳۴۹/۶_۳۵۱، کتاب قسم الفئ والغنیمة، باب التفضیل علی السابقه والنسب، رقم (۱۲۹۹۲_۱۲۹۹۸)، وکشف الاستار:۲۹۲/۲_۲۹۵، کتاب الجهاد، باب قسمة الاموال و تدوین العطاء، رقم (۱۷۳۶)، وقصة اسامة بن زید اخرجه الترمذی ایضا، کتاب المناقب، باب مناقب زید بن حارثه، رضی الله عنه، رقم (۳۸۱۳))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

③په دې سلسله کښې د احنافو مذهب دادې چې دا معامله امام ته سپارلې شوې ده، چاته ورکوی یا نهٔ ورکوی، برابرې کوی یا چاته زیات او چاته کم ورکوی، په دې کښې امام ته اختیار دې.(۱).

هم دا یو روایت د امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دې.(۲).

**په مال فئ کښې به خمس ویستلې شی یا نهٔ؟**: د قرآن کریم د آیت (واعلموا أنما غنمتم من شئ فأن لله خمسه......) په رنړا کښې په مال غنیمت کښې خو خمس ویستلې کیږی لیکن په مال فئ کښې هم خمس شته یا نهٔ، دا اختلافی مسئله ده. امام شافعی رحمه الله د جمهور فقهاؤ د رائې نه جدا شوې دې او دا قول ئې اختیار کړې دې چې په مال فئ کښې هم خمس شته. دا مذهب نهٔ په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د چا شته او نهٔ د هغوی نه پس د یو تابعی وغیره شته، ددې وجې نه دې قول ته تفرد وئیلې کیږی، امام ابن المنذر رحمه الله فرمائی:

"انفرد الشافعی بقوله: إن فی الفئ الخمسَ کخمس الغنیمة، ولا یحفظ ذلك عن أحد من الصحابة ولا من بعدهم...."(۳).

۲۹۹۴: (۴) وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ أُتِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ فَقَالَ «انْثُرُوهُ فِي الْمَسْجِدِ» فَكَانَ أَكْثَرَ مَالٍ أُتِيَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِذْ جَاءَهُ الْعَبَّاسُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعْطِنِي إِنِّي فَادَيْتُ نَفْسِي وَفَادَيْتُ عَقِيلاً. قَالَ «خُذْ». فَحَثَا فِي ثَوْبِهِ، ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهُ، فَلَمْ يَسْتَطِعْ. فَقَالَ أْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ إِلَيَّ. قَالَ «لاَ». قَالَ فَارْفَعْهُ أَنْتَ عَلَيَّ. قَالَ «لاَ». فَنَثَرَ مِنْهُ، ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهُ فَلَمْ يَرْفَعْهُ. فَقَالَ أْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ عَلَيَّ. قَالَ «لاَ». قَالَ فَارْفَعْهُ أَنْتَ عَلَيَّ. قَالَ «لاَ». فَنَثَرَ ثُمَّ احْتَمَلَهُ عَلَى كَاهِلِهِ ثُمَّ انْطَلَقَ، فَمَا زَالَ يُتْبِعُهُ بَصَرَهُ حَتَّى خَفِيَ عَلَيْنَا عَجَبًا مِنْ حِرْصِهِ، فَمَا قَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَثَمَّ مِنْهَا دِرْهَمٌ. [ر: ۴۱۱]

## رجال الحدیث

①**ابراهیم بن طهمان**: دا امام ابراهیم بن طهمان خراسانی رحمه الله دې.(۵).

---

۱) شرح ابن بطال:۵/ ۳۴۰، وفتح الباری:۶/ ۲۶۹، ومرقاة المفاتیح:۸/ ۹۸)_

۲) المغنی لابن قدامة:۶/ ۳۲۰_ ۳۲۱، کتاب الودیعة، باب قسمة الفئ......فصل، رقم (۵۰۹۲))_

۳) فتح الباری:۶/ ۲۶۹، ومرقاة المفاتیح:۸/ ۹۸، وبدایة المجتهد:۱/ ۴۰۳، والجوهر النقی:۶/ ۲۹۴، باب الخمس فی الفئ....والمغنی:۶/ ۳۱۳، وشرح ابن بطال:۵/ ۲۵۱، واعلاء السنن:۱۲/ ۸۷)_

۴) مر هذا التعلیق بهذا الاسناد فی الصلاة، باب القسمة وتعلیق......وذکر هناك من وصله)_

۵) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الوضوء، باب من اغتسل عریاناوحده)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

②**عبد العزيز بن صهيب:** دا عبد العزيز بن صهيب بنانى بصرى رحمه الله دې،د دوى حالات په كتاب الايمان، "باب حب الرسول......" كښې تير شوې دى(١).

③**انس:** دا مشهور صحابى حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې،د دوى تذكره په كتاب الايمان، "باب الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه" كښې تيره شوې ده.(٢).

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** د حضرت انس رضي الله عنه د حديث د ترجمة الباب دريم جزء سره مناسبت واضح دې، كوم حديث كښې چې د حضرت عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه يوه واقعه ذكر كړې شوې ده، ځكه چې په ترجمه كښې دا سوال وو چې د مالِ فئ او د مالِ جزيه مستحق څوك دى؟نو بيا ددې خبرې جواب حضرت امام بخارى رحمه الله د حديث په ذريعې سره اوكړو چې په دې كښې د ټولو مسلمانانو حق دې، په دې معامله كښې د فقير او د مالدار هيڅ خصوصيت نشته، كه څۀ خصوصيت وو نو حضرت عباس رضي الله عنه ته به د مالِ فئ نه هيڅ هم نۀ ملاويدل ځكه چې هغه خو مالدار وو(٣).

## ⑤باب: إِثْمِ مَنْ قَتَلَ مُعَاهَدًا بِغَيْرِ جُرْمٍ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى رحمه الله دا فرمائيلي دى چې يو سړې ذمى يا معاهد لره قتل كړى او بغير د څۀ جرم او بغير د څۀ حق نه ذمى لره قتل كړى نو دې ډير سخت ګناهګار دې او ددۀ دا كار چې ذمى قتل كړى، په هيڅ صورت كښې به دا كار قابلِ قبول نۀ وى.

**يوه اهمه فائده:** د ترجمة الباب په سلسله كښې د امام بخارى رحمه الله يو عادت دا هم دې چې ترجمه مقيد راوړى او روايت مطلق راوړى، مقصد ئې داوى چې په روايت كښې د ترجمة الباب د قيد لحاظ كړې شوې دې، د روايت اطلاق مراد نۀ دې(٤). ددې عادت مطابق مصنف رحمه الله دا ترجمه هم مقيد ذكر كړه او روايت مطلق دې ځكه چې په دې كښې د "بغيرجرم" قيد موجود نۀ دې ليكن چونكه د شريعت د قاعدو نه دا خبره ثابته ده چې د جرم او د څۀ حق په بنياد باندې خو مسلمان قتلول هم جائز دى نو ددې وجې نه د ذمى قتلول به هم جائز وى، ددې وجې نه د باب د حديث شريف په دې الفاظو "من قتل معاهدا لم يرح......" كښې به د بغيرجرم يا د بغيرحق قيد خامخا ملحوظ وى ځكه چې ګناهګار به صرف په هغه صورت كښې وى چې كله قتل په ناحقه او د څۀ جرم نه بغير اوكړې شى(٥).

---

(١) كشف البارى:٢/١٢)_

(٢) كشف البارى:٢/٤)_

(٣) فتح البارى:٦/٢٦٩)_

(٤) كشف البارى:١/١٧٥)_

(٥) فتح البارى:٦/٢٧٠)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې نه علاوه هم دا روايت د ابو معاويه عن الحسن بن عمرو عن مجاهد د طريق نه هم روايت دې،په هغې کښې د "بغيرحق" وضاحت شته(١).دغه شان د باب ددې حديث مزيد وضاحت د هغه روايت نه هم کيږی کوم چې د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه نه روايت دې،په هغې کښې دی:"من قتل معاهداً في غير كنهه، حرم الله عليه الجنة...."(٢)چې "چا يو ذمی بغير د څۀ حق نه قتل کړو نو الله تعالی به په هغۀ باندې جنت حرام کړی....."

٢٩٩٥:(٣) حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - قَالَ: «مَنْ قَتَلَ مُعَاهَدًا لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ، وَإِنَّ رِيحَهَا تُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ أَرْبَعِينَ عَامًا». [٦٥١٦]

## رجال الحديث

①**قيس بن حفص**:دا قيس بن حفص ابومحمد دارمی بصری رحمه الله دې.د دوی حالات په کتاب العلم،"باب(وما أوتيتم من العلم.....)کښې تير شوې دی(٤).

②**عبدالواحد**:دا ابوبشر عبدالواحد بن زياد بصری رحمه الله دې،د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب الجهاد من الايمان" کښې تيره شوې ده.(٥).

③**الحسن بن عمرو**:دامشهورمحدث حضرت حسن بن عمروفُقيمی تميمی کوفی رحمه الله دې.(٦) دوی د حضرت مجاهد،سعيد بن جبير،حکم بن عتيبه،ابو الزبير،منذر الثوری،محارب بن دثار،ابراهيم نخعی او د خپل ورور فضيل بن عمرو رحمهم الله نه روايت نقل کوی.او د دوی نه په روايت کوونکو کښې امام سفيان ثوری،عبدالله بن المبارک،حسن بن صالح،حفص بن غياث،عبدالواحد بن زياد،ابومعاويه،ابوبکربن عياش،محمد بن فضيل او د دوی ورارهٔ عمرو بن الغفاربن عمرو رحمهم الله وغيره د علم لوئې لوئې شخصيات شامل دی.(٧).

---

(١) السنن الكبرى للامام البيهقي:١٣٣/٨،كتاب القسامة،باب اثم من قتل ذميا بغير جرم......رقم (١٦٤٨٢)، والمصنف لابن ابی شيبة: ٣١٤/١٤،كتاب الديات،فی قتل المعاهد،رقم (٢٨٥٢٦))_

(٢) الحديث اخرجه ابو داود،كتاب الجهاد،باب فی الوفاء للمعاهد وحرمة ذمته،رقم (٢٧٦٠)، والنسائی، كتاب القسامة،باب تعظيم قتل المعاهد،رقم (٤٧٥٢،٤٧٥١))_

(٣) قوله: عن عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما "الحديث،اخرجه البخاری ايضا،كتاب الديات،باب اثم من قتل ذميا بغير جرم، رقم (٦٩١٤)،والنسائی،كتاب القسامة،باب تعظيم قتل المعاهد،رقم (٤٧٥٤)،وابن ماجه،كتاب الديات،باب من قتل معاهدا،رقم (٢٦٨٦))_

(٤) كشف الباری: ٥٢٦/٤)_

(٥) كشف الباری: ٣٠١/٢)_

(٦) تهذيب الكمال:٢٨٣/٦،وتهذيب التهذيب:٣١٠/٢،والتاريخ الكبير:٢٩٨/٢،رقم (٢٥٣٥))_

(٧) د استاذانو او د شاگردانو دپاره اوگورئ،تهذيب الكمال:٢٨٣/٦_٢٨٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام علی بن المدینی رحمه الله فرمائی چې ما د یحیی بن سعید الانصاری نه تپوس اوکړو چې په حسن بن عبید الله او حسن بن عمرو کښې تاسو ته زیات محبوب څوک دی؟وې فرمائیل چې په دواړو کښې زیات حسن بن عمرو دې"الحسن بن عمرو أثبتهما"(۱).امام ابوبکر بن اثرم دامام احمد رحمه الله نه روایت کوی چې هغوی د حسن بن عمرو په باره کښې اوفرمائیل"ثقة"(۲).
امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی:"ثقة،حجة"(۳).
امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی:"لاباس به،صالح"(۴)
دغه شان علامه ذهبی،حافظ ابن حجر،امام ابن حبان،امام نسائی او علامه عجلی رحمهم الله هم د دوی توثیق کړې دې(۵).امام سفیان ثوری رحمه الله هم ددې حسن بن عمرو نه نقل کړې دی چې زما پلار عمرو زۀ د حضرت سعید بن جبیر رحمه الله په خدمت کښې حاضر کړم،هغه وخت زۀ ډیر وړوکې ووم او قرآن کریم مې وئیلې وو،کله چې حضرت سعید بن جبیر رحمه الله زما قرآن دانی اولیده نو زما والد صاحب ته ئې اوفرمائیل:"تعلم من مثل هذا القرآن"(۶). چې" دداسې کس نه تاسو هم قرآن کریم زده کړئ"!!!
حسن بن عمرو مزید فرمائی چې ابراهیم نخعی رحمه الله د وفات په وخت دا وصیت کړې وو چې ددۀ کپړې ماته راکړئ(۷).دوی د عباسی خلیفه ابوجعفر المنصور د خلافت په اول وختونو کښې۱۴۲هجری کښې په کوفه کښې وفات شو(۸).د امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام ابوداؤد، نسائی او ابن ماجه رحمهم الله هم د دوی نه روایات اخستلې دی(۹).دغه شان په صحیح بخاری کښې ددوی ذکر صرف په دوو ځایونو کښې راغلې دې،یو خو ددې باب په حدیث کښې،کوم چې په دې طریق سره په کتاب الدیات(۱۰)کښې هم راغلې دې.

---

(۱) پورته حواله:۲۸۴/۶،والجرح التعدیل:۲۹/۳،رقم (۱۰۷))_
(۲) پورته حواله جات)_
(۳) تهذیب الکمال:۲۸۵/۶،والجرح والتعدیل:۲۹/۳،رقم (۱۰۷))_
(۴) پورته حواله جات)_
(۵) الکاشف للذهبی:۳۲۸/۱،والتقریب لابن حجر:۲۰۷/۱،رقم (۱۲۷۱)،وتهذیب التهذیب:۳۱۰/۲، وتعلیقات تهذیب الکمال:۲۸۵/۶)_
(۶) الطبقات لابن سعد:۳۴۱/۶،وتهذیب الکمال:۲۸۵/۶)_
(۷) الطبقات الکبری:۳۴۱/۶)_
(۸) پورته حواله،وتهذیب الکمال:۲۸۵/۶)_
(۹) تهذیب الکمال:۲۸۵/۶)_
(۱۰) صحیح بخاری،کتاب الدیات،باب اثم من قتل ذمیا.....رقم (۶۹۱۴))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دویم په کتاب الادب[1] کښې[2]. رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة
④**مجاهد**: دا شيخ القراء حضرت مجاهد بن جبرمکی رحمه الله دې، د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب الفهم فی العلم" کښې راغلې ده[3].
⑤**عبدالله بن عمرو**: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما دې. د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المسلم من سلم المسلمون....." کښې تیر شوې دی[4].
**د حدیث شریف سند سره متعلق یو اهم بحث**: ددې حدیث د سند په باره کښې په امام بخاری رحمه الله باندې دا اعتراض کړې شوې دې چې دا حدیث منقطع دې، ځکه چې د حضرت مجاهد سماع د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه ثابته نهٔ ده،
لکه علامه بردیجی رحمه الله په خپل کتاب "المتصل والمرسل" کښې لیکی:
"مجاهد عن ابن عمرو، ولم يسمع منه"[5].
ددې نه علاوه امام دارقطنی رحمه الله د امام بخاری رحمه الله طریق رد کولو سره وائی چې د: "مروان بن معاوية عن الحسن بن عمرو عن مجاهد عن جنادة بن أبي أمية عن عبدالله بن عمرو"[6]. طریق زیات صحیح دې ځکه چې په دې کښې د حضرت مجاهد او د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما مینځ کښې د یو واسطې یعنی د جناده اضافه ده نو په دې سره به انقطاع د حدیث منقطع کیدل ختم شی او حدیث به متصل شی[7].
لیکن ددې حضراتو دا خبره د څو وجوهاتو د وجې نه صحیح نهٔ ده:
①د امام مجاهد رحمه الله سماع د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه ثابته ده، او دې مدلّس هم نهٔ دې چې د تدلیس الزام پرې اولګولې شی.
②په دواړو طُرقو کښې تطبیق هم ممکن دې چې امام مجاهد دا روایت اول د جناده نه اوریدلې وی، بیا چې کله د هغوی ملاقات حضرت عبدالله بن عمرو سره اوشو نو د هغوی نه

---

[1]) انظر صحیح بخاری، کتاب الادب، باب لیس الواصل بالمکافیء، رقم (٥٩٩١))_
[2]) فتح الباری:٦/ ٢٧٠، وعمدة القاری:٨٨/١٥)_
[3]) کشف الباری:٣/ ٣٠٧)_
[4]) کشف الباری:١/ ٦٧٩)_
[5]) عمدة القاری:٨٨/١٥)_
[6]) اخرجه النسائی فی الصغری، کتاب القسامة، باب تعظیم قتل المعاهد، رقم (٤٧٥٤)، والکبری: ٢٢١/٤، کتاب القسامة، تعظیم قتل المعاهد، رقم (٦٩٥٢)، وکتاب السیر:٢٢٥/٥.....رقم (٨٧٤٢)، واحمد فی مسنده:٦٤٦/٢، مسند عبدالله بن عمرو.....رقم (٦٧٤٥)، والبیهقی فی الکبری:١٣٣/٨، رقم (١٢٤٨٣)، و:٢٠٥/٩، رقم (١٨٧٣٣))_
[7]) هدی الساری:٥٢٦، وعمدة القاری:٨٨/١٥، وایضا انظر تحفة الاشراف:٢٨٥/٦، و٣٧٧)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ئې هم اوریدلې وی یا دواړو په یو وخت د حضرت عبدالله نه اوریدلې وی،ددې نه پس چې کله حضرت مجاهد دا روایت بیانوی نو کله د حضرت عبدالله بن عمرو نه نقل کوی او کله د جناده نه[1].

④حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د عبدالواحد په مقابله کښې مروان اګرچه اثبت دې او هغوی په سند کښې د یو راوی اضافه هم نقل کړې ده لیکن د عبدالواحد تابعدار موجود دی لکه ابومعاویه ئې تابعداری کړې ده،ابن ماجه دا په خپل طریق سره روایت کړې دې[2].دغه شان عمرو بن عبدالغفار فقیمی هم د دوی تابعداری کوی،کوم چې امام اسماعیلی نقل کړې دې نو په ظاهره د عبدالواحد روایت راجح دې[3].

**د اُصیلی یو تسامح:** د صحیح بخاری د ټولو نُسخو په دې خبره باندې اتفاق دې چې د باب حدیث په "مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما" کښې دی لیکن اصیلی رحمه الله د "الجرجانی عن الفربری" د طریق نه "عبدالله بن عُمر" (بضم العین، بغیرواو)نقل کړې دې،او دا تصحیف دې،ددې نشاندهی جیانی رحمه الله کړې ده[4].

**قوله:عن النبی صلی الله علیه وسلم قال:"من قتل معاهداً لم یرح رائحة الجنة":** حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی چې نبی علیه السلام اوفرمائیل چې کوم کس یو ذمی قتل کړو نو هغه به د جنت خوشبو اونۀ مومی.

**د"یرح"معنی او ضبط:** دلته فعل د"یرح"د لم جازمه د وجې نه مجزوم دې،ددې په ضبط کښې درې اقوال دی:

①ابوعبید رحمه الله فرمائی چې دا د راحه یَراحه روحاً نه دې.

②ابن التین رحمه الله فرمائی چې دا د اراحه یُریحه إراحةً نه دې،مزید فرمائی چې اولنې ضبط غوره دې او هم دا قول د اکثرو دې.

③ ابن الجوزی رحمه الله فرمائی چې دا د راحَه یَریحه نه دې.

او په درې واړو صورتونو کښې معنی یوه ده،علامه جوهری رحمه الله فرمائی چې ددې معنی ده بُوئی موندل،"راح الشیٔ یراحه ویریحه: إذا وجد ریحه"[5].

---

[1]) پورته حوالهوفتح الباری:۲۷۰/۶،وتعلیقات الشیخ محمد عوّامة علی المصنف:۳۱٤/۱٤)_

[2]) رواه ابن ماجه فی کتاب الدیات،باب من قتل معاهدا،رقم (۲۶۸۶))_

[3]) هدی الساری:۵۲۶،وفتح الباری:۲۷۰/۶)_

[4]) فتح الباری:۲۷۰/۶،وعمدة القاری:۸۸/۱۵)_

[5]) پورته حواله جات،وارشاد الساری:۲۳۵/۵،وشرح ابن بطال:۵۶٤/۸،وشرح الکرمانی:۱۳۲/۱۳،والصحاح للجوهری:٤۳۶،مادة: روح")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: وإن ريحها توجد من مسيرة أربعين عاماً:** او د جنت خوشبو خو د څلويښت کالو په مسافت کښې محسوسيږي.
د باب د حديث شريف مطلب دادې چې د جنت خوشبو چې دومره تيزه ده چې که يو سړې څلويښت کاله فاصله او مسافت کښې لرې وی نو هغه ئې هم محسوسولې شی ليکن د ذمی د قتل دا سزا ده چې قاتل به د داسې خوشبوئې نه هم محروم وی کومه خوشبو چې د څلويښتو کالو په مسافت هم محسوسيږي، جنت ته داخليدل خو لرې خبره ده.ددې مقصد وعيد دې چې جنت ته اول کوم خلق داخليږي نو هغوی سره به دې نهٔ داخليږي، د خپلې سزا خوړلو نه پس به داخليږي.يا دا چې الله تعالى ئې په خپل خاص رحمت سره معاف کړي. بهرحال د ذمی د قتل نه پرهيز ضروری دې او دا قتل د څهٔ حق او د څهٔ جرم نه بغير بالکل جائز نهٔ دې.[1].
يا د باب په حديث کښې چې کومه سزا بيان کړې شوې ده نو دا د مستحل سزا ده، يعنی کوم کس چې د څهٔ حق نه بغير د ذمی قتل لره جائز او حلال اوګڼړی نو د هغهٔ به دا سزا وی.
**په حديث کښې په مذکوره عدد کښې د راويانو اختلاف او ددې د اعداد توجيه:** د جنت خوشبو به څومره مسافت او فاصلې سره محسوسيږي، په دې کښې مختلف روايات دی، د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ روايت کښې اکثرو راويانو "اربعين عاماً" نقل کړې دې، او د عمرو بن عبدالغفار په روايت کښې د "سبعين" لفظ راغلې دې د کوم روايت تخريج چې اسماعيلی کړې دې، د حضرت ابوهريره ﷺ[2] او د حضرت ابوبکره[3] په حديثونو کښې هم د "سبعين" لفظ راغلې دې او د مؤطا اود مسلم شريف[4] په روايت کښې، چې راوی ئې حضرت ابوهريره ﷺ دې، کښې د خمسمائة سنة الفاظ راغلې دی يعنی پنځهٔ سوه کاله.
د عدد ددې اختلاف مشهوره توجيه هم هغه ده کومه چې محدثين او شارحين حضرات په

---

[1]) شرح ابن بطال:٣٤١/٥،وعمدة القاري:٨٩/١٥،وارشاد الساري:٢٣٥/٥)_
[2]) انظر الجامع للترمذي،كتاب الديات،باب فيمن يقاتل نفسا.....رقم (١٤٠٣)،ومسند ابى يعلى:٤٦٧/٥، مسند ابى هريرة،رقم (٦٤٢١)،والسمتدرک:١٣٨/٢،كتاب الجهاد،رقم (٢٥٨١)،وشرح السنه:٢٧٦/٥،كتاب القصاص،باب اثم من قتل معاهدا،وجامع الاصول:٦٥١/٢،كتاب الجهاد،رقم (١١٣٨)،وجمع الجوامع:٣١٠/٣، حرف الهمزة،رقم (٩٠٤١))_
[3]) شرح السنة:٣٧٦/٥،كتاب القصاص،رقم (٢٥١٦)،ومسند الامام البزار:/٩١٠٢،حديث ابى بكرة،رقم (٣٦٤٠)،ومسند احمد،رقم (٢٠٧٤٣)،و(٢٠٧٨٩)،مسند ابى بكرة نفيع،و موارد الظمآن ٣٦٨،رقم (١٥٣٠_١٥٣١)،والسمتدرک:١٣٧/٢،رقم (٢٥٧٩)،وسنن البيهقی الكبرى:٢٢٩/٨_٣٣٠،رقم (١٦٤٨٤))_
[4]) الحديث اخرجه مسلم فی كتاب اللباس والزينة،باب النساء الكاسيات العاريات،رقم (٥٥٨٢)، و(٧١٩٤). الا ان العدد المعين غير مذكور فيه،ومالک فی المؤطا:٩١٣/٢،كتاب اللباس،باب مايكره للنساء لبسه من الثياب،رقم (٧))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

داسې مقاماتو کښې ذکر کوی چې د حديث مراد د مسافت او د فاصلې لرې والې دې چې د جنت خوشبو د ډير لرې وخت نه محسوسيږی،نو د مسافت دا لرې والې په مختلفو عددونو سره تعبير کړې شو ، کله څلويښت کالو سره، کله اويا او کله د پنځو سوو کالو ذکر او کړې شو[1]

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت بالکل واضح دې، ترجمة الباب ذمی لره د څۀ حق او جرم نه بغير د قتل کولو په بدئ کښې وه،په حديث کښې هم ددې جرم سزا بيان کړې شوې ده چې د داسې مجرم به سخته سزا وی[2].ددې نه ددې خبرې اندازه لګولې شی چې په اسلام کښې د ذمی هم څومره قدرې حقوق دی چې يو مسلمان ددې خبرې نه ويرولې کيږی چې ذمی ته څۀ قسم تکليف اونۀ رسولې شی.

## ⑨ باب: إِخْرَاجِ الْيَهُودِ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاری رحمه الله مقصد خو دلته واضح دې،دا وئيل غواړی چې يهوديانو ته په جزيرة العرب کښې د اوسيدلو اجازت نشته،يهوديان به ددې ځائې نه ويستلې کيږی[3].

**د جزيرة العرب تعريف او په دې کښې د کفارو د اقامت حکم:** هيڅ يو کافر ته هم په جزيرة العرب کښې د اقامت اختيارولو او جزيرة العرب لره د وطن جوړولو اجازت نشته،په دې باندې د څلورو واړو امامانو رحمهم الله اتفاق دې،البته د دوی په دې خبره کښې اختلاف دې چې ددې حکم اطلاق په کومو کومو علاقو يا په کومو کومو ښارونو باندې کيږی؟

① لکه د امام شافعی رحمه الله په نزد دا حکم(چې کفار په جزيرة العرب کښې اقامت اختيارولې نۀ شی) صرف د حجاز[4] سره خاص دې،چې په دې کښې مکه مکرمه،مدينه منوره، خيبر، ينبع،فدک،يمامه او دې سره خوا کښې چې څومره علاقې دی دا ټولې په کښې داخل دی[5].

② د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله او د امام مالک رحمه الله په نزد دا حکم ټول جزيرة العرب ته شامل دې يعنی د عدن ابين د آخری حد نه د عراق د کلو پورې په اوږدوالی سره او جده او ددې د مضافاتو نه تر د شام د کنارو په پلنوالی سره، قاله الاصمعی رحمه الله[6].

**يو اهم خبرداري:** دلته ددې خبرې وضاحت هم پکار دې چې د کفارو د اقامت کوم ممانعت دې نو دا د دريو ورځو نه زيات وخت دپاره دې،که د دريو ورځو نه کم اقامت اختيار کړی، مثلاً د تجارت وغيره په غرض سره پاتې شی نو بيا ورته اجازت دې،ليکن د وخت د حاکم

---

[1] ) الاوجز:۱۷۱/۱۶)_
[2] ) عمدة القاری:۸۸/۱۵)_
[3] ) عمدة القاری:۸۹/۱۵)_
[4] ) وانما سمی حجازا:لانه حجز بين تهامه ونجد".انظر المغنی:۹۲۸۶/،واعلاء السنن:۵۲۳/۱۲)_
[5] ) المغنی:۹۲۸۵۶/،والاوجز:۶۴۹/۱۵،وشرح النووی علی مسلم:۱۵/۲،اول کتاب المساقاة.....)_
[6] ) فتح القدير:۳۰۱/۵،والاوجز:۶۵۵/۱۵،والمغنی:۹۲۸۵/،رقم (۷۶۶۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اجازت به ضروري وي.البته د امام شافعي رحمه الله په نزد ددې رعايت نه مکه مکرمه او ددې حرم مستثنی دې،په مکه مکرمه کښې هيڅ يو کافر ته نهٔ د داخليدو اجازت شته او نهٔ ورته د چا د داخلولو اجازت شته،که يو سړې خفيه طور سره(پټ)داخل شي نو دې به ترينه ويستلې شي،که دې دوران کښې مړ شو او دفن هم شو ليکن وروستو معلومه شوه نو(په دې شرط که چرته لاش ئې خراب شوې نهٔ وي)نو دده قبر به پرانستلې شي او د حرم نه بهر به اوغورځولې شي،ددې وجې نه دا د حرم شريف خصوصيت دې چې دلته هيڅ يو کافر نهٔ شي داخليدلې[1].

**د فريقينو دليلونه**:په پورتنئ مسئله کښې فريقين ددې ټولو روايتونو نه دليل نيسي.په کومو روايتونو کښې چې د مشرکينو او د يهوديانو،نصارو د جزيرة العرب نه د ويستلو حکم شوې دې،مثلاً:"**أخرجوا المشركين من جزيرة العرب**"[2]يا"**لا يجتمع دينان في جزيرة العرب**"[3] **وغيرهما من الروايات**.

البته د جزيرة العرب په اطلاق کښې چونکه ددې حضراتو اختلاف دې،امام شافعي او امام احمد رحمهما الله ئې حجازسره خاص کوي،ددې وجې نه دا حضرات د پورتنی احاديثو په کلماتو "**جزيرة العرب**" باندې د "**العام أريد به الخاص**" اطلاق کوي او ددې نه "حجاز" مراد اخلي[4].

دغه شان په يو روايت کښې د "**جزيرة العرب**" په ځائې "الحجاز" راغلې دې.لکه د حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه نه روايت دې چې نبي عليه السلام د وفات نه مخکښې چې کوم آخرى کلام فرمائيلې وو،نو هغه دا وو چې "**أخرجوا اليهود من الحجاز**"[5].

او امام ابوحنيفه او امام مالک رحمهما الله دا ټول روايتونه په خپل عموم باندې حمل کوي او

---

[1]) فتح البارى:۱۷۱/۶،رقم (۳۰۵۳)،والدر المختار:۳۰۱/۳،کتاب الجهاد،فصل فى الجزية، والاوجز: ۶۵۰/۱۵،والمغنى:/۹۲۸۶،وحاشية الدسوقى مع الشرح الکبير للدر دير:۵۱۹/۲_۵۲۰،فصل عقد الجزية)_

[2]) الحديث اخرجه البخارى فى نفس هذا الباب،وفى مواضع من صحيحة،ومسلم فى صحيحة،کتاب الوصية،باب ترک الوصية لمن ليس له شئ....رقم(۴۲۰۱)،ولم يخرجه غير الشيخين،من رواية ابن عباس رضي الله عنهما)

[3]) انظر المؤطا للامام مالک بن انس:۸۹۲/۲_۸۹۳،کتاب الجامع،باب فى اجلاء اليهود من المدينه. (۱۷_۱۹)،وابن ابى شيبة:۵۱۵/۱۷،رقم (۳۳۶۶۳)،وايضا برقم (۲۹۶۱۷))_

[4]) شرح الکرمانى:۱۳۲/۱۳،وعمدة القارى:۸۹/۱۵)_

[5]) الحديث اخرجه ابن ابى شيبة:۵۱۵/۱۷،کتاب السير،لا يجتمع اليهود والنصارى.....رقم (۳۳۶۶۲). وابن ابى عاصم،الآحاد والمثانى:۴۰،رقم الترجمة(۱۰)،واحمد فى مسنده:۵۲۰/۱،و۵۲۳،مسند ابى عبيدة بن الجراح......رقم (۱۶۹۱)،وايضا(۱۶۹۹)،والطيالسى فى مسنده:۱۲۳/۱،رقم (۲۲۶)،والحميدى فى مسنده: ۴۶/۱. رقم (۸۵)،والبخارى فى التاريخ الکبير:۵۷/۴،رقم (۱۹۵۰)،باب السين،والدارمى فى سننه: ۳۰۵/۲_۳۰۶. کتاب الجهاد،باب اخراج المشرکين....رقم (۲۴۹۸)،وابو يعلى فى مسنده:۳۵۹/۱،رقم (۸۶۹). والبيهقى فى الکبرى:/۹۳۵۰،کتاب الجزية،باب لا يسکن الحجاز.....رقم (۱۸۷۴۹))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا فرمائی چې دا حکم ټول جزیرة العرب ته شامل دې، چې په دې کښې عراق، شام، جده او عدن وغیره ټول شامل دی[1]. د احنافو او د مالکیه د امامانو استدلال هم د حضرت ابوعبیده رضی الله عنه د پورتنی روایت نه دې، فرمائی چې نبی کریم ﷺ دا هم فرمائیلي وو: "واخرجوا أهل نجران من جزیرة العرب"[2] لکه هم په دې فرمان نبوی ﷺ باندې عمل کولو سره وروستو حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپل دور کښې اهل نجران د دې ځائې نه بهر ویستلي وو.

ابن قدامه رحمه الله د احنافو پورتنې دلیل رد کوی او فرمائی چې حضرت عمر رضی الله عنه د نجران نصاری د دې وجې نه بهر نۀ وو ویستلي چې هغوی په جزیرة العرب کښې اوسیدل، بلکه د دې وجه دا وه چې هغوی سره نبی علیه السلام صلح په دې شرط باندې کړې وه چې هغوی به سودی لین دین نۀ کوی، لیکن هرکله چې هغوی دا وعده پوره نۀ کړه نو حضرت عمر رضی الله عنه د دې وعدې د نۀ پوره کولو د وجې نه هغوی د نجران نه بهر اوویستل[3].

علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چې په ظاهره باندې د ابن قدامه دا دعوی صحیح نۀ ده، بلکه د حضرت عمر رضی الله عنه دا مذکوره کار د نبی علیه السلام د وصیت د پوره کولو دپاره وو، لکه د امام مالک رحمه الله په مؤطا کښې کلام، د علامه سرخسی وضاحت او د علامه ابوعبید قول په دې باندې دلالت کوی[4] او هم دا د حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله نه هم نقل دی، علامه بلاذُری د حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمهما الله نه نقل کوی چې:

"أن رسول الله صلى الله علیه وسلم قال فی مرضه: "لا یبقین دینان فی أرض العرب" فلما استخلف عمربن الخطاب رضی الله عنه أجلى أهل نجران إلى النجرانیة، واشترى عقاراتهم وأموالهم"[5] په خپله هم د حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله عمل هم دا نقل کړې شوې دې چې کله هغوی خلیفه جوړ شو نو هغوی ذمیان د مدینې منورې نه بهر اوویستل او د هغوی غلامان وغیره ئې په مسلمانانو باندې خرڅ کړل. اوګورئ، المصنف: ۱۷/۵۱۶، رقم(۳۳۶۶۵)......

د دې وجې نه راجحه خبره داده چې حضرت عمر رضی الله عنه د نجران کوم نصاری جلاوطن کړې

---

[1]) وفی الدر المختار: ویمنعون من استیطان مكة والمدینه؛لانهما من ارض العرب،وقال علیه السلام: لا یجتمع فی ارض العرب دینان"قال ابن عابدین رحمه الله: قوله: لانهما من ارض العرب"افاد ان الحكم غیر مقصور على مكة والمدینه؛بل جزیرة العرب كلها كذلک"الفتاوی الشامیة:۳/۳۰۱،مع الدر،فصل فی الجزیة،من كتاب الجهاد،وایضا انظر فتح القدیر:۵/۳۰۱،والهدایة:۴/۲۹۶_۲۹۷)_

[2]) ابن ابی شیبه فی مصنفه:۱۷/۵۱۵،كتاب السیر،رقم (۳۳۶۶۲)،والدارمی فی سننه:۲/۳۰۶،رقم (۲۴۹۸)،وابن ابی عاصم فی الآحاد والمثانی:۴۰،واحمد فی المسند:۱/۵۲۰،رقم (۱۶۹۱)،والبیهقی فی الكبرى:/۹۳۵۰،رقم (۱۸۷۴۹)،وابو یعلى فی مسنده:۱/۳۵۹،رقم (۸۶۹))_

[3]) المغنی:/۹۲۸۶)_

[4]) انظر المؤطا:۲/۸۹۳،كتاب الجامع،باب فی اجلاء الیهود من المدینة،رقم (۱۹))_

[5]) فتوح البلدان ۷۷_۷۸،صلح نجران)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وو ،د هغې وجه هم دا وصيت وو ،دې سره سره د هغوی د سودخورئ معامله هم وه،دغه شان هغوی د جنګ سامان يعنی اسونه او اسلحه وغيره هم تياره کړې وه،چې ددې وجې نه د هغوی له طرفه حضرت عمر رضي الله عنه ته مختلف خطرات پيښ وو چې دوی چرته مسلمانانو ته نقصان اونهٔ رسوی،ددې خطراتو د وجې نه هغوی اهلِ نجران د يمن نه اوويستل او د عراق طرفته ئې منتقل کړل.(١).والله أعلم بالصواب

**د علامه طبری رحمه الله خاص رائې:** ددې مسئلې په باره کښې د علامه ابن جرير الطبری رحمه الله رائې دا ده چې مذکوره حکم جزيرة العرب سره خاص نهٔ دې،بلکه کومه علاقه چې هم د مسلمانانو وی او د مسلمانانو غلبه وی نو داسې علاقه کښې به يومشرک ته هم د اوسيدلو، د اقامت اختيارولو او د وطن جوړولو اجازت بالکل نهٔ وی،خواه دغه د مسلمانانو مفتوحه علاقه وی يا ددغه علاقې اوسيدونکی مسلمانان شوې وی،په دې شرط چې مسلمانانو ته ددې مشرکانو ضرورت نهٔ وی يا امام المسلمين دې مشرکانو سره د صلحې کولو په وخت دا وعده نهٔ وی کړې چې تاسو به ددې علاقې نه مونږ نهٔ اوباسو.نو که د دواړو ډلو مينځ کښې څهٔ داسې شرط مقرر شوې نهٔ وی نو د وخت په امام باندې به د داسې علاقې نه د مشرکانو ويستل واجب وی......

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی: "**قال الطبری:فيه من الفقه ان النبی صلى الله عليه وسلم بين لائمة المؤمنين اخراج كل من دان بغير دين الاسلام من كل بلدة للمسلمين؛ سواء كانت تلك البلدة من البلاد التی اسلم عليها اهلها،او من بلاد العنوة،اذالم يكن بالمسلمين ضرورة اليهم،ولم يكن الاسلام يومئذ ظهرفی غير جزيرة العرب ظهور قهر،فبان بذلك ان سبيل كل بلدة قهر فيها المسلمون اهل الكفر،ولم يكن تقدم قبل ذلك من امام المسلمين لهم عقد صلح على اقرارهم فيها ان على الامام اخراجهم منها،ومنعهم القرار بها.....**"(٢).

البته ابن جرير طبری رحمه الله په دې خپل قول کښې متفرد معلوميږی،ليکن په دې کښې هيڅ شک نشته چې که په دې باندې عمل کړې شوې وو نو نن به ډيرې داسې علاقې وې چې هلته به د کفر خاتمه بالکليه شوې وه او دا په موجوده او سابقه مسلمان رياستونو کښې چې کوم د غيرمسلمو تسلط دې نو دا به نهٔ وو.

**په حرم مکی او په نورو مساجدو کښې د کفارو داخله:** پورته عبارت کښې چې دا کومه مسئله بيان کړې شوه نو دا د کفارو او د مشرکانو په جزيرة العرب کښې د اقامت اختيارولو سره متعلق وه،اوس دلته يوه بله مسئله داده چې کفار په حرمِ مکی،مسجدِ حرام او په نورو

---

(١) اعلاء السنن:١٢/٥٢٤.قال صاحب البدائع:انظر البدائع:١١٤/٧،كتاب السير،قبيل فصل فی احكام الغنائم.....) واما ارض العرب فلا يترک فيها كنسة ولا بيعة،ولا يباع فيها الخمر والخنزير،مصرا كان او قرية او ماء من مياه العرب،ويمنع المشركون ان يتخذوا ارض العرب مسكنا و وطنا.كذا ذكره محمد؛تفضيلا لارض العرب على غيرها،وتطهيرا لها عن الدين الباطل.قال عليه اسلام: لا يجتمع دينان فی جزيرة العرب")

(٢) شرح ابن بطال:٣٤٢/٥،وفتح الباری:٢٧٢/٦،وعمدة القاری:٩٠/١٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مساجدو كښې داخليدې شي يا نۀ؟
په دې مسئله كښې هم اختلاف دې، جمهور علماء ددې خبرې قائل دی چې كفار په حرم مكى، مسجد حرام وغيره كښې داخليدې نۀ شى. البته دا حضرات په حرم، مسجد حرام او په نورو مساجدو كښې دا فرق هم بيانوى چې په اول الذكر (حرم، مسجد حرام وغير) كښې خو څوک داخليدې نۀ شى، د وخت په امام باندې د دوى منع كول واجب دى، او په نورو مساجدو كښې دوى د مسلمانانو په اجازت او مرضئ باندې داخليدې شى، ددې نه بغير داخليدې نۀ شى [۱]. او د امام ابوحنيفه رحمه الله مشهور قول د جواز دې چې كفار په دې ټولو مقاماتو كښې داخليدې شى [۲].

د جمهورو دليلونه: ① د الله تعالى ارشاد دې: (يا أيها الذين آمنوا إنما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد الحرام بعد عامهم هذا) [۳].

په آيت كريمه كښې د "المسجد الحرام" نه پوره حرم مراد دې [۴]. او ددې نه هم دا معلوميږى چې كفارو ته په حرم مكى او په مسجد حرام كښې د داخليدو اجازت نشته، د نبى عليه السلام د دور نه تر نن وخته پورې هم په دې باندې عمل راروان دې.

② حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه يو ځل حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته تشريف راوړلو او په لاس كښې ئې يو خط وو، حضرت عمر اوفرمائيل چې خپل كاتب راوبله چې هغه دا خط اولولى، حضرت ابوموسى اشعرى اوفرمائيل چې هغه خو په مسجد كښې داخليدې نۀ شى، وې فرمائيل ولې؟ حضرت ابوموسى اوفرمائيل چې هغه خو نصرانى دې. ددې واقعې نه هم دا معلومه شوه چې غيرمسلم په مسجد كښې نۀ شى داخليدې، دغه شان دا هم چې دا خبره د هغوى په نزد مشهوره وه [۵].

③ مشركينو ته نجس وئيلې شوې دې، لهذا د هغوى داخله هم دغه شان په مسجد كښې ممنوع كيدل پكار دى لكه څنګه چې جنب سړې، حائضه او نفساء ښځو دپاره ممنوع ده، بلكه د مشرک نجاست خو ددې نجاستونو نه زيات دې [۶].

④ ټولو مسجدونو سره متعلق چې كوم دليل دې نو هغه د حضرت على رضي الله عنه واقعه ده، هغوى يو مجوسى اوليدۀ چې د مسجد په منبر باندې ناست وو، هغه د هغه ځائې نه راكوز كړې شو

---

[۱] ) انظر المغنى:/۹۲۸۷، والام:۱/۵۴، باب ممر الجنب والمشرک......من كتاب الطهارة، و:۴/۱۷۷، كتاب السير، مسالة اعطاء الجزية على سكنى بلد......، والاوجز:۱۵۶۵۰_۶۵۲)_

[۲] ) المغنى:/۹۲۸۷، واعلاء السنن:۱۲/۵۲۹، واحكام القرآن:۳/۱۱۴)_

[۳] ) التوبة:/۲۸)_

[۴] ) المغنى:/۹۲۸۶، واحكام القرآن:۳/۸۹، والاوجز:۱۵/۶۵۰، واعلاء السنن:۱۲/۵۲۹)_

[۵] ) المغنى:/۹۲۸۷، والاوجز:۱۵/۶۵۲)_

[۶] ) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او حضرت اووهلو او د ابواب کنده په طرف ئې بهر اوویستلو (۱).ددې واقعې نه د مسجد دخول مشروط کيدل معلوم شو چې اجازت په هرحال کښې ضروری دی.
**د امام اعظم رحمه الله دليلونه:** ① نبی کريم ﷺ د ثقيف وفد په خپل مسجد کښې حصار کړې وو، حالانکه هغوی کافران وو او مساجد ټول برابر او يوشان دی،ددې وجې په مسجدحرام کښې کافر داخليدې شی.(۲).
② دغه شان نبی عليه السلام حضرت ثمامه ابن اثال رضی الله عنه د شرک په حالت کښې په مسجد نبوی کښې حصار کړې وو.(۳).
③ حضرت ابوسفيان بن حرب رضی الله عنه به هم د اسلام د قبلولو نه مخکښې مسجد نبوی ته صلحې دپاره تلو راتلو (۴).
**د احنافو د مذهب تحقيق:** دلته د علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله د قول مطابق احنافو ته د امام اعظم رحمه الله په قول باندې په پوهيدلو کښې مغالطه شوې ده،په دې بنياد باندې اکثر د مذهب نقل کوونکو دا نقل کړې دی چې امام اعظم رحمه الله ددې خبرې قائل دی چې کافر ته په مسجدحرام،حرم مکی او نورو مساجدو کښې د داخليدو مطلقاً اجازت دې.(۵).
ليکن د امام اعظم او په نورو علماء احنافو کښې د چا هم دا مذهب نۀ دې بلکه دوی ټول دا خبره د وخت د امام او د ښار د حکم په اجازت باندې موقوف ښائی چې که د دوی اجازت وی نو داخليدې شی ورنه نۀ شی داخليدې.دغه شان د مذهب د نورو امامانو سره چې د احنافو کوم اختلاف دې،د هغې بنياد هم دادې چې جمهور د منع کولو د وجوب قائل دی چې په امام باندې دا لازم دی چې کفارو لره په حرم کښې د داخليدو نه منع کړی.او امام ابوحنيفه رحمه الله د عدم وجوب قائل دې چې منع کول او کفارو لره په حرم کښې د داخليدو نه منع کول واجب نۀ دی،د وخت امام چې څنګه مصلحت او مناسب ګڼړی هغه شان دې اختيار کړی،علامه آلوسی رحمه الله د مذهبونو د اختلاف د نقل کولو نه پس د امام اعظم رحمه الله د دليل

---

[1] ) المغنی:/۹۲۸۷،والاوجز :۶۵۱/۱۵)_
[2] ) عن عثمان بن ابی العاص رضی الله عنه : ان وفد ثقيف لما قدموا علی رسول الله ﷺ ضرب لهم قبة فی المسجد.فقالوا:يا رسول الله،قوم انجاس!فقال رسول الله ﷺ:انه ليس علی الارض من انجاس الناس شئ،انما انجاس الناس علی انفسهم".الفظ للجاص:۱۱۵/۳،التوبة:۲۸،وکذا انظر سنن ابی داود،کتاب الخراج......باب ما جاء فی خبر الطائف،رقم (۳۰۲۶)،ومسند احمد:۱۴۸/۵،حديث عثمان بن ابی العاص،رقم (۱۸۰۷۴)، ومسند ابی داود الطيالسی:۵۰۱/۱،رقم (۹۸۱)،وما اسند عن عثمان.....)_
[3] ) عن ابی هريرة رضی الله عنه قال: بعث النبی ﷺ خيلا قبل نجد،فجاءت برجل من بنی حنيفة،يقال له:ثمامة بن اثال،فربطوه بسارية من سواری المسجد..... "،انظر الصحيح للبخاری،کتاب المغازی،باب وفد بنی حنيفة، وحديث ثمامة......رقم (۴۳۷۲))_
[4] ) السير الکبير مع شرحه للسرخسی:۹۶/۱/۱،واعلاء السنن:۵۳۰/۱۲،والاوجز:۶۵۲/۱۵)_
[5] ) قال الموفق فی المغنی (۹۲۸۶/): ......وقال ابو حنيفة:لهم دخوله کالحجاز کله")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په طور باندې دا آیت کریمه هم نقل کړې دې (أولئك ما كان لهم أن يدخلوها إلا خائفين)[1] د دې آیت نه هم دا معلومیږی چې که کفار په حرم او زمونږ په مساجدو وغیره کښې داخلیږی نو ویرې سره به دلخلیږی.[2] او دا د ویرې کیفیت به هم هله حاصلیږی چې کله دوی د مسلمانانو په اجازت سره داخلیږی. ددې تحقیق د نقل کولو نه پس علامه عثمانی رحمه الله لیکی:

"وهذا هو مذهب الحنيفة في هذا الباب، ولكنهم لا يرون المنع واجبا، فلو منعهم الامام والمسلمون عن ذلك كان حسنا، وان اذنوا لهم فيه لحاجة فلا باس به، هذا هو الحق الذي ظهر لي من كلام القوم"[3].

علامه عثمانی رحمه الله دلته ددې خبرې وضاحت کړې دې چې "هذا هو الحق". دوی ته ددې ضرورت ددې وجې نه پیښ شو چې د امام محمد رحمه الله په اقوالو کښې ظاهری تعارض دې، په دې مسئله کښې د دوی دوه اقوال دی. لکه د دوی تصنیف "الجامع الصغير" د عبارت نه اجازت معلومیږی، فرمائی: "ولا باس بان يدخل أهل الذمة المسجد الحرام"[4]. په دې عبارت کښې د کراهت سره سره جواز طرفته اشاره ده. او د سیر کبیر[5] د عبارت نه ممانعت معلومیږی، ددې تعارض دختمولو دپاره علامه عثمانی رحمه الله دا پورتنی ارشادات اوفرمائیل، ځکه چې ممکن حده پورې د تعارض دفع کولو دپاره د جمع والی او د تطبیق صورت اختیارول پکار دی.[6] د علامه عثمانی رحمه الله د مؤقف تائید د امام ابوبکرجصاص رحمه الله ددې آیت کریمه (أولئك ما كان لهم أن يدخلوها إلا خائفين)[7] د تفسیر نه هم کیږی، فرمائی چې د الله تعالی ددې ارشاد مبارک خلاصه داده چې که کفار مساجدو ته د اجازت نه بغیر داخل شی نو په مسلمانانو باندې دا لازم دی چې دوی لره بهر اوباسی، که دغه شان معامله دوی سره اونه کړې شوه نو مساجدو ته د داخلیدو په وخت به کفار بې ویرې او بې خطرې شی او د شریعت مطلوب دې کفارو لره ویرول او خوفزده کول دی.[8]

---

[1] ) البقرة: ۱۱۴)_

[2] ) روح المعاني: ۱/۴۹۶، سورة البقرة/ ۱۱۴)_

[3] ) اعلاء السنن: ۱۲/۵۳۱)_

[4] ) اعلاء السنن: ۱۲/۵۳۰، والدر المختار: ۳/۳۰۱، کتاب السیر، فصل فی الجزیة، وکتاب الحظر والاباحة: ۵/۲۷۴، فصل فی البیع)_

[5] ) عن الزهري: ان ابا سفيان بن حرب كان يدخل المسجد في الهدنة، وهو كافر، غير ان ذلک لا يحل في المسجد الحرام، قال الله تعالى: (انما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد الحرام)، انظر السير الكبير: ۱/۱/۹۶، باب دخول المشركين المسجد، رقم الباب (۲۷))_

[6] ) اعلاء السنن: ۱۲/۵۳۱)_

[7] ) البقرة: ۱۱۴)_

[8] ) احکام القرآن للجصاص الرازي: ۱/۶۱، سورة البقرة، ذکر وجوه النسخ)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د جمهورو د دلیلونو جواب:** دامام اعظم رحمه الله له طرفه د جمهورو د دلیل د آیت کریمه ﴿یا ایها الذین آمنوا انما المشرکون نجس.....﴾ مختلف جوابونه ورکړې شوې دی، لاندې هغه ذکر کولې شي:

① د بنوثقیف وفد چې د نبی علیه السلام خدمت کښې حاضر شوې وو نو دا غزوهٔ تبوک نه پس وو، دغه وخت سورهٔ توبه هم نازل شوې وو، ددې باوجود نبی علیه السلام دا خلق په مسجد نبوی کښې حصار کړل. نوهرکله چې ددغه خلقو باطنی نجاست په مسجد نبوی کښې د حصارولو نه مانع نهٔ شو نو په حرم او په حجاز کښې حصارول به په طریقه اولی سره ممنوع نهٔ وی ځکه چې د طهارت کوم شرط دې نو هغه خو د مسجد د داخلیدو دپاره دې نهٔ چې د نورو ځایونو دپاره، نو هرکله چې دغه خلق د طهارت نه بغیر په مسجدنبوی کښې داخل شو نو په نورو ځایونو کښې د دوی باطنی نجاست بنیاد جوړول او دوی منع کول به څنګه صحیح شي.[1]

② د آیت کریمه معنی دا هم کیدې شي چې په دې کښې کومه منع او نهی راغلې ده ﴿فلا یقربوا المسجد الحرام﴾ نو ددې تعلق د مشرکانو یو خاص ډلې سره دې، د کومې ډلې چې په مکه مکرمه کښې او په نورو مساجدو کښې د داخلیدو نه ممانعت وو، نهٔ هغوی ذمیان کیدې شو یعنی د عربو مشرکان، ددې وجې نه صرف دوه صورتونه کیدې شو چې یا خو اسلام قبول کړی یا توره چې په دې سره د دوی څټونه اووهلې شي.[2]

③ په آیت کریمه کښې چې د مکې مکرمې د داخلیدو نه کوم ممانعت دې نو ددې تعلق یو خاص عمل سره دې یعنی حج. او مطلب دادې چې اوس دا خلق د حج دپاره نهٔ شي راتلې، ددې وجې نه نبی علیه السلام حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته حکم کړې وو، چې کله حج ته لاړ شئ نو یوم النحر باندې په منی کښې دا اعلان اوکړئ، "أن لا یحج بعد العام مشرك"[3] چې "ددې کال نه پس دې هیڅ یو مشرک هم حج له نهٔ راځی".

④ د آیت کریمه معنی دا هم کیدې شي چې مشرکین اوس د غلبې په صورت کښې په مکه مکرمه کښې نهٔ شي داخلیدې، دغه شان په مسلمانانو باندې د لویئ کولو په صورت کښې هم نهٔ شي داخلیدې[4]، ددې مرسته ددې آیت کریمه نه هم کیږي ﴿اولئك ماكان لهم أن يدخلوها﴾[5]

---

[1] ) اعلاء السنن: ۵۲۸/۱۲)_

[2] ) پورته حواله، واحکام القرآن: ۱۱۴/۳، سورة التوبة، هل یجوز دخول المشرك المسجد؟)_

[3] ) اعلاء السنن: ۵۲۸/۱۲، واحکام القرآن: ۸۸/۱، سورة البقرة، الحث علی نظافة البدن والثیاب، وقال السرخسی فی تاویل هذه الآیة: الدخول علی الوجه الذی کانوا اعتادوا فی الجاهلیة علی ما روی انهم کانوا یطوفون بالبیت عراة، والمراد القرب من حیث التدبیر والقیام بعمارة المسجد الحرام......". شرح کتاب السیر الکبیر: ۹۸/۱/۱، رقم (۲۷))_

[4] ) الهدایة: ۲۳۹/۷، کتاب الکراهیة، مسائل متفرقة، وعمدة القاری: ۳۰۰/۱۴، رقم (۳۵۰۳)، باب هل یستشفع الی اهل الذمة.....)_

[5] ) البقرة: ۱۱۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو دا معلومه شوه که کافران ذمیان وی نو دوی هلته داخلیدې شی ځکه چې په دې صورت کښې به دوی مقهور او مغلوب وی او حربی کافر نۀ شی داخلیدې،مګر دا چې د امام نه د امان اجازت واخلی او داخل شی نو بیا داخلیدې شی.(١).هر چې د جهورو دویم او څلورم دلیل دې نو احناف هم ددې قائل دی چې په عامو مساجدو کښې د کافرانو داخلیدل د امام یا د عامو مسلمانانو په اجازت سره مشروط دی،ددې وجې نه دا دواړه د احنافو خلاف دلیل نۀ شی جوړیدې،لکه څنګه چې وړاندې تیر شو.پاتې شوه دا خبره چې د شرک نجاست او پلیتی د مسجد د داخلیدو نه مانع ده،نو دا مونږ نۀ منو ځکه چې ددې تعلق د هغوی د باطن اود اعتقاد سره دې او دا څیز نۀ د مسجد د تقدس او پاکوالی دپاره نقصان ورکونکې دې او نۀ د مسجد د ناپاکئ سبب دې(٢).والله اعلم بالصواب

**د غیرمسلمو عبادت خانو ته د تلو حکم:** فقهاء کرامو لیکلې دی چې د مسلمانانو دپاره د یهودیانو معبدونو،د عیسایانو کلیساګانو او د هندوانو مندوررونو ته تلل مکروه دی.د کراهت وجه داده چې دا ځایونه د شیطان ځایونه دی،ددې وجې نه دې ځایونو ته د تللو نه ځان ساتل پکار دی،دا مطلب بالکل نۀ دې چې دې ځایونو ته د تللو دپاره د مسلمانانو حق نشته.والله اعلم(٣).

**قوله:** وَقَالَ عُمَرُ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم «أُقِرُّكُمْ مَا أَقَرَّكُمُ اللَّهُ بِهِ»: [٣٢١٣]

او حضرت عمر ﷺ د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی فرمائی چې نبی ﷺ یهودیانو ته وئیلې وو چې زۀ هغه وخته پورې تاسو دلته برقرارساتم ترڅو چې الله تعالی تاسو دلته برقرار ساتی.

**د مذکوره تعلیق تفصیل او مقصد:** پورتنی کلمات رسول الله مبارک ﷺ د خیبر د یهودیانو دپاره ارشاد فرمائیلې وو،د خیبر د فتح کولو نه پس نبی ﷺ خپله اراده دا ښکاره کړې وه چې یهودیان ددې ځائې نه اوویستلې شی،ځکه چې اوس علاقه د مسلمانانو په ملکیت کښې راغلې وه،هر کله چې یهودیانو ته د نبی ﷺ ددې ارادې پته اولګیده نو هغوی د نبی ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چې مونږ ددې ځائې نه اونۀ ویستلې شو،ددې په بدله کښې به زمونږ له طرفه عمل وی او مسلمانانو ته به نیم پیداوار ورکولې شی،نبی ﷺ د دغه یهودیانو دا درخواست قبول کړو او دا وضاحت ئې هم اوفرمائیلو چې مونږ ترکوم وخته پورې تاسو دلته باقی ساتل غواړو نو هغې پورې به اوسیږئ،چې کله مونږ ستاسو ویستل غواړو نو بیا به مونږ هغه وخت تاسو اوباسو،دا خبره یهودیانو اومنله،په دې خبره باندې دا معامله جاری وه،تردې چې دا خلق حضرت عمر ﷺ د خلافت په دور کښې ددې

---

(١) اعلاء السنن:١٢/٥٣٠)_

(٢) الهداية:٢٣٩/٧،كتاب الكراهية،مسائل متفرقة،والاوجز:٦٥٣/١٥)_

(٣) حاشية ابن عابدين:٢٧٤/٥،كتاب الحظر والاباحة،فصل فى البيع،والفتاوى الهندية:٣٤٦/٥،كتاب الكراهية،الباب الرابع عشر فى اهل الذمة......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ځائې نه او ويستل او د تيماء او د اريحاء طرفته ئې اوليږل[1].

امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب کښې د مذکوره مقصد ثابتولو او مدلل کولو دپاره دا تعليق پيش کړو چې يهوديان او نور کافران به د جزيرة العرب نه ويستلې شى. دوى ته به دلته د اوسيدو اجازت نۀ ورکړې کيږى.

**د مذکوره تعليق تخريج:** دا تعليق امام بخارى رحمه الله په خپل "صحيح" کښې کتاب الحرث ...... کښې موصولاً ذکر کړې دے[2].

**ترجمة الباب سره د تعليق موافقت:** ترجمة الباب سره د مذکوره تعليق مناسبت بالکل واضح دے ځکه چې ترجمة الباب د يهوديانو د ويستلو وه او د تعليق تعلق هم ددې سره دے، پورتنې ذکر شوې تفصيل نۀ طريقې سره ددې خبرې وضاحت کوى.

۲۹۹۶: [3] ۳۸۶۷- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ خَرَجَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «انْطَلِقُوا إِلَى يَهُودَ». فَخَرَجْنَا حَتَّى جِئْنَا بَيْتَ الْمِدْرَاسِ فَقَالَ «أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا، وَاعْلَمُوا أَنَّ الأَرْضَ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ، وَإِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُجْلِيَكُمْ مِنْ هَذِهِ الأَرْضِ، فَمَنْ يَجِدْ مِنْكُمْ بِمَالِهِ شَيْئًا فَلْيَبِعْهُ، وَإِلاَّ فَاعْلَمُوا أَنَّ الأَرْضَ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ».

## رجال الحديث

① **عبدالله بن يوسف:** دا عبدالله بن يوسف تنيسى رحمه الله دې. د دوى مختصره تذکره د "بدء الوحى" په دويم حديث کښې تيره شوې ده[4].

② **الليث:** دا امام ابو الحارث ليث بن سعد فهمى رحمه الله دې. د دوى تذکره د "بدء الوحى" په دريم حديث کښې تيره شوې ده[5].

③ **سعيد المقبرى:** دا ابو سعد سعيد بن کيسان مقبرى مدنى رحمه الله دې. د دوى حالات په کتاب الايمان، "باب الدين يسر...... "کښې بيان شوې دى[6].

---

[1]) انظر الصحيح للبخارى، کتاب الحرث، باب اذا قال رب الارض: اقرک ما اقرک الله...... رقم (۲۳۳۸)_

[2]) پورته حواله، وکذا وصله مسلم فى صحيحه، کتاب المساقاة، باب المساقاة...... رقم (۳۹۶۷)_

[3]) قوله: عن ابى هريرة رضى الله عنه: الحديث، اخرجه البخارى ايضا، کتاب الاعتصام...... باب قوله تعالى: (وکان الانسان اکثر شئ جدلا) رقم (۷۳۴۸)، وکتاب الاکراه، باب فى بيع المکره ونحوه...... رقم (۶۹۴۴)، ومسلم، کتاب الجهاد، باب اجلاء اليهود من الحجاز، رقم (۴۵۹۱)، وابو داود، کتاب الخراج...... باب کيف کان اخراج اليهود......؟ رقم (۳۰۰۳)_

[4]) کشف البارى: ۱/۲۸۹)_

[5]) کشف البارى: ۱/۳۲۴)_

[6]) کشف البارى: ۲/۳۳۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ابيه: دلته د "اب" نه مراد د سعيد المقبري والدصاحب ابوسعيد كيسان بن سعيد المقبري رحمه الله دي[1].

⑤ابوهريره رضي الله عنه: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان، "باب أمور اليمان" كښې تير شوې دي[2].

**قوله: قال: بينما نحن في المسجد خرج النبي صلى الله عليه وسلم، فقال: انطلقوا إلى يهود:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چې مونږ (صحابه كرام) په مسجد كښې ناست وو چې نبي كريم ﷺ د خپلې حجرې نه راووتلو او وې فرمائيل، د يهوديانو طرفته لاړ شئ.

**په حديث شريف كښې د يهوديانو نه څوک مراد دي؟** پورتنۍ حديث كښې دا راغلي دي چې "انطلقوا الى يهود" اوس سوال دادې چې ددې نه د يهوديانو كومه قبيله مراد ده؟ ددې سوال د جواب نه وړاندې په دې باندې ځان پوهه كړئ چې كله نبي ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړلو نو دغه وخت دغه ځائې كښې د كفارو درې قسمونه وو:

①كفار محاربين، چې باقاعده به ئې د دشمنۍ اعلان كوو، د جنګ دپاره راضي وو او د نبي ﷺ او د مهاجرينو د وجود برداشت كولو دپاره بالكل تيار نۀ وو.

②كفار مترددين، كوم چې ددې خبرې په انتظار كښې وو چې ګورو چې ددې مسلمانانو به څۀ انجام وي؟ كه غالب شو نو مونږ به هم دوی سره شو، ورنه د خپل پلار نيكۀ په دين باندې به قائم پاتې شو. بيا د دوی هم درې قسمونه وو: يو خو هغه وو چې باطناً ئې د نبي ﷺ غلبه غوښتله، لكه بنو خزاعه، دويم هغه قسم خلق دي چې باطناً ئې د نبي ﷺ د شكست تمنا كوله لكه بنوبكر، دريم قسم هغه خلق وو چې ظاهراً خو نبي ﷺ سره وو او باطناً د نبي ﷺ د دشمنانو ملګري وو لكه منافقين.

③د مدينې منورې يهوديان، يعنې بنونضير، بنوقريظه او بنوقينقاع وغيره، دوی سره د نبي ﷺ دا معاهده شوې وه چې يو بل سره به نۀ جنګ كوو او نۀ به د يو بل خلاف د يو قبيلې مدد كوو[3]. ليكن چونكه د يهوديانو په فطرت كښې مكر او دهوكه بازي داخل ده، دلته هم ددې كار نه منع نۀ شو او ددې معاهدې پوره والې ئې اونۀ كړو، نو د ټولو نه مخكښې بنوقينقاع دا معاهده ماته كړه او په يهوديانو كښې د ټولو نه مخكښې هم دوی د مدينې منورې نه جلاوطن كړې شو، د دوی د جلاوطن كيدو دا واقعه د پنځلسم شوال دويمې (۲) هجرئ ده[4]. د بنوقينقاع نه پس په يهوديانو كښې بنونضير وعده خلافي اوكړه، نبي ﷺ

---

[1]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الاذان، باب وجوب القراءة للامام والماموم......)_
[2]) كشف الباري: ۱/۶۵۹)_
[3]) انظر فتح الباري: ۷/۳۳۰، وكشف الباري، كتاب المغازي: ۱۷۸_۱۷۹)_
[4]) كشف الباري، كتاب المغازي: ۱۸۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دوی هم د مدینې منورې نه جلاوطن کړل او دا د څلورمې هجرئ د ابتداء واقعه ده.
بنوقریظه چونکه په غزوۀ خندق کښې د قریشو ملګرتیا اوکړه او نبی ﷺ سره ئې خپله معاهده ماته کړه، ددې وجې نه دوی هم په ۵ هجرئ کښې قتل کړې شو، د دوی ښځې او بچې غلامان کړې شو(۱). د یهودیانو ددې قبیلو د جلاوطن کیدو دا ټول مذکوره واقعات چې دی نو دا د غزوۀ خیبر نه وړاندې دی او حضرت ابوهریره رضی الله عنه د خیبر د فتح کولو نه پس راغئ او اسلام ئې قبول کړو، ددې وجې نه د حدیث دا الفاظ"بینما نحن فی المسجد......إلی یهود"مشکل ثابتیږی چې دلته د یهودیانو نه څوک مراد دی؟
د علامه قرطبی رحمه الله د کلام دسیاق نه ذهن ته دا راځی چې دلته د یهودیانو نه مراد بنونضیر دی.لیکن دا جواب په هغه صورت کښې قابلِ قبول کیدې شی چې:د"بینما نحن"نه مراد "بینما المسلمون"وی،اوس به مطلب داوی چې دوی د یو زوړ امر حکایت بیانوی،چې په هغې کښې دوی په خپله شریک نۀ وو،لیکن په اول وخت کښې چې کوم حضرات مسلمانان شوې وو نو د هغوی نه ئې ددې په باره کښې څۀ اوریدلې وو او د هغې نه تعبیر دوی د"نحن"په صیغې د متکلم سره اوکړو(۲).
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د باب په دې حدیث کښې د کومو یهودیانو تذکره اوشوه نو د دوی د نسب وضاحت ما ته چرته ملاؤ نۀ شو چې دا څوک وو؟ ظاهره خو داده چې د بنوقینقاع،بنونضیر او بنوقریظه نه پس څۀ یهودیان په مدینه منوره کښې پاتې شوې وو، هغوی ترینه مراد دی(۳).لکه د باب په حدیث شریف کښې چې کومه مکالمه ذکر ده نو دا دوی سره شوې وه،دغه دوران کښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه هم موجود وو،ددې مکالمې دوران کښې نبی ﷺ د دوی د ویستلو اراده هم ښکاره کړه،دې دپاره چې جزیرة العرب د یهودیانو او د نورو کافرانو نه بالکل پاک او صفا شی(۴).والله اعلم بالصواب

**قوله:فخرجنا حتی جئنا بیت المدراس:** نومونږ اووتلو،تردې چې بیت المدراس ته راغلو.
**د بیت المدراس معنی:** ددې لفظ دوه معنې بیان کړې شوې دی:
(۱) بیت المدراس هغه ځائې ته وئیلې شی چرته چې به د یهودیانو عالم(ربی)هغوی ته د مذهبی کتابونو تعلیم ورکوو.
(۲) د مدراس نه د یهودیانو هغه عالم مزاد دې،کوم چې به د هغوی کتاب لوستۀ او هغوی ته به ئې ښودۀ(۵).په اولنی صورت کښې د ظرفیت او په دویم صورت کښې د فاعلیت معنیٰ ده.

---

(۱) تفصیل دپاره اوګورئ، کشف الباری،کتاب المغازی:۲۹۶_
(۲) فتح الباری:۶/۲۷۱_
(۳) پورته حواله.و ذکر الحافظ رحمه الله فیه وجوها اخری ایضا.انظرها ان شئت)_
(۴) ارشاد الساری:۵/۲۳۵_
(۵) پورته حواله.قال الحافظ فی فتح الباری(۶/۲۷۱):والاول ارجح،لان ....

[بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پورته ترجمه کښې اولنۍ صورت اختیار کړې شوې دې.

**فقال: أسلموا تسلموا، واعلموا أن الارض لله و رسوله، وإني أريد أن أجليكم من هذه الارض**

نبی ﷺ اوفرمائيل، اسلام قبول کړئ، نو محفوظ او مامون به شئ، او په دې خبره پوهه کړئ چې زمکه د الله تعالى او د هغهٔ د رسول ده، دغه شان دا چې زهٔ تاسو ددې زمکې (حجاز مقدس) نه جلا وطن کول غواړم.

د نبی کریم ﷺ دا ارشاد مبارک "أسلموا تسلموا" د جوامع الکلم نه دې، چې د خپل اختصار باوجود په کښې د دنيا او آخرت ټولې کاميابۍ راټولې شوې دی، دغه شان دا ارشاد مبارک د لفظی او معنوی بلاغت جامع مثال دې (۱). ددې حديث په نورو طُرقو کښې د "أسلموا تسلموا" جمله مکرر راغلې ده، چې نبی ﷺ دا خبره څو ځله ارشاد اوفرمائيله، ليکن امام بخاری رحمه الله غالباً دلته د اختصار د وجې نه صرف يو جمله ذکر کړې ده (۲).

د "واعلموا....." جمله ابتدائيه مستانفه ده او مطلب دادې چې کله نبی ﷺ دا اوفرمائيل چې "أسلموا تسلموا" نو ګويا هغوی تپوس اوکړو چې "لم قلت هذا و كررته؟" چې تاسو مونږ ته دا الفاظ ولې اووئيل او دا مو ولې تکرار کړل يعنی ولې مو بار بار اووئيل؟ ددې په جواب کښې نبی ﷺ اوفرمائيل چې په دې خبره ځان ښهٔ پوهه کړئ چې زهٔ ستاسو ويستل غواړم، که تاسو خلقو اسلام قبول کړو نو د جلاوطن کيدو نه به بچ شئ او د نورو مشکلاتو نه به هم بچ شئ کوم مشکلات چې د جلاوطنۍ نه هم زيات سخت کيدې شی (۳).

**قوله: فمن يجد منكم بماله شيئاً فليبعه :** ددې وجې نه د کوم سړی په ملکيت چې څهٔ داسې څيز وی چې غيرمنقول وی نو هغه دې دلته خرڅ کړی.

**د يجد مشتق منه او معنی:** په حديث شريف کښې چې د "يجد" لفظ راغلې دې نو دا د وجدان نه مشتق دې يا د وجد نه مشتق دې، د وجدان معنی ده موندل او د وجد معنی ده محبت. که د وجدان نه مشتق اومنلې شی نو په دې صورت کښې به د پورتنۍ جملې مطلب دا شی چې هغه څيزونه چې د هغې منتقل کول سخت او مشکل وی لکه اونې وغيره، يا د هغې منتقل کول ناممکن وی لکه جائيداد وغيره نو که ددې څوک اخستونکې دلته ملاؤ شی، خرڅ ئې ممکن وی نو دا خرڅ کړئ، ګويا نبی ﷺ ددې ارشاد مبارک په ذريعې سره دغه يهوديانو ته

---

بقيه ازحاشيه گذشته] فى الرواية الاخرى: حتى انى المدراس...... ".ولكن رده العينى رحمه الله (۸۹/۱۵) حيث قال: ماثم ترجيح،لان معنى اتى المدراس اى جاء مكان دراستهم للتوراة ونحوها")_

(۱) ارشاد السارى:۲۳۵/۵)_

(۲) انظر الصحيح للبخارى،كتاب الاكراه،باب فى بيع المكره،رقم (۶۹۴۴)،وسنن ابى داود،كتاب الخراج......باب كيف كان اخراج اليهود؟رقم (۳۰۰۳))_

(۳) عمدة القارى:۹۰/۱۵،وفتح البارى:۲۷۱/۶،وارشاد السارى:۲۳۵/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې خبرې اجازت ورکړو چې که تاسو ددې ځيزونو خرڅول غواړئ نو بالکل خرڅولې شئ.
که د وجد نه مشتق اومنلې شی نو په دې صورت کښې به مطلب دا شی چې هغه ځيزونه چې تاسو ته محبوب او خوښ دی نو هغه تاسو خرڅولې شئ.(۱).

**قوله: وإلا فاعلموا أن الارض لله ورسوله:** او که داسې نۀ وی(خرڅ مو نۀ کړل)نو پوهه شئ چې زمکه د الله تعالی او د هغۀ د رسول ده.
مطلب دادې چې تاسو خپل مملوکه ځيزونه خرڅولې شئ،تاسو ته اجازت دې خرڅ ئې کړئ،ورنه ددې ځائې نه وتل خو ستاسو دپاره مقدر دی،ددې وجې نه په هرحال کښې چې وی تاسو به ددې ځائې نه ويستلې شئ،د الله تعالی مشيت هم دادې چې هغه ستاسو ددې زمکو وارثان مسلمانان اوګرځوی ددې وجې نه ددې ځائې نه اوځئ(۲).

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه ددې حديث شريف مطابقت ترجمة الباب سره په دې معنی کښې دې چې په دې کښې د نبی عليه السلام دا ارشاد مبارک نقل کړې شو چې.نبی عليه السلام د يهوديانو د ويستلو اراده فرمائيلې وه.وجه دا وه چې نبی عليه السلام د عرب په زمکه باندې د کفارو موجودګی نۀ خوښوله،ليکن قدرت ته دا منظوره نۀ وه چې دا خپله اراده ئې پوره کړې وې ليکن وصيت ئې اوکړو چې غيرمسلم د جزيرة العرب نه اوباسئ،نو په دې وصيت باندې بيا وروستو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې عمل اوکړو او باقی پاتې ټول يهوديان او کفار ئې د هغۀ ځائې نه بهر کړل،دا د ترجمة الباب مقصود وو.(۳).

۲۹۹۷ :(۴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ الأَحْوَلِ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - يَقُولُ يَوْمُ الْخَمِيسِ، وَمَا يَوْمُ الْخَمِيسِ ثُمَّ بَكَى حَتَّى بَلَّ دَمْعُهُ الْحَصَى . قُلْتُ يَا أَبَا عَبَّاسٍ ، مَا يَوْمُ الْخَمِيسِ قَالَ اشْتَدَّ بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَجَعُهُ فَقَالَ « ائْتُونِي بِكَتِفٍ أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لاَ تَضِلُّوا بَعْدَهُ أَبَدًا » . فَتَنَازَعُوا وَلاَ يَنْبَغِي عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوا مَا لَهُ أَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوهُ . فَقَالَ « ذَرُونِي ، فَالَّذِي أَنَا فِيهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُونِي إِلَيْهِ - فَأَمَرَهُمْ بِثَلاَثٍ قَالَ - أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ » . وَالثَّالِثَةُ خَيْرٌ، إِمَّا أَنْ سَكَتَ عَنْهَا، وَإِمَّا أَنْ قَالَهَا فَنَسِيتُهَا . قَالَ سُفْيَانُ هَذَا مِنْ قَوْلِ سُلَيْمَانَ .[ر: ۱۱۴]

---

(۱) پورته حواله جات)_
(۲) عمدة القاری:۹۰/۱۵،وارشاد الساری:۲۳۵/۵،وشرح الکرمانی:۱۳۳/۱۳)_
(۳) هذا خلاصة ما ذکره العينی فی العمدة:۸۹/۱۵،وايضا انظر ارشاد الساری:۲۳۵/۵،وشرح ابن بطال:۳۴۱/۵_۳۴۲)
(۴) قوله: ابن عباس رضي الله عنهما ":الحدث،مر تخريجه فی کتاب العلم،باب کتابة العلم)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

①**محمد**: دلته د امام بخاري رحمه الله د شيخ محمد باره كښې هيڅ يو راوى دا وضاحت نۀ دې كړې چې د محمد نه څوک مراد دى؟ د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې داده چې د محمد نه مراد ابن سلام دې، ځكه چې د كتاب الوضوء په يو روايت كښې "حدثنا محمد حدثنا ابن عيينة" راغلې دې[1].په دې باندې حافظ رحمه الله يقين كړې دې چې څنګه دغلته ابن سلام مراد دې نو دلته هم ابن سلام مراد دې[2]او د محمد بن سلام بيكندى رحمه الله حالات په كتاب الايمان، "باب قول النبي ﷺ: انا اعلمكم بالله...... " كښې تير شوې دى.[3].

②**ابن عيينه**:دا مشهور امام حضرت سفيان ابن عيينه رحمه الله دې.د دوى تذكره د "بدء الوحى" د اولنى حديث په ضمن كښې اجمالاً او په كتاب العلم، "باب قول المحدث:حدثنا...... " كښې تفصيلاً تيره شوې ده.[4].

③**سليمان**:دا سليمان بن ابى مسلم الاحول رحمه الله دې.[5].

④**سعيد بن جبير**:دا مشهور تابعى حضرت سعيد بن جبير اسدى رحمه الله دې.

⑤**عبدالله بن عباس** رضي الله عنهما:دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عباس هاشمى رضي الله عنهما دې.ددې دوو حضراتو تذكره د بدء الوحى په "الحديث الرابع" كښې ذكر كړې شوې ده.[6].

---

[1] ) انظر صحيح البخارى،كتاب الوضوء،باب غسل المراة اباها الدم......رقم (٢٤٣))_

[2] ) فتح البارى:٢٧١/٦، ورد عليه العينى_كعادته مواضع شتى_حيث قال: لا يلزم من قوله فى الوضوء: حدثنا ابن سلام عن ابن عيينه،ان يكون هنا ايضا ابن سلام عن ابن عيينه؛لانه قال فى عدة مواضع:عن محمد بن يوسف البيكندى عن ابن عيينة،و روى الاسماعيلى هذا الحديث عن الحسن بن سفيان عن محمد بن خلاد الباهلى عن ابن عيينة...... ".(انظر العمدة:٩٠/١٥)هذا الكلام منه_كما ترى_ولكنه ايضا لا يخلو عن النظر؛ لانه كما لا يلزم من ان يكون ابن سلام،كذلک لا يلزم ان يكون ابن يوسف البيكندى،ولا سيما اذا صرح الامام البخارى رحمه الله فى جميع المواضع من كتاب الوضوء،بنسب محمد بن يوسف،الا محمدا الذى نحن بصدده، فانه قال هناک فقط: محمد عن ابن عيينة"غير منسوب،كما ذكر هنا ايضا غير منسوب،ومن ثمه لم يقل هناک فى الوضوء: ابن سلام"كما اشرنا اليه الآن،ثم ان اراد العينى رحمه الله بقوله: و روى الاسماعيلى...... "انه يمكن ان يكون ابن خلاد فهو مما لا يمكن،لان ابن خلاد الباهلى لا يروى عنه الامام البخارى،ولا هو من شيوخه،نعم ابن خلاد من تلامذة ابن عيينة الامام.(انظر تهذيب الكمال:١٦٩/٢_١٧٠).فلعل هذا الامر اوقعه فى الحيرة،والله اعلم بالصواب.والعلامة القسطلانى ايضا جزم بقول الحافظ.انظر شرحه:٢٣٥/٥)_

[3] ) كشف البارى:٩٣/٢)_

[4] ) كشف البارى:٢٣٨/١،و:١٠٢/٣)_

[5] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب التهجد،باب التهجد بالليل)_

[6] ) كشف البارى:٤٣٥/١)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**خبرداري:** د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ددې روايت تشريح په كتاب العلم او كتاب المغازي كښې راغلې ده[1].

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت په دې جمله كښې دې، "أخرجوا المشركين من جزيرة العرب" ليكن دا اشكال پرې كيږى چې ترجمة الباب خو د يهوديانو د ويستلو ده، او په حديث شريف كښى د مشركانو د ويستلو تذكره ده، نو دا څنګه مطابقت شو؟

ددې جواب دادې چې لفظ د مشرک عام دې چې يهوديانو ته هم شامل دې، دلته د نوجه قابله خبره دا ده چې اكثر يهوديان د الله تعالى د وحدانيت قائل وى، د مسلمانانو نه پس د دنيا هم دا يو قوم دې چې د توحيد قائل دى، ددې باوجود د ذوى د ويستلو حكم دې نو د مشركانو او د نورو كافرانو د ويستلو حكم خو به په طريقه اولى سره وى[2]. والله اعلم

دلته ددې خبرې لحاظ هم ساتل پكار دى چې د باب په روايت كښې د نسخو اختلاف دې، په يو نسخه كښې "أخرجوا المشركين....." او په دويمه نسخه كښې، كومه چې د جيانى نسخه ده، "أخرجوا اليهود......" راغلې دې، روايتى حيثيت سره دا اولنۍ نسخه زياته غوره او راجح ده[3].

## ⑰ باب: إِذَا غَدَرَ الْمُشْرِكُونَ بِالْمُسْلِمِينَ هَلْ يُعْفَى عَنْهُمْ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چې كه مشركان مسلمانانو سره دهوكه اوكړى يا مسلمانانو سره وعده خلافى اوكړى نو آيا دوى ته معافى كيدې شى؟

مصنف رحمه الله په دې سلسله كښې څۀ فيصله كن خبره نۀ ده كړې، وجه داده چې په روايت الباب كښې كومه واقعه نقل شوې ده، په هغې كښې د امامانو او د فقهاؤ اختلاف دې، چې كومې ښځې نبى عليه السلام ته زهر وركړې وو نو آيا هغې ته سزا وركړې شوې وه يا نبى عليه السلام هغه معاف كړې وه[4].

**د مذكوره مسئلې تفصيل:** قاضى عياض رحمه الله فرمائى چې په دې باب كښې روايتونه مختلف دى، چې نبى عليه السلام دا يهودنړه قتل كړې وه يا نۀ؟ لكه د صحيح مسلم د حضرت انس رضي الله عنه د روايت، په ابوداؤد شريف كښې د حضرت جابر رضي الله عنه د روايت[5]، دغه شان د ابن هشام[6] د

---

[1] كشف البارى، كتاب العلم: ٤/ ٣٣٠_٣٨٥، وكتاب المغازى: ٦٧٢_٦٧٧)_
[2] عمدة القارى: ١٥/ ٩٠، وفتح البارى: ٦/ ٢٧١)_
[3] فتح البارى: ٦/ ٢٧١)_
[4] فتح البارى: ٦/ ٢٧٢، وعمدة القارى: ١٥/ ٩١)_
[5] سنن ابى داود، كتاب الديات، باب فيمن سقى رجلا سما......رقم (٤٥١٠))_
[6] سيرة ابن هشام: ٣/ ٣٣٨، بقية امر خيبر، امر خيبر، امر الشاة المسمومة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ذکر کړې تفصیل نه دا معلومیږی چې نبی ﷺ دغه ښځه نهٔ وه قتل کړې، بلکه د حضرت انس رضی الله عنه د مسلم شریف روایت خو صراحتاً د قتل نفی کوی، فرمائی:

"أن امرأة يهودية أتت رسول الله صلى الله عليه وسلم بشاة مسمومة، فأكل منها، فجئ بها إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فسألها عن ذلك، فقالت: أردت لأقتلك، قال: ماكان الله يسلطك على ذاك. قال: أو قال: على قال: قالوا: ألا نقتلها؟ قال: لا" (١).

یعنی "یو یهودی ښځې نبی ﷺ ته د زهرو نه ډکه چیلئ راوړله، نبی ﷺ د هغې نه لږ شان خوراک اوکړو، بیا دغه ښځه د نبی ﷺ خدمت کښې حاضره کړې شوه نو نبی ﷺ ددې ښځې نه په چیلئ کښې د زهرو اچولو تپوس اوکړو نو هغې ښځې اووئیل چې زما ستاسو د قتل کولو اراده وه. نبی ﷺ اوفرمائیل چې الله تعالی به تاسو ته ددې موقع نهٔ درکوی، یا ئې دا اوفرمائیل چې الله تعالی به تاته په ماباندې تسلط نهٔ درکوی. صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو، چې آیا مونږ دا قتل نهٔ کړو؟ نبی ﷺ اوفرمائیل، نه".

او د حضرت ابوسلمه په روایت کښې راغلې دې کوم چې د ابوداؤد شریف (٢) روایت دې، چې نبی ﷺ دغه ښځه قتل کړه، هم دا مضمون امام عبدالرزاق په "مصنف" کښې د معمر بن راشد (٣) او علامه ابن سعد رحمه الله په "طبقات" کښې د "ابن لهيعة عن عمر مولى عفرة" د طریق نه نقل کړې دی (٤). ددې تعارض د ختمولو دپاره امام بیهقی رحمه الله خو دا فرمائیلې دی چې کیدې شی چې نبی ﷺ اول معافی فرمائیلې وی لیکن ددې واقعې نه چې کوم دویم یعنی حضرت بشر بن البراء بن معرور رضی الله عنه متاثره شوې وو او ددې واقعې نه یو کال پس وفات شوې وو نو نبی ﷺ د دوی په قصاص کښې دا ښځه هم قتل کړه (٥). هم دا جواب علامه سهیلی رحمه الله هم کړې دې او نبی ﷺ چې دې ښځې ته کومه معافی کړې وه نو ددې وجه ئې دا ښودلې ده چې د نبی ﷺ دا عادت نهٔ وو چې د خپل ذات دپاره د چا نه انتقام واخلی، ددې وجې نه ئې دې ښځې ته معافی کړې وه، بیا د حضرت بشر رضی الله عنه په بدله کښې قصاصاً قتل کړه (٦). البته

---

(١) انظر صحيح مسلم، كتاب السلام، باب السم، رقم (٥٧٠٥)_

(٢) سنن ابی داود، كتاب الديات، باب فيمن سقى رجلا سما...... رقم (٤٥١١)_

(٣) المصنف لعبد الرزاق: ٥٣/٦، كتاب اهل الكتاب، هل يقتل ساحر هم؟ (١٠٠٣)، و: ١٨٨/١٠، كتاب الجامع، باب الحجامة...... رقم (١٩٩٨٣)_

(٤) الطبقات الكبرى لابن سعد: ١٧٢/١، ذكر علامات النبوة بعد نزول الوحى)_

(٥) دلائل النبوة للبيهقى: ٢٦٢/٤، واختاره النووى فى شرحه على مسلم: ٢٢٢/٢، وقال: قال القاضى: وجه الجمع بين هذه الروايات والاقاويل انه لم يقتلها اولا حين اطلع على سمها، وقيل له: اقتلها، فقال: لا فلما مات بشر بن البراء من ذلك سلمها لاوليائه، فقتلوها قصاصا، فيصح قولهم: لم ديقتلها اى: فى الحال، ويصح قولهم: قتلها، اى: بعد ذلك". وكذا السيوطى، انظر الديباج: ٨٤٨/٢)_

(٦) الروض الانف للسهيلى: ٢٤٣/٢، فصل: وذكر الشاة المسمومة.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن حجر رحمه الله د نبی عليه السلام ددې معافئ يو بله وجه هم ليکلې ده چې ممکنه ده چې د نبی عليه السلام ددې معافئ د وجې نه دا ښځه اسلام قبول کړی او ددې قتل د حضرت بشر رضي الله عنه د وفات پورې ددې وجې نه مؤخر کړې شو چې د حضرت بشر په وفات سره به د قصاص وجوب متحقق او ثابت شی،نوهرکله چې د قصاص وجوب متحقق شو نو دغه ښځه بيا قصاصاً قتل کړې شوه(١).علامه سحنون مالکی رحمه الله خو په دې خبره باندې د محدثينو اجماع نقل کړې ده چې نبی عليه السلام دغه ښځه قتل کړې وه(٢).ليکن څنګه چې پورتنی تفصيل نه معلومه شوه چې دا مسئله متفق عليه نۀ ده بلکه مختلف فيه ده،ددې وجې نه د اجماع دعوی کول صحيح نۀ دی. والله اعلم بالصواب

ددې نه پس چې امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې کوم سوال ذکر کړې دې،هغه اوګورئ چې په پورتنۍ مسئله کښې د فقهاؤ څۀ مؤقف دې؟ددې جواب دادې چې دا کار په امام او حاکم باندې موقوف دې چې غدار او خيانتګر ته څۀ سزا ورکوی؟که هغه خيال اوکړی چې د قتل ضرورت نشته نو د تنبيه او خبردرای په طور باندې نوره سزا ورکولې شی او معافی ورته هم کولې شی،مثلاً د جرم نوعيت معمولی وی او که حاکم او امام ددې مجرم قتل مناسب او ضروری اوګڼړی نو قتل دې کړی،مثلاً دا چې جرم ئې غيرمعمولی وی لکه يو مسلمان قتل کړی وغيره وغيره،لکه نبی عليه السلام عرنيين قتل کړې وو ځکه چې هغوی نبی عليه السلام سره وعده خلافی کړې وه او د نبی عليه السلام شپونکې حضرت يسار رضي الله عنه ئې قتل کړې وو، علامه مهلب رحمه الله فرمائی:

"ويعفى عن المشركين إذا غدروا بشئ يستدرك إصلاحه وجبره،ويعصم الله تعالى منه،إذا رأى الامام ذلك،وإن رأى عقوبتهم عاقبهم بمايؤدى إليه اجتهاده،وإما إذا غدروا بالقتل أو بما لايستدرك جبره،وما لا يعتصم من شره،فلا سبيل إلى العفو كما فعل النبى صلى الله عليه وسلم فى العرنيين(٣)عاقبتهم بالقتل"(٤).

**په چا باندې زهر خوړلو سره د قتلولو حکم:** دلته يوه بله مسئله هم ده،هغه دا چې که يو کس باندې زهراوخوړلې شی اوهغه قتل شی نو زهر ورکوونکې به قصاصاً قتل کولې شی يا نۀ؟ په دې مسئله کښې هم د علماؤ اختلاف دې،د جمهور علماؤ مؤقف هم دادې چې په دې کښې قصاص واجب دې او پورتنی مذکوره صورت کښې به زهر ورکوونکې قتل کولې شی او د متقدمين احنافو حضراتو په نزد زهر ورکولو سره قصاص نۀ واجبيږی،اګرچه زهر خوړلو والا مړ شی(٥).ليکن د متاخرين احنافو فتوی د جمهورو په قول باندې ده،ځکه چې

---

[١]) فتح البارى:٤٩٧/٧،وارشاد السارى:٢٣٧/٥)_
[٢]) عمدة القارى:٩١/١٥،وشرح النووى على مسلم:٢٢٢)_
[٣]) انظر لحديث العرنيين،صحيح البخارى،كتاب المغازى،باب قصة عكل وعرينة،رقم (٤١٩٢))_
[٤]) شرح ابن بطال:٣٤٧/٥)_
[٥]) البحرا الرائق شرح كنز الدقائق:/٩١٨،كتاب الجنايات،باب ما يوجب....[بقيه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې زمانه کښې فساد نور هم زيات شوې دې نو د مفسدينو د شر نه عامة الناس لره محفوظ کول به هم دغه شان ممکن وى، امام رافعى رحمه الله فرمائى:

"والعمل على هذه الرواية فى زماننا، لانه ساع فى الارض بالفساد، فيقتل دفعاً لشره"(١)

الشيخ محمد تقى العثمانى حفظه الله: "ولا شك ان زماننا اكثر فساداً، فالعمل بقول الجمهور اولى، ان شاء الله تعالى". تكملة فتح الملهم: ٢/٣٣٨_.

٢٩٩٨ (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - شَاةٌ فِيهَا سُمٌّ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اجْمَعُوا إِلَيَّ مَنْ كَانَ هَا هُنَا مِنْ يَهُودَ». فَجُمِعُوا لَهُ فَقَالَ «إِنِّي سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْهُ». فَقَالُوا نَعَمْ. قَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ أَبُوكُمْ». قَالُوا فُلاَنٌ. فَقَالَ «كَذَبْتُمْ، بَلْ أَبُوكُمْ فُلاَنٌ». قَالُوا صَدَقْتَ. قَالَ «فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُ عَنْهُ» فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، وَإِنْ كَذَبْنَا عَرَفْتَ كَذِبَنَا كَمَا عَرَفْتَهُ فِي أَبِينَا. فَقَالَ لَهُمْ «مَنْ أَهْلُ النَّارِ». قَالُوا نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَا فِيهَا. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اخْسَئُوا فِيهَا، وَاللَّهِ لاَ نَخْلُفُكُمْ فِيهَا أَبَدًا - ثُمَّ قَالَ - هَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ». فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ. قَالَ «هَلْ جَعَلْتُمْ فِي هَذِهِ الشَّاةِ سُمًّا». قَالُوا نَعَمْ. قَالَ «مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ». قَالُوا أَرَدْنَا إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا نَسْتَرِيحُ، وَإِنْ كُنْتَ نَبِيًّا لَمْ يَضُرَّكَ. [٤٠٠٣، ٥٤٤١]

**خبرداری:** دا سند معمولى اختلاف سره اوس يو باب وړاندې په "باب إخراج اليهود" کښې تير شوې دې.

**په حديث شريف کښې د مذکوره واقعې تفصيلات:** د باب په حديث باندې د پوهيدلو دپاره دا ضروری ده چې مونږ ددې پس منظر او نورو جزئياتو او تفصيلاتو باندې هم نظر واچوو.
هرکله چې خيبر فتح شو او د جنګ حالات برابر شو نو يهودی ښځې د نبی عليه السلام د دعوت پروګرام جوړ کړو، دغه وخت نبی عليه السلام ام المؤمنين حضرت صفيه رضي الله عنها سره وو، نو دغه ښځې يو وريته کړې شوې چيلۍ د نبی عليه السلام خدمت کښې حاضره کړه، دې ښځې ددې خبرې تحقيق د مخکښې نه کړې وو چې نبی عليه السلام ته د نورو اندامونو په مقابله کښې د چيلۍ خپه زياته خوښه ده نو ټوله چيلۍ کښې دغه ښځې زهر ګډ کړل او د هغې په دغه غوښه کښې ئې زهر

بقيه ازحاشيه گذشته] القصاص......ورد المحتار: ٥/٣٨٥، والام للشافعى: ٦/٤٢، كتاب جراح العمد، الرجل يسقى الرجل السم......والمغنى: ٨/٢١٢)_

(١) انظر تقريرات الرافعى على رد المحتار: ٢/٣٢٣)_

(٢) قوله: عن ابى هريرة رضي الله عنه": الحديث، اخرجه البخارى ايضا، كتاب المغازى، باب الشاة التى سمت للنبى صلى الله عليه وسلم بخيبر، رقم (٤٢٤٩)، و كتاب الطب، باب ما يذكر فى سم النبى صلى الله عليه وسلم، رقم (٥٧٧٧)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زيات مقدار كنبې شامل كړل،چې كله دغه چيلۍ د نبي ﷺ او د صحابه كرامو وړاندې د خوراك دپاره پيش كړې شوه نو نبي ﷺ ترينه دغه مذكوره غوښه اوچته كړه،د هغې نه ئې بوټۍ باندې چك اولګوو ليكن د تيرولو وخت رانغې،نبي ﷺ سره نزدې حضرت بشر بن البراء بن معرور هم ناست وو هغوی هم ددې نه څه واخستۀ ليكن هغوی نمرۍ تيره كړه او نبي ﷺ نمرۍ واپس كړه،بيا ئې اوفرمائيل چې دا هډوكې ما ته وائي چې په دې كنبې زهر دی،بيا نبي ﷺ هغه ښځه راوغوښتله،تپوس ئې ترينه اوكړو نو هغې ددې خبرې اقرار اوكړو چې ما په دې كنبې زهر ګډ كړې دی[1]،ددې نه پس د باب حديث شريف ته اوګورئ.

**قوله**: قَالَ: لما فتحت خيبر أهديت للنبي صلى الله عليه وسلم شاة. فيها سُم:

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چې هركله خيبر فتح شو نو نبي كريم ﷺ ته په هديه كنبې يو چيلۍ پيش كړې شوه چې زهر په كنبې اچولې شوې وو.د صحيح مسلم په حوالې سره اوس تير شو چې دا چيلۍ پيش كوونكې يو يهودی ښځه وه،اهل سيرو ددې ښځې نوم زينب بنت الحارث نقل كړې دې،دا د سلام بن مشكم ښځه وه او د مرحب خور يا وريره وه[2].

**د كلمه سُم تحقيق**:په كلمه سم كنبې درې لغتونه دی،دا د سين فتحه،ضمه او كسره درې واړو حركاتو سره لوستلې شوې دې او فتحه په كنبې افصح حركت دې،ددې جمع سمام او سموم ده ددې معنی زهر ده[3].

فَقَالَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم «اجْمَعُوا إِلَى مَنْ كَانَ هَا هُنَا مِنْ يَهُودَ». فَجُمِعُوا لَهُ فَقَالَ «إِنِّي سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِي عَنْهُ». فَقَالُوا نَعَمْ. قَالَ لَهُمُ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم «مَنْ أَبُوكُمْ». قَالُوا فُلاَنٌ. فَقَالَ «كَذَبْتُمْ، بَلْ أَبُوكُمْ فُلاَنٌ». قَالُوا صَدَقْتَ.

نو نبي ﷺ اوفرمائيل،دلته چې څومره يهوديان دی،دا ټول جمع كړئ چې زۀ دوی سره ملاؤ شم،نو دوی ټول په يو ځائې باندې جمع كړې شو نو نبي ﷺ هغوی ته اوفرمائيل،زۀ ستاسو نه د يو خبرې تپوس كول غواړم،آيا تاسو به ماته په دې معامله كنبې رښتيا وايئ؟ټولو اووئيل چې آوجی،نبي ﷺ اوفرمائيل،ستاسو پلار څوک دې؟ هغوی اووئيل چې فلانې دې، نبي ﷺ اوفرمائيل چې تاسو دروغژن يئ،بلكه ستاسو پلار خو فلانې دې.هغوی اووئيل چې تاسو رښتيا اووئيل.

ابن حجر رحمه الله ليكلي دی چې دلته د "فلان"نه څوک مراد اخستلې شوې دې،ماته معلومه نۀ شوه[4]

---

[1]) انظر سيرة ابن هشام:٣٥٢/٣/٢،امر الشاة المسمومة،ودلائل النبوة للبيهقي:٢٦٣/٤)_

[2]) عمدة القاري:٩١/١٥،وفتح الباري:٤٩٧/٧،وسنن ابى داود،كتاب الديات،باب فيمن سقى رجلا سما......رقم (٤٥٠٩)،ودلائل النبوة:٢٦٣/٤،والروض الانف:٢٤٣/٢)_

[3]) عمدة القاري:٩١/١٥،وارشاد الساري:٢٣٦/٥)_

[4]) ارشاد الساري:٢٣٦/٥،وهدى الساري:٤٤١،الجزية والموادعة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قَالَ «فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِي عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُ عَنْهُ» فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، وَإِنْ كَذَبْنَا عَرَفْتَ كَذِبَنَا كَمَا عَرَفْتَهُ فِي أَبِينَا. فَقَالَ لَهُمْ «مَنْ أَهْلُ النَّارِ». قَالُوا نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَا فِيهَا.

نبى ﷺ اوفرمائيل، كه زهٔ ستاسو نه د څهٔ څيز په باره کښې تپوس اوکړم نو آيا تاسو به رښتيا اووايئ؟هغوى اووئيل چې ائې ابو القاسم!آو جى!مونږ به رښتيا وايو، ځکه چې که مونږ تاسو ته دروغ اووايو نو هم به تاسو ته معلومه شى، لکه څنګه چې زمونږ د پلار نيکهٔ په باره کښې تاسو ته معلومه شوه(چې مونږ دروغ وايو)نو نبى ﷺ ترينه پوښتنه اوکړه، جهنميان به څوک وى؟ هغوى جواب ورکړو چې څهٔ ورځې خو به مونږ په جهنم کښې يو، بيا به تاسو خلق زمونږ ځايونه ډک کړئ.

سبحان الله!د بدبختئ او د ضداو عناد انتهاء ته اوګورئ، يهوديانو په خپل مذکوره جواب کښې د خپلې يوې عقيدې اظهار کړې دې چې دا د دوى خپل يو خيال او ګمان دې، د دوى خيال دا وو چې الله تعالى به يهوديانو ته دومره ورځې عذاب ورکوى څومره ورځې چې دوى د غوا د بچى عبادت کړې وو او هغه څلويښت ورځې دى، ددې نه زيات عذاب به مونږ ته نهٔ راکړې کيږى(١).د يهوديانو دا خيالى عقيده قرآن کريم هم ذکر کړې ده، د الله تعالى ارشاد دې: وَقَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَةً قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللَّهِ عَهْدًا فَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝ دلته دوى ددې عقيدې اظهار کړې دې چې څو ورځې خو به مونږ ته سزا ملاؤ شى ليکن ددې نه پس ستاسو نمبر دې.

**د"تخلفونا"لغوى او صرفى تحقيق:** "تخلفونا"په اصل کښې تخلفوننا وو، لکه د ابوذر په نسخه کښې تخلفوننا راغلې دې، دلته ددې يو نون ساقط شوې دې، د حرف جازم او ناصب نه بغير هم د نون حذف کول يو لغت دې او دا د خلف يخلف نه دې، ددې معنى ده د چا نائب او قائم مقام کيدل، ددې نه خلف هم دې، خلف هر هغه سړى ته وئيلې شى چې د چا نه پس راشى او د هغهٔ نائب او خليفه وى، ليکن په دې کښې يو فرق هم دې، که دا لفظ د لام سکون سره وى نو ددې معنى ده نائب فى الشر(د شر په کارونو کښې نائب)او که د لام حرکت سره وى نو ددې معنى ده نائب فى الخير(د خير په کارونو کښې نائب او قائم مقام)(٢).

**قوله:** فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «اخْسَئُوا فِيهَا»: نو نبى ﷺ اوفرمائيل چې هم تاسو په دې کښې خوار او ذليل اوسيږئ.

سپى ته د شړلو او رټلو دپاره اخساوئيلې کيږى، يعنى لرې شه، دلته په دې جمله کښې دوهٔ احتمالات کيدې شى.اول احتمال خو دادې چې نبى ﷺ دوى ته بد دعا کړې ده، يعنى الله

(١) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:١٠/٢)_
(٢) عمدة القارى:٩١/١٥،وارشاد السارى:٢٣٦/٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تعالی دې اوکړی چې هم تاسو په دې کښې ذلت او خوارئ سره داخل شئ.دويم احتمال دادې چې دا زجر،توبيخ او رټنه ده يعنی تاسو په دې کښې ورک شئ[1].

**قوله: وَاللَّهِ لاَ نَخْلُفُكُمْ فِيهَا أَبَدًا -:** په خدائې قسم،مونږ به کله هم په جهنم کښې ستاسو خائې ډک نۀ کړو.

يعنی ستاسو دا وهم اوګمان بالکل باطل دې چې تاسو به د جهنم د سزا يو څو ورځې مستحق يئ،بيا به مونږ د هغې خشاک جوړ شو،دا خو کيدې نۀ شی چې مونږ د جهنم مستحق شو،زمونږ خو پيدائش د جنت دپاره شوې دې.دلته که د چا په ذهن کښې دا اشکال پيدا شی چې ګناهګار مسلمانان به هم جهنم ته داخليږی.نو د نبی ﷺ دا پورتنئ خبره څنګه صحيح شوه چې مونږ خو به جهنم ته نۀ داخليږو؟

ددې جواب دادې چې ګناهګار مسلمانان به په جهنم کښې د سزا خوړلو نه پس بالآخر راوځی، ددې وجې نه د مسلمانانو جهنم ته داخليدل به عارضی وی،په خلاف د يهوديانو، يهوديان خو به په جهنم کښې هميشه دپاره اوسيږی،د جهنم نه ددې يهوديانو وتل ممکن نۀ دی، ددې وجې نه دلته د خلافت او د نيابت د معنې تصور هم نۀ شی کيدې[2].

**ثُمَّ قَالَ -هَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ». فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ. قَالَ« هَلْ جَعَلْتُمْ فِي هَذِهِ الشَّاةِ سُمًّا». قَالُوا نَعَمْ. قَالَ «مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ». قَالُوا أَرَدْنَا إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا نَسْتَرِيحُ، وَإِنْ كُنْتَ نَبِيًّا لَمْ يَضُرَّكَ.**

نبی ﷺ بيا اوفرمائيل،که زۀ ستاسو نه د يو څيز په باره کښې تپوس اوکړم نو آيا تاسو به رښتيا اووايئ؟هغې ټولو اووئيل چې ائې ابوالقاسم!اوجی!نبی ﷺ تپوس اوکړو چې آيا تاسو په دې چيلئ کښې زهر ګډ کړې دی؟هغوی اووئيل چې آوجی!نبی ﷺ ترينه تپوس اوکړو چې تاسو دا حرکت ولې اوکړو؟هغوی اووئيل چې زمونږ دا اراده وه چې که تاسو د خپل نبوت په دې دعوی کښې دروغژن يئ نو مونږ به ستاسو نه راحت حاصل کړو(څکه چې مونږ به درنه خلاص شو)او که تاسو واقعی نبی يئ نو دا زهر به تاسو ته نقصان اونۀ رسوی.

د باب په حديث شريف کښې درې سوالات او د هغې جوابات ذکر دی،سوالات د نبی ﷺ له طرفه او جوابات د يهوديانو له طرفه وو،ددې يهوديانو دا بدبختی او بدنصيبی اوګورئ چې په درې واړو جواباتو کښې ئې دروغ وئيلې دی،په اولنی دوو جواباتو کښې خو ئې دروغ او خباثت ښکاره دې،او د دريم سوال په جواب کښې د يهوديانو دا وينا چې"اردنا إن کنت کاذباً نستريح،وإن کنت نبياً لم يضرك"دا هم د دروغو نه خالی نۀ ده،څکه چې د نبی ﷺ نبی کيدل،مبعوث من الله کيدل دوی ته د نمر په شان ښکاره وو،په قرآن کريم کښې د الله تعالی

[1]) پورته حواله جات.وشرح الكرماني:۱۳/ ۱۳۴)_

[2]) فتح الباري: ۱۰/ ۲۴۶،وشرح الكرماني:۱۳/ ۱۳۴،وارشاد الساري:۵/ ۲۳۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ارشاد دي: ﴿الذين آتيناهم الكتاب يعرفونه كما يعرفون أبناءهم﴾[1] ليكن بني اسرائيل چونكه خپل ځان د دنيا اعلى ترين مخلوق ګڼړي او خپل نسب د ټولو نه غوره ګڼړي، ددې وجې نه دوی دا برداشت نۀ کړې شو چې اشرف الانبياء والرسل، خاتم النبيين والمرسلين ﷺ د عربو او د بنو اسماعيل نه ولې راوا ستولې شو؟ هم دا وجه وه چې دوی هميشه د نبی علیه السلام او د هغوی ملګرو ته په تکليف رسولو کښې لګيا وو او قيامت پورې به دوی په دې کښې مشغول وی، دا هغه ډله ده چې د هميشه نه د اسلام او د مسلمانانو دشمنان دی، د دوی نه د خير توقع ساتل بالکل عبث کار دې، د الله تعالی ارشاد دې: ﴿لتجدن أشد الناس عداوة للذين آمنوا اليهود.....﴾[2] د قرآن کريم ددې واضح اعلان نه پس هم که دوی لره څوک خپل دوست ګڼړي نو دا بيوقوف نۀ دې نو څۀ دی؟

**يو سوال او د هغې جواب:** د باب حديث شريف او د مسلم شريف روايت، چې اوس مخکښې تير شو، دواړو کښې ظاهراً تعارض دې چې هلته کومه مکالمه نقل کړې شوه نو هغه د نبی علیه السلام او د يو يهودی ښځې زينب بنت الحارث مينځ کښې وه او دلته چې کومه مکالمه ده نو هغه د نبی علیه السلام او د يهوديانو مينځ کښې ده.

ددې جواب واضح دې چې په دې کښې هيڅ تعارض نشته، ممکنه ده چې نبی علیه السلام دواړو سره خبرې اترې کړې وی او د زهرو په حقله ئې تپوس کړې وی، لکه د باب په حديث کښې د زهر د ګډ کولو وجه ئې دا ښودلې ده چې: "إن كنت كاذبا نستريح، وإن كنت نبيا لم يضرك" چې ددې مفهوم نعوذبالله د نبی علیه السلام قتلول دی، هغه ښځې هم دا خپل مقصد بيان کړې وو چې: "أردت لأقتلك"[3] چې هرکله د دواړو مقصود يو شو نو په ظاهره دا معلومه شوه چې ددغه ښځې دا کار د ټولو مشرکانو د مشورې نتيجه وه، ددې وجې نه نبی علیه السلام د ټولو نه تپوس اوکړو او ورته ئې دا خبره په ګوته کړه چې مونږ ته ستاسو د مکر و فريب ښۀ پته ده.[4]

د عربو مشهور اديب ډاکټر منيرعجلانی د يو دستاويز انکشاف کړې دې کوم چې په آرمينی ژبۀ کښې وو، د هغې نه هم دا ثابتيږی چې نبی علیه السلام ته د زهرو ورکولو دا عمل د يو کس کار نۀ وو، بلکه په دې کښې د يهوديانو ټول قوم شامل وو، ددې دستاويز متن دلته

---

[1] ) البقرة/١٤٦)_

[2] ) المائدة/٨٢)_

[3] ) الصحيح لمسلم، كتاب الطب، باب السم، رقم (٥٧٠٥))_

[4] ) پورته متن کښې چې کوم مؤقف دې نو ددې تائيد د تاريخ نه هم کيږی، نبی علیه السلام ته چې کومې ښځې زهر ورکړې وو نو د هغې پلار حارث، تره يسار، خاوند سلام بن مشکم او ورور مرحب يا زبير د مسلمانانو په لاس باندې قتل شوې وو، ددې وجې نه دا ښځه د انتقام په اور کښې سوزيده او د نبی علیه السلام د قتل ئې ډيره زياته تمنا لرله، نو نورو يهوديانو هم ددې د استعمالولو منصوبه جوړه کړه، دغه شان د نبی علیه السلام په خوراک کښې زهر ګډ کړې شو. فتح الباری: ٤٩٧/٧، والروض الانف: ٢٤٣/٢، وعمدة القاري: ٩١/١٥، وسنن ابی داود، كتاب الديات، باب فيمن سقى رجلا سما.....، رقم (٥٩٠٩))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ذکر کولې شی: "يقال ان الامة اليهودية تحسد امة النصارى، ولما جاء محمد (ﷺ)، وعظم امره، اجتمع رؤساء اليهود، وقالوا الى انفسهم:

"لنضمه الينا؛ بان نزوده باحكام ديننا، فينشرها بين الناس، وبذلك نتغلب على النصارى وانا جيلهم".

ولكن المسلمين الذين انتصروا على اعدائهم، وفتحوا الفتوحات العظيمة لم يكترثوا لليهود، ولم يقيموا لهم وزنا؛ بل اضطروا احيانا الى قتالهم،

فعاد رؤساء اليهود الى الاجتماع والتفكير في اسلوب يتخلصون به من محمد.....، فاختاروا من نسائهم فتاة جميلة، وقالوا لها: "يجب عليك ان تدعى محمدا الى وليمة، وتقتليه".

فعلت المراة ما امرها الرؤساء به". انظر تعليقات على دلائل النبوة للبيهقي: ۴/۲۵۸.

کیدې شي چې د حضرت عمر رضی الله عنه په شهادت کښې هم ددې خلقو سازش شامل وي او دا د يو کس يعنی د "فيروز" عمل نۀ وی)۔

**ايا دې ښځې اسلام قبول کړې وو؟**: د بعضو رواياتو نه دا معلوميږی چې دې ښځې اسلام قبول کړې وو، لکه د امام زهری رحمه الله نه هم دا روايت نقل دې چې دې ښځې اسلام قبول کړې وو، هم په دې باندې امام سليمان اليتمی رحمه الله هم يقين کړې دې، د دوی په روايت کښې دا الفاظ هم دی، کوم چې د دغه ښځې د اسلام په قبوليت باندې دلالت کوی:

"وقد استبان لي الآن أنك صادق، وأنا أشهدك ومن حضر أني على دينك، وأن لا إله إلا الله، وأن محمداً عبده ورسوله". "اوس ماته دا خبره واضحه شوه چې تاسو رښتونی يئ او زۀ تاسو او نورو حاضرينو لره ګواه جوړوم او دا وايم چې زۀ ستاسو په دين باندې يم او دا چې د الله تعالی نه سوا هيڅوک معبود نشته او محمد (ﷺ) د هغۀ بنده او رسول دې".

دا جملې دغه ښځې هغه وخت اووئيلې چې کله هغې اوليدل چې په نبی عليه السلام باندې ددې زهرو اثر اونۀ شو، نو ددې نه پس نبی عليه السلام هغې ته معافی اوکړه، لکه څنګه چې د حافظ ابن حجر رحمه الله قول اوس د باب د اولنی حديث په تشريح کښې تير شو.[۱] د حافظ ابن حجر رحمه الله د صنيع نه هم دا معلوميږی چې هغوی واقعی طور سره دا ښځه په صحابياتو کښې شماری، ددې وجې نه هغوی ددې ښځې ذکر په "الاصابة" کښې په القسم الاول کښې کړې دې.[۲] والله اعلم بالصواب

**نبی بشر وی**: د باب په حديث کښې يهوديانو نبی عليه السلام ته د زهرو ورکولو وجه دا بيان کړه چې "وإن كنت نبيا لم يضرك" چې که تاسو واقعی نبی يئ نو دا زهر به په تاسو باندې اثر نۀ

---

[۱]) فتح الباری: ۷/۴۹۷، والمصنف لعبد الرزاق: ۶/۵۳، کتاب اهل الکتاب، هل يقتل ساحرهم؟ رقم (۱۰۰۵۳) والسيرة الحلبية: ۲/۷۷۰، غزوة خيبر والمرقاة: ۱۱/۷۴، کتاب الفضائل..... الفصل الثانی، رقم (۵۹۳۱)

[۲]) الاصابة في تمييز الصحابة: ۴/۳۱۴)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کوی لیکن د دوی دا خبره غلطه ده،د نبی دپاره دا ضروری نهٔ ده چې د زهرو اثر پری اونهٔ شی، نبی چونکه بشر وی ددې وجې نه پرې د زهرو اثر هم کیدې شی،د جادو اثر پرې هم کیدې شی(کمایاتی بعد ابواب)لکه څنګه چې نور انسانی عوارض نبی ته پیښیږی نو دغه شان دا څیزونه پرې هم اثر کولې شی.

**د نبی ﷺ معجزه:** په نبی ﷺ باندې چې ددې زهرو ظاهری اثر اونهٔ شو نو دا د نبی ﷺ معجزه وه،په عامو حالاتو باندې دا نهٔ شی قیاس کیدې،لیکن ددې زهرو اثر د نبی ﷺ د وفات په وخت کښې ښکاره شو،په صحیح مسلم شریف کښې د حضرت انس رضی الله عنه د روایت په آخره کښې راغلې دی چې د نبی ﷺ په تالو مبارک کښې ما ته د دغه زهرو اثرات ښکاره طور سره معلومیدل،د نبی ﷺ په وفات کښې یو ښکاره سبب دا زهر هم وو.[1]ددې وجې نه به حضرت عبدالله بن مسعود قسم خوړلو سره فرمائیل چې نبی ﷺ ته الله تعالی د شهادت مرګ ورکړې دې.[2]

**حقیقی مؤثر د الله تعالی ذات دې:** د باب د حدیث نه یو دا فائده معلومه شوه چې حقیقی مؤثر صرف د الله تعالی ذات دې،د هغهٔ د اجازت او د حکم نه بغیر هیڅ یو څیز نهٔ نقصان رسولې شی او نهٔ چاته څهٔ فائده ورکولې شی،اوګورئ!د دغه زهریله خوراک نه حضرت بشر رضی الله عنه فوراً متاثر شو او نبی ﷺ د هغې د فوری اثراتو نه بچ پاتې شو او دغه وخت پرې زهرو اثر اونهٔ کړو.[3]

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت په دې معنی کښې دې چې یهودیانو نبی ﷺ باندې د زهریله خوراک خوړلو کوشش اوکړو،نو دغه شان یهودیانو دهوکه بازی او خیانت اوکړو لیکن ددې باوجود نبی ﷺ ددې سازش ټول کردارونه معاف کړل،هم ددې نه ترجمه ثابتیږی چې په دې صورت کښې معاف کیدې هم شی او د ضرورت مطابق ورته نورې سزاګانې هم ورکړې کیدې شی.[4] والله اعلم بالصواب

---

[1] ) انظر الصحیح لمسلم،کتاب الطب،باب السم،رقم (۵۷۰۵)،وعمدة القاری:۹۲/۱۵،وکشف الباری،کتاب المغازی:۶۷۰،وتکملة فتح الملهم:۳۱۲/۴)_

[2] ) اخرجه الحاکم فی المستدرک:۶۰/۳،کتاب المغازی......رقم (۴۳۹۴)،قال عبدالله بن مسعود رضی الله عنه: لان احلف تسعا ان رسول الله ﷺ قتل احب الی من احلف واحدة انه لم یقتل؛وذلک ان الله عزوجل اتخذه نبیا،واتخذه شهیدا".وایضا الطبقات الکبری لابن سعد:۳۱۴/۸،من کلام ام بشر بن البراء رضی الله عنها)_

[3] ) عمدة القاری:۹۲/۱۵،وفتح الباری:۲۴۷/۱۰)_

[4] ) عمدة القاری:۹۱/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# ⑧ باب: دُعَاءِ الإِمَامِ عَلَى مَنْ نَكَثَ عَهْدًا

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته د امام بخاری رحمه الله مقصد او مطلب دادې چې که يو سړې وعده خلافي اوکړي نو ددهٔ په حق کښې امام ته بد دعا کول جائز دي.[1]

۲۹۹۹ :[2] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسًا - رضى الله عنه - عَنِ الْقُنُوتِ. قَالَ قَبْلَ الرُّكُوعِ. فَقُلْتُ إِنَّ فُلاَنًا يَزْعُمُ أَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ، فَقَالَ كَذَبَ. ثُمَّ حَدَّثَنَا عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ قَنَتَ شَهْرًا بَعْدَ الرُّكُوعِ يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ - قَالَ - بَعَثَ أَرْبَعِينَ أَوْ سَبْعِينَ - يَشُكُّ فِيهِ - مِنَ الْقُرَّاءِ إِلَى أُنَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَعَرَضَ لَهُمْ هَؤُلاَءِ فَقَتَلُوهُمْ، وَكَانَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - عَهْدٌ، فَمَا رَأَيْتُهُ وَجَدَ عَلَى أَحَدٍ مَا وَجَدَ عَلَيْهِمْ. [ر: ۹۵۷]

## رجال الحديث

①**ابوالنعمان:** دا ابوالنعمان محمد بن فضل السدوسی رحمه الله دي.د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب قول النبی صلی الله عليه وسلم: الدين النصيحة لله...... "کښې تيره شوې ده[3].

②**ثابت بن يزيد:** دا ثابت بن يزيد بصری رحمه الله دي.[4]

③**عاصم:** دا عاصم بن سليمان بن ابی مسلم الاحول رحمه الله دي.[5]

④**انس:** د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه حالات په کتاب الايمان، "باب من الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه"کښې راغلي دي.[6]

او دا ټول سند په بصريانو باندې مشتمل دي[7].

**خبرداري:** ددې حديث شريف پوره تشريح په کتاب الوتر کښې اوګورئ.

**يوه اهمه فائده:** د يو کافر په حق کښې خيرې کول د نبی عليه السلام عادت مبارک نهٔ وو، ترڅو چې به د نبی عليه السلام دا اميد وو چې دا کافر خپل باطل دين پريخودلې شي او اسلام قبلولې شي نو هغهٔ ته به ئې خيرې نهٔ فرمائيلې، اوګورئ انبی عليه السلام ته دا وئيلې شوې وو چې قبيلهٔ دوس ته

---

[1] ) عمدة القاری:۱۵/۹۱)_
[2] ) قوله: سالت انسا رضي الله عنه ":الحديث،مر تخريجه فی الوتر،باب القنوت قبل.....)_
[3] ) کشف الباری:۲/۷۶۸)_
[4] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الاذان،باب بدء الاذان)_
[5] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء،باب الماء الذی يغسل به شعر الانسان)_
[6] ) کشف الباری:۲/۴)_
[7] ) فتح الباری:۶/۲۷۳،وعمدة القاری:۱۵/۹۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خیرې اوکړې، لیکن نبی ﷺ د هغوی په حق کښې د هدایت دعا اوفرمائیله.لیکن ددې برخلاف چې هرکله بنوسلیم وعده خلافی اوکړه،غداری او خیانت ئې اوکړو نو نبی ﷺ د هغوی دپاره خیرې اوفرمائیلې،ځکه چې د هغوی د هدایت نه نبی ﷺ مایوسه شوې وو.نو الله تعالی د نبی ﷺ خیرې قبولې کړې او د نبی ﷺ رښتون والې ئې خلقو ته ښکاره کړو چې مونږ د خپل نبی هیڅ یو خبره نه رد کوو.(١).والله اعلم بالصواب

**دویمه فائده:** د مونځونو نه پس،دغه شان په خطبو کښې چې د مسلمانانو د دشمنانو او مخالفینو دپاره خیرې کیږی،د هغې اصل هم دا قصه ده،په کومه کښې چې نبی ﷺ د بنوسلیم دپاره د خیرو په طور یو میاشت پورې قنوت نازله لوستلې وه.نو ددې خبرې نه ددې کار جواز او مشروعیت ښه طریقې سره معلومیږی(٢).

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت واضح دې،ترجمه وعده خلافی کوونکو دپاره د خیرې کولو د جواز وه،هم دا جواز د باب د حدیث نه ثابتیږی.

## ⑨باب: أَمَانِ النِّسَاءِ وَجِوَارِهِنَّ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله دا مسئله بیانوی چې یوه ښځه چاته امان ورکړی او دا بیانوی چې که ښځه امان ورکړی نو ددې دا امان ورکول به معتبر وی.(٣).

د مسئلې تفصیل وړاندې راځی.

**د جوار معنی:** جُوار بکسر الجیم وضمها.د باب مفاعله مصدر دې،ددې معنی ده اجاره او د اجاره معنی ده چاته پناه ورکول،مدد کول او حفاظت کول(٤).اوس مطلب هم دا شو چې ښځه چاته امان هم ورکولې شی او پناه وغیره هم ورکولې شی.

٣٠٠٠ :(٥) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ أَنَّ أَبَا مُرَّةَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ ابْنَةِ أَبِي طَالِبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أُمَّ هَانِئٍ ابْنَةَ أَبِي طَالِبٍ تَقُولُ ذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ ،وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ،فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ «مَنْ هَذِهِ». فَقُلْتُ أَنَا أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ. فَقَالَ «مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ». فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ قَامَ،فَصَلَّى ثَمَانَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ،فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ،زَعَمَ ابْنُ

---

[1]) عمدة القاری:(١٥/٩٢)_

[2]) پورته حواله)_

[3]) عمدة القاری:١٥/٩٢،وارشاد الساری:(٥/٢٣٧)_

[4]) عمدة القاری:١٥/٩٢،وفتح الباری:٦/٢٧٣،وشرح الکرمانی:(١٣/١٣٥)_

[5]) قوله: ام هانی ابنة ابی طالب":الحدیث،مر تخریجه فی کتاب الغسل،باب التستر فی الغسل.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أُمِّي عَلِي أَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلاً قَدْ أَجَرْتُهُ فُلاَنُ بْنُ هُبَيْرَةَ . فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ يَا أُمَّ هَانِئٍ». قَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ وَذَلِكَ ضُحًى .[ر: ٢٧٦]

## رجال الحديث

①عبدالله بن يوسف: دا عبدالله بن يوسف تینسی رحمه الله دې.

②مالک: دا امام دارالهجرة مالک بن انس رحمه الله دې.ددې دواړو حضراتو تذکره د "بدء الوحی" په دويم حديث کښې تيره شوې ده.[1]

③ابو النضر: دا ابو النضر سالم بن ابی امیه رحمه الله دې چې د عمر بن عبيدالله مولی دې.[2]

④ابومره: دا ابومره يزيد بن مره رحمه الله دې چې د ام هانی رضی الله عنها مولی دې.د دوی حالات په کتاب العلم، "باب من قعد حيث ينتهى به المجلس....... " کښې راغلي دی.[3]

⑤ام هانی: دا د نبی عليه السلام د ترۀ لور حضرت ام هانی رضی الله عنها ده.[4]

**د حديث شريف ترجمه:** حضرت ام هانی رضی الله عنها فرمائی چې د فتح مکه په کال زۀ د نبی عليه السلام خدمت اقدس کښې حاضره شوم، اومې ليدل چې نبی عليه السلام غسل کوی او حضرت فاطمه رضی الله عنها د سترپوشئ دپاره ولاړه وه، نو ما ورته سلام اوکړو، نبی عليه السلام اوفرمائيل چې څوک دی؟ ما جواب کښې اووئيل چې ام هانی يم.نو نبی عليه السلام ماته پخير راغلې اووئيل، هرکله چې د غسل نه فارغ شو نو نيت ئې اوتړلو او اودريدل او بدن باندې يو کپړې اچولو سره ئې اتۀ رکعته اوکړل.ما اووئيل يا رسول الله! زما د ورور حضرت علی خيال دې چې هغه به هغه سړې قتلوی چاته چې ما پناه ورکړې ده، يعنی فلان ابن هبيره، نبی عليه السلام اوفرمائيل ائې ام هانی! تا چې چاته پناه ورکړې ده نو هغۀ ته مونږ هم پناه ورکړې ده او دا د څاښت وخت خبره ده.

**ښځه امان ورکولې شی:** د باب حديث په دې مسئله کښې واضح دی چې ښځه امان ورکولې شی، دغه شان دا چې ښځې کوم سړی ته امان ورکړې وی نو هغۀ لره قتلول حرام دی، د نبی عليه السلام لورې مبارکې حضرت زينب رضی الله عنها هم خپل خاوند حضرت ابو العاص بن الربيع رضی الله عنه ته امان ورکړې وو.[5] ددې نه هم جواز واضح دې، هم دا د حجاز او د عراق د جمهورو يعنی د

---

[1] ) كشف البارى: ٢٨٩/١_ ٢٩٠. امام مالک دپاره نور اوګورئ، كشف البارى: ٨٠/٢)_

[2] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء، باب المسح على الخفين)_

[3] ) كشف البارى: ٢١٤/٣)_

[4] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الغسل، باب التستر فى الغسل عند الناس)_

[5] ) روى الطبرانى عن انس رضی الله عنه: ان زينب بنت رسول الله ﷺ اجارت ابا العاص، فاجاز النبى ﷺ جوارها.....=". المعجم الكبير: ٤٢٥/٢٢_ ٤٢٦، ذكر سن زينب و وفاتها، ومن اخبارها، رقم (١٠٤٨_ ١٠٤٩) وقد اخرجه الطبرانى عن ام سلمة رضی الله عنها ايضا. انظر معجمة الكبير: ٢٧٥/٢٢، وما اسندت ام سلمة رضی الله عنها، ابو بكر بن عبدالرحمن.....عن ام سلمة.......رقم (٥٩٠)، وكذا انظر: ٢٢٥/٢٢، .....[بقيه برصفحه آننده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام اعظم ابوحنيفه، امام مالک، امام شافعي، احمد، ابوثور، اسحاق بن راهويه، ثوري او امام اوزاعی رحمهم الله وغيره مذهب دې[1]. البته په مالکيه کښې دوو حضراتو عبدالملک بن الماجشون او سحنون رحمهما الله د جمهورو نه جدا دا وئيلي دی چې د ښځې اجازت ورکول د امام په اجازت باندې موقوف دی، که امام دا پناه ورکول نافذ کړی خو صحيح ده ورنه د ښځې پناه ورکول مردود او ناقابلِ قبول ده، ليکن دا قول شاذ دې[2]. والقول ماقاله الجمهور. والله اعلم بالصواب

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ترجمة الباب سره د باب د حديث شريف مناسبت په دې جمله کښې دې، "قد اجرنا من اجرتِ"[3]. نو ددې نه ددې خبرې جواز معلوميږی چې د ښځې چاته امان ورکول صحيح او جائز دی.

## ⑩ باب: ذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ وَجِوَارُهُمْ وَاحِدَةٌ يَسْعَى بِهَا أَدْنَاهُمْ

يعنی د مسلمانانو ذمه او امان يو دې، معمولی سړې هم ددې کوشش کولې شی.

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته د ترجمة الباب مقصد دادې چې که د مسلمانانو يو جماعت يا يو طبقه يو حربی کافر ته امان ورکولې شی نو ددې حکم يو دې، د چا اختلاف سره به دا حکم نۀ بدليږی، دا امان به د ټولو له طرفه معتبر وی. مطلب دا شو چې که يو حربی کافر ته د مسلمانانو له طرفه امان ورکولې شی نو دا امان به د ټولو له طرفه وی، خواه امان ورکوونکې يو معمولی درجې والا سړې وی يا د شريفې طبقې سړې وی، غلام وی يا آزاد، سړې وی يا ښځه، ددې نه پس چاته دا حق نشته چې دا امان ختم کړی او چاته چې امان ورکړې شوې دې نو هغه ته څۀ قسم نقصان اورسوی[4].

په ترجمة الباب کښې مذکور لفظ د "ادناهم" نه مراد "اقلهم عدداً" دې، يعنی يو سړې هم امان ورکولې شی، خواه سړې وی يا ښځه.....[5].

---

بقيه ازحاشيه گذشته] رقم (١٠٤٧))_ايضا انظر نصب الراية فی تخريج احاديث الهداية:٣٩٦/٣، رقم (٥٨١٢_٥٨١٣))_

[1]) شرح ابن بطال:٣٤٩/٥، وعمدة القاری:٩٣/١٥، څلورو وارو مذهبونو دپاره اوګورئ، المغنی: ٩١٩٥/، والام :٢٨٤/٤/٢، والمدونة الکبری:٤٦/٢، والهداية:٥٦٤/٢، وفتح القدير:٢١٠/٥، فصل الامان)_

[2]) قا الحافظ فی الفتح(٢٧٣/٦): قال ابن المنذر: اجمع اهل العلم علی جواز امان المراة. الا شيئا ذکره عبد الملک_يعنی ابن الماجشون صاحب مالک_لا احفظ ذلک عن غيره، قال: ان امر الامان الی الامام، وتاول مما ورد مما يخالف ذلک علی قضايا خاصة، قال ابن المنذر: وفی قول النبی ﷺ _يسعی بذمتهم ادناهم "دلالة علی اغفال هذا القائل")_

[3]) عمدة القاری:٩٣/١٥)_

[4]) عمدة القاری:٩٣/١٥، وارشاد الساری:٢٣٨/٥، وفتح الباری:٢٧٤/٦)_

[5]) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ایا د غلام امان ورکول معتبر دی؟** پورته چې کوم مذهب نقل کړې شو نو دا د جمهورو دې،د امام مالک،شافعي،احمد،سفیان ثوری،اوزاعی،لیث او ابو ثور رحمهم الله (١) مسلک هم دادې چې که یو غلام چاته امان ورکړی نو دا به معتبر وی،په احنافو کښې د امام محمد رحمه الله (٢) مسلک هم دا دې.او امام اعظم او امام ابویوسف رحمهما الله دا وائی چې د غلام امان ورکول به هغه وخت معتبر وی چې کوم وخت ددهٔ مالک دهٔ ته د قتال اجازت هم ورکړی،مطلب دادې چې د عبد ماذون(چاته چې اجازت ورکړې شوې وی)امان ورکول معتبر دی،د غیرماذون یعنی دعبد محجور امان غیرمعتبر دې.اوس په عبد محجور کښې ګویا ددې حضراتو اختلاف دې،د قتال دپاره چې کوم غلام ته اجازت ورکړې شوې وی نو هغهٔ کښې هیڅ اختلاف نشته.(٣).

**د ماشوم امان ورکول:** ابن المنذر رحمه الله فرمائیلي دی چې د ماشوم د امان ورکولو په غیرمعتبر کیدو باندې د اهلِ علم اجماع ده.لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله ددې کلام سره اختلاف کوی او فرمائی چې دا حکم مطلق نهٔ دې،بلکه مقید دې،لکه د صبی مراهق او د ممیز او فهیم(چې په ښهٔ بده باندې پوهیږی)امان ورکول معتبر دی.(٤).لیکن په خپله امام شافعی رحمه الله د ممیز ماشوم امان ورکول غیرمعتبر ګنړی،کالصبی الغیر الممیز(٥).

د احنافو په نزد ددې مسئلې تفصیل دادې چې که د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ممیز ماشوم که د قتال نه منع کړې شوې وی نو د هغهٔ امان غیرمعتبر دې لیکن امام محمد رحمه الله ددې ماشوم د امان د صحت قائل دې چې ددهٔ امان ورکول صحیح او معتبر دی.

او که ماشوم ممیز وی او د قتال اجازت ورته ورکړې شوې وی نو د ټولو په نزد ددهٔ امان مقبول او معتبر دې.(٦).د امام مالک رحمه الله شاګرد سحنون وائی چې د ممیز ماشوم امان مطلقاً معتبر دې،او د دوی نور شاګردان د ماشوم امان د امام په اجازت باندې موقوف ګنړی(٧). او د امام احمد رحمه الله نه په دې سلسله کښې دوه روایتونه نقل شوې دی،په یو روایت کښې د صحت قائل دې او په دویم کښې د غیرمعتبر کیدو قائل دې(٨).

---

[1] )المدونة الکبری:٤٢/٢،والمغنی: ٩١٩٥/،وکتاب الام:٢٨٤/٤،باب فی الامان،واعلام الحدیث:١٤٧٠/٢

[2] ) الهدایة:٥٦٥/٢)_

[3] ) پورته حواله،والفتاوی الهندیة:١٩٨/٢)_

[4] ) فتح الباری:٢٧٤/٦)_

[5] ) کتاب الام:٢٨٤/٤/٢،باب فی الامان، واذا امن من دون البالغین والمعتوه قاتلوا اولم یقاتلوا لم نجز امانهم)

[6] ) الهدایة مع البنایة للعینی:١٢٩/٧،کتاب السیر،فصل،وکتاب السیر الکبیر مع شرحه للسرخسی:١٧٨/١/١)

[7] ) المدونة الکبری:٤١/٢،کتاب الجهاد،فی امان المراة والعبد والصبی،والمنتقی:٣٤٦/٤)_

[8] ) المغنی لابن قدامة: ١٩٦:٩)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د مجنون امان ورکول**: د امت د جمهورو علماؤ په نزد د مجنون او د ليونى امان ورکول غيرمعتبر دې، د کافر په شان په دې کښې هم د چا څۀ اختلاف نشته.([1]).

٣٠٠١ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ خَطَبَنَا عَلِيٌّ فَقَالَ مَا عِنْدَنَا كِتَابٌ نَقْرَؤُهُ إِلاَّ كِتَابُ اللَّهِ، وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ فَقَالَ فِيهَا الْجِرَاحَاتُ وَأَسْنَانُ الإِبِلِ، وَالْمَدِينَةُ حَرَمٌ مَا بَيْنَ عَيْرٍ إِلَى كَذَا، فَمَنْ أَحْدَثَ فِيهَا حَدَثًا أَوْ آوَى فِيهَا مُحْدِثًا، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لاَ يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلاَ عَدْلٌ، وَمَنْ تَوَلَّى غَيْرَ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ مِثْلُ ذَلِكَ، وَذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ وَاحِدَةٌ، فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ مِثْلُ ذَلِكَ.[ر: ١٧٧١]

**قوله**: "خطبنا علي....": الحديث، مر تخريجه في كتاب العلم، باب كتابة العلم.

## رجال الحديث

① **محمد**: د محمد نه مراد محمد بن سلام بيکندى دې.ددې وضاحت ابن السکن رحمهما الله کړې دہ.د دوى حالات په کتاب الايمان، "باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: أنا أعلمكم بالله......." کښې تير شوې دى.([2]).

② **وکيع**: دا د حديثو مشهور امام حضرت وکيع بن الجراح رحمه الله دې.د دوى حالات په کتاب العلم، "باب كتابة العلم" کښې تير شوې دى.([3]).

③ **الاعمش**: دا امام سليمان بن مهران دې چې مشهور په اعمش رحمه الله دې.د دوى تذکره په کتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې راغلې دہ.([4]).

④ **ابراهيم التيمى**: دا مشهور محدث، د وخت امام ابراهيم بن يزيد بن شريک رحمه الله دې.د دوى تذکره په کتاب الايمان، "باب خوف المؤمن من أن......" کښې تيره شوې دہ.([5]).

⑤ **أبيه**: د ابيه نه مراد د حضرت ابراهيم والد يزيد بن شريک رحمه الله دې([6]).

⑥ **على**: دا د نبى عليه السلام څوم، څلورم خليفه، حضرت على ابن ابى طالب رضي الله عنه دې.د دوى تفصيلى تذکره په کتاب العلم "باب إثم من كذب النبى صلى الله عليه وسلم" کښې بيان شوې دہ.([7]).

---

[1]) پورته حواله، وفتح البارى ٦/ ٢٧٤، والسير الكبير مع السرخسى: ١/١/ ٢٠٠، كتاب الامان، رقم، (٤٦))_

[2]) فتح البارى: ٦/ ٢٤٧، وكشف البارى: ٢/ ٩٣)_

[3]) كشف البارى: ٤/ ٢١٩)_

[4]) كشف البارى: ٢/ ٢٥١)_

[5]) كشف البارى: ٢/ ٥٤٤)_

[6]) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ: كتاب فضائل المدينة، باب حرم المدينة)_

[7]) كشف البارى: ٤/ ١٤٩)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**خبرداري:** د حضرت على رضي الله عنه د باب د حديث تشريح مونږ په كتاب العلم، "باب كتابة العلم" [۱] او "فضائل المدينة، باب حرم المدينة" كښې بيان كړې ده.

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث شريف مناسبت په دې جمله كښې دې: "وذمة المسلمين واحدة" چې د مسلمانانو ذمه او عهد يو وى، لهذا كه يو عاقل بالغ مسلمان چاته پناه وركړى نو دا به معتبر وى. [۲]

حضرت امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې ذكر كړې شوې كلماتو "يسعى بذمتهم أدناهم" په ذريعې سره هغه روايت طرفته اشاره فرمائيلې ده، كوم چې وړاندې د سفيان عن الاعمش طريق سره "باب إثم من عاهد ثم غدر" كښې راځى، د هغې الفاظ دادى: "و ذمة المسلمين واحدة، يسعى بها أدناهم" هم دا معنى د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه هم مرفوعاً روايت ده، د هغوى د روايت تخريج امام احمد. [۳] او ابن ماجه رحمهما الله وغيره [۴] كړې دې، فرمائى: "المسلمون تتكافؤ دماؤهم، وهم يد على من سواهم، يسعى بذمتهم أدناهم" [۵].

## (۱۱) باب: إِذَا قَالُوا صَبَأْنَا وَلَمْ يُحْسِنُوا أَسْلَمْنَا

يعنى دا باب ددې خبرې په بيان كښې دې چې كله مشركان "صبانا" اووائى او "أسلمنا" ښه طريقې سره اونۀ وائى.

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى رحمه الله دا وئيل غواړى چې كه د جنګ دوران كښې مشركان دا اووائى چې صبانا يعنى مونږ د خپل زوړ دين نه واوړيدو او دې جملې سره د دوى مقصد داوى چې مونږ اسلام قبلوو، ستاسو په دين كښې داخليږو، ليكن "أسلمنا" اونۀ وائى نو آيا د دوى دا وينا چې "صبانا" ددې دپاره كافى ده چې دوى سره جنګ بندى اوكړې شى او د دوى مزيد قتل بند كړې شى. [۶]، نو د امام بخارى رحمه الله جواب په اثبات كښې دې چې آو اوس به دوى سره جنګ نۀ كيږى.

او علامه ابن المنير رحمه الله فرمائى چې د ترجمة الباب مقصد دادې چې د مقصدونو اعتبار په

---

[۱] ) كشف البارى، كتاب العلم: ٤/٢٢٣-٢٦١ )_
[۲] ) فتح البارى: ٦/ ٢٧٤، وعمدة القارى: ١٥/ ٩٤، وإرشادالسارى: ٥/٢٣٨)_
[۳] ) مسند الامام احمد: ٢/٦٥٧-٦٥٨، مسند عبدالله بن عمرو...... "رقم(٦٧٩٧) وأيضاً برقم(٦٦٩٢ و٧٠٩٢)_
[۴] ) سنن ابن ماجه، كتاب الديات، باب المسلمون تتكافؤ دمائهم، رقم(٢٦٨٥) وعن ابن عباس أيضاً، رقم(٢٦٨٣)
[۵] ) فتح البارى: ٦/ ٢٧٤، وعمدة القارى: ١٥/ ٩٤، وإرشاد السارى: ٥/٢٣٨، دغه شان اوګورئ، المصنف لابن أبى شيبة: ١٨/١٠١-١٠٧، وكتاب السير، با فى أمان المرأة والمملوک)_
[۶] ) فتح البارى: ٦/ ٢٧٤، وعمدة القارى: ١٥/ ٩٤، شرح ابن بطال: ٥/٣٥٢)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دليل او قرينو سره وى، دا دليل خواه لفظي وى يا غير لفظي، خواه په هر قسم ژبه كښې چې وى[1]. دلته مناسب رائې هم د ابن المنير رحمه الله معلومېږى چې ترجمة الباب عام او ساتلې شى او دا اووئيلې شى چې لفظ د "صبانا" سره ترجمه خاص نۀ ده، بلكه هرقسم جمله چې دا مفهوم ادا كړى نو هغه به معتبر وى، دغه شان دا چې امان په هرقسم ژبه كښې وركړې شى نو هغه به معتبر وى، مطلوب صرف دادې چې دغه كلمه يا دغه جمله امان وركوى او مضمون امان او ذمې ته شامل وى.

**د كلمه "صبانا" صرفى او لغوى تحقيق:** صبانا" د باب نصر نه د جمع متكلم ماضى صيغه ده، ددې مصدر "صبوًا" دې، ددې معنى ده مذهب بدلول، وئيلې شى: "صبا فلان: إذا خرج من دينه إلى دين غيره" هم په دې بنياد باندې د مكې مكرمې مشركانو نبى عليه السلام ته "صابى" وئيلې، ځكه چې د مشركانو د خيال او ګمان مطابق نبى عليه السلام د خپل پلار نيكۀ د مذهب بت پرستى پرېخودلې وه او دويم دين يعنى اسلام ئې اختيار كړې وو.[2]

**وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ فَجَعَلَ خَالِدٌ يَقْتُلُ فَقَالَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- «أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ».. [ر: ٤٠٨٤]**

او حضرت ابن عمر رضى الله عنهما فرمائى چې حضرت خالد بن وليد (هغوى) قتلول، نو نبى عليه السلام اوفرمائيل، اې الله! خالد چې څۀ اوكړل، نو زۀ د هغې نه د براءت اعلان كوم.

**د مذكوره تعليق تخريج:** امام بخارى رحمه الله پورتنې تعليق مسنداً په كتاب المغازى كښې[3]، دغه شان كتاب الاحكام كښې[4] نقل كړې دې.

ددې نه علاوه امام نسائى رحمه الله هم دا حديث موصولاً روايت كړې دې[5].

**په تعليق كښې د مذكوره واقعې تفصيل:** د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما په پورتنى ذكرشده تعليق كښې ډېر زيات اجمال او اختصار دې، په دې كښې چې كومه واقعه ذكر ده نو د هغې خلاصه دا ده چې حضرت خاليد بن وليد رضى الله عنه نبى عليه السلام يو لښكر امير جوړ كړو او د تبليغ په غرض سره ئې د بنوجذيمه په طرف روان كړو، دا واقعه د غزوۀ حنين نه وړاندې ده، هركله چې هغوى ته حضرت خالد بن وليد رضى الله عنه د اسلام دعوت وركړو نو هغې خلقو صحيح طريقې سره د اسلام اقرار اونۀ كړو، د "اسلمنا" په ځائې ئې "صبانا" اووئيل، مقصد ئې دا وو چې مونږ ستاسو دين قبلوو، ليكن حضرت خالد بن وليد رضى الله عنه د هغوى دا اقرار قبول نۀ كړو او د ظاهر لفظ په بنياد باندې ئې د هغوى قتلول شروع كړل، كله چې نبى عليه السلام ته ددې اطلاع

---

[1] ) فتح البارى:٦/٢٧٤، وعمدة القارى:١٥/٩٤، والمتوارى على تراجم أبواب البخارى:١٩٩)_

[2] ) عمدة القارى:١٥/٩٤، وفتح البارى:٨/٥٧-٥٨، والقاموس الوحيد، مادة "صبا")_

[3] ) صحيح البخارى، كتاب المغازى، باب بعث النبى صلى الله عليه وسلم خالد بن وليد......رقم(٤٣٣٩))_

[4] ) صحيح البخارى، كتاب الاحكام، باب إذا قضى الحاكم بجور أو......رقم(٧١٨٩))_

[5] ) سنن النسائى، كتاب آداب القضاة، باب الرد على الحاكم إذا قضى بغير الحق، رقم(٥٤٠٧))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوشوه نو ډير زيات خفه شو او وې فرمائيل، "اللهم! إني أبرأ إليك مما صنع خالد".
په دې كار باندې د خفګان كولو او د نبى ﷺ د ناراضه كيدو نه هم په واضحه توګه دا معلوميږى چې په هرقوم كښې ددې مفهوم دپاره يعنى د اسلام د قبلولو دپاره كوم الفاظ استعماليږى نو د هغې اعتبار به كولې شى،هم دغه الفاظ به د هغوى له طرفه كافى شافى ګڼړلې شى.
په مذكور واقعه كښې حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه چونكه اجتهاد كړې وو،چې په هغې كښې ترينه خطا واقع شوه،ددې وجې نه نبى ﷺ هغه معذور اوګڼړلو او هم ددې وجې نه ئې قصاص نۀ كړو،بلكه نبى ﷺ حضرت على رضي الله عنه ته مال وركړو او د بنو جذيمه طرفته ئې روان كړو او د هغوى د مقتولينو ديت د بيت المال نه ادا كړې شو.[1]
**د حديث شريف نه مستنبطه يو مسئله:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چې كه قاضى او حاكم يو ظالمانه فيصله اوكړى يا د اهل علمو د اقوالو او د دوى د رائې نه خلاف څۀ فيصله اوكړى نو دا فيصله به بالاتفاق مردود وى.البته،كه دا فيصله د اجتهاد په رڼړا كښې وى يا حاكم د خپل كار څۀ مناسب تاويل پيش كړى،لكه څنګه چې حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه اوكړل نو په دې صورت كښې به حاكم ګناهګار خونۀ وى ليكن ضمان به پرې لازم شى عند عامة أهل العلم.
بيا د امت د فقهاؤ په دې خبره كښې اختلاف دې چې دا ضمان به څوک ادا كوى؟آيا د بيت المال نه به ادا كولې شى،يا به ئې د حاكم خاندان(عاقله)ادا كوى؟
①نو د حضرت امام اعظم ابوحنيفه،امام ثورى،احمد او اسحاق رحمهم الله قول دادې چې كه دا فيصله د څۀ قتل يا د زخمى كولو وى نو ديت به د بيت المال نه ادا كولې شى.
②د امام شافعى،اوزاعى او د صاحبينو رحمهم الله مسلک دادې چې مذكوره ديت به د حاكم په عاقله او خاندان باندې لازم وى،د حاكم خاندان به دا ضمان ادا كوى.
③ابن الماجشون رحمه الله خو دا وائى چې په دې كښې بالكل ضمان نشته[2].
**ترجمة الباب سره د مذكوره تعليق مناسبت:** ترجمة الباب سره د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما ددې مذكوره تعليق مناسبت په ظاهره واضح نۀ دې څكه چې ترجمه خو د "إذا قالوا: صبأنا..... "وه،ليكن ددې لاندې چې كوم حديث ذكر شو نو هغې كښې ددې خبرې تذكره نشته.
نو ددې اشكال جواب دادې چې د امام بخارى رحمه الله يو مشهور عادت دا هم دې چې هغوى بعضې وخت كښې د حديث يو جمله يا يو جزء ترجمه اوګرځوى،بيا دغه جمله يا جزء ترجمه كښې نۀ ذكر كوى نو دلته هم دغه معامله ده چې ترجمه خو ئې د "صبأنا" قائمه كړه ليكن دا

[1] انظر صحيح البخارى،كتاب المغازى،باب بعث النبى صلى الله عليه وسلم خالد بن وليد إلى......رقم (٤٣٣٩)،وفتح البارى:٦/٢٧٤،وعمدة القارى:١٥/٩٤)_
[2] شرح ابن بطال:٨/ ٢٦٠_٢٦١،كتاب الاحكام،باب إذا قضى الحاكم بجور......وعمدة القارى:١٥/٩٤، وفتح البارى:٦/٢٧٤،والمغنى:٨/٢٨٨،آخر فصل من كتاب الجراح،رقم(٦٧٧٣))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ئې په حديث كښې ذكر نۀ كړه، بلكه ددې حديث يوه حصه ئې نقل كړه او ددې طرفته ئې اشاره اوكړه او هم په دې ئې اكتفاء او بس والې اوكړو.(١).

وَقَالَ عُمَرُ إِذَا قَالَ مَتْرَسْ. فَقَدْ آمَنَهُ، إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ الأَلْسِنَةَ كُلَّهَا.. [ر:٢٩٨٩]

او حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه اوفرمائيل چې كله يو مسلمان چاته داسې اووائى چې مۀ ويريږه نو حقيقت كښې ورته دۀ امان او پناه وركړه، ځكه چې الله تعالى خو په ټولو ژبو باندې پوهيږى.

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق امام عبدالرزاق صنعانى رحمه الله په خپل "مصنف" كښې د ابو وائل طريق سره موصولاً نقل كړې دې.(٢).

**د حضرت عمر رضي الله عنه مكمل فرمان:** پورته ذكر شوې كلمات يعنى "**إذا قال: مترس، فقد آمنه، إن الله يعلم الالسنة كلها**" د حضرت عمر رضي الله عنه د فرمان يو جزء دې، كوم چې دوى ملک فارس كښې يو لښكر ته د هدايت نامې په طور ليږلې وو، هغه لښكر كوم چې په جهاد كښې مصروف وو، مكمل متن لاندې ذكر كولې شى:

"**عن أبي وائل قال: جاءنا كتاب عمر ونحن نحاصر قصر فارس، فقال: إذا حاصرتم قصراً فلا تقولوا: انزلوا على حكم الله، فانهم لا يدرون ما حكم الله؟ ولكن أنزلوهم على حكمكم، ثم اقضوا فيهم، وإذا لقي الرجل الرجل، فقال: لا تخف، فقد آمنه، وإذا قال: مترس، فقد امنه، إن الله يعلم الالسنة كلها**"(٣).

يعنى: "د حضرت ابو وائل رضي الله عنه نه روايت دې چې مونږ ته د حضرت عمر رضي الله عنه يو خط راغئ په داسې حالت كښې چې مونږ د فارس د محل محاصره كړې وه، په هغې كښې ئې فرمائيلې وو چې كله تاسو د يو محل (يا د قلعه) محاصره اوكړئ نو داسې مۀ وايئ چې د الله تعالى فيصله قبلولو سره لاندې راشئ، ځكه چې هغوى ته معلومه نۀ ده چې د الله تعالى فيصله څۀ ده؟ بلكه هغوى په خپله فيصله باندې لاندې راولئ، چې كله هغوى راكوز شى نو فيصله اوكړئ، چې كله يو بنده د بل بنده سره ملاقات اوشى او هغه ورته اووائى چې مۀ ويريږه. نو حقيقت كښې ورته دې ويونكى امان وركړو او كه "مترس" اووائى نو بيا ئې هم امان وركړو، ځكه چې الله تعالى خو په ټولو ژبو باندې پوهيږى".

**د "مترس" لغوى تحقيق او ضبط:** "مترس" د فارسئ ژبې جمله ده، ددې معنى ده "مۀ ويريږه" او دا جمله د دوو ځيزونو نه مركبه ده، د ميم او ترس نه، ميم خو د اهل فارس په نزد د نفى معنى وركوى، او ترس د امر صيغه ده د ترسيدن نه، ددې معنى ده ويريدل، اوس ددې جملې معنى دا شوه چې "لاتخف" يعنى مۀ ويريږه.(٤).

---

(١) فتح البارى: ٦/ ٢٧٤، وعمدة القارى: ١٥/ ٩٤)_

(٢) المصنف لعبد الرزاق: ٥/ ١٥٠-١٥١، كتاب الجهاد، باب دعاء العدو، رقم (٩٤٩٢) و (٩٤٩٤))_

(٣) پورته حواله، وعمدة القارى: ١٥/ ٩٤، وتغليق التعليق: ٣/ ٤٨٣، وفتح البارى: ٦/ ٢٧٤-٢٧٥))_

(٤) عمدة القارى: ١٥/ ٩٤، وفتح البارى: ٦/ ٢٧٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې نه علاوه د حديث د عالمانو ددې جملې په ضبط كښې هم اختلاف دې.امام اصيلى رحمه الله خو دا د ميم او د تاء فتحې او د راء سكون سره ضبط كړې ده او ابو ذر ميم مكسور او تاء ساكن ښودلې ده.(١).حافظ ابن حجر رحمه الله دا كلمه ميم مفتوحه،تاء مشدده او راء ساكنه سره ضبط كړې ده،بيا فرمائى: "وقد تخفف التاء،وبه جزم بعض من لقيناه من العجم"(٢)

او بعضې حضراتو دا كلمه د تاء سكون او د راء فتحې سره لوستلې ده،ليكن د علامه عينى رحمه الله د قول مطابق راجح ضبط د امام اصيلى رحمه الله دې.چې ددې طرفته حافظ رحمه الله هم په دې خپل قول كښې اشاره كړې ده"وبه جزم بعض من لقيناه من العجم"(٣).

**قوله: وقال:تكلم لا بأس.:** او حضرت عمر رضي الله عنه هرمزان ته اوفرمائيل.هيڅ خبره نۀ ده،خبره كوه.

ددې جملې تعلق يو بلې واقعې سره دې،چې د هغې تفصيل د كتاب الجزيه په شروع كښې راغلې دې.(٤).

د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې،د هغې خلاصه داده چې د فارس ښار د تُستَر د محاصرې دوران كښې هرمزان گرفتار شو،بيا دې د حضرت انس رضي الله عنه په ملګرتيا كښې د حضرت عمر رضي الله عنه په خدمت كښې روان كړې شو،چې كله دۀ سره خليفه ثانى خبرې اترې كول غوښتل نو دې خاموشه شو،په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل،"تكلم،لا بأس عليك"ددې نه پس د دواړو مينځ كښې خبرې اترې شروع شوې،چې د هغې تفصيل اوړد دې.

حضرت انس رضي الله عنه فرمائى چې بيا حضرت عمر رضي الله عنه د هرمزان د قتل احكامات جارى كول اوغوښتل نو حضرت انس رضي الله عنه اووئيل چې دا خو تاسو نۀ شئ كولې،ځكه چې تاسو خو دۀ ته"تكلم لا بأس عليك"وئيلې دى،حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل آيا تاسو سره نور هم څوک شته چې ددې خبرې گواهى وركړى چې ما دا جمله وئيلې ده؟نو حضرت زبير رضي الله عنه هم د حضرت انس رضي الله عنه موافقت اوكړو، په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه هرمزان قتل نۀ كړو،بيا وروستو هرمزان اسلام قبول كړو.(٥).

**د مذكوره اثر تخريج:** د حضرت عمر رضي الله عنه مذكوره اثر مختصراً امام ابن ابى شيبه په خپل مصنف كښې(٦)او يعقوب بن سفيان په خپل تاريخ كښې نقل كړې دې،دغه شان سعيد بن

---

(١) عمدة القارى:١٥/٩٤-٩٥_

(٢) فتح البارى:٦/٢٧٥_

(٣) پورته حواله،وعمدة القارى:١٥/٩٥_

(٤) انظر باب الجزية والموادعة مع أهل الذمة،د هرمزان د اسلام د قبلولو واقعه)_

(٥) عمدة القارى:١٥/٩٥،وفتح البارى:٦/٢٧٥،والمصنف لابن أبى شيبة:١٨/١٠٩-١١٠،كتاب السير،باب فى الأمان،ما هو؟وكيف هو؟رقم(٣٤٠٨٤)،وكتاب البعوث والسرايا:١٨/٣٠٤،ما ذكر فى تستر،رقم(٣٤٥٠٦)

(٦) المصنف لابن ابى شيبة:١٨/١٠٩-١١٠،رقم(٣٤٠٨٤)،وكتاب البعوث والسرايا:١٨/٣٠٤،رقم (٣٤٥٠٦)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

منصور په خپل سنن کښې([1]) ددې تخریج کړې دې([2]).

**د مذکوره اثر نه یو معلومه شوې فائده:** علامه ابن المنیر رحمه الله فرمائی چې د مذکوره اثر نه دا فائده معلومه شوه چې که یو عام حاکم خپله یود فیصله هیره کړی او دوه سړی گواهی اوکړی چې حاکم دا فیصله کړې وه نو په حاکم باندې به دا لازم وی چې په هغه فیصله باندې عمل اوکړی او هغه نافذه کړی.دغه شان که چرته حاکم د یو کس په شهادت قبلولو کښې پریشان شی،په دې کښې توقف اوکړی،بیا دویم کس د اولنی کس په موافقت کښې گواهی ورکړی نو اوس شک او شبهه ختمه شوه او دې سره به د اولنی کس گواهی هم نۀ متاثره کیږی.([3]).والله اعلم بالصواب

**ترجمة الباب سره د تعلیق مناسبت:** ترجمة الباب سره د مذکوره تعلیق مناسبت په دې معنی کښې دې چې په تعلیق کښې دا راغلې دی چې امان ورکوونکې **لاتخف** اووائی یا **مترس**،یا **تکلم لاباس**،نو دې سره به امان متحقق شی،ځکه چې دا ټولې جملې په امان ورکولو باندې دلالت کوی،خواه هره ژبه چې استعمال کړی یا هرقسم تعبیر چې وی،نو اولنئ دواړه جملې خو ظاهراً هم په دې خبره باندې دلالت کوی چې د کوم سړی په مخکښې دا جملې اووئیلې شی نو مراد د دینه امان دې او د دریمې جملې دلالت په دې معنی کښې دې چې مخاطب ته دا وئیلې کیږی چې تۀ بې ویرې او بې خطرې خبرې اترې کوه،تاته به هیڅ هم نۀ وئیلې کیږی او هم دا امان دې،لکه څنګه چې مذکوره واقعه هم په دې باندې دلالت کوی.

## ⑫ باب: الْمُوَادَعَةِ وَالْمُصَالَحَةِ مَعَ الْمُشْرِكِينَ بِالْمَالِ وَغَيْرِهِ، وَإِثْمِ مَنْ لَمْ يَفِ بِالْعَهْدِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله ددې کار د مشروعیت او جواز ښودل غواړی چې که مشرکانو سره د مصالحت کولو په وخت د مال وغیره ادا کولو ضرورت پیښ شی نو دا جائز دی.تفصیل وړاندې راځی.([4]).

په ترجمة الباب کښې چې کوم لفظ د "وغیره" راغلې دې نو ددې عطف په "بالمال" دې چې مشرکانو ته مال هم ادا کیدې شی،ددې نه علاوه قیدیان وغیره هم،یعنی که د مشرکانو کسان مسلمانانو سره قید وی نو د هغوی د آزادیدو په بدله کښې هم مصالحت کیدې شی،اوبالعکس.([5]).

---

[1] ) سنن سعید بن منصور:۲۵۲/۲،کتاب الجهاد،باب قتل الاساری.....رقم(۲۶۷۰)،وأخرجه البیهقی من طریق الثقفی عن حمید الطویل:۹ /۱۶۴،کتاب السیر،باب کیف الامان؟رقم(۱۸۱۸۳))_

[2] ) عمدة القاری:۹۵/۱۵،وفتح الباری:۲۷۵/۶،وتغلیق التعلیق:۴۸۳/۳)_

[3] ) فتح الباری:۲۷۵/۶)_

[4] ) عمدة القاری:۹۵/۱۵)_

[5] ) پورته حواله،وفتح الباری:۲۷۵/۶،وشرح القسطلانی:۲۳۹/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: وقوله: "وإن جنحوا للسلم فاجنح لها وتوكل على الله: الآية/الانفال:۶۱/**

او د الله تعالى قول: او كه مشركانو د صلحې مطالبه اوكړى نو تاسو هم صلح اوكړئ.

**د ايت كريمه تفسير:** د پورتنى آيت كريمه ترجمه د امام بخارى رحمه الله د تفسيرمطابق كړې شوې ده، هغوى د "جنحوا" تفسير په "طلبوا" سره كړې دې، او نورو حضراتو مفسرينو ددې تفسير په "مالوا" سره كړې دې، په دې صورت كښې به ترجمه دا شى "او كه مشركان د صلحې طرفته مائل شى نو تاسو هم دې طرفته مائل شئ (او صلح اوكړئ)" ځكه چې د جناح لغوى معنى ده مائله كيدل.[1]

او كلمه د "السلم" د سين فتحه او كسره سره، ددې معنى ده صلح، دا د ابوعبيده رحمه الله قول دې او ابوعمر رحمه الله فرمائى چې سلم كه د سين فتحې سره وى نو ددې معنى ده صلح او كه كسره وى نو ددې معنى ده اسلام.[2]

**د ايت مباركه نه د امام بخارى رحمه الله استدلال او ترجمة الباب سره مطابقت:** امام بخارى رحمه الله د پورتنى آيت كريمه نه په دې خبره باندې استدلال كړې دې چې مشركانو سره صلح كول جائز او صحيح كار دې.[3]

ددې نه ترجمة الباب سره مطابقت هم معلوميږي چې هركله مشركانو سره صلح جائز ده نو دا صلح په مال سره هم كيدې شى او بغير د مال نه هم كيدې شى، بغير د مال نه د صلحې حكم خو امام بخارى رحمه الله د كتاب په شروع كښې ذكر كړې وو او دلته ئې د هغې صلحې تذكره اوكړه كومه صلح چې مال سره وى، دې سره چې څنګه د مصنف رحمه الله مدعى ثابته شوه نو دغه شان د صلحې دوه تقسيمونه هم مخې ته راغلل چې د صلحې يو قسم خو صلح بالمال دې او دويم صلح بغير المال دې.

**فائده:** آيت كريمه چې په شرط سره مقيد كړې شو چې "كه دوى صلح كول اوغواړى نو تاسو هم صلحه اوكړئ" ددې نه دا معلوميږى چې د صلحې معامله مقيده ده، مطلق نۀ ده چې كه دې سره د مسلمانانو نقصان كيږى نو بيا دې هم صلح اوكړې شى بلكه دې خبرې ته به خيال كولې شى چې مسلمانان په كوم حال كښې دى، كۀ د دوى حال سره صلح مناسب ده، په صلح كولو كښې ئې فائده ده نو صلح كول صحيح دى، ددې برخلاف كه مسلمانان غالب وى او په صلح كولو كښې څۀ مصلحت او فائده هم نۀ وى نو بيا صلح كول صحيح نۀ دى.[4]

**ترجمة الباب كښې د ذكر شوې مسئلې تفصيل:** مشركانو سره د مال نه بغير خو صلح كول جائز دى، په دې كښې د هيڅا اختلاف نشته، د مال نه بغير صلح نبى عليه السلام په حديبيه

---

[1]) پورته حواله جات، والقاموس الوحيد، مادة "جنح" وتفسير القرطبى:۸/۳۹)_

[2]) فتح البارى:۶/۲۷۵_۲۷۶، وعمدة القارى:۱۵/۹۵)_

[3]) فتح البارى:۶/۲۷۶، وكتاب السير الكبير مع شرحه للسرخسى:۵/۳_۱۶، باب الموادعة)_

[4]) فتح البارى:۶/۲۷۶، والجامع لاحكام القرآن:۸/۴۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښي (١) د قريشو مشركانو سره كړې وه، ليكن كه مشركانو ته د مال وركولو ضرورت پيښ شي، د مال په بدله كښې ورسره صلح كول وى او خدانخواسته داسې حالات پيدا شي چې هغوى د مال اخستلو نه بغير په صلح كولو باندې نۀ راضى كيږى نو اوس به څۀ كيږى؟

①نو امام اوزاعى رحمه الله خو په دې صورت كښې دا فرمائى چې مشركانو ته د صلحې په بدله كښې مال ادا كول جائز نۀ دى، البته د ضرورت په وخت جائز دى، مثلاً دا چې مسلمانان د جنگى نقصاناتو نه محفوظ كول وى نو بيا ورته مال وركړې كيدې شى (٢).

②امام شافعى او امام احمد بن حنبل رحمهما الله فرمائى چې صلح خو د عوض نه بغير كيدل پكار ده، ليكن كه د مجبورئ حالت وى او د دشمن تعداد زيات وى، د مال وركولو نه بغير د اهلِ اسلام حفاظت ناممكن شى او دا خطره پيښه شى چې مسلمانانو ته به ډير سخت نقصان اورسوى نو په داسې صورت كښې د مال په عوض كښې صلح كيدې شى: لان ذلك من معانى الضرورات.

ددې په خلاف كه صرف دا صورت وى چې مسلمانان كمزورې خو دى ليكن د مقابلې كولو طاقت لرى نو د مال په ادا كولو باندې صلح كول جائز نۀ دى، كه مسلمان قتل هم شى نو شهيد به شى، چې لوئې لوئې فضيلتونه ئې دى، ددې نه علاوه د مسلمانانو شان ددې نه زيات اوچت او لوئې دې چې مشركانو ته د رحم درخواست اوكړى او د جنگ بندئ دپاره ورته اووائى (٣).

③په دې مسئله كښې د احنافو او د مالكيه په باره كښې علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چې په دې سلسله كښې د امام مالك او امام ابوحنيفه څۀ روايت اوقول مونږ ته معلوم نۀ دې (٤) ليكن علامه عينى رحمه الله د احنافو مسلك د امام شافعى او د مالك د مسلك په شان نقل كړې دې، لكه فرمائى:

"مذهب أصحابنا أن للامام أن يصالحهم بمال يأخذه منهم، أو يدفعه إليهم، إذا كان الصلح خيراً فى حق المسلمين لقوله تعالى: (وإن جنحوا للسلم فاجنح لها)، والمال الذى يؤخذ منهم يصرف مصارف الجزية" (٥)

او د مالكيه مذهب هم په دې سلسله كښې د ائمه ثلاثه په شان دې، په دې شرط چې څۀ فاسد شرط اونۀ لگوى، علامه دردير رحمه الله ددې وضاحت كړې دې، فرمائى:

"ويجوز للامام...... المهادنة أى صلح الحربى مدة ليس لهو فيها، تحت حكم الاسلام، لمصلحة كالعجز عن

---

(١) د صلح حديبيه تفصيل دپاره اوگورئ: كشف البارى، كتاب المغازى: ٣٥٩_٣٧٢)_

(٢) شرح ابن بطال: ٣٥٥/٥، وفتح البارى: ٢٧٦/٦، وعمدة القارى: ٩٧/١٥)_

(٣) شرح ابن بطال: ٣٥٦/٥، وفتح البارى: ٢٧٦/٦، وعمدة القارى: ٩٧/١٥)_

(٤) شرح ابن بطال: ٣٥٦/٥، وعمدة القارى: ٩٧/١٥)_

(٥) عمدة القارى: ٩٧/١٥، دغه شان اوگورئ: كتاب السير الكبير مع السرخسى: ٣/٥_١٦، باب الموادعة)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قتالهم مطلقاً،أو في الوقت الحاضر......إن خلا عقد المهادنة......عن شرط فاسد،فإن لم تخل عنه لم تجز،كشرط بقاء مسلم أسير تحت أيديهم......وإن بمال ......إلا لخوف مما هو أشد ضرراً من دفع المال منهم أولهم......(١).

**د صلحې په بدله کښې مشرکانو ته د مال د ادا کولو مثالونه:** په تاريخ کښې داسې ډير مثالونه موجود دی چې د مشرکانو د شر نه د محفوظ کيدو دپاره د ضرورت په وخت کښې مسلمانانو مال هم ادا کړې دې.علامه قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کښې نقل کړې دې چې نبی علیه السلام عيينه بن حصن فزاری او حارث بن عوف مری ته د غزوهٔ احزاب په موقع باندې د صلحې پيشکش کړې وو چې نبی علیه السلام به دوی ته د مدينې منورې د کهجورو د پيداوار دريمه حصه ورکوی ليکن ددې دپاره به تاسو دا کار کوئ چې بنو غطفان واپس کړئ او د قريشو ملګرتيا پريږدئ......(٢).

سعيدبن عبدالعزيز رحمه الله فرمائی چې د جنګ صفين په موقع باندې حضرت معاويه رضي الله عنه مشرکانو سره د مال په بدله کښې صلح کړې وه.هم دا د عبدالملک بن مروان په باره کښې هم روايت دې چې کله هغه عبدالله بن زبير رضي الله عنهما سره په جنګ کښې مصروف وو نو دوی رومی بادشاه سره په دې خبره صلح کړې وه چې روزانه به درته زر ديناره ادا کوو(٣).

٣٠٠٢:(٤) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ - هُوَ ابْنُ الْمُفَضَّلِ - حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ انْطَلَقَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَهْلٍ وَمُحَيِّصَةُ بْنُ مَسْعُودِ بْنِ زَيْدٍ إِلَى خَيْبَرَ، وَهْيَ يَوْمَئِذٍ صُلْحٌ، فَتَفَرَّقَا، فَأَتَى مُحَيِّصَةُ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَهْلٍ وَهْوَ يَتَشَحَّطُ فِي دَمٍ قَتِيلاً، فَدَفَنَهُ ثُمَّ قَدِمَ الْمَدِينَةَ، فَانْطَلَقَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَهْلٍ وَمُحَيِّصَةُ وَحُوَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُودٍ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، فَذَهَبَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَتَكَلَّمُ فَقَالَ «كَبِّرْ كَبِّرْ». وَهْوَ أَحْدَثُ الْقَوْمِ، فَسَكَتَ فَتَكَلَّمَا فَقَالَ «أَتَحْلِفُونَ وَتَسْتَحِقُّونَ قَاتِلَكُمْ أَوْ صَاحِبَكُمْ». قَالُوا وَكَيْفَ نَحْلِفُ وَلَمْ نَشْهَدْ وَلَمْ نَرَ قَالَ «فَتُبْرِيكُمْ يَهُودُ بِخَمْسِينَ». فَقَالُوا كَيْفَ نَأْخُذُ أَيْمَانَ قَوْمٍ كُفَّارٍ فَعَقَلَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ عِنْدِهِ.[ر: ٢٥٥٥]

## رجال الحديث

① **مسدد:** دا مسدد بن مسرهد رحمه الله دې.د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب من الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه" کښې تيره شوې ده(٥).

---

(١) الشرح الكبير مع حاشية الدسوقي:٥٢٧/٢،باب في الجهاد،فصل عقد الجزية)_

(٢) الجامع لاحكام القرآن:٤١/٨)_

(٣) عمدة القاري:٩٧/١٥،وشرح ابن بطال:٣٥٥/٥،نيز حاشية الدسوقي على الشرح الكبير:٥٢٧/٢)_

(٤) قوله: عن سهل بن ابي حثمة":الحديث،مر تخريجه في كتاب الصلح،باب الصلح المشركين)_

(٥) كشف الباري:٢/٢)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④بشر: دا ابو اسماعیل بشر بن المفضل بن لاحق بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: رب مبلغ أوعی...... "کښې تیره شوې ده.(١).

③یحیی: دا مشهور محدث یحیی بن سعید الانصاری رحمه الله دې. د دوی تذکره په "بدء الوحی" کښې اجمالاً او په کتاب الایمان، "باب صوم رمضان احتساباً.. "کښې تفصیل سره تیره شوې ده.(٢)

④بشیر بن یسار: دا بشیر بن یسار مدنی رحمه الله دې.(٣).

⑤سهل بن ابی حثمه: دا ابو محمد سهل بن ابی حثمه انصاری رحمه الله دې(٤).

**قوله: قال: انطلق عبد الله بن سهل و محیصة بن مسعود بن زید إلی خیبر وهی یومئذ صلح:** حضرت سهل بن ابی حثمه رضی الله عنه فرمائی چې حضرت سهل بن عبد الله او محیصه بن مسعود(٥) د خیبر طرفته روان شو او دا دغه ورځو کښې د صلحې والا زمکه وه.

**قوله: فتفرقا فأتی محیصة إلی عبدالله بن سهل، وهو یتشحط فی دم قتیلاً، فدفنه ثم قدم المدینة:** هلته دا دواړه حضرات جدا شو، بیا حضرت محیصه د عبدالله بن سهل طرفته راغئ، په داسې حالت کښې چې په وینو کښې لت پت مقتول پروت وو، نو هغوی حضرت عبد الله هلته دفن کړو، بیا مدینه منوزه کښې حاضر شو.

دلته واقعه داده چې حضرت عبدالله بن سهل او حضرت محیصه بن مسعود رضی الله عنهما نورو څه ملګرو سره د خیبر طرفته تشریف یوړلو، مقصد دا وو چې خپل اهل وعیال ته کهجورې ورکړې چې د خپل اهل وعیال دپاره د خیبر کهجورې راوړې، خیبر ته د رسیدلو نه پس دا دواړه حضرات جدا شو او په خپلو خپلو مصروفیاتو کښې مشغول شو، په مقرره ورځ باندې چې کله حضرت محیصه د حضرت عبدالله بن سهل طرفته راغئ نو وې لیدل چې په یو چینه یا کوهی کښې په وینو کښې لت پت پروت دې، ستې مبارک ئې مات شوې دې او د بدن نه ئې روح مبارک تلې دې، هلته د دوی نه علاوه څوک هم نهٔ وو چې د قاتل معلومات اوشی، ددې وجې نه حضرت محیصه رضی الله عنه هغوی هلته دفن کړل او په خپله مدینې منورې ته واپس راغئ.(٦).

---

[١] ) کشف الباری:٣/٢٢٢)_

[٢] ) کشف الباری:١/٢٣٨،و:٢/٣٢١)_

[٣] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء،باب الوضوء من غیر حدث)_

[٤] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ ، کتاب البیوع،باب بیع الثمر علی رؤوس النخل)_

[٥] ) د دوی دواړو د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلح،باب الصلح مع المشرکین)_

[٦] ) عمدة القاری:١٥/٩٦،والقسطلانی:٥/٢٣٩،وسیرة ابن هشام:٢/٣/٣٥٥،تسمیة النفر الداریین الذین اوصی لهم رسول الله......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د يتشحط معنى: دا د باب تفعل نه د مضارع صيغه ده،ددې ماده "شحط" ده.د حديث عالمانو ددې لفظ څو معنې بيان کړې دی،ليکن مطلب د ټولو يو دې.يعنی په وينو کښې لت پت کيدل، كما ذكرنا فوق أيضاً[1].

او "قتيلاً" د حال کيدو د وجې نه منصوب دې[2].

**قوله: فانطلق عبدالرحمن بن سهل ومحيصة وحويصة ابنا مسعود الى النبى صلى الله عليه وسلم:** نو حضرت عبدالرحمن بن سهل،محيصه او حويصه د نبی ﷺ طرفته روان شو.

يعنى کله چې مدينې منورې ته اورسيدل نو ددې نه پس حضرت محيصه رضي الله عنه د نورو دوو صحابه کرامو رضي الله عنهما سره د نبی ﷺ په خدمت اقدس کښې حاضر شو،دې دپاره چې حضرت عبدالله بن سهل رضي الله عنه سره کومه واقعه اوشوه نو چې نبی ﷺ د هغې نه خبر کړې.

**حضرت عبدالرحمن بن سهل رضي الله عنه:** دا د حضرت عبد الله بن سهل رضي الله عنه ورور.د حضرت حويصه او محيصه رضي الله عنهما وراره[3]حضرت عبدالرحمن بن سهل بن زيدبن کعب بن عامر بن عدى بن مجدعه بن حارثه حارثى انصارى رضي الله عنه دې[4]د دوى مور بى بى ليلى بنت رافع بن عامر بن عدى ده[5].

د ابن سعد ،ابن عبدالبر او د دوى په اتباع کښې د ابونعيم اصفهانى خيال دادې چې حضرت عبد الرحمن بن سهل رضي الله عنه په غزوهٔ احد ،غزوهٔ خندق او نورو ټولو غزواتو کښې شريک وو[6] بلکه ابن عبدالبر يو قول دا هم نقل کړې دې چې دا بدرى صحابى دې[7].ابن سعد مزيد فرمائى چې دا هغه صحابى دې،چې د غزوهٔ بدر نه پس د عمرې په نيت باندې وتلې وو ليکن په مکه مکرمه کښې قريشو قيدى کړو،بيا د حضرت ابوسفيان رضي الله عنه د ځوئى عمرو په بدله کښې آزاد شو کوم چې په بدر کښې گرفتار شوې وو[8].

---

[1]) قال الخطابى فى اعلام الحديث:١٤٦٧/٢: يتشحط.اى:يضطرب فى الدم".وقال ابن الاثير (النهاية:٤٤٩/٢،باب الشين مع الحاء،و جامع الاصول:٢٨٦/١٠): معناه:يتخبط فى دمه،ويضطرب، ويتمرغ". وقال الداودى،كما حكاه العينى فى العمدة (٩٦/١٥): المتشحط:المختضب..... ")_

[2]) عمدة القارى:٩٦/١٥،وشرح القسطلانى:٢٣٩/٥)_

[3]) دا د ابن اخى....ترجمه ده،په الاصابه کښې ابن عم دې چې غلط دې،تفصيل به وړاندې راشى._

[4]) انظر الاصابة:٤٠٢/٢،ومعرفة الصحابة:٢٧٣/٣،وعمدة القارى:٩٥/١٥)_

[5]) الاصابة:٤٠٢/٢،ومعرفة الصحابة للاصبهانى:٢٧٣/٣)_

[6]) پورته حواله جات،والاستيعاب بهامش الاصابة:٤٠٢/٢)_

[7]) الاستيعاب بهامش الاصابة:٤٠٢/٢،وهو قول العسكرى ايضا:انظر الاصابة:٤٠٢/٢)_

[8]) الاصابة:٤٠٢/٢)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی او د دوی نه محمد بن کعب قرظی رحمه الله وغیره روایت کوی(۱).

یو ځل مار حضرت عبدالرحمن بن سهل رضی الله عنه اوخوړلو ،نبی علیه السلام خبر شو نو وې فرمائیل چې دې عمارة بن حزم ته بوځئ چې هغه ئې دم کړی.صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو یا رسول الله!هغه وخت پورې به دې وفات شی،نبی علیه السلام ته چونکه علم وو چې دهٔ ته به شفاء حاصلیږی،ددې وجې نه ئې اوفرمائیل چې اګرچه دې وفات شی بیا ئې هم بوځئ.نو صحابه کرامو رضی الله عنهم دې د حضرت عماره بن حزم طرفته بوتلو او الله تعالی دوی ته شفاء ورکړه.(۲) حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه دوی لره د حضرت عتبه بن غزوان رضی الله عنه د وفات نه پس د بصرې ګورنر مقرر کړې وو.(۳).

محمدبن کعب قرظی رحمه الله فرمائی چې حضرت عبد الرحمن بن سهل رضی الله عنه په یو غزوه کښې وو ،د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت زمانه وه او حضرت امیر معاویه رضی الله عنه د شام امیر وو ،دې دوران کښې د دوی مخې ته د شرابو څهٔ منګی تیر شو نو دوی خپله نیزه واخسته او د هغوی طرفته متوجه شو او په هر منګی کښې ئې سورې اوکړو ،د منګو اوړونکی چې کوم غلامان وو نو هغوی حضرت عبد الرحمن بن سهل رضی الله عنه سره په جګړه شو او خبره زیاته شوه ،کله چې حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه ته دا خبره اورسیدو نو هغوی اوفرمائیل چې دې پرېږدئ ،دې بوډا شوې دې او عقل ئې رخصت شوې دې.حضرت عبد الرحمن رضی الله عنه اوفرمائیل چې هیڅکله نهٔ!زما عقل ختم شوې نهٔ دې،لیکن خبره داده چې نبی علیه السلام مونږ ددې خبرې نه منع کړې یو چې مونږ په خپلو لوښو یا خپلو خیټو کښې شراب واچوو......(۴).

**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** په ائمه سیر او ائمه مغازی کښې د اکثرو امامانو رائې داده چې حضرت عبد الرحمن بن سهل بن زید الحارثی الانصاری او حضرت عبد الرحمن بن سهل انصاری دوه کسان نهٔ دی،بلکه دا یو سړې دې،ددې وجې نه چې کله تراجم کښې د دوی تذکره راغله نو دې حضراتو دا یو کس شمار کړو او هیڅ تفریق ئې په کښې اونهٔ کړو چې دا فلانې دې او دا فلانې دې.لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله په دې دواړو کښې فرق اوکړو چې دا جدا جدا دوه شخصیات دی،ددې وجې نه حافظ رحمه الله د دواړو ترجمه جدا جدا لیکلې ده او دې خبرې ته ئې ترجیح ورکړې ده چې دا دوه کسان دی،فرمائی: **"والظاهر أنهما اثنان"**(۵).

ابن سعد رحمه الله وغیره د حضرت عبد الرحمن بن سهل انصاری متعلق درې واقعات نقل کړې دی،کوم چې اوس مونږ ذکر کړل،یعنی د مار د خوړلو واقعه،د عمرې د ادا کولو دپاره

---

۱) الاصابة:۲/۴۰۱_

۲) الاصابة:۲/۴۰۲،ومعرفة الصحابة للاصبهانی:۳/۲۷۳_

۳) معرفة الصحابة:۳/۲۷۴_

۴) پورته حواله،والاصابة:۲/۴۰۲،والاستیعاب: ۲/۴۰۲،ومعجم الصحابة:۲/۱۵۰،باب العین،رقم (۶۲۵)_

۵) الاصابة:۲/۴۰۲_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مکې مکرمې ته د تلو او هلته د گرفتاریدو او د آزادیدو واقعه او د حضرت معاویه رضی الله عنه په دور کښې چې کومه واقعه پیښه شوې وه.
ددې درې وارو واقعاتو په باره کښې د حافظ رحمه الله تحفظات دی،هغوی فرمائی چې د مار د خوړلو کومه واقعه ده نو کیدې شی چې دا حضرت عبد الرحمن بن سهل الحارثی الانصاری سره هم پیښه شوې وی،دغه شان دا دواړه شخصیات شمار کیدې شی.لیکن د قید او د آزادیدو چې کومه واقعه ده نو هغه مشکله ده،ځکه چې د چا په باره کښې دا اختلاف وی چې دا بدری دې یا نهٔ؟او کوم چې دغه کال باندې د عمرې د ادا کولو نه پس گرفتار شوې وی هغه د خیبر په موقع باندې کم عمره نهٔ شی کیدې،او د باب په حدیث کښې ورته "أحدث القوم"(۱) فرمائیلې شوې دې.دغه شان دا کوم چې د خیبر په موقع باندې کم عمر وی،د هغهٔ په باره کښې شل،پنځویشت کاله پس حضرت معاویه رضی الله عنه دا نهٔ شی وئیلې چې "إنه شیخ ذهب عقله"ځکه چې دې وخت کښې به د دوی عمر زیات نه زیات څلویښت کاله وی او دا عمر داسې نهٔ وی چې په دې باندې د بوډا توب اطلاق اوکړې شی او په دې عمر کښې چاته ذاهب العقل اووئیلې شی.ددې وجې نه ښکاره داده چې دا دواړه جدا جدا کسان دی(۲).والله اعلم بالصواب

**حویصه بن مسعود:** دا حضرت حویصه بن مسعود بن کعب بن عامر بن عدی بن مجدعه انصاری رضی الله عنه دې(۳).ددوی کنیت ابوسعد دې(۳).د غزوهٔ بدر نه علاوه په نورو ټولو غزواتو کښې دې د نبی علیه السلام سره شریک وو(۵).

**د دوی د اسلام قبلولو واقعه:** حضرت حویصه د خپل وړور محیصه(۶)نه مشر وو،لیکن د اسلام قبلولو شرافت مخکښې کشر وړور ته حاصل شو،بیا مشر ته حاصل شو.
ابن اسحاق ذکر کړې دی چې د مشهور یهودی کعب بن اشرف د قتل نه پس نبی علیه السلام صحابه کرامو رضی الله عنهم ته دا اوفرمائیل چې تاسو ته په کوم یهودی باندې هم قدرت حاصلیږی نو هغه قتلوئ.ابن سبینه یا ابن شبینه نومې یو سړې یهودی تاجر وو،چې د کپړې تجارت به ئې کوو،ددې اعلان نه پس یو ورځ حضرت محیصه رضی الله عنه موقع بیاموندہ او هغه ئې قتل کړو،په

---

(۱) پورته حواله،دغه شان اوگورئ، حدیث باب)_
(۲) الاصابة:۲/۴۰۲)_
(۳) الاصابة:۱/۳۶۳،والاستیعاب بهامش الاصابة:۱/۳۹۳)_
(۴) الاستیعاب بهامش الاصابة:۱/۳۹۳،ومعجم الصحابة:۳/۱۱۶،رقم (۱۰۸۳)،باب المیم)_
(۵) الاستیعاب بهامش الاصابة:۱/۳۹۴، والاصابة:۳۶۳)_
(۶) قوله: محیصة "بضم المیم وفتح الحاء المهملة،وهو اخو حویصة.....ویقال فیهما جمیعا بتشدید الیاء وتخفیفا،انظر عمدة القاری:۱۵/۹۵،وقال النووی: والاشهر هو التشدید".تهذیب الاسماء واللغات:۱/۱۷۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې باندې حضرت حويصه رضي الله عنه ډير خفه شو چې په دغه وخت كښې ئې لا اسلام قبول كړې نۀ وو، دۀ به خپل كشر ورور محيصه وهلو او دا به ئې ورته وئيل چې د الله دشمنه!تا هغه قتل كړو حالانكه ستا په خيټه كښې چې كومه وازګه ده نو دا هم د هغۀ په اخستلې شوې مال سره جوړه شوې ده؟حضرت محيصه رضي الله عنه ورته په جواب كښې اووئيل، په خدائې قسم!ماته ددۀ د قتل كولو حكم هغه ذات كړې دې چې كه ستا د قتل كولو حكم ما ته راكړې نو تا به هم قتل كړم.....ددې په اوريدو سره حويصه ډير حيران شو او د خپل ورور ته ئې په سواليه انداز كښې اووئيل چې په خدائې قسم!كه محمد (ﷺ) زما د سر وهلو حكم تا ته اوكړې نو آيا ما به هم قتل كړې؟حضرت محيصه رضي الله عنه په جواب كښې اووئيل چې بالكل!كه هغوى ماته دا حكم اوكړې نو زۀ به په دې باندې ضرور عمل كوم.ددې په اوريدو سره حويصه اووئيل چې په خدائې قسم!دا دين ډير عجيبه دې كوم چې تۀ دې حال ته رارسولې ئې، ددې نه پس حضرت حويصه رضي الله عنه اسلام قبول كړو.(١).

حضرت حويصه رضي الله عنه د نبى عليه السلام نه روايت كوى.د دوى نه په روايت كوونكو كښې محمد بن سهل بن ابى حثمه اود دوى نوسې حرام بن سعد بن محيصه شامل دې.(٢). رضى الله عنه وأرضاه

**خبرداري:** د باب په حديث كښې د حضرت محيصه رضي الله عنه نسب داسې بيان كړې شوې دې، "**محيصة بن مسعود بن زيد**"او دا نسب صحيح نۀ دې،صحيح نسب دادې چې "**محيصة بن مسعود بن كعب**" اووئيلې شى.مولانا احمدعلى سهارنپورى رحمه الله د علامه كرمانى وغيره حوالې سره ليكلې دى چې امام بخارى رحمه الله چې محيصه بن مسعود بن زيد نقل كړې دې نو دا د دوى وهم دې.(٣)

**وهم چاته لاحق شوې دې؟** علامه كرمانى رحمه الله وغيره دلته چې د امام بخارى رحمه الله طرفته كوم د وهم نسبت اوكړو، دا صحيح نۀ دې، ځكه چې دا د مصنف وهم نۀ دې بلكه د يو راوى وهم دې.د امام بخارى رحمه الله نه علاوه آئمه خمسو هم دا حديث روايت كړې دې، چې په هغې كښې امام ترمذى(٤) او په بعضې طُرُقو كښې امام نسائى او امام مسلم(٥) په دې الفاظو او نسب كښې د امام بخارى رحمه الله موافقت كړې دې، ددې نه هم دا معلوميږى چې دا د يو راوى وهم

---

(١) هذه القصة لاسلامة اخرجها ابو داود فى كتاب الخراج والامارة والفئ،باب كيف كان اخراج اليهود من المدينة؟رقم (٣٠٠٢)،وابن اسحاق فى سيرة ابن هشام:٤٤١/٢،والطبرانى فى الكبير:٣١١/٢٠،رقم (٧٤١)، والاصبهانى فى معرفة الصحابة:١٦٤/٢،رقم (٢٣٣٣)،والحافظ فى الاصابة:٣٦٣/١)_

(٢) الاستيعاب بهامش الاصابة:٣٩٤/١)_

(٣) حاشية صحيح البخارى للسهار نفورى:٤٥٠/١،والكرمانى:١٣٨/١٣،وفتح البارى:٢٧٦/٦)_

(٤) سنن الترمذى،ابواب الديات،باب ماجاء فى القسامة،رقم (٤٣٤٢،و٤٣٤٦_٤٣٤٧))_

(٥) سنن النسائى،كتاب القسامة......ذكر اختلاف ألفاظ الناقلين لخبر سهل.....رقم (٤٧١٨ و٤٧١٩)، وصحيح مسلم،كتاب القسامة......باب القسامة،رقم(٣٤٤٢،و٣٤٤٦_٤٣٤٧)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې او په سلسله کښې امام بخاری رحمه الله لره ملامته کول صحیح نهٔ دی.اوس په دې مسئله کښې حتمی خبره کول مشکل دی چې دا پورتنی راویانو کښې د کوم راوی وهم دې[1].

**د باب په حدیث شریف کښې د مذکوره صحابه کرامو رضي الله عنهم د رشته دارئ نوعیت:** ددې نه پس دلته یو بحث دا هم دې چې د باب په حدیث شریف کښې د څلورو صحابه کرامو حضرت عبدالله بن سهل،حضرت عبدالرحمن بن سهل،حضرت محیصه بن مسعوداوحضرت حویصه بن مسعود رضي الله عنهم د رشته دارئ څهٔ کیفیت دې او دا حضرات خپل مینځ کښې د یو بل څهٔ دی؟

په دې سلسله کښې تحقیقی خبره داده چې حضرت محیصه و حویصه دواړه ترونه دی او حضرت عبدالله او عبدالرحمن دواړه وریرونه دی.[2].

ډیرو علماؤ او محدثینو ته ددې نه مغالطه شوې ده چې د نسب په بیانولو کښې هغوی محیصه بن مسعود بن زید وئیلې شوې دې،کما فی حدیث الباب أیضاً په دې شان سره دا دواړه حضرات خپل مینځ کښې د ترهٔ بچی جوړیږی،او دا خبره بالکل غلطه ده،تردې چې په بعضې روایتونو کښې راویانو د"ابن عم لهما[3]"الفاظ نقل کړې دی،د حافظ ابن حجر رحمه الله په شان محقق نه دلته تسامح اوشوه چې هغوی د حضرت عبد الرحمن بن سهل رضي الله عنه په ترجمه ذکر کولو کښې دوی ته"ابن عم حویصه ومحیصه[4]"اووئیل،البته د حویصه او د محیصه نسب ئې بالکل صحیح بیان کړې دې او د علامه عینی الفاظ صحیح صورت حال واضحوی، هغوی فرمائی:"ابن أخی حویصة ومحیصة"[5].

---

[1]) دا حدیث په مسند سهل بن ابی حثمه کښې شمار کړې شوې دې،اګرچه یو ځائې کښې د حضرت محیصه نوم هم راغلې دې انظر تحفة الاشراف:۸/۳۶۶،رقم (۱۱۲۴۱)او ددې حدیث په طرقو کښې تلاش کولو سره دا خبره مخې ته راغله چې د سهل بن ابی حثمه نه دا حدیث دوه حضرات روایت کوی،بشیر بن یسار او ابولیلی بن عبدالله بن عبدالرحمن بن سهل.دویم چې کوم راوی دې د دوی په طریق کښې چې روایات مروی دی نو په هغې کښې یا خو صرف محیصه بن مسعود دې او یا محیصه.د ذکر په کښې بالکل هډو ذکر نشته.او اولنې چې کوم راوی دې یعنی بشیر بن یسار نو د دوی د روایت چې کوم طرق دی په هغې کښې محصیه بن مسعود بن زید دی یا محیصه بن مسعود یا نور الفاظ.بیا چې د بشیر بن یسار کوم شاګردان دی په هغوی کښې یحیی بن سعید الانصاری او سعید بن عبید شامل دی او د سعید بن عبید روایتونو کښې هم ذکر نهٔ دې،ددې وجې نه په ظاهره دا معلومیږی چې مذکوره وهم یحیی بن سعید یا د هغوی یو شاګرد ته پیښ شوې دې.والله اعلم بالصواب. ددې حدیث د طرقو دپاره اوګورئ تحفة الاشراف:۸۹/٤رقم (٤٦٤٤).ددې حدیث د پوره تخریج دپاره اوګورئ جامع الاصول وتعلیقاته:۲۸۰/۱۰_۲۸۵.وابن ماجه.ابواب الدیات.باب القسامة.رقم (۲۶۷۷_۲۶۷۸)

[2]) د امام نسائی د یو روایت نه ددې تائید کیږی،په هغې کښې دی_فجاء اخوه وعماه حویصة ومحیصة. وهما عما عبد الله بن سهل"سنن نسائی.کتاب القسامة.رقم (٤۷۲۱).دغه شان اوګورئ، السنن الکبری للبیهقی:۲۰۷/۸_۲۰۸،کتاب القسامة.باب اصل القسامة.رقم (۱۶٤۳۶))_

[3]) سنن النسائی.کتاب القسامة......ذکر اختلاف الفاظ الناقلین لخبر سهل.....رقم (٤۷۱۷)،وفی روایة ابی داود.ایضا: ابنا عمه:حویصة ومحیصة"سننه.کتاب الدیات.باب القسامة.رقم (٤۵۲۰))_

[4]) الاصابة:۴۰۲/۲.و:۳۶۳/۱)_

[5]) عمدة القاری:۹۵/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې ځان داسې پوهه کړئ چې د حضرت محیصه نیکهٔ د کعب دوه ځامن مسعود او زید دی،نور هم کیدې شی،د مسعود په اولاد کښې محیصه او حویصه دی او د زید په اولاد کښې سهل وغیره،بیا د سهل په اولاد کښې عبدالله بن سهل او عبد الرحمن بن سهل رضی الله عنهم دی،دغه شان دا حضرات خپل مینځ کښې ترونه او وریرونه شو.[1]

دا تفصیل بنهٔ یاد کړئ،اکثر دلته مغالطه کیږی.[2] والله اعلم بالصواب

**قوله: فقال: أتحلفون وتستحقون قاتلكم أو صاحبكم؟قالوا: وكيف نحلف ولم نشهد، ولم نر؟:** نو نبی ﷺ اوفرمائیل،چې تاسو د قسم کولو دپاره تیار یئ،دغه شان به تاسو ته قاتل ملاؤ شی؟دې حضراتو عرض اوکړو چې مونږ په کوم بنیاد باندې قسم اوکړو ،حالانکه مونږ په موقع باندې موجود نهٔ وو او نهٔ مونږ څوک لیدلې دی؟

یعنی هرکله چې دې حضراتو نبی ﷺ ته پوره واقعه بیان کړه نو نبی ﷺ اوفرمائیل چې تاسو خلق قسم اوکړئ چې فلانې قاتل دې،دغه شان به ستاسو مقصد حاصل شی او تاسو ته به قاتل ملاؤ شی.په دې باندې دې حضراتو د قسم کولو نه انکار اوکړو او وې وئیل چې قسم خو به هغه سړې کوی چا ته چې قاتل معلوم وی او هغه په موقع باندې موجود هم وی،حالانکه زمونږ معامله دغه شان نهٔ ده.

**قوله: قال: فتبريكم يهود بخمسين.فقالوا: كيف نأخذ أيمان قوم كفار؟فعقله النبي ﷺ من عنده:** نبی ﷺ اوفرمائیل چې یهودیان به پنځوس قسمونه اوکړی او ستاسو په وړاندې به د براءت اظهار اوکړی.دې حضراتو اووئیل،چې مونږ د یو کافر قوم په قسمونو باندې څنګه اعتماد اوکړو؟نو نبی ﷺ په خپله باندې دیت ادا کړو.

په "من عنده" کښې دوه احتمالات دی،یو خو دا چې نبی ﷺ د خپل خاص مال نه دیت ادا کړو.دویم دا چې دا دیت د بیت المال نه ادا کړې شو.[3]

ددې حضراتو صحابه کرامو رضی الله عنهم استحقاق ثابت شوې نهٔ وو،ددې باوجود نبی ﷺ دیت ددې وجې نه ادا کړو چې جګړه ختمه شی او ددې حضراتو تسلی هم اوشی،ځکه چې د هغوی په نزد عرف هم دا وو چې د دیت ملاویدو په صورت کښې به دا خبره ګڼړلې کیده چې د مقتول اولیاؤ سره انصاف شوې دې.[4] والله اعلم

ددې نه علاوه دلته د قسامت مسئله بیان کړې شوې ده،د هغې تفصیل به انشاء الله دویم جلد کښې راشی.[5]

---

[1]) ددې مسئلې صحیح شکل او نقشه داسې ده:_
[2]) اوګورئ، اوجز المسالک:۱۵/۱۶۴_۱۶۵)_
[3]) عمدة القاری:۱۵/۹۶)_
[4]) عمدة القاری:۱۵/۹۶،وشرح ابن بطال:۵/۳۵۵)_
[5]) انظر،کتاب الدیات،باب القسامة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فذهب عبدالرحمن يتكلم: فقال: كبر، كبر ـ وهو أحدث القوم ـ فسكت، فتكلما:** نو حضرت عبدالرحمن خبرې شروع کړې نو نبی ﷺ اوفرمائیل چې مشرانو ته موقع ورکوه او دې په دغه راتلونکو کسانو کښې د ټولو نه کشر وو، نو دې خاموشه شو او حضرت محیصه وحویصه رضی الله عنهما خپله مدعا پیش کړه.

**د حدیث نه مستفاد یو حکم:** د نبی ﷺ د ارشاد مبارک "کبر کبر" نه دا حکم معلوم شو چې د مشرانو په موجودګئ کښې کشرانو ته خبرې کول پکار نهٔ دی، دا د ادب نه خلاف دی، حضرت محیصه و حویصه رضی الله عنهما چونکه دواړه مشران وو او حضرت عبدالرحمن کشر وو نو نبی ﷺ د مشرانو خیال ساتلو سره د هغوی ورارهٔ عبدالرحمن رضی الله عنه منع کړو چې د دوی په وړاندې تاسو خبره مهٔ کوئ.[1]

**یو اعتراض او د هغې جوابونه:** دلته دا یو اعتراض کیږی چې حضرت عبد الرحمن بن سهل چې د مقتول ولی وو، هغه خاموش کړې شو او حضرت حویصه او محیصه رضی الله عنهما ته د خبرې کولو دپاره اووئیلې شو، حالانکه د خبرې حق خو د مقتول د ولی وو؟

①ددې جواب دادې چې د نبی ﷺ مقصود دا وو چې د واقعې په صورت او کیفیت باندې ځان پوهه کړې شی، هرچه د دعوې حقیقت دې نو دلته د هغې متعلق بحث نهٔ دې، ځکه چې که دا خبره مقصود وه نو بیا به حضرت عبدالرحمن خبره کوله چې د هغهٔ حق هم وو.

②ددې خبرې احتمال هم دې چې حضرت عبدالرحمن په خپله دا دواړه حضرات د خپل طرفنه د خبرې کولو دپاره وکیلان جوړ کړل چې خبره تاسو اوکړئ.[2] والله اعلم

**په ترجمة الباب باندې یو اشکال:** امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دا الفاظ ذکر کړې وو، "وإثم من لم يف بالعهد" په دې الفاظو باندې حافظ صاحب رحمه الله دا اعتراض کړې دې چې د باب په حدیث کښې خو یو څیز هم داسې نشته چې په دې جزء باندې دلالت کوی یا ددې موافقت کوی.[3]

**د مذکوره اشکال جوابونه:** شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا کاندهلوی رحمه الله ددې اعتراض درې جوابونه کړې دی:

①مصنف رحمه الله په دې باب کښې خو څهٔ مناسب حدیث ذکر کول غوښتل لیکن د هغې موقع ملاو نهٔ شوه. كما هو المعروف عند الشراح في مثل هذه المواضع.[4]

---

[1]) عمدة القاری:۹۶/۱۵، وقد بوب الامام البخاری رحمه الله بابا ایضا فی کتاب الادب، ای: باب اکرام الکبیر...... وذکر تحته حدیث الباب، رقم (۶۱۴۳))_

[2]) عمدة القاری:۹۶/۱۵، وشرح الزرقانی:۲۰۸/٤، رقم (۱۶۹۶)، والاوجز:۱۶۸/۱۵)_

[3]) فتح الباری:۲۷۶/۶، والابواب والتراجم:۲۰۸/۱، وتعلیقات لامع الدراری:۳۲۹/۷)_

[4]) الابواب والتراجم:۲۰۸/۱، وتعلیقات اللامع:۳۲۵/۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

③ په داسې ځايونو کښې زما په نزد غوره توجيه داده چې امام بخارى رحمه الله دلته قصداً د ذهنونو د متوجه کولو دپاره او په دې باندې د تنبيه کولو دپاره چې ددې مناسب څۀ حديث مې بل ځائې ذکر کړې دې، دلته ئې ذکر نۀ کړو......لکه وعده خلاف کس ته به د هغۀ په دې کار باندې چې کومه ګناه وى، ددې ذکر په څو رايتونو کښې راغلې دې، که امام بخارى رحمه الله په يو روايت وغيره باندې انحصار کوو نو چا ته دا وهم کيدې شو چې مذکوره ګناه دې قسم سره خاص ده حالانکه د مصنف مقصود خو دادې چې د وعده خلافئ په ګناه باندې مختلفو طريقو سره خبردارې اوکړې شى، ددې وجې نه هغوى دلته څۀ خاص حديث ذکر نه کړو.
په دې سلسله کښې چې امام بخارى رحمه الله کوم مختلف حديثونه ذکر کړې دى نو هغۀ دې ددې ترجمې مشاراليه اوګنړلې شى چې امام ددې ترجمې په ذريعې د هغه حديثونو طرفته اشاره کړې ده، په کومو کښې چې د وعده خلافئ مذمت او د ګناه تذکره راغلې ده.[1]
④ دا هم کيدې شى چې مذکوره کوم روايت د وعده خلافئ په مذمت کښې بيان شوې دې نو امام بخارى رحمه الله ددې په ذريعې سره په دې خبره باندې خبردارې کړې دې چې د وعدې پوره کول خپلول پکار دى.[2] والله اعلم بالصواب

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې داده چې ترجمة الباب سره د حديث مناسبت په دې جمله کښې دې، "**انطلق عبدالله بن سهل ومحيصة.....إلى خيبر، وهى يومئذ صلح**"[3] او په دې معنى کښې چې نبى عليه السلام د خيبر يهوديانو سره صلح کړې وه، د هغې شرط دا وو چې هغوى به نبى عليه السلام ته د خيبر د باغونو نيم پيداوار ورکوى[4]. ددې نه هم دا ثابته شوه چې مشرکانو سره په دواړو صورتونو کښې صلح کيدې شى، چې د مشرکانو نه مال واخستې شى نو داسې هم جائز دى او داسې هم چې د ضرورت په وخت کښې مشرکانو ته مال ورکړې شى، دا د ترجمة الباب مقصود وو.
او د علامه مهلب رحمه الله مطابق د حديث د آخرى جزء نه ترجمه ثابتيږى، "**فعقله النبى صلى الله عليه وسلم من عنده**" چې نبى عليه السلام د خپل طرفنه ديت ادا کړو، دا ئې ددې وجې نه ورکړې وو چې د مقتول وينه ضائع نۀ شى، دغه شان د يهوديانو تاليف هم مقصود وو چې کيدې شى دغه شان ددې يهوديانو دپاره د اسلام لاره جوړه شى، او دغه شان د يهوديانو د شرارت او رذالت نه د خپل ځان او د مسلمانانو حفاظت هم مقصود وو، دغه شان ترجمة الباب سره مطابقت ثابتيږى[5].

---

[1]) الابواب والتراجم: ٢٠٨/١_٢٠٩، وتعليقات اللامع: (٣٢٥/٧)_
[2]) پورته حواله جات)_
[3]) فتح البارى: ٢٧٦/٦)_
[4]) کشف البارى، کتاب المغازى: ٤١٤، باب غزوة خيبر)_
[5]) شرح ابن بطال: ٣٥٥/٥، وفتح البارى: ٢٧٦/٦)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او علامه عینی رحمه الله فرمائی چې حدیث سره د ترجمة الباب مناسبت د "وهی یومئذ صلح" نه هم حاصلیږی او د "فعلقه النبی صلی الله علیه وسلم من عنده" نه هم حاصلیږی ځکه چې مشرکانو سره مصالحت بالمال وو.(۱).

ګویا علامه عینی رحمه الله پورتنی دواړه اقوال جمع کړې دی. والله اعلم

## ⑬ باب: فَضْلِ الْوَفَاءِ بِالْعَهْدِ

**د ترجمة الباب مقصد او ماقبل سره مناسبت:** تیر شوې باب کښې چونکه د مصالحت او د موادعت ذکر وو، ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله دلته دا اوونیل چې کله مصالحت کیږی نو بیا د هغې پوره کول ضروری وی او ددې وعدې د پوره کولو ډیر فضیلتونه دی او په خپله یو ښه صفت هم دې.(۲).

۳۰۰۳: (۳) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ فِي رَكْبٍ مِنْ قُرَيْشٍ كَانُوا تِجَارًا بِالشَّامِ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي مَادَّ فِيهَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَبَا سُفْيَانَ فِي كُفَّارِ قُرَيْشٍ. [ر: ۷]

### رجال الحديث

①**يحي بن بکیر:** دا امام یحیی بن بکیر رحمه الله دې.

②**الليث:** دا امام ابو الحارث لیث بن سعد فهمی رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذکره د "بدء الوحی" په "الحدیث الثالث" کښې تیره شوې ده.(۴).

③**یونس:** دا یونس بن یزید ایلی رحمه الله دې، د دوی مختصر تذکره په "بدء الوحی" او تفصیلی تذکره په کتاب العلم، "باب من یرد الله به خیرا....." کښې راغلې ده.(۵).

④**ابن شهاب:** دا امام محمد بن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله دې. د دوی مختصر ترجمه په "بدء الوحی" کښې تیره شوې ده(۶).

---

(۱) عمدة القاری:(۹۵/۱۵)_

(۲) عمدة القاری:(۹۷/۱۵)_

(۳) قوله: عبدالله بن عباس رضی الله عنهما اخبره": الحدیث، مر تخریجه فی بدء الوحی)_

(۴) کشف الباری:(۳۲۳/۱_۳۲۵)_

(۵) کشف الباری:(۴۶۳/۱، و:۲۸۲/۳)_

(۶) کشف الباری:(۳۲۶/۱، الحدیث الثالث)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑤**عبیدالله بن عبدالله بن عتبه:** دا د مدینې منورې فقیه عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دې.د دوی اجمالی تذکره په"بدء الوحی"کښې او تفصیلی تذکره په کتاب العلم، "باب متی یصح سماع الصغیر؟"کښې راغلې ده.[1].
⑥**عبدالله بن عباس:** د مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات اجمالی طور په"بدء الوحی"کښې او تفصیل سره په کتاب الایمان،"باب کفران العشیر،وکفر دون کفر"کښې تیر شوې دی[2].
⑦**ابوسفیان:** دا مشهور صحابی حضرت ابوسفیان صخر بن حرب رضی الله عنه دې.د دوی تذکره د "بدء الوحی" په"الحدیث السادس"کښې تیره شوې ده.[3].

**د باب د حدیث ترجمه:** حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چې حضرت ابوسفیان ابن حرب رضی الله عنه ما ته اووئیل چې د روم بادشاه زۀ د قریشو او د سورلو سره خپل طرفته اوغوښتم، کله چې زۀ د شام طرفته د تجارت په غرض سره تلې ووم،دا د هغه زمانې خبره ده چې کوم وخت نبی علیه السلام د قریشو د کفارو په معامله کښې حضرت ابوسفیان سره صلح کړې وه.
د باب حدیث د بدء الوحی د شپږم حدیث حصه ده،ددې مکمل تشریح هلته تیره شوې ده.[4].

**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چې د وعده خلافئ مذمت او د وعدې د پوره کولو فضیلت په قرآن وحدیث کښې ځائې په ځائې موجود دې.حقیقت کښې امام بخاری د هغه حدیث هغې سوال طرفته اشاره کړې ده،کوم سوال چې هرقل د ابوسفیان نه کړې وو چې"هل یغدر؟"آیا هغه وعده خلافی هم کوی؟د سوال وجه دا وه چې وعده خلافی یو داسې عمل دې چې په ټوله معاشره کښې بد او سپک ګڼړلې شی او د پیغمبرانو په صفاتو کښې(چې د انسانیت مقدس ترین هستیانې دی)دا عمل نۀ دې چې پیغمبران او انبیاء هم په دې صفت باندې متصف شی،ځکه چې هیڅ یو نبی کله هم غدار او وعده خلاف کیدې نۀ شی[5].
ددې نه د وعدې د پوره کولو فضیلت او اهمیت معلومیږی چې کوم صفت د انبیاء کرامو او د پیغمبرانو وی نو هغه به معمولی صفت نۀ وی،بلکه د هغې اهمیت به ډیر زیات وی،هم دا د امام بخاری رحمه الله مقصود هم دې.والله اعلم بالصواب.

---

[1]) کشف البارى:۱/۴۶۶،و:۳/۳۷۹)_
[2]) کشف البارى:۱/۴۳۵،و:۲/۲۰۵)_
[3]) کشف البارى:۱/۴۸۰)_
[4]) کشف البارى،الحدیث السادس،من بدء الوحی:۱/۴۸۵_۴۸۷)_
[5]) ابن بطال:۵/۳۵۶،وفتح البارى:۶/۲۷۶،وعمدة القارى:۱۵/۹۷،والقسطلانی:۵/۲۴۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# ⑭ باب: هَلْ يُعْفَى عَنِ الذِّمِّيِّ إِذَا سَحَرَ

**د ترجمة الباب مقصد:** كه يو ذمى په يو مسلمان باندې جادو اوكړو نو آيا دا ذمى معاف كيدې شى يا به دې قتلولې شى يا به بله څۀ سزا وركولې شى؟

په دې مسئله كښې چونكه اختلاف دې،د امت د فقهاؤ په دې كښې اختلاف دې ددې وجې نه امام بخارى رحمة الله عليه د خپل عادت مطابق دا "هل" استفهاميه سره ذكر كړې ده،يقين سره ئې څۀ حكم نۀ دې بيان كړې ليكن كوم حديث چې ئې ترجمه كښې ذكر كړې دې،هغې سره د دوى مذهب معلوميږى چې دا ذمى به معاف كولې شى.[1]

**د امت د فقهاؤ د اختلاف تفصيل:** ①علامه باجى د امام مالك رحمهما الله مسلك دا نقل كړې دې چې ذمى جادوګر به نۀ شى قتلولې ليكن دوه صورتونه داسې دى چې په دې دوو صورتونو كښې به قتلولې شى:

(ا):د خپل سحر او جادو په ذريعې سره يو مسلمان ته نقصان اورسوى.په دې صورت كښې چونكه دۀ وعده خلافى كړې ده،ددې وجې نه ددۀ سزا به قتل وى البته كه اسلام قبول كړى نو بيا نۀ شى قتلولې.

(ب):د مسلمانانو نه علاوه د خپل مذهب په يو.سړى باندې ئې جادو اوكړو،ددې په نتيجه كښې هغه سړې مړ شى نو قصاصاً به دې قتلولې شى او كه هغه كس مړ نۀ شى نو صرف سزا به بيا دې جادوګر ته وركولې شى.[2]

②د امام احمد رحمه الله په نزد باندې هم كه ساحر په خپل سحر سره يو سړې قتل كړى نو دې به قصاصاً قتلولې شى، صرف په جادو باندې به د قتل سزا نۀ وى.[3]

③د امام شافعى رحمه الله مذهب هم دادې چې كه د جادوګر په جادو سره څوك مړۀ شى نو دې به قتلولې شى او كه څوك مړۀ نۀ شى نو بيا نۀ قتليږى،په دې شرط چې دې په خپله ددې خبرې اقرار اوكړى چې دا مقتول زما د جادو په نتيجه كښې مړ شوې دې.[4]

امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چې كه جادوګر د خپل جادو اقرار اوكړى يا څۀ دليل سره ددۀ سحر او جادو ثابت شى نو سزا به ئې قتل وى او ددۀ توبه به هم نۀ قبليږى،په دې معامله

---

[1] ) عمدة القارى:۹۷/۱۵،وفتح البارى:۲۷۷/۶)_

[2] ) المنتقى:۹۱۰۲/،كتاب العقول،الباب الثانى فى قتل الغيلة،والاوجز:۹۰/۱۵)_

[3] ) المغنى لابن قدامة:۹۳۷/،كتاب المرتد،احكام السحر......)_

[4] ) قال الشافعى رحمه الله : واذا سحر رجلا فمات،سئل عن سحره،فان قال:انا اعمل هذا لا قتل،فاخطئ القتل واصيب،وقد مات من عملى ففيه الدية،وان قال:مرض منه،ولم يمت،اقسم اولياؤه:لمات من ذلك العمل، وكانت الدية،وان قال:عملى يقتل المعمول به،وقد عمدت قتله به،قتل به قودا":انظر الام:۲۵۵/۸،كتاب القسامة،باب الحكم فى الساحر......)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې مسلمان، ذمی، آزاد او غلام ټول برابر دی. البته یو قول دا هم دې چې مسلمان ساحر خو به قتلولې شی او کتابی به نۀ شی قتلولې.[1]

**د امام اعظم رحمه الله دلیلونه:** (۱): د امام اعظم رحمه الله یو دلیل د ام المؤمنین حضرت حفصه واقعه ده، لکه د نافع عن ابن عمر د طریق نه روایت دې چې د حضرت حفصه یوې وینزې په حضرت حفصه باندې جادو اوکړو، په معلوماتو کولو باندې د هغې جرم ثابت شو او هغې اقرار هم اوکړو، حضرت حفصه حضرت زید ته اووئیل چې دادې قتل کړې شی. حضرت زید دا وینزه قتل کړه، البته دا خبره چې کله حضرت عثمان ته معلومه شوه نو هغه خفه شو، په دې باندې حضرت عبدالله بن عمر هغوی ته حاضر شو او د حقیقت نه ئې خبردار کړو.

د حضرت عثمان د خفه کیدو وجه هم دا وه چې دا کار د هغوی د اجازت نه بغیر شوې وو.[2]

ددې نه دا مطلب اخستل غلط دی چې حضرت عثمان د جادوګر د قتلولو قائل نۀ وو.[3]

② د حضرت امام اعظم دویم دلیل د حضرت عمر فرمان دې، حضرت بجاله فرمائی چې زۀ د جزء بن معاویه کاتب ووم، چې هغوی ته د حضرت عمر خط راغئ چې "اقتلوا کل ساحر وساحرة، فقتلنا ثلاث سواحر".[4]

③ دغه شان د حضرت عمر په باره کښې راځی چې هغوی یو جادوګر ګرفتار کړو او سینې پورې ئې په زمکه کښې ښخ کړو، په دې حال کښې ئې پریخودۀ، تردې چې هغه سړې مړشو.[5]

④ د حضرت حسن بصری نه روایت دې، فرمائی، "یقتل الساحر ولا یستتاب".[6]

⑤ د نبی کریم ﷺ نه هم د جادوګر سزا قتل روایت شوې ده، په جامع ترمذی کښې د حضرت جندب بن عبدالله نه منقول دی چې نبی فرمائی "حد الساحر ضربة بالسيف".[7] دا ټول روایتونه

---

[1] ) احکام القرآن للجصاص: ۵۰/۱، وروح المعانی: ۳۳۹/۱، والاوجز: ۹۰/۱۵)_

[2] ) احکام القرآن: ۵۰/۱، وروح المعانی: ۳۳۹/۱، والمؤطا للامام مالک: ۸۷۱/۲، کتاب الدیات، باب ماجاء فی الغیلة والسحر، رقم (۱۴/۱۵۱۸))_

[3] ) انظر کلام الباجی فیه فی المنتقی: ۹۱۰۱/، والاوجز: ۹۷/۱۵، وانظر ایضا السنن الکبری للبیهقی: ۱۳۶/۸، رقم (۱۶۴۹۹)، والمصنف لابن ابی شیبة: ۵۹۲/۱٤، کتاب الحدود، باب ما قالوا فی الساحر......رقم (۲۹۵۸۳))_

[4] ) اخرجه ابو داود، فی کتاب الخراج......باب فی اخذ الجزیة من المجوس، رقم (۳۰٤۳)، واحمد فی مسنده، حدیث عبدالرحمن بن عوف الزهری: ۱۹۰/۱، و۱۹۱، رقم (۱۶۵۷)، واحکام القرآن: ۵۱/۱، ومسند ابی یعلی الموصلی، مسند عبدالرحمن بن عوف، رقم (۸۵۸))_

[5] ) احکام القرآن: ۵۱/۱، والمصنف لعبد الرزاق: ۹٤۸۰/، کتاب العقول، باب قتل الساحر، رقم (۱۹۰۲۶))_

[6] ) المصنف لابن ابی شیبة، کتاب الحدود، باب ما قالوا فی الساحر......رقم (۲۹۵۷۹))_

[7] ) رواه الترمذی فی کتاب الحدود، باب ما جاء فی حد الساحر، رقم (۱٤۶۰)، والحاکم فی المستدرک: ٤/٤۰۱، کتاب الحدود، رقم (۸۰۷۳)، والبیهقی فی الکبری: ۲۳٤/۸، کتاب القسامة..... [بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په دې خبره باندې دلالت کوی چې ساحر به قتلولې شی، بیا چونکه په دې روایتونو او آثارو کښې ددې خبرې تفریق نشته چې ساحر مسلمان وی یا غیرمسلم، ددې وجې نه امام اعظم ابوحنیفه فرمائی چې مطلقاً به ساحر قتلولې شی خواه مسلمان وی یا غیرمسلم وی.(۱)

**د ائمه ثلثه دلیلونه:** ائمه ثلثه چونکه مطلقاً د ساحر د قتلولو قائل نهٔ دی، په دې خبره کښې هغوی په مسلمان او غیرمسلم کښې فرق کوی چې ساحراهل کتاب به نهٔ شی قتلولې نو په دې سلسله کښې د هغوی دلیل د نبی هغه مشهوره واقعه ده، په کومه واقعه کښې چې په نبی باندې جادو شوې وو چې لبیدبن الاعصم یهودی په نبی باندې جادو کړې وو، لیکن نبی هغه قتل نهٔ کړو کمافی روایة الباب.

د ابن قدامه وینا داده چې د قیاس تقاضه هم داده چې اهل کتاب جادوګر قتل نهٔ کړې شی، ځکه چې ددهٔ شرک ددې کار نه زیاته لویه ګناه ده، په دې شرک باندې دې نهٔ قتلیږی چې دې مشرک دې نو د جادوګر کیدو په وجه به ددهٔ قتلول څنګه جائز شی؟(۲)

**د ائمه ثلثه د دلیلونو نه جوابونه:** علامه ابن قدامه چې د خپل مسلک کوم دلیل پیش کړو، هغه دا وو چې نبی ﷺ ته پتهٔ پته هم اولګیده چې لبید بن الاعصم یهودی په ما باندې جادو کړې دې لیکن ددې باوجود نبی ﷺ هغه قتل نهٔ کړو، ددې نه معلومه شوه چې اهل کتاب جادوګر به نهٔ شی قتلولې. لیکن ددې حدیث نه استدلال کول په څو وجوهاتو سره صحیح نهٔ دی:

① معامله چونکه د نبی ﷺ د خپل ذات اقدس وه او وړاندې دا خبره تیره شوې ده چې نبی ﷺ به د خپل ذات اقدس دپاره د هیچا نه څهٔ قسم انتقام نهٔ اختسلو، ددې وجې نه هغوی مبارک لبید بن اعصم قتل نهٔ کړو، ورنه دا خبره به لازم راغلې وه چې نبی ﷺ د خپل ذات دپاره انتقام واخستلو.

② علامه مهلب فرمائی، ددې جادو د وجې نه نبی ﷺ ته څهٔ نقصان نهٔ وو رسیدلې، نو ددې وجې نه نهٔ د وحې سلسله بنده شوه، نهٔ په شرعی احکاماتو کښې څهٔ مشکل او خلل واقع شو بلکه د خپل ذات حده پورې څهٔ وهم واقع شوې وو لکه څنګه چې د حضرت عائشې رضی الله عنها د باب په حدیث کښې دی، "حتی کان یخیل إلیه أنه صنع شیئاً ولم یصنعه" بیا ددې نه علاوه دا خبره هم وه چې الله تعالی نبی ﷺ په دې حالت کښې یواځې پرینخودلو، بلکه د هغوی مبارک ئې پوره پوره مدد اوفرمائیلو او علاج ئې ورته هم اوښودلو، ددې وجې نه نبی ﷺ دغه یهودی جادوګر معاف کړې وو.

لکه علامه ابن بطال رحمه الله دا وجوهات بیانوی او لیکی چې:

---

بقیه ازحاشیه گذشته] باب تکفیر الساحر......رقم (۱۶۵۰۰)، والجامع الصغیر مع فیض القدیر للمناوی: ۴۹۸/۳، حرف الحاء، رقم (۳۶۸۸)، وسنن الدار قطنی، کتاب الحدود، رقم (۱۱۲))_

(۱) المغنی لابن قدامة: ۹۳۷/، وفیه ایضا: والقیاس ایضا یقتضی ذلک؛ لانه جنایة اوجبت قتل المسلم، فاوجبت قتل الذمی کالقتل")_

(۲) المغنی: ۹۳۷/، والاوجز: ۹۰/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وعلى هذا القول لاحجة لابن شهاب في أن النبي عليه السلام لم يقتل اليهودي الذي سحره لوجوه منها: أنه قد ثبت عن الرسول أنه كان لاينتقم لنفسه، ولوعاقبه لكان حاكماً لنفسه.
قال المهلب: وأيضاً فإن ذلك سحر لم يضره عليه السلام، لأنه لم يفقده شيئاً من الوحي، ولا دخلت عليه داخلة في الشريعة وإنما اعتراه شيئ من التسخيل والتوهم، ثم لم يتركه الله على ذلك، بل تداركه، ثم عصمه وأعلمه بموضع السحر......"[1].
هرچه دا خبره ده چې شرک لویه گناه ده، ددې باوجود د شرک سزا قتل نۀ دې نو د جادو سزا څنګه قتل کیدې شی؟ نو ددې جواب دادې چې د یو انسان شرک اختیارول د هغۀ د ذات پورې محدود وی، ددې ضرر وړاندې چا ته نۀ رسیږی او د جادو معامله داسې نۀ ده. د هغې نقصان او ضرر متعدی وی ځکه چې ددې په ذریعې سره جادوګر خلقو ته نقصان رسوی نو د احنافو په نزد جادوګر مطلقاً د قطاع الطريق په حکم کښې دې چې څنګه د قطاع الطريق (ډاکو) سزا قتل دې نو دغه شان د جادوګر سزا هم قتل دې ځکه چې دا دواړه په دې خبره کښې مشترک دی چې دوی په زمکه کښې فساد خوروی[2].
**د مسلمان جادوګر حکم**: پورته د کتابی یا د ذمی جادوګر حکم بیان کړې شوې دې لیکن که دا جادوګر مسلمان وی نو ددۀ به څۀ سزا وی؟
① امام اعظم رحمه الله چونکه د مسلمان او د غیرمسلم مینځ کښې د فرق کولو قائل نۀ دې نو ددې وجې نۀ د دوی په نزد د مسلمان جادوګر سزا هم قتل دې.
② هم دا قول د امام مالک او احمد رحمهما الله هم دې، په صحابه کرامو او تابعینو کښې حضرت عمروبن عمر، عثمان، علی بن ابی طالب، قیس بن سعد، جندب او د حضرت عمر بن عبد العزیز رضی الله عنهم وغیره هم ددې قائل دی، ځکه چې د نبی کریم ﷺ ارشاد دې، "حد الساحر ضربة بالسيف"[3].
③ او د امام شافعی رائې داده چې صرف د جادو د وجې نه به جادوګر نۀ شی قتلیدې، ترڅو چې دې جادوګر ددې خپل جادو په ذریعې سره څوک قتل کړې نۀ وی، هم دا قول د ابن المنذر او په یو روایت کښې د امام احمد رحمهم الله هم دې[4]. د دوی استدلال ددې نه دې

---

[1] ) شرح ابن بطال:۳۵۸/۵_۳۵۹،وایضا فتح الباری:۲۷۷/۶،وعمدة القاری:۹۸/۱۵)_
[2] ) الدر المختار:۳۲۴/۳. قال ابن شجاع:فحکم فی الساحر والساحرة حکم المرتد والمرتدة،وقال –نقلا عن ابی حنیفة–:ان الساحر قد جمع مع کفره السعی فی الارض بالفساد،والساعی بالفساد اذا قتل قتل".انظر البیان للصابونی:۸۵/۱،والاحکام للرازی:۵۱/۱)_
[3] ) الحدیث مر تخریجه آنفًا)_
[4] ) المغنی لابن قدامة:۹۳۵/،کتاب قتال اهل البغی،فصل السحر،والام:۲۳۶/۲،رقم (۲۸۲۳)،وهو قول ابن حزم کذلک،انظر المحلی:۴۱۰/۱۲)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې د حضرت عائشې رضي الله عنها يو مدبرې وينزې په دوی باندې جادو اوکړو نو هغوی دا وينزه خرڅه کړه [١].ددې نه معلومه شوه چې د ساحر سزا قتل نهٔ دې.ورنه ددې وينزې خرڅول به جائز نهٔ وو ، بلکه دا به په هرحالت کښې قتلولې شوه او هم دا قتل به واجب وو.[٢].

دغه شان د نبی کريم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دې. "لايحل دم امرئ مسلم الا باحدی ثلاث......"[٣].

په دې حديث مبارک کښې د درې قسمه خلقو وينه حلاله ګرځولې شوې ده،يعنی قصداً قتل کوونکې.محصن زانی او مرتد.او دا کوم چې جادوګر دې نو ددهٔ نه د دريو لويو ګناهونو صدور نهٔ دې شوې،ددې وجې نه ددهٔ وينه حلاليدل پکار نهٔ دی چې دې واجب القتل اوګرځولې شی.[٤].

**د ائمه ثلاثه دليلونه:** د ائمه ثلاثه اولنې دليل خو هغه دې کوم چې اوس پورته تير شو.

د دوی دويم دليل د حضرت عمر هغه خط دې کوم چې هغوی حضرت جزء بن معاويه ته ليکلې وو ، "اقتلوا کل ساحر....."[٥]چې ددې په نتيجه کښې هغوی درې ځلور جادوګران قتل کړې وو ،دا خبره مشهوره هم شوه،ددې باوجود هيڅ يو صحابی په دې کار باندې نکير اونکړو ،ګويا په دې باندې د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع وه چې ساحر به قتلولې شی.

د دوی دريم دليل د حضرت حفصه رضي الله عنها واقعه ده،کومه چې وړاندې تيره شوه چې هغوی خپله يوه جادوګره وينزه قتل کړې وه.[٦].

**د اختلاف مدار:** حنفيه چې د جادوګر د قتل قائل دی نو ددې وجه داده چې دا کس فسادی دې او په زمکه کښې فساد خوروی او کافر هم دې او د مالکيه په نزد دې زنديق دې او ددهٔ سزا بس قتل ده.او امام شافعی رحمه الله د جادوګر د کفر قائل نهٔ دې،بلکه صرف يو ګناه ئې ګڼړی،د ګناه سزا تعزير او تاديب خو کيدې شی ليکن قتل نهٔ شی کيدې،البته:دا چې ددې جادو په ذريعې سره دې څوک قتل کړی نو په دې صورت کښې به دې قصاصاً قتلولې شی،نهٔ چې د ارتداد ،کفر او د زنديقيت د وجې نه به قتلولې شی.[٧].

---

[١]) المغنی:/٩٣٥،والسنن الکبری للبيهقی:٢٣٧/٨،کتاب القسامة،باب من لايکون سحره کفرا......رقم (١٦٥٠٦)، والمصنف لعبد الرزاق،کتاب العقول،باب قتل الساحر،رقم (١٩٠٢٠_١٩٢٠))_

[٢]) المغنی:/٩٣٥،والام:٢٣٧/٢،کتاب الستسقاء،الحکم فی الساحر والساحرة،رقم (٢٨٢٦))_

[٣]) وتمامه: لن يزنی بعد ما احصن،او يقتل انسانا فيقتل،او يکفر بعد اسلامه فيقتل ".رواه الترمذی فی الفتن،باب ما جاء لا يحل دم امرئ الا باحدی ثلاث،رقم (٢١٥٩)،وابو داود فی الديات،باب الامام يامر بالعفو فی الدم،رقم (٤٥٠٢)،والنسائی فی تحريم الدم،باب ذکرما يحل به دم المسلم،رقم (٤٠١٩)،عن عثمان رضي الله عنه )

[٤]) المغنی:/٩٣٥،والام للشافعی:٢٣٧/٢،الحکم فی الساحر والساحرة،رقم (٢٨٢٦))_

[٥]) مر تخريجه آنفًا)_

[٦]) المغنی لابن قدامة:/٩٣٦)_

[٧]) احکام القرآن للعثمانی:٤١/١،والمنتقی للباجی:/٩١٠١،کتاب العقول)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**يو اهم خبرداري:** د پورتني تفصيلاتو نه په ظاهره دا معلوميږي چې د حنفيه په نزد هر قسم جادو كفر دې ليكن دا خيال صحيح نۀ دې، لكه امام ابو منصور ماتريدى رحمة الله عليه فرمائى:

"إن القول بأن السحر كفر على الاطلاق خطاء بل يجب البحث عن حقيقته، فان كان فى ذلك رد ما لزم من شرط الايمان فهو كفر، والا فلا"[1].

**يو دويم خبرداري:** بيا د احنافو په نزد دا حكم چې ساحر به قتلولې شى، په دې كښې ذمى، مسلم، آزاد، غلام، ښځه او سړې ټول برابر دى، نو دا حكم هغه وخت دې چې كله جادوګر د خپل جادو په ذريعې سره فساد خوروى، ددې برخلاف كه دا جادوګر فسادى نۀ وى نو سړې خو به قتلولې شى ليكن ښځه به نۀ شى قتلولې، كما فى المرتد يقتل، والمرتدة لا تقتل، بل تحبس[2]. والله اعلم بالصواب

**د ساحر توبه به قبلولې شى يا نۀ؟** جادوګر كه دا اووائى چې زۀ توبه كوم نو ددۀ توبه به قبلولې شى يا نۀ، په دې كښې اختلاف دې:

① د موالكو ﷬ په نزد به ددۀ توبه مطلقاً نۀ شى قبلولې، په هرحال كښې به دې قتلولې شى[3]

② او د شوافعو ﷬ په نزد به مطلقاً قبلولې شى[4].

③ د احنافو او د حنابلو ﷬ په دې مسئله كښې دوه روايتونه دى، لكه ابن عابدين فرمائى چې په فتح القدير[5] كښې دى چې د ساحر توبه به نۀ شى قبلولې، ظاهر مذهب هم دا دې[6].

هم دا خبره علامه ابن قدامه هم نقل كړې ده، هغوى ليكى:

"فيه روايتان، إحداهما: أنه لا يستتاب، وهو ظاهر ما نقل عن الصحابة، فانه لم ينقل عن أحد منهم انه استتاب ساحراً، وعن عائشة رضى الله عنها[7]، أن الساحرة سئلت أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم وهم متوافرون هل لها من توبة؟ فما أفتاها أحد"[8].

---

[1] ) احكام القرآن للعثمانى:١/٤١، اقوال الفقهاء فى السحر والساحر، وروح المعانى:١/٣٣٩، وتفسير المدارك:١/٦١)_

[2] ) احكام القرآن للرازى:١/٦١، ورد المحتار:٣/٣٢٣)_

[3] ) ذكره الباجى فى المنتقى:٢/٩١٠، والاوجز:١٥/٩٨)_

[4] ) السنن الكبرى للبيهقى:٨/٢٣٦، كتاب القسامة، باب قبول توبة الساحر.....، وفتح البارى:١٠/٢٠٢، والنووى مع مسلم:٢/٢٢١، كتاب السلام، باب السحر)_

[5] ) فتح القدير:٥/٣٣٣، كتاب السير، باب احكام المرتدين)_

[6] ) حاشية ابن عابدين:٣/٣٢٣، مطلب فى الساحر......باب المرتد)_

[7] ) انظر للقصة بتمامها السنن الكبرى للبيهقى:٨/٢٣٥_٢٣٦، كتاب القسامة، باب قبول توبة الساحر......، رقم (١٦٥٠٥)، وتفسير ابن جرير الطبرى:١/٣٦٦_٣٦٧، سورة البقرة، الآية (١٠٢))_

[8] ) المغنى:٦/٩٣٦، والاوجز:١٥/٨٨)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لیکن تحقیقی قول ددې حضراتو په نزد هم دادې چې د جادوګر توبه مقبوله ده،لکه صاحب د مدارک علامه نسفی د پورتنی قول رد کوی او فرمائی چې د فرعون د جادوګرانو توبه قبوله کړې شوه،ددې وجې نه دا وینا غلطه ده چې د ساحر توبه مقبوله نۀ ده(١).

او ابن قدامه فرمائی: "والرواية الثانية: يستتاب،فان تاب قبلت توبته،لانه ليس باعظم من الشرك،والمشرك يستتاب، ومعرفته السحر لا تمنع قبول توبته،فان الله تعالى قبل توبة سحرة فرعون، وجعلهم من أوليائه..... "(٢).والله اعلم بالصواب

وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ سُئِلَ أَعَلَى مَنْ سَحَرَ مِنْ أَهْلِ الْعَهْدِ قَتْلٌ قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-قَدْ صُنِعَ لَهُ ذَلِكَ،فَلَمْ يَقْتُلْ مَنْ صَنَعَهُ ،وَكَانَ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ.

## رجال الحديث

①**ابن وهب**:دا مشهور محدث او فقیه ابو محمد عبد الله بن وهب قرشی مصری رحمة الله علیه دې. د دوی تفصیلی تذکره په کتاب العلم،"باب من يرد الله به خيراً يفقهه... "کښې تیره شوې ده(٣).

②**یونس**: دا یونس بن یزید ایلی قرشی دې.د دوی مختصر تذکره په بدء الوحی کښې او تفصیلی تذکره په کتاب العلم کښې پورته ذکر شوې باب کښې راغلې ده.(٤).

③**ابن شهاب**:د ابن شهاب زهری حالات د "بدء الوحی" په دریم حدیث کښې تیر شوې دی.(٥).

**د مذکوره تعلیق مقصد**:په ترجمة الباب کښې مونږ دا وئیلې دی چې د اهل کتاب جادوګر په باره کښې د امام بخاری میلان دې طرفته دې چې دې به معاف کولې شی،ددې مدعا د ثابتولو دپاره امام بخاری د ابن شهاب دا تعلیق نقل کړې دې،ددې نه دا ثابتیږی چې ذمی ساحر به معاف کولې شی لکه څنګه چې نبی پاک معاف کړې وو.لیکن ددې استدلال جواب مونږ د احنافو وغیره له طرفه وړاندې ذکر کړې دې.

**د مذکوره تعلیق تخریج**:دا تعلیق ابن وهب په خپل "جامع"کښې موصولاً نقل کړې دې.(٦).

---

[١] ) تفسیر المدارک:٦١/١، البقرة،الآية:١٠٢،وروح المعانی:٣٣٩/١)_

[٢] ) المغنی:٩٣٦/،والاوجز:٨٨/١٥، سحر سره متعلق نور بحث دپاره اوګورئ: کشف الباری،کتاب الطب، ص :٩٦_١٢٦)_

[٣] ) کشف الباری:٢٧٧/٣)_

[٤] ) کشف الباری:٤٦٣/١،و:٢٨٢/٣)_

[٥] ) کشف الباری:٣٢٦/١)_

[٦] ) تغلیق التعلیق:٤٨٥/٣،والفتح:٢٧٧/٦،والعمدة:٩٧/١٥،اردو تغلیق:٤٥٨/٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:** سئل: أعلى من سحر من أهل العهد قتل: د ابن شهاب نه تپوس اوکړې شو چې په اهل عهد کښې که څوک جادو اوکړی نو آیا د هغهٔ سزا قتل ده؟

"سئل" فعل ماضی مجهول دې او په أعلی کښې همزه د استفهام دپاره ده او علی حرف جار دې چې د وجوب معنی ته متضمن او شامل دې.(١) يعنی که په اهل عهد او اهل کتاب کښې څوک جادو اوکړی نو آیا د هغهٔ قتلول واجب دی؟

**قوله:** قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ صُنِعَ لَهُ ذَلِكَ، فَلَمْ يَقْتُلْ مَنْ صَنَعَهُ، وَكَانَ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ.: ابن شهاب ورته په جواب کښې اووئیل چې مونږ ته دا خبره رارسیدلې ده چې په نبی باندې هم جادو کړې شوې وو لیکن هغوی جادوګر قتل نهٔ کړو او هغه د اهل کتابو نه وو.

دلته امام بخاری ترجمه خود ذمی قائمه کړې ده او په سوال کښې "أهل العهد" او د ابن شهاب په جواب کښې "أهل الکتاب" ذکر دې، په دې کښې د اشکال څهٔ خبره نشته ځکه چې د اهل کتابو نه مراد هم اهل عهد دی، ورنه دا خو حربیان دی او قتل ئې واجب دی.(٢) دغه شان د عهد او د ذمه يو معنی ده او ددې نه د ابن شهاب د جواب وضاحت هم کیږی چې د اهل کتاب نه مراد هم اهل ذمه او اهل عهد دی.(٣).

**ترجمة الباب سره د تعلیق مناسبت:** ترجمة الباب سره د مذکوره تعلیق مناسبت او مطابقت هم واضح دې کوم چې د پورتنی تقریر نه ظاهر دې.

٣٠٠٤-(٤) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم - سُحِرَ حَتَّى كَانَ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ صَنَعَ شَيْئًا وَلَمْ يَصْنَعْهُ.[٣٠٩٥، ٥٤٣٠، ٥٤٣٢، ٥٤٣٣، ٥٧١٦، ٦٠٢٨]

## رجال الحدیث

①**محمد بن المثنی:** دا ابو موسی محمد بن المثنی بن عبید بصری دې. د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الایمان" کښې راغلې ده.(٥).

---

(١) عمدة القاری:١٥/٩٧_

(٢) شرح الکرمانی:١٣/١٣٩)_

(٣) عمدة القاری:١٥/٩٧، وفتح الباری:٦/٢٧٧)_

(٤) قوله عن عائشة رضی الله عنها:الحدیث، اخرجه البخاری ایضا، کتاب بدء الخلق، باب صفة ابلیس و جنوده، رقم (٣٢٦٨)، وکتاب الطب، باب السحر، رقم (٥٧٦٣) و(٥٧٦٥_٥٧٦٦)، وکتاب الادب، باب قول الله تعالی:(ان الله یامر بالعدل.....)، رقم (٦٠٦٣)، وکتاب الدعوات، باب تکریر الدعاء، رقم (٦٣٩١)، ومسلم، کتاب السلام، باب السحر، رقم (٥٧٠٣_٥٧٠٤))_

(٥) کشف الباری:٢/٢٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④**یحیی**: دا امام یحیی بن سعید القطان دې د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب من الایمان ان یحب لاخیه....." کښې تیره شوې ده.[1]

③**هشام**: دا هشام بن عروة بن الزبیر قرشی دې.

④**ابی**: د اب نه مراد حضرت عروة بن الزبیر دې. ددې دواړو حضراتو حالات اجمالاً په "بدء الوحی" کښې او تفصیل سره په "کتاب الایمان" کښې تیر شوې دی.[2]

⑤**عائشة**: د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه حالات په "بدء الوحی" کښې تیر شوې دی.[3]

**قوله**: أن النبی صلی الله علیه وسلم سحر، حتی کان یخیل إلیه أنه صنع شیئاً ولم یصنعه.: د حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چې په نبی باندې جادو اوکړې شو. چې د هغې په نتیجه کښې نبی ته دا وهم او گمان لاحق شو چې ما فلانې کار کړې دې او حقیقت کښې به ئې هغه کار نۀ وو کړې.

په دې حدیث مبارک کښې حضرت عائشې هغه مشهور واقعې طرفته اشاره کړې ده په کومه واقعه کښې چې په نبی باندې د جادو کیدو او د هغې په نتیجه کښې د اثراتو د ظاهر کیدلو تذکره ده، دلته امام بخاری د هغې واقعې څۀ حصه نقل کړې ده او مکمل واقعه ئې په کتاب الطب[4] کښې نقل کړې ده او ددې پوره تشریح هم هلته ذکر شوې ده.[5]

**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت**: ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت دغه شان دې چې نبی ﷺ هغه یهودی لبید بن الاعصم معاف کړې وو، باوجود ددې چې د هغۀ دا جرم ډیر لوئې او قبیح وو لکه څنګه چې اوس مونږ پورته ذکر کړل، دا خبره اګرچه د باب په حدیث شریف کښې نشته لیکن په تفصیلی واقعه او حدیث کښې موجود ده.[6]

**وقال الحافظ** رحمه الله: "واشار بالترجمة الی ماوقع فی بقیة القصة ان النبی ﷺ لما عوفی امر بالبئر فردمت، وقال: کرهت ان اثیر علی الناس شراً". لکه د کتاب الطب په روایت کښې راغلې دی:

"**یا رسول الله، أفلا؟ أی تنشرت "فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: اما والله، فقد شفانی وأکره أن أثیر علی أحد من الناس شراً**".[7]

---

[1] ) کشف الباری: ۲/۲ـ

[2] ) کشف الباری: ۲۹۱/۱، و: ۴۳۲/۲ـ ۴۴۰ـ

[3] ) کشف الباری: ۲۹۱/۱ـ

[4] ) صحیح البخاری، کتاب الطب، باب السحر، رقم (۵۷۶۳)ـ

[5] ) کشف الباری، کتاب الطب، ص: ۱۰۴ـ ۱۱۹ـ

[6] ) فتح الباری: ۲۷۷/۶، وعمدة القاری: ۹۸/۱۵، وارشاد الساری: ۲۴۰/۵ـ

[7] ) صحیح البخاری، کتاب الطب، باب هل یستخرج السحر؟ رقم (۵۷۶۵)ـ

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# ⑮ باب: مَا يُحْذَرُ مِنَ الْغَدْرِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری دلته دا فرمائی چې که کافرانو سره مصالحت اوشی نو ددې مطلب دا نهٔ دې چې مسلمانان بې فکره او د دشمن له طرفه غافل شی، بلکه بیدار اوسیدل پکار دی، کافران خلق دی، معلومه نهٔ ده چې څهٔ وخت وعده خلافی کوی او صلح ماته کړی او د عالمی حربی قوانینو خلاف ورزی اوکړی او حمله آور شی، ددې وجې نه غافله کیدل صحیح نهٔ دی بلکه هوښیار او بیدار اوسیدل پکار دی.

**قوله: وقوله تعالى: وإن يريدوا أن يخدعوك فإن حسبك الله: الآية/الأنفال:٦٢/**

او د الله تعالى قول دې چې که دا کافران او مشرکان تاسو ته دهوکه درکول اوغواړی نو الله تعالى ستاسو دپاره کافی دې.

**وقوله تعالى.....** ددې عطف په وړاندې لفظ غدر باندې دې، کلمه د حسب د سین مهمله سکون سره ده، چې ددې معنى ده کافی کیدل.[1]

مطلب دادې چې که کافران او مشرکان تاسو سره صلح اوکړی او دې صلح کولو سره د دوی نیت دهوکه کول وی، تیاری کول وی، مزید قوت او طاقت حاصلول وی او بیا تاسو ته مقابلې ته راتلل وی نو په دې کښې د ویریدلو هیڅ خبره نشته، ځکه چې د الله تعالى قهار او جبار ذات یواځې ستاسو دپاره کافی دې.[2]

زمونږ په وړاندې چې کومه نسخه موجود ده نو په هغې کښې د آیت کریمه صرف هم دا حصه نقل کړې شوې ده کومه چې د ابوذر نسخه ده، او په ابن عساکر کښې د (عزیز حکیم) پورې ایتونه نقل کړې شوې دی.[3] ددې نسخې په اعتبار سره پوره آیتونه د ترجمې سره لاندې ذکر کولې شی:

**(وإن يريدوا أن يخدعوك فإن حسبك الله هو الذى أيدك بنصره وبالمؤمنين، وألف بين قلوبهم لو أنفقت ما فى الارض جميعا ما ألفت بين قلوبهم ولكن الله ألف بينهم إنه عزيز حكيم)**[4].

"او که دا کافران او مشرکان تاسو ته دهوکه درکول اوغواړی نو الله تعالى ستاسو دپاره کافی دې، دا هغه ذات دې چې د خپل نصرت او د مؤمنانو په ذریعې سره ئې تاسو ته قوت درکړو او د مؤمنانو زړونه ئې پیوست کړل، که د زمکې په مخ باندې څومره څهٔ دی دا ټول هم

---

[1] ) فتح البارى:٦/٢٧٧، وقال العينى انه معطوف على ما يحذر..... "انظر عمدة القارى:١٥:٩٩] علامه آلوسى رحمه الله د کلمه حسب" متعلق لیکی: "فحسب صفة مشبهة بمعنى اسم الفاعل، والكاف فى محل الجر. كما نص عليه غير واحد.... وقال الزجاج: انه اسم فعل بمعنى كفاك، والكاف فى محل نصب". روح المعانى:٦/٢٨)

[2] ) ارشاد السارى:٥/٢٤١)_

[3] ) پورته حواله، وعمدة القارى:١٥/٩٩، وروح المعانى:٦/٢٨، والقرطبى:٨/٤٢)_

[4] ) الانفال:٦٢_٦٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تاسو خرچ کړې وې نو د دوی زړونه به تاسو نه وو جوړ کړې.لیکن الله تعالی هغه ذات دې چاچې د دوی مینځ کښې جوړ او موافقت پیدا کړو ،بیشکه هغه غالب او حکمت والا دې".
پورتنی آیت کریمه کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چې که مسلمانانو ته دا معلومه شی چې دشمن چې کومه د صلحې خبره کوی نو دا سراسر دهوکه بازی ده او مکر و فریب دې،د تیارئ کولو مهلت غواړی نو بیا هم ددې کافرانو خبره قبلول پکار دی،په دې کښې څۀ ویره وغیره محسوسول پکار نۀ دی نو ددې وجې نه صلح دې اوکړې شی او وړاندې معامله دې الله تعالی ته اوسپارلې شی،د هغۀ په ذات باندې دې یقین اوکړې شی،لیکن ددې کافرانو له طرفه غافله کیدل او بې پرواه کیدل هم پکار نۀ دی.

حافظ ابن حجر لیکی: "وفی هذه الآیة إشارة إلی أن احتمال طلب العدو للصلح خدیعة لایمنع من الاجابة إذا ظهر للمسلمین بل یعزم ویتوکل علی الله"[1].

علامه مهلب فرمائی چې ددې نه علاوه په دې آیت کریمه کښې ددې خبرې دلالت هم دې چې نبی ﷺ تول ژوند مبارک کښې د مکر و فریب نه محفوظ وو،ددې خبرې ضمانت په دې آیت کریمه کښې ورکړې شوې دې،دا خصوصیت د نبی ﷺ نه علاوه هیچاته حاصل نۀ دې ځکه چې د الله تعالی ارشاد دې چې الله تعالی به تاسو خلق محفوظ ساتی[2]،ددې وجې نه د امت اجماع ده چې نبی معصوم فی الرساله دې او د خلقو د مکر و فریب او دهوکه بازئ نه هم محفوظ پاتې شو[3].

**د ترجمة الباب او ایت کریمه مینځ کښې مناسبت:** امام بخاری په ترجمة الباب کښې دا وئیلې وو چې کفارو سره د مصلحت کولو باوجود بیدار اوسیدل پکار دی او د آیت کریمه مفهوم دا وو چې که د کافرانو اراده د وعده خلافئ کولو وی نو په دې کښې د پریشانئ هیڅ خبره نشته،نو اوس د آیت کریمه او د ترجمة الباب مینځ کښې مناسبت دا شو چې الله تعالی باندې توکل کولو او یقین کولو سره دې مصلحت اوکړې شی ځکه چې هغه ذات هرڅۀ کولې شی او د کفارو د مکر و فریب نه غافله کیدل هم پکار نۀ دی بلکه بیدار اوسیدل پکار دی،

دې سره سره د اسبابو انتظام هم کول پکار دی.دا د ټولو نه غوره طریقه ده. والله اعلم بالصواب

۳۰۰۵ [4] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِي حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ زَبْرٍ قَالَ سَمِعْتُ بُسْرَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا إِدْرِيسَ قَالَ سَمِعْتُ عَوْفَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِي -

---

[1] ) فتح الباری:۶/۲۷۷)_
[2] ) قال الله عزوجل:(والله یعصمک من الناس) (المائدة/۶۷))_
[3] ) شرح ابن بطال:۵/۳۵۷)_
[4] ) قوله: قوف بن مالک رضی الله عنه ":الحدیث،اخرجه ابو داود،کتاب الادب،باب ما جاء فی المزاح،رقم (۵۰۰۰)،وابن ماجه،کتاب الفتن،باب اشراط الساعة،رقم (۴۰۴۲)،وباب الملاخم،رقم (۴۰۹۵))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

صلى الله عليه وسلم - فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ فَقَالَ «اعْدُدْ سِتًّا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ، مَوْتِي، ثُمَّ فَتْحُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ، ثُمَّ مُوتَانٌ يَأْخُذُ فِيكُمْ كَقُعَاصِ الْغَنَمِ، ثُمَّ اسْتِفَاضَةُ الْمَالِ حَتَّى يُعْطَى الرَّجُلُ مِائَةَ دِينَارٍ فَيَظَلُّ سَاخِطًا، ثُمَّ فِتْنَةٌ لاَ يَبْقَى بَيْتٌ مِنَ الْعَرَبِ إِلاَّ دَخَلَتْهُ، ثُمَّ هُدْنَةٌ تَكُونُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ بَنِي الأَصْفَرِ فَيَغْدِرُونَ، فَيَأْتُونَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِينَ غَايَةً، تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا».

## رجال الحديث

①**الحميدى**: دا ابو بكر عبدالله بن زبير حميدى مكى دي. د دوى تذكره د "بدء الوحى" د اولنى حديث په ضمن كښې راغلې ده[1].

②**الوليد بن مسلم**: دا ابو العباس الوليد بن مسلم قرشى دي[2].

③**عبدالله بن العلاء بن زبر**: دا ابو عبدالرحمن يا ابو زبر[3]. عبدالله بن العلاء بن زبر بن عطارد بن عمرو ربعى، شامى دمشقى دي. دا د مشهور محدث ابراهيم بن عبدالله بن العلاء والد صاحب او د بشر بن العلاء ورور دي[4].

د دوى د ځوئى ابراهيم د وينا مطابق دوى په ۷۵ هجرئ كښې پيدا شو[5].

دي د بسر بن عبيد الله، يزيد بن ثور، ربيعه بن مرثد، سالم بن عبدالله بن عمر، ضحاك بن عبدالرحمن، عطيه بن قيس، عمر بن عبدالعزيز، قاسم بن محمد بن ابى بكر، قاسم بن عبدالرحمن، مكحول او د نافع (د ابن عمر د مولى) نه علاوه د نورو ګڼړو حضراتو نه د حديث روايت كوى.

او ددوى نه د دوى ځوئې ابراهيم، زيد بن حباب، عمر بن ابى سلمه، الوليد بن مسلم، محمد بن شعيب، مروان بن محمد، شبابه بن سوار، ابومسهر او ابوالمغيرو غيره د حديث روايت كوى[6]

امام احمد بن حنبل فرمائى، "مقارب الحديث"[7].

---

[1]) كشف البارى:۱/۲۳۷)_

[2]) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب مواقيت الصلاة، باب وقت المغرب)_

[3]) قوله: زبر "بفتح الزارى المعجمة وسكون الموحدة. انظر التقريب:۱/۵۲۱، رقم (۳۵۳۲)، واكمال ابن ماكولا:۴/۱۶۲، وشرح القسطلانى:۵/۲٤۱)_

[4]) تهذيب الكمال:۱۵/۴۰۵_۴۰۶، والاكمال لمغلطاى:۸/۱۰۹، رقم (۳۱۱۰))_

[5]) تهذيب الكمال:۱۵/۴۱۰، وسير العلام النبلاء:۷/۳۵۱، والاكمال لمغلطاى:۸/۱۰۹، وكتاب الثقات لابن حبان:۷/۲۷)_

[6]) د دوى استاذانو او شاګردانو دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال:۱۵/۴۰۶_۴۰۷)_

[7]) تهذيب الكمال:۱۵/۴۰۷، وتهذيب التهذيب:۵/۳۵۰، وسير اعلام النبلاء:۷/۳۵۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عباس دوری، ابوبکر بن ابی خیثمه، عثمان بن سعید دارمی او معاویه بن صالح د امام یحیی بن معین نه نقل کړې دی چې هغوی فرمائی، "ثقة"[1].

دغه شان امام ابو داؤد فرمائی، "ثقة"[2].

امام نسائی فرمائی، "لیس به باس"[3]

ابن سعد د دوی شمار په شامیانو کښې "الطبقة الخامسة" کښې کړې دې، دغه شان فرمائی، "كان ثقة إن شاء الله"[4].

عبد الرحمن بن ابراهیم دُحیم فرمائی، "كان ثقة، وكان من أشراف البلد"[5].

هشام بن عمار فرمائی: "شيخ، ثقة، سمع من القاسم أبي عبد الرحمن وعمر بن عبد العزيز، هو قديم"[6].

امام ابو حاتم فرمائی، "يكتب حديثه"[7].

مزید فرمائی، "هو أحب إلي من أبي معيد حفص بن غيلان"[8].

امام دارقطنی فرمائی، "ثقة يجمع حديثه"[9].

ابن حبان د دوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې[10].

امام عجلی او حافظ ابن عبد الرحیم هم دوی ته ثقه وئیلې دې.[11].

او ابن شاهین هم دې په "الثقات" کښې ذکر کړې دې.[12]

د حضرت عبد الله بن العلاء انتقال په ۱۶۴ یا ۱۶۵ هجرئ کښې اوشو، سیعد بن عبد العزیز د

---

[1]) تهذیب الکمال:۱۵/۴۰۷_۴۰۸، وتهذیب التهذیب:۵/۳۵۰، وتاریخ بغداد:۱۰/، وتاریخ عثمان بن سعید الدارمی:۱۵۳، رقم (۵۳۴))_

[2]) تهذیب الکمال:۱۵/۴۰۸، وتاریخ بغداد:۱۰/۱۷، وسیر اعلام النبلاء:۷/۳۵۱)_

[3]) تهذیب الکمال:۱۵/۴۰۸، والاکمال للمغلطای:۸/۱۰۹)_

[4]) الطبقات الکبری لابن سعد:۷/۴۶۸)_

[5]) تهذیب الکمال:۱۵/۴۰۸، وتهذیب التهذیب:۵/۳۵۰، وسیر اعلام النبلاء:۷/۳۵۰، والمعرفة والتاریخ للفسوی:۱/۱۰، وفی سنة خمس وستین ومائة)_

[6]) المعرفة والتاریخ للفسوی:۲/۲۲۸، رقم (۲۳۱)، وتهذیب الکمال:۱۵/۴۰۹)_

[7]) تهذیب الکمال:۱۵/۴۰۹، وتهذیب التهذیب:۵/۳۵۰)_

[8]) الجرح والتعدیل:۵/۱۵۸، رقم (۵۹۲)، پورته حواله جات)_

[9]) تهذیب الکمال:۱۵/۴۰۹، وسیر اعلام النبلاء:۷/۳۵۱، وتهذیب التهذیب:۵/۳۵۱)_

[10]) کتاب الثقات:۷/۲۷)_

[11]) الاکمال للمغلطای:۸/۱۰۹، وتهذیب التهذیب:۵/۳۵۱)_

[12]) پورته حواله جات)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دوى دجنازې مونځ اوکړو ، دوفات په وخت ددوى عمر ۸۵ کاله وو .[1] رحمه الله تعالى رحمة واسعة
خبرداری: حضرت عبدالله بن العلاء بن زبر متفق علیه ثقه دې ،لیکن معلومه نۀ ده څۀ وجه اوشوه چې ابن حزم ظاهری د خپل عادت موافق دۀ ته ضعیف وئیلې دې او ددې نسبت ئې د امام یحیى بن معین طرفته کړې دې چې هغوی دۀ ته ضعیف وئیلې دې.[2] لیکن ددې جرح هیڅ اعتبار نشته، ددې وجوهات لاندې ذکر کولې شی:
اول دا چې دا جرح مبهمه ده، ابن حزم ددې وجې نۀ ده بیان کړې چې دې ولې ضعیف دې او مبهم جرح معتبر نۀ وی.[3]
دویم دا چې د یحیى ابن معین طرفته کوم نسبت کړې شوې دې نو دا په ظاهره صحیح نۀ معلومیږی ځکه چې وړاندې مونږ ذکر کړې دی چې امام ابن معین دوی ته ثقه وئیلې دی.[4]
دریم دا چې د امام مسلم نه علاوه نورو پنځو امامانو د دوی روایات قبول کړې دی، دا هم ددې خبرې دلیل دې چې دې ضعیف نۀ دې.[5]
③ **بسر بن عبدالله**: دا جلیل القدر فقیه بسر بن عبد الله حضرمی شامی دې.[6]
دې د واثله بن الاسقع، عمرو بن عبسه، رویفع بن ثابت، سنان بن عرفه، عبد الله بن محیریز او د ابو ادریس خولانی رضی الله عنهم نه روایت کوی. او د دوی نه چې څوک روایت کوی نو په هغوی کښې عبدالله بن العلاء بن زبر، عبد الرحمن بن یزید بن جابر، زید بن واقد، داؤد بن عمرو الاودی رحمهم الله وغیره شامل دی.[7]
امام عجلی او امام نسائی فرمائی، "ثقة".[8]

---

[1]) پورته حواله جات، وتهذيب الكمال:١٥/٤١٠، وكتاب الثقات:٧/٢٧)_

[2]) المحلى لابن حزم:٦/١٠٥، كتاب الاطعمة، حكم استعمال اوانى اهل الكتاب، رقم (١٠٢٤)، وميزان الاعتدال للذهبي:٢/٤٦٤، رقم (٤٤٦٦)، وتهذيب التهذيب:٥/٣٥١)_

[3]) قواعد في علوم الحديث للعثماني:١٧٤_١٧٥، و:٢٦٨، وشرح نخبة الفكر:١٣٦، والجرح مقدم على التعديل......قال الحافظ: له في البخاري حديثان، احدهما: في تفسير الاعراف بمتابعة زيد بن واقد، كلاهما عن بسربن عبيدالله، والآخر: في الجزية، و روى له اصحاب السنن". هدى السارى:٥٨٣، حرف العين، الفصل التاسع سياق اسماء من طعن.....)_

[4]) قال ابن حجر رحمه الله في التهذيب(٥/٣٥١): قال شيخنا في شرح الترمذي: لم اجد ذلك عن ابن معين بعد البحث، و وقع في المحلى لابن حزم في الكلام على حديث ابي ثعلبة في آنية اهل الكتاب: عبد الله بن العلاء ليس بالمشهور" (انظر المحلى:٦/١٠٥)، وهو متعقب بما تقدم")_

[5]) ميزان الاعتدال:٢/٤٦٤، وسير اعلام النبلاء:٤/٥٩٢، والاكمال لمغلطاى:٢/٣٨٤)_

[6]) تهذيب الكمال:٤/٧٥، وسير أعلام النبلاء:٤/٥٩٢، والاكمال للمغلطاى:٢/٣٨٤)_

[7]) د استاذانو او شاگردانو دپاره ئې اوگورئ، تهذيب الكمال:٤/٧٦)_

[8]) پورته حواله، وتهذيب التهذيب:١/٤٣٨)_

ابو مسهر فرمائی، "احفظ أصحاب أبي ادريس عنه : بسر بن عبدالله"(۱).

مروان بن محمد فرمائی: "هو من كبار أهل المسجد، ثقة من أهل العلم"(۲).

حافظ ذهبي فرمائی: "ثقة..... "وكان من علماء دمشق"(۳)

د حدیث اصولو سره د دوی څومره شوق وو او ددې دپاره به ئې څومره محنت کوو نو ددې اندازه د دوی ددې قول نه کیږی، فرمائی:

"إنه كان ليبلغني الحديث في المصر، فارحل فيه مسيرة أيام"(۴)

چې "کله به ماته معلومه شوه چې په فلانی ښار کښې حدیث موجود دې نو ما به د هغې د حصول دپاره څو ورځې سفر کوو"

د اصول سته اصحابو د دوی روایات اخستلې دی(۵).

تقریباً په ۱۱۰هجرئ کښې د اموی خلیفه هشام بن عبدالملک په خلافت کښې د دوی وفات شو(۶)، رحمه الله رحمة واسعة

**خبرداري:** ابن حبان د دوی ترجمه په کتاب الثقات کښې درج کړې ده لیکن دې ئې تبع تابعی ښودلې دې(۷)،دا خبره په ظاهره صحیح نۀ ده ځکه چې دې د واثله بن اسقع او د عمرو بن عبسه په شان جلیل القدر صحابه کرامو رضی الله عنهما نه روایت کوی،ددې وجې نه به ئې دوی لیدلې هم وی،ملاقات به ئې هم ورسره کړې وی،لهذا دې تبع تابعی نۀ دې بلکه تابعی دې.

⑤**ابو ادریس**:دا مشهور بزرګ تابعی ابو ادریس عائذ الله بن عبدالله خولانی دې.د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب بلاترجمة" کښې راغلې دی(۸).

⑥**عوف بن مالک**:دا مشهور صحابی حضرت عوف بن مالک الاشجعی دې(۹).

**د حدیث شریف سند سره متعلق یوه فائده:** زمونږ د نظر وړاندې چې کوم حدیث دې هغې کښې عبدالله بن العلاء ددې خبرې وضاحت کړې دې چې هغوی دا حدیث براه راست د بسر بن عبدالله نه اوریدلې دې، "قال: سمعت بسر بن عبدالله....."او هم دا روایت امام طبرانی هم

---

(۱) پورته حواله جات،وسیر اعلام النبلاء: ۵۹۲/۴،والثقات لابن حبان:۱۰۹/۶)_

(۲) تهذیب الکمال: ۷۶/۴،وتهذیب التهذیب:۴۳۸/۱)_

(۳) سیر اعلام النبلاء: ۷۷/۴)_

(۴) تهذیب الکمال: ۴/)_

(۵) تهذیب الکمال: ۷۷/۴،وتهذیب التهذیب:۴۳۸/۱، وسیر اعلام النبلاء: ۵۹۲/۴)_

(۶) سیر اعلام النبلاء: ۵۹۲/۴)_

(۷) کتاب الثقات للتمیمی:۱۰۹/۶)_

(۸) کشف الباری:۴۸/۲)_

(۹) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصلح،باب الصلح مع المشرکین)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

روايت كړې دې، په هغې كښې ددې دواړو مينځ كښې د يو دريم راوى زيد بن واقد تذكره هم ده [١]. د حافظ صاحب د تصريح مطابق د طبرانى دا روايت د اصولِ حديث په اصطلاح كښې د "المزيد فى متصل الاسانيد [٢]"

"والمزيد فى متصل الاسناد: ما زيد فى اثناء اسناده راو، ومن لم يزده اتقن ممن زاده، وشرطه ان يقع التصريح بالسماع فى موضع الزيادة فى رواية من لم يزدها، والا ترجحت الزيادة، وكان الخبر المزيد فيه مدلسا او منقطعا او مرسلا خفيا". وانظر ايضا شرح النخبة: ٩٢، ثم المخالفة...... "_ د قبيل نه دې او دې سره د صحيح بخارى د روايت په صحت كښې څۀ فرق نۀ پريوځى، ځكه چې اول په دې روايت كښې د سماع وضاحت دې_

او دويم دا چې امام ابوداؤد [٣]، ابن ماجه [٤] او اسماعيلى [٥] رحمهم الله هم دا حديث مختلفو تركيبونو سره نقل كړې دې او په هيڅ يو طريق كښې هم زيد بن واقد نشته [٦].

**قوله: قال: أتيت النبى صلى الله عليه وسلم فى غزوة تبوك :** حضرت عوف بن مالك فرمائى چې زۀ د نبى په خدمت كښې حاضر شوم، كوم وخت چې دوى مبارك په غزوهٔ تبوك كښې وو.

د تبوك غزوه چونكه په نهمه هجرئ كښې شوې وه نو صحابى چې كومه خپله واقعه نقل كړې ده هغه د نهمې هجرئ ده [٧] د مستدرک حاكم په روايت كښې ددې بيان هم دې چې دا واقعه د سحر د وخت ده. [٨].

**قوله: وهو فى قبة من أدم:** او نبى ﷺ په يو قبه كښې آرام فرما وو چې د څرمن نه جوړه شوې وه.

قبه د قاف پيش سره او باء مشدده مفتوحه سره، ددې اطلاق په هر هغه څيز باندې كيږى كوم چې ګول جوړ شوې وى، لكه ګنبد، خيمه وغيره ليكن دلته هغه خيمه مراد ده كومه چې د

---

[١] ) رواه الطبرانى فى المعجم الكبير: ١٨/ ٤٠_٤١، ابو ادريس الخولانى عن عوف، رقم (٧٠))_
[٢] ) قال العلامة العثمانى رحمه الله فى قواعد علوم الحديث(٤٥))_
[٣] ) انظر سنن ابى داود، كتاب الادب، باب ما جاء فى المزاح، رقم (٥٠٠٠))_
[٤] ) انظر سنن ابن ماجه، كتاب الفتن، باب اشراط الساعة، رقم (٤٠٤٢))_
[٥] ) السنن الكبرى للبيهقى: ٩/ ٣٧٤، رقم (١٨٨١٧)، كتاب الجزية، باب مهادنة الائمة بعد رسول.....)_
[٦] ) عمدة القارى: ١٥، وفتح البارى: ٦/ ٢٧٧)_
[٧] ) عمدة القارى: ١٥/ ٩٩ وفتح البارى، كتاب المغازى، باب غزوة تبوک: ٦٣٢)_
[٨] )_ قال: دخلت على رسول الله ﷺ فى غزوة تبوک فى آخر السحر...... "انظر المستدرک للحاكم: ٣/ ٦٣٠، كتاب معرفة الصحابة، ذكر مناقب عوف بن مالک.....رقم (٦٣٢٤)، وايضا انظر معرفة الصحابة، للاصبهانى: ٤/ باب من اسمه: عوف)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پورته نه ګول وي. ددې جمع قباب او قبية ده(١).
د سنن ابى داؤد په روايت کښې ددې نه پس دا اضافه هم ده.

**قوله:**"فسلمت، فرد، وقال: ادخل. فقلت:أكلي يا رسول الله!قال: كلك، فدخلت"(٢): "نو ما سلام اوکړو، هغوى جواب راکړو او وې فرمائيل چې دننه راشه!ما اووئيل چې دننه پوره پوره درشم؟نبى ﷺ اوفرمائيل.بالکل!نو زهٔ دننه داخل شوم".
مطلب دادې چې خيمه چونکې وړه وه، ګنجائش کم وو، ددې وجې نه حضرت عوف بن مالک د ګپ شپ په طريقې سره تپوس اوکړو چې مکمل داخل شم؟نبى ﷺ د هغوى په ګپ باندې پوهه شو ددې وجې نه ئې جواب هم د هغوى په انداز کښې ورکړو چې آو!پوره پوره داخل شه،د خيمې د وړوکوالى پرواه مهٔ کوه.

لکه عثمان بن ابو العاتکه(د حديث راوى)فرمائي: "إنما قال: أدخل كلي، من صغر القبة"(٣).
ددې طريق نه دا هم معلومه شوه چې صحابه کرامو ﷺ به نبى ﷺ سره مزاح کوو يعنى ګپ شپ به ئې لګوو(٤).

**قوله:** فقال: اعدد ستا بين يدي الساعة موتي ثم فتح بيت المقدس: نو نبى تپوس اوکړو، د قيامت دپاره شپږ څيزونه شمار کړه(يو)زما وفات،(دويم)د بيت المقدس فتح.مطلب دادې چې ددې شپږو کارونو د واقع کيدو نه مخکښې به قيامت نهٔ قائميږى، لکه په حديث کښې د"ستا"نه مراد "ست علامات لقيام القيامة" دى(٥).
په دې کښې اولنئ نشانى په ١١ هجرى ربيع الاول کښې ثابته وه، کله چې نبى ﷺ ددې دنيا نه تشريف فرما شو.او دويمه نشانى د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ په زمانه کښې پنځلسمه هجرئ کښې ثابته شوه چې هغه کال باندې بيت المقدس فتح شو(٦).

**قوله:** ثم موتان يأخذ فيكم كقعاص الغنم: بيا به په کثرت او ډيروالى سره مرګونه په تاسو کښې داسې خوريږى لکه څنګه چې په ګډو چيلو کښې يو خاص بيمارى خوريږى او ټول ځاروى اچانک هلاک کړى.
**د موتان ضبط:** موتان د ميم پيش او د واو سکون سره دې،او بعضې حضراتو دا وئيلې دى چې پيش سره د بنو تميم لغت دې.د دوى نه علاوه د عربو نور قبائل ئې فتحې سره لولى،

(١)عمدة القارى:١٥/ ٩٩)_
(٢) سنن ابى داود،كتاب الادب،باب ما جاء فى المزاح،رقم (٥٠٠٠))_
(٣) حواله بالا،رقم (٥٠٠١)،وفتح البارى:٦/٢٧٧_٢٧٨)_
(٤) بذل المجهود:١٣/٤٠١،رقم (٥٠٠٠))_
(٥) عمدة القارى:١٥/٩٩ ،وفتح البارى:٦/٢٧٨)_
(٦) البداية والنهاية:٧/٥٥،فتح بيت المقدس على يدى عمر بن الخطاب،والكامل لابن الاثير:٢/٣٤٧)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لكه بليد،احمق او بيوقوف،ته "موتان القلب" هم وئيلې شي ليكن د ميم مضموم كيدل غوره او مشهور دى.[1]

بيا ابن جوزى فرمائى چې بعضې محدثين حضرات ددې لفظ په ادا كولو كښې غلطى كوى، ځكه چې دا هغوى د ميم او د واو ضمې سره لولى او دا بالكل غلط دې، مُوتان خو هغه زمكې ته وئيلې شى په كومه زمكه باندې چې زميندارى نه كيږى او د هغې ځۀ انتظام وغيره نۀ كيږى[2] او د ابن السكن په روايت كښې دا لفظ تثنيه سره "موتتان" دې، چې ددې لفظ دلته هيڅ موقع او محل نشته.[3]

**د موتان معنى:** قزاز او خطابى ددې كلمې معنى "مرګ" بيان كړې ده،او ابن الاثير جزرى وغيره ددې معنى "الموت الكثير الوقوع" ښودلې ده.[4] يعنى كثرت سره د مرګونو واقع كيدل چې ددې تعبير وباء سره كيدې شى ځكه چې وبائى مرضونو مثلاً طاعون وغيره سره هم مرګونه كثرت سره واقع كيږى.

**د قُعاص ضبط:** قعاص د قاف پيش او د عين مهمله فتحې سره دې،هم دا رائې د لغت او د حديث د جمهورو امامانو مثلاً د ابن قرقول،ابن الاثير وغيره هم ده[5]،ليكن حافظ ابن حجر دا عقاص ليكلې دې يعنى عين ئې په قاف باندې مقدم ښودلې دې[6]، چې صحيح نۀ دې او دا د حافظ صاحب وهم دې.[7]

**د قعاص معنى:** قعاص يو قسم بيمارى ده چې ځناورو ته لګى، چې ددې په نتيجه كښې د دوى د پوزې نه يو توره ماده راوځى او فورى مرګ واقع كيږى. دا د القعص نه مشتق دې چې ددې معنى ده فورى مرګ، "يقال: قعصته واقعصته: إذا قتلته سريعاً".[8] اود ابن فارس وينا داده

---

[1]) عمدة القارى:٩٩/١٥ ،وارشاد السارى:٢٤١/٥،وفتح البارى:٢٧٨/٦)_

[2]) عمدة القارى:٩٩/١٥ ،وفتح البارى:٢٧٨/٦،وكشف المشكل:١١٠٨/١،مسند عوف بن مالک،رقم (٢٣٤٢)،ومشارق الانوار:٣٩٠/١،الميم مع الواو)_

[3]) عمدة القارى:١٠٠/١٥،و ارشاد السارى:٢٤١/٥)_

[4]) النهاية فى غريب الحديث والاثر:٣٧٠/٤،باب الميم مع الواو،وعمدة القارى:٩٩/١٥ ،وفتح البارى:٢٧٨/٦،وارشاد السارى:٢٤١/٥،واعلام الحديث للخطابى:١٤٦٨/٢)_

[5]) النهاية لابن الاثير:٨٨/٤، وعمدة القارى:١٠٠/١٥،والقاموس الوحيد،مادة "قعص")_

[6]) فتح البارى:٢٧٨/٦)_

[7]) فى هامش طبعة بولاق: كذا فى نسخ الشارح التى بايدينا،والذى فى نسخ البخارى بتقديم القاف على العين. وبه ضبط القسطلانى،وهو فى كتب اللغة،والمتعين من قول ابى عبيد،ومنه اخذ:الاقعاص".(انظر تعليقات محب الخطيب على فتح البارى:٢٧٨/٦)_

[8]) النهاية:٨٨/٤،وفتح البارى:٢٧٨/٦،وعمدة القارى:١٠٠/١٥،وارشاد السارى:٢٤١/٥)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې دا دسينې بيماري ده،ددې دوجې نه دومره قدرې تکليف وی چې ګويا څټ ماتيږی.[١]

**د ثم موتان.....** **مطلب:** په دې جمله کښې د قيامت په نزدې علامتونو کښې دريم نمبر علامت ښودلې شوې دې،چې دومره کثرت سره به مرګونه وی لکه څنګه چې وبا خوره شی او څنګه چې په څناورو کښې وبا خوريږی او فوراً په سوونو څناور هلاک کړی.دغه شان پورته ذکر کړې شوې وبا به هم په زرګونو لکونو خلق فنا کړی.د شارحينو وينا ده چې دا نشانی هم د طاعون عمواس په شکل کښې واقع شوې ده،چې په دې کښې په دريو ورځو کښې تقريباً اويا زره کسان وفات شوې وو چې په کښې صحابه کرام رضی الله عنهم هم شامل وو.دا طاعون د بيت المقدس د فتح کولو نه پس د حضرت عمرفاروق په زمانه کښې په ١٧هجرئ کښې خور شوې وو[٢].

لکه په خپله د حديث راوی حضرت عوف بن مالک نه امام حاکم [٣] نقل کړې دی چې د پورتنی ذکر شوی طاعون مصداق طاعون عمواس دې،دغه شان د حافظ ابن کثير[٤]او د علامه توريشتی رائې هم داده[٥].

**قوله:** ثم استفاضة المال[٦] حتى يعطى الرجل مائة دينار فيظل ساخطا:

بيابه دمال کثرت وی،تردې چې که چاته سل ديناره هم ورکړې شی نو بيا به هم هغه خفه وی.

په دې جمله کښې د قيامت د نزديکت څلورمه نشانی بيان شوې ده چې يو زمانه به داسې راشی چې مال به ډير زيات وی،تقريباً هر سړې به مالدار وی،ددې وجې نه که چاته سل ديناره هم ورکړې شی(چې يو لوئې رقم شمارلې شی)او ورته اووئيلې شی چې دا دينارونه واخله نوهغه به خفه شی چې دادومره معمولی رقم ولې راکوې؟اودې لره به سپک ګنړی.[٧]

دا څلورمه نښه د خليفه ثالث حضرت عثمان بن عفان په دور خلافت کښې اوموندلې شوه چې کله د فتوحاتو ډيروالې شو او مسلمانانو د کفر لوئې لوئې مرکزونه فتح کړل نو مال و دولت ډير زيات شو او تقريباً هر سړې مالدار او دولت مند شو.[٨]

---

[١]) عمدة القاری:١٥/١٠٠،وفتح الباری:٦/٢٧٨)_

[٢]) پورته حواله جات،وارشاد االساری:٥/٢٤١،والبداية والنهاية:٧/٧٨،شئ من اخبار طاعون عمواس)_

[٣]) المستدرک للحاکم:٤/٤٦٩،کتاب الفتن والملاحم،رقم (٨٣٠٣))_

[٤]) البداية والنهاية:٦/٢٢٦،فصل فی ترتيب الاخبار بالغيوب.....)_

[٥]) کتاب الميسر:٤/١١٥١،رقم (٤٠٥٢)،باب الملاحم من کتاب الفتن،وشرح الطيبی:١٠/٧٧،وفيضان القدير للمناوی،رقم (٤٦٥٧))_

[٦]) قال العلامة الخطابی رحمه الله : استفاضة المال:کثرته،واصله التفرق والانتشار،يقال:فاض الماء،وفاض الحديث:اذا انتشر".اعلام الحديث:٢/١٤٦٩)_

[٧]) عمدة القاری:١٥/١٠٠،وشرح القسطلانی:٥/٢٤١)_

[٨]) پورته حواله جات،٦/٢٧٨)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:** ثم فتنة لا يبقى بيت من العرب إلا دخلته: بیا به فتنه خوره شی.د عربو هیڅ یو کور به پاتې نۀ شی چې په هغې کښې دا فتنه داخله نۀ شی

په دې جمله کښې د پنځمې نښې بیان دې چې بیا به یو داسې زمانه راشی چې هر طرفته به فتنه وی،لوټ مار به وی،د خلقو د مال و جان ضمانت به نۀ وی.د عربو هیڅ یو کور او هیڅ یو ځائې به ددې فتنې نه محفوظ پاتې نۀ شی او هر سړې به ددې نه متاثره وی.ددې علامت ابتداء د حضرت عثمان د شهادت نه اوشوه چې د هغوی د شهادت نه پس فتنې خورې شو او ترننه پورې جاری دی.[1] الله تعالی ته علم دې چې دا صورت حال به کوم وخت پورې جاری وی.

**قوله:** ثم هدنة تكون بينكم وبين بني الاصفر فيغدرون فيأتونكم تحت ثمانين غاية تحت كل غاية اثنا عشر الفاً: بیا صلح ده،چې ستاسو او د رومیانو مینځ کښې به وی،نو هغوی به وعده خلافی اوکړی،تاسو سره د جنګ کولو دپاره به د اتیاؤ(۸۰)بیرغو لاندې راشی،د هر بیرغ لاندې به دولس زره کسان وی(تول لښکر به تقریباً په لس لاکه کسانو باندې مشتمل وی).

**د هدنة معنی او ضبط:** هدنة د هاء پیش او د دال سکون سره دې.ددې معنی ده سکون. راحت. البته دلته ددې معنی ده صلح.ددې دواړو مینځ کښې فرق دادې چې صلح عام ده او هدنة خاص ده.که د جنګ شروع کیدو نه پس صلح اوشی نو دې ته هدنة وائی او ددې د نوم وجه داده چې ددې صلحې د وجې نه د دواړو فریقو مینځ کښې سکون واقع شی او د پریشانئ حالت ختم شی[2].او د بنوالاصفر نه مراد رومیان دی[3].

**د غاية معنی او د روایتونو اختلاف:** دلته د غاية معنی ده بیرغ،چونکه په لښکر کښې د راتلونکو کسانو دپاره دا د حد او د انتهاء حیثیت لری چې بیرغ اوړونکې سړې چرته اودریږی نو هلته نور لښکریان هم اودریږی او که هغه روان شی نو نور لښکریان هم روان شی،ددې وجې نه بیرغ ته غاية وئیلې شی.

**"قال الجواليقي: "غاية وراية واحد،لانها غاية المتبع،إذا وقفت وقف،وإذا مشت تبعها"**[4].

لکه د سنن ابی داؤد[5] یو روایت چې د ذومخبر نه روایت دې،په هغې کښې د "رایه" لفظ

---

[1]) پورته حواله جات)_

[2]) فتح الباری:۲۷۸/۶،وعمدة القاری:۱۰۰/۱۵)_

[3]) پورته حواله جات،وکشف الباری:۵۳۸/۱،واعلام الحدیث للخطابی:۱۴۶۹/۲)_

[4]) فتح الباری:۲۷۸/۶،وعمدة القاری:۱۰۰/۱۵،وشرح ابن بطال:۳۵۸/۵،ولسان العرب:۱۶۳/۱۰،باب العین،مادة"غیا")_

[5]) سنن ابی داود،کتاب الجهاد،باب الصلح مع العدو،رقم (۲۷۶۷)،وکتاب الملاحم،باب ما یذکر فی قرن المائة،رقم (۴۲۹۲))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي[1] او علامه ابن الجوزی فرمائی چې دا لفظ بعضې حضراتو "غابة" باء موحده سره روایت کړې دې ددې معنی ده ځنګل، ګویا که چې د غیرمسلمو لښکر سره د نیزو کوم کثرت وی نو د هغې د وجې نه دې ته ځنګل(غابه) وئیلې شوې ده.[2] او علامه خطابی فرمائی چې ګنړو اونو ته "غابه" وئیلې شی او دلته لفظ د استعارې په طور استعمال شوې دې لکه د غابه نه مراد هغه بیرغونه دی کومې چې د لښکر د امیرانو دپاره اوچتولې شی او دې سره سره نیزو ته هم حرکت ورکولې شی، ګویا که چې د بیرغ د اوچتولو او نیزو ته د حرکت ورکولو چې کوم عمل دې نو د هغې نه تعبیر په غابه سره کړې شوې دې[3].

**شپږمه نښه**:پورتنۍ جمله کښې د قیامت په علامتونو کښې شپږم علامت بیان کړې شوې دې چې د مسلمانانو او د کافرانو مینځ کښې به یو خطرناک جنګ واقع شی،بیا به صلح اوشی،لیکن کافران به وعده خلافی اوکړی او د لوې حملې دپاره به جمع شی،د کفارو د لښکر تعداد به تقریباً لس لاکه وی.[4] دا نښه تردې وخت پورې واقع شوې نۀ ده،د امام مهدی د تشریف راوړلو نه پس به دا نښه هم واقع شی.

**د قیامت د علامتونو ترتیب**:دلته مناسب معلومیږی چې د قیامت نۀ مخکښې مخکښې کوم لوئې لوئې واقعات او حادثات به ښکاره کیږی،نو د احادیثو په رڼرا کښې د هغې څۀ تفصیل هم بیان کړې شی.

د قیامت د علامتونو دوه قسمونه دی،وړوکی علامتونه او لوئې علامتونه.

د وړوکې علامتونو تعداد ډیر زیات دې[5] او هم دا علامتونه به د لویو علامتونو دپاره د مقدمې په شان وی.

---

[1]) هذا ما قاله ابن حجر فی الفتح (۲۷۸/۶)،ولکنی لم اجد فیها ما قاله الحافظ،ولعله من اختلاف النسخ،نعم،قدورد الحدیث بلفظ راية"بدل غاية"فی المستدرک للحاکم،ففیه: ......فیقبلون فی ثمانین راية،کل راية اثنا عشر الفا".انظر المستدرک:۶۳۰/۳،رقم (۶۳۲٤)،اخرجه من طریق ابی بکر احمد بن سلمان بن الحسن الفقیه)_

[2]) عمدة القاری:۱۰۰/۱۵،وفتح الباری:۲۷۸/۶،وکشف المشکل:۱۳۳/٤،مسند عوف......رقم (۲۳٤۲)_

[3]) پورته حواله جات،واعلام الحدیث للخطابی:۱٤۶۹/۲،ولسان العرب:۱۶۳/۱۰،مادة غیا")_

[4]) شرح الکرمانی:۱٤۱/۱۳، د حساب په اعتبار سره دا تعداد ۹ لاکه ۲۰ زره جوړیږی.حافظ صاحب فرمائی(۲۷۸/۶): وجملة العدد المشار الیه تسعمائة الف وستون الفا")_

[5]) حضرت شاه رفیع الدین د احادیثو په رڼرا کښې د قیامت تقریباً ۲۷ وارۀ علامتونه ذکر کړې دی، په هغې کښې یو څو دلته ذکر کولې شی: چې کله بادشاهان د زمکې او د ملک پیداوار خپل ذاتی دولت جوړ کړی(یعنی دا په شرعی مصرف کښې نۀ خرچ کوی)زکوة به د تاوان په طور ادا کوی. خلق به امانت د غنیمت په شان پاک او حلال ګنړی.خاوند به د خپلې ښځې اطاعت کوی.د دین علم به د دنیوی غرض دپاره حاصلولې شی.شراب خوری او زناکاری به زیاته شی.د باطل مذهبونو،د دروغژن حدیثونو او د بدعتونو به ترقی وی.اوګوری، کتاب د قیامت نه مخکښې....

[بقیه برصفحه آئنده....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

علماؤ ليكلې دي چې كله واړهٔ علامات ټول ښكاره شي نو داسې به اوشي چې عيسايان به په ډيرو ملكونو باندې غلبه اوكړي او قبضه به ئې كړي.په عربو او د شام په ملک كښې به د ابوسفيان په اولاد كښې يو سړې پيدا شي چې سادات به قتل كړي،د هغهٔ حكومت به په مصر او شام وغيره كښې وي.(۱).
دې دوران كښې به د روم د بادشاه د عيسايانو يو فرقې سره جنګ او دويمې فرقې سره به صلح اوشي،جنګ كوونكې فرقه به د روم پايه تخت قسطنطنيه باندې قبضه اوكړي.بادشاه به دارالخلافه پريږدي او شام ته به راشي او د عيسايانو د صلح پسند ډلې په مدد سره به اسلامي فوج د يو خطرناک جنګ نه پس په قابض فوج باندې فتح ياب شي.د دشمن د شكست نه پس به په موافق فرقه كښې يو سړې اووائي چې"غلب الصليب....."ددې په اوريدو سره به په اسلامي لښكر كښې يو سړې دهٔ سره په جګړه شي او اوبه وائي چې"بل الله غلب"چې نه:د الله تعالى دين اسلام غالب شو او ددې په بركت سره فتح نصيب شوه.دا دواړه به خپل خپل قوم د مدد دپاره راطلب كړي چې ددې د وجې نه به خانه جنګي شروع شي.د اسلام بادشاه به شهيد شي،عيسايان به په شام باندې قبضه اوكړي او ددې دواړو عيسائي ډلو به خپل مينځ كښې صلح اوشي(۲). باقي مسلمانان به مدينې منورې ته واپس شي،د عيسايانو حكومت به خيبر پورې خور شي.
**د امام مهدي تلاش:** دې وخت كښې به مسلمانان په دې پريشانئ كښې وي چې حضرت امام مهدي تلاش كول پكار دي،دې دپاره چې دې زمونږ ددې مصيبتونو د دفع كولو ذريعه جوړه شي او د دشمن د پنجې نه مو نجات نصيب شي.حضرت امام مهدي به دې وخت مدينه منوره كښې وي ليكن ددې ويرې د وجې نه به مكې مكرمې ته لاړ شي چې خلق چرته زما په شان كمزورې سړې ددې لوئې او عظيم الشان كار دپاره منتخب نهٔ كړي،ددغه زمانې اولياء كرام او ابدال عظام به دې تلاش كوي.(۳).
**امام مهدي به اوپيژندلې شي:** دې دوران كښې به امام مهدي د ركن او د مقام ابراهيم مينځ كښې طواف كوي،د سړو يو جماعت به دې اوپيژني او ددهٔ په لاس باندې به بيعت اوكړي،د

---

بقيه ازحاشيه گذشته] به څهٔ كيږي؟ ص:۲۳_۲۴،بتغيروتصرف)دغه شان اوګورئ جامع الترمذي،كتاب الفتن،باب في علامة حلول المسخ والخسف،رقم (۲۲۱۰)،عن علي و(۲۲۱۱)،عن ابي هريرة رضي الله عنه)_
(۱) كنز العمال،كتاب الفتن والاهواء.....قسم الاقوال،رقم (۳۱۰۳۳_۳۱۰۳۵)،وفيض القدير للمناوي: ۴/۱۶۸،حرف السين،رقم (۴۷۶۸)،والمستدرک: ۴/۵۴۷،كتاب الفتن والملاحم،رقم (۸۵۳۰))_
(۲) د باب د حديث په الفاظو ثم هدنة تكون بينكم وبين بني الاصفر،فيغذرون"كښې دې واقعې طرفته اشاره ده،دغه شان اوګورئ سنن ابي داود،كتاب الملاحم،ما يذكر من ملاحم الروم،رقم (۴۲۹۲)، والمستدرک للحاكم: ۴/۴۶۷،كتاب الفتن والملاحم،رقم (۸۲۹۸)،وصحيح ابن حبان،رقم (۶۷۰۸))_
(۳) سنن ابي داود،كتاب المهدي،رقم (۴۲۸۶))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بیعت په وخت به د آسمان نه دا آواز راشي، "هذا خليفة الله المهدی، فاستمعوا له واطیعوا" دا آواز به ټول عام او خاص خلق واوري. دې وخت کښې به د امام مهدی عمر مبارک څلویښت کاله وی.[1]

**د امام مهدی فوج:** د خلافت په مشهوریدو سره به د مدینې منورې فوجونه امام مهدی له مکې مکرمې ته راشي، د شام، عراق او د یمن اولیاء کرام او ابدال عظام به د دهٔ په ملګرتیا کښې او د عربو د ملکونو ډیر زیات سړی د دهٔ په فوجونو کښې داخل شی. دې به په کعبه مبارکه کښې مدفون خزانې راوباسی او په مسلمانانو کښې به ئې تقسیم کړی، کومو ته چې رتاج الکعبه وئیلې شی.[2]

**د اهل خراسان لښکر:** کله چې دا خبر اسلامی دنیا کښې خور شی نو د خراسان نه به د حارث نومې سړی په مقدمة الجیش کښې کمان د منصور نومې سړی سره وی، دې به یو لوئې فوج واخلی او د امام مهدی د مدد دپاره به حاضر شی.[3]

**د عیسائی فوجونو اجتماع:** د عربو د فوجونو د جمع کیدو چې عیسایان واوری نو دوی به هم د څلورو واړو طرفونو نه د فوجونو د جمع کولو کوشش کوی، د خپلو ملکونو او د روم د ملکونو نه به ګڼ فوجونه د امام مهدی د مقابلې کولو دپاره په شام کښې جمع شی، د دوی د فوجونو به دې وخت کښې اویا بیرغه وی[4] او د هر بیرغ لاندې به دولس زره فوجیان وی.[5]

**عیسایانو سره د امام مهدی جنګ:** حضرت امام مهدی به د مکې مکرمې نه مدینې منورې ته واپس شی او د نبی کریم ﷺ زیارت باندې به مشرف شی او ددې نه پس به د شام په طرف روان شی، دمشق سره نزدې به د عیسائی فوجونو سره مخامخ شی، دې وخت کښې به د امام مهدی فوج په دریو ډلو کښې تقسیم شی، یو ډله به د عیسائی فوج د ویرې له وجې نه اوتختی، الله تعالی به د دوی توبه هیڅکله قبوله نهٔ کړی، باقی مانده فوج کښې به څهٔ شهیدان شی اود بدر او احد د شهیدانو مرتبې ته به اورسی او څهٔ به کامیاب شی او همیشه دپاره به د ګمراهئ او د خراب انجام نه بچ شی.

په دویمه ورځ به بیا حضرت مهدی د عیسایانو د مقابلې دپاره راوځی، په دې ورځ به د

---

[1] ) پورته حواله، ومشکاة المصابیح، کتاب الفتن، باب اشراط الساعة، من الحسان، رقم (۵۴۵۶))_

[2] ) الحدیث اخرجه ابو داود، کتاب المهدی، رقم (۴۲۸۶)، وموارد الظمان: ۴۶۴، رقم (۱۸۸۱)، والمصنف لعبد الرزاق، رقم (۲۰۹۳۴)، باب المهدی، والمعجم الکبیر: ۲۳/۳۹۰، مجاهد عن ام سلمة، رقم (۹۳۱)، ومسند احمد: ۸/۶۳۵، رقم (۲۷۲۲۴)، مسند ام سلمة رضی الله عنها)_

[3] ) وفی آخر هذا الحدیث: "وجب علی کل مؤمن نصره" سنن ابی داود، کتاب المهدی، رقم (۴۲۹۰))_

[4] ) د اویا لفظ په ظاهره د قلم سبقت دې، صحیح ۸۰ دی، لکه څنګه چې د باب په حدیث کښې راغلې دی، ددې تشریح هم وړاندې تیره شوې ده_

[5] ) د باب د حدیث الفاظو کښې "فیاتونکم تحت ثمانین غایة، تحت کل غایة اثنا عشر الفا" دې واقعې طرفته اشاره ده_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مسلمانانو يوه ډله دا عهد اوکړي چې د فتح موندلو يا شهادت نه بغير به ميدان نۀ پرېږدو. دوی به ټول په ټوله شهيدان شي،باقي لښکرسان به امام مهدی ځان سره واپس لښکرګاه ته بوځي. په دريمه ورځ به بيا دغه شان اوشي چې يو ډله به دا عهد اوکړي چې د فتح موندلو يا شهادت نه بغير به ميدان نۀ پرېږدو او دوی ټول به هم شهيدان شي،په صبا به بيا دغه شان اوشي او کوم لږ خلق چې پاتې شي هغوی به د امام مهدی په ملګرتيا کښې لښکرګاه ته واپس لاړ شي[1].

**د امام مهدی فتح:** په څلورمه ورځ به امام مهدی هغه تعداد بوځي کوم چې د رسدګاه محافظين وی او په تعداد کښې به ډېر زيات کم وی،دوی به دشمن ته شکست ورکړي او په دې ورځ به الله تعالی اسلامی لښکر ته فتح نصيب کړي.عيسايان به دومره قدرې اووژلې شي چې د باقي کسانو د دماغو نه به د حکومت هغه بوئی ختم شي او انتهائی ذلت او رسوا کيدلو سره به اوتختي.

ددې نه پس به امام مهدی انتهائی انعامات او اکرامونه په مجاهدينو کښې تقسيم کړي ليکن په دې مال باندې به چاته هم څۀ خوشحالی ملاؤ نۀ شي،وجه به دا وی چې د جنګ د وجې نه به ډېر خاندانونه او قبيلې داسې وی چې په سلو کسانو کښې به يو يو کس بچ وی.ددې نه پس به امام مهدی د اسلامی خلافت په نظم ونسق کښې مصروف شي او څلورو واړو طرفونو ته به خپل فوجونه خوارۀ کړي[2].

**د قسطنطنيه ازادی او د دجال ښکاره کيدل:** امام مهدی چې ددې کارونو نه فارغ شي نو د قسطنطنيه د فتح کولو دپاره به روان شي،چې د بحيره روم ساحل ته اورسي نو د قبيله بنواسحاق اويا زره بهادر کسان به په کشتو کښې سوارۀ کړي او د استنبول د فتح کولو دپاره به ئې مقرر کړي،چې کله دا کسان د ښار فصيل ته نزدې اورسي نو د تکبير نعره به اوچته کړي چې د هغې په برکت سره به فصيل اوغورځيږي،مسلمانان به حمله کولو سره په ښار کښې داخل شي.

امام مهدی به لا د ملک په انتظام وغيره مصروف وی چې دا افواه به خوره شي چې دجال د مسلمانانو تباهي اوکړه.ددې خبر په اوريدو سره به امام مهدی د شام په طرف روان شي او د خبر د تحقيق کولو دپاره به پنځه يه نهه سوارۀ کسان اوليږي،چې تحقيقات اوشي نو پته به اولګي چې دا هسې افواه وه ليکن څۀ موده پس به دجال ښکاره شي[3].

**د دجال بدصورتي،بداخلاقي او غلط حرکتونه:** دجال به د يهودو د قوم نه وی،ددۀ لقب به

---

[1] ) الصحيح لمسلم،كتاب الفتن،باب فى فتح قسطنطينية......رقم (۷۲۳۵)،وباب اقبال الروم فى كثرة القتل......رقم (۷۲۳۸))_

[2] ) مسلم،كتاب الفتن،باب اقبال الروم فى كثرة القتل.....رقم (۷۲۳۸)،واحمد فى مسنده:۲/۳۱،مسند ابن مسعود،رقم (۳۶۴۳)،و:۲/۱۴۵(۴۱۴۶)،وابو داود الطيالسى:۱/۲۰۱،رقم (۳۸۴)وآخرون)_

[3] ) مسلم،كتاب الفتن.....باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل.....رقم (۷۲۹۳)،عن ابى هريرة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مسیح(۱) وی او ښئ سترګه به ئې پړسیدلې وی(۲)، ویخته به ئې ګلګوتې(۳) وی، په یو لوئې خر باندې به سور وی، اول به دده ظهور د عراق او د شام مینځ کښې اوشی هلته به دې د نبوت دعوی اوکړی. ددې ځائې نه به اصفهان ته لاړ شی(۴)، دلته به ورسره اویا زره یهودیان وی، دلته راتلو سره به دجال د خدائې دعوی اوکړی او ښه فساد به خور کړی.

د خلقو د ازمیښت دپاره به الله تعالی دده نه خلاف عادت ډیر کارونه ښکاره کړی(۵)، لکه دهٔ سره به یو اور وی چې د هغې نه به دې په دوزخ سره تعبیر کوی او یو باغ به ورسره وی چې هغې ته به جنت وائی، مخالفین به په اور کښې او ملګری به جنت کښې اچوی، لیکن دغه اور به حقیقت کښې د باغ په شان او باغ به حقیقت کښې د اور خاصیت لری(۶). دده په حکم سره به په زمکه کښې ښخې کړې شوې خزانې دهٔ سره شی(۷). بعضې کسانو ته به وائی چې زهٔ ستاسو مړهٔ مور پلار ژوندی کوم دې دپاره چې تاسو زما د ژوندی کولو دا قدرت اووینئ او زما د خدایئ یقین اوکړئ نو دې به شیطانانو ته حکم اوکړی چې د دوی د والدینو هم شکل شئ او د زمکې نه راوخئ نو شیطانان به هم دغه شان اوکړی.

**دجال به حرمینو ته نهٔ شی داخلیدې:** دغه شان به دې ډیرو ملکونو باندې تیر شی، د مکې مکرمې طرفته به راشی لیکن په مکه مکرمه باندې به د فرشتو څوکئ وی، ددې وجې نه به هلته داخل نهٔ شی(۸)، ددې ځائې نه به د مدینې منورې اراده اوکړی، دغه وخت به د مدینې

---

(۱) بخاری، کتاب الفتن، باب ذکر الدجال، رقم (۷۱۲۵_۷۱۲۶)، عن ابی بکرة، ومسلم، کتاب الفتن.....باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۲۲)، عن ابن عمر رضی الله عنه)_

(۲) صحیح البخاری، کتاب الفتن، باب ذکر الدجال، رقم (۷۱۲۳)، ومسلم، کتاب الفتن......باب ذکر الدجال.....رقم (۷۳۲۲)، والترمذی، کتاب الفتن، باب فی صفة الدجال، رقم (۲۲۴۱))_

(۳) فی روایة مسلم: انه شاب قطط"، کتاب الفتن، باب ذکر الدجال.....رقم (۷۳۳۳)، من روایة النواس بن سمعان الکلابی، رضی الله عنه)_

(۴) مسلم، کتاب الفتن.......باب فی بقیة من احادیث الدجال، رقم (۷۳۵۳)، عن ام شریک)_

(۵) مسلم شریف، کتاب الفتن.....باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۳۳)، عن النواس بن سمعان الکلابی)_

(۶) مسلم شریف، کتاب الفتن.....باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۳۱)، والبخاری، کتاب احادیث الانبیاء، باب ما ذکر عن بنی اسرائیل، رقم (۳۴۵۰)، عن حذیفة رضی الله عنه)_

(۷) مسلم شریف، کتاب الفتن......باب ذکر الدجال.....باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۳۳)، عن النواس بن سمعان الکلابی)_

(۸) البخاری، کتاب الفتن، باب لا یدخل الدجال المدینة، رقم (۷۳۳۳)، ومسلم، کتاب الفتن.....باب فی صفة الدجال، وتحریم المدینة علیه.....رقم (۷۳۳۵)، عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه)_ وفی قصة تمیم الداری رضی الله عنه: وانی مخبر کم عنی، انی انا المسیح، وانی اوشک لی فی الخروج، فاخرج فاسیر فی الارض، فلا ادع قریة الا هبطتها فی اربعین لیلة، غیر مکة وطیبة، فهما محرمتان علی، کلتاهما، کلما اردت ان ادخل واحدة، او واحدا منهما، استقبلنی ملک بیده السلف صلتا، یصدنی عنها، وان علی کل نقب منها....[بقیه برصفحه آئنده....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

منورې اووهٔ دروازې وی، د هرې دروازې په حفاظت باندې به دوه دوه فرښتې مقررې وی چې د هغوی د ویرې له وجې نه به دجال د خپل فوج سره هم هلته داخل نهٔ شی.[1] دغه شان مدینه منوره کښې به درې ځله زلزله راشی چې د هغې د وجې نه به منافقان وغیره اویریږی او بهر ته به اوځی او د دجال په جال کښې به ګرفتار شی.[2]

**د عیسی علیه السلام نازلیدل او امام مهدی سره ملاقات:** امام مهدی به د دجال نه مخکښې دمشق ته رسیدلې وی او د جنګ تیارئ به یئ کړې وی، دې دوران کښې به مؤذن د مازیګر اذان کوی، خلق به د مانځه په تیاریٔ کښې مشغول وی چې حضرت عیسی به د دوو فرښتو په اوږو باندې تکیه لګولو سره د آسمان نه د دمشق د جامع مسجد په مشرقی میناره باندې تشریف فرما شی او اواز به اوکړی چې پوړئ راوړئ نو پوړئ به حاضرې کړې شی.

لاندې راکوزیدو نه پس به ددې دواړو حضراتو ملاقات اوشی، امام مهدی به ورسره ډیر زیات خوش اخلاقئ او عاجزئ سره مخامخ شی او ورته به وائی یا نبی الله! امامت اوکړئ. حضرت عیسی ؑ به ورته اوفرمائی چې امامت هم تاسو اوکړئ. نو امام مهدی به مونځ ورکړی او حضرت عیسی ؑ به وریسې اقتداء اوکړی.[3]

**د اسلامی لښکر او د دجالی فوج مقابله:** د مونځ نه چې فارغ شی نو امام مهدی به قیادت حضرت عیسی ته سپارل غواړی نو هغوی به ورته اوفرمائی چې نه! قیادت هم تاسو اوکړئ زهٔ خو صرف د دجال د قتلولو دپاره راغلې یم.

شپه به خیر و عافیت سره تیره کړی ددې نه پس به امام مهدی یو لوئې لښکر واخلی او میدان ته به راشی، حضرت عیسی ؑ به اس او نیزه اوغواړی چې د دجال د شر نه د مخ زمکه پاکه کړی، نو عیسی ؑ به په دجال باندې او اسلامی لښکر به د دجال په لښکر باندې حمله اوکړی، ډیر زیات خطرناک جنګ به شروع شی. دې وخت کښې به د حضرت عیسی ؑ ساه دا خاصیت وی چې ترڅو ئې نظر رسی نو هغې پورې به ئې ساه هم اثر کوی او کوم کافر ته چې د حضرت عیسی ؑ ساه رسیږی نو هلته به هغه ختمیږی.[4]

**د دجال تختیدل:** د عیسی ؑ د مقابلې کولو نه به دجال ویریږی او د لد مقام ته به اوتختی،

---

بقیه ازحاشیه گذشته] ملائکة یحرسونها.......قال رسول الله ﷺ : هذه طیبة،هذه طیبة،هذه طیبة".یعنی المدینة......".صحیح مسلم،الفتن،باب قصة الجساسة،رقم (۲۹۴۲_۷۳۸۶))_

[1]) صحیح بخاری،کتاب الفتن،باب ذکر الدجال،رقم (۷۲۱۵_۷۱۲۶))_

[2]) پورته حواله،رقم (۷۱۲۴)،ومسلم،کتاب الفتن......باب قصة الجساسة،رقم (۷۳۸۶)،والترمذی،کتاب الفتن،باب......الدجال لا یدخل المدینة،رقم (۲۲۴۲)،عن انس بن مالک ﷺ)_

[3]) مسلم،کتاب الفتن......باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۳۳)،عن النواس بن سمعان،والمصنف لابن ابی شیبة:۲۹۳/۲۱،کتاب الفتن،رقم (۳۸۸۰۴)،عن ابن سیرین،والمعجم الکبیر للطبرانی:۹۶۰/۰،رقم (۸۳۹۲)،عن عثمان بن ابی العاص ﷺ،ومجمع الزوائد:۳۴۲/۷)_

[4]) مسلم شریف،کتاب الفتن.......باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۳۳)،عن النواس بن سمعان)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عيسى عليه السلام به وريسې شي او بيا به ئې مومي او په نيزې سره به ئې هلاک کړي، خلقو ته به د دهٔ هلاکت ښکاره کړی چې دجال مردار شو.
د دجال د قتلولو نه پس به ددهٔ د لښکر همت ختم شي او ټول به تباه وبرباد شي، يهوديان(چې ددې لښکر زياته حصه به وی)ته به هيڅ ځيز پناه نهٔ ورکوی، هر کاڼړې او بوټې به ئې په نهه کوی چې ائې د الله بنده!دا يهودی اوګوره او دې قتل کړه، ليکن غرقد نومې اونه به ورته پناه ورکوی او ددهٔ حال به نهٔ ښکاره کوی.[1]
**د متاثره ښارونو نوې تعمير او د انصاف قائمول:** د دجال د فتنې د ختميدو نه پس به حضرت مهدی او عيسى عليه السلام د هغې ښارونو دوره اوکړی کوم چې دجال تباه کړې وی، متاثره خلقو ته به تسلی ورکړی، د لوئې اجر خوشخبری به ورته ورکړی او د هغوی د دنيوی نقصانونو ازاله به اوکړی.[2]
دويم طرفته به حضرت عيسى عليه السلام د خنزير د قتل، د صليب د ماتولو او د كفارو نه د جزيه قبلولو احكامات جاری کړی او ټول کافران به د اسلام طرفته راوبلی.[3] د الله تعالى په فضل وکرم سره به هيڅ يو کافر په اسلامی ښارونو کښې پاتې نهٔ شي، ظلم او بې انصافی به ختمه شي او هرطرفته به انصاف او عدل پورته وی، ټول خلق به د الله تعالى په عبادت کښې سرګرم وی. د امام مهدی د خلافت وخت به اووهٔ[4]، اتهٔ[5] يا نهه [6] کاله وی نو ابتدائی اووهٔ کاله به د عيسايانو د فتنې د ختمولو او د ملک په انتظام کښې، اتم کال دجال سره په جنګ کښې او نهم کال به د حضرت عيسى عليه السلام په ملګرتيا کښې تير شی. دې حساب سره به د دوی عمر ۴۹ کاله وی. ددې نه پس به حضرت مهدی وفات شي.
**په حضرت عيسى عليه السلام باندې وحی:** د امام مهدی د تجهيز او تکفين نه پس به ټول کارونه د حضرت عيسى عليه السلام لاس ته راشی، ټول مخلوقات به ډير زيات امن وامان سره ژوند تيروی، په حضرت عيسى عليه السلام باندې به وحی نازله شي چې زهٔ په خپلو بندګانو کښې داسې طاقت ور بندګان ښکاره کوم چې په هيڅ يو کس کښې به د هغوی د مقابلې کولو طاقت نهٔ وی، ددې وجې نه به حضرت عيسى عليه السلام مخلصين واخلی او کوه طور ته به منتقل شی.[7]

---

[1] ) پورته حواله، وباب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل......رقم (٧٢٩٩)، عن ابى هريرة......وسنن ابى داود، كتاب الملاحم، باب خروج الدجال، رقم (٤٣٢١)، والبخارى، كتاب الجهاد، باب قتال اليهود، رقم (٢٩٢٦)

[2] ) التصريح بما تواتر فى نزول المسيح:١١٨، الحديث الخامس، عن النواس)_

[3] ) ابو داود، كتاب الملاحم، باب خروج الدجال، رقم (٤٣٢٤)، والمصنف لابن ابى شيبة:٢٣٥/٢١، كتاب الفتن، رقم (٣٨٦٨١))_

[4] ) عن ابى سعيد الخدرى..... يملك سبع سنين "ابو داود، كتاب المهدى (٤٢٨٥)، وايضا، رقم (٤٢٨٦))_

[5] ) المصنف لابن ابى شيبة:٢٨٧/٢١، كتاب الفتن، ما ذكر فى فتنة الدجال، رقم (٣٨٧٩٣))_

[6] ) ابو داود، رقم (٤٢٨٦_٤٢٨٧))_

[7] ) مسلم شريف، كتاب الفتن......باب ذكر الدجال......رقم (٧٣٣٣)، عن النواس بن سمعان رضي الله عنه، والترمذى، كتاب الفتن، باب ما جاء فى فتنة الدجال (٢٢٤٠))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د ياجوج وماجوج راوتل:** د مذكوره وحى په تعميل كولو كښې به حضرت عيسى د كوه طور په قلعه كښې نزول اوفرمائى(كومه چې نن صبا موجوده ده)او د جنگ سازوسامان په مهيا كولو كښې به سرگرم وى چې دې دوران كښې به د ياجوج و ماجوج قوم د سكندر ديوال مات كړى او په مخ د زمكې باندې به څلور واړو طرفونو ته خوارهٔ شى،په مضبوطه قلعه كښې د پناه اخستلو نه بغير به د دوى نه د بچ كيدو هيڅ صورت نهٔ وى.[1] ،دوى به د خلقو په قتل وغارت كښې هيڅ پرواه نهٔ كوى.

**د ياجوج وماجوج تباه كارئ:** د دوى تعداد به دومره زيات وى چې كله د دوى اولنۍ ډله بحيره طبريه [2] ته راورسى نو د هغې ټولې اوبه به اوڅكى او هغه سمندر به اوچ شى،چې كله وروستنۍ ډله دلته راورسى نو هغوى به وائى چې كيدې شى دلته هډو اوبه تيرې شوې نهٔ دى،دوى ټول به په ظلم وستم،قتل وغارت،پرده اخستلو،تكليف رسولو او قيد كولو كښې مشغول شى،په دې حالت كښې چې كله دوى شام ته اورسيږى نو اوبه وائى چې مونږ خو د زمكې والا خلق نيست نابود كړل،راځئ چې اوس د آسمان والا هم ختم كړو نو په آسمان باندې به غشى وروى چې د الله تعالى قدرت سره به په وينو ليت پيت واپس راشى،ددې په ليدلو سره به دوى ډير خوشحاله شى چې اوس خو زمونږ نه سوا هيڅوک نشته[3]

**د حضرت عيسى ﷺ دعا او د ياجوج وماجوج هلاكت:** د ياجوج وماجوج ددې فتنې دوران كښې به په مسلمانانو باندې د خوراک سختى راشى،آخر به حضرت عيسى ﷺ د دعا كولو دپاره پاسى،ددوى ملگرى به وروستوولاړوى اوآمين به وائى نوالله تعالى به يوقسم بيمارى "نغف"[4] نازله كړى،دې مرض سره به د ياجوج وماجوج قوم په يو شپه كښې ختم شى.[5] چونكه د دومره مړگونو د وجې نه به ډيره سخته بدبوئى خوره شى،ددې وجې نه به حضرت عيسى ﷺ بيا خپلو ملگرو سره دعا اوكړى نو الله تعالى به اوږدو اوږدو څټونو او جسمونو والا"عنقا"نومې ځناور راواستوى نو دغه ځاروى به بعضې اوخورى او نور به مختلفو جزيرو او سمندرونو كښې اوغورزوى او د هغوى د وينو وغيره نه به د زمكې مخ صفا كولو دپاره څلويښت ورځې باران اووريږى،دا باران به دومره قدرې زيات وى چې هيڅ يو پوخ او كچه مكان به د سسيدلو نه بغير پاتې نهٔ شى.

**د امن و بركت اووهٔ كاله او د حضرت عيسى ﷺ وفات:** دې باران سره به پيداوار ډير زيات

---

[1] ) تفسير البيضاوى مع الشهاب:٢٣٦/٦،سورة الكهف/٩٩)_

[2] ) الطبرية_بفتح الطاء والباء_بحيرة من اعمال الاردن فى طرف الغور وفى جبل،وجبل الطور مطل عليها....."معجم البلدان للحموى بتصرف:١٧/٤،باب الطاء والباء......)_

[3] ) مسلم،رقم (٧٣٣٣_٧٣٣٤)،حديث النواس بن سمعان،وترمذى،كتاب الفتن،رقم (٢٢٤٠))_

[4] ) نغف د نون او غين فتحې سره هغه چينجى ته وائى كوم چې د اوښ او د چيلۍ په پوزه كښې وى، دغه شان اوگورئ كتاب السير للتوربشتى:١١٦٧/٤،رقم (٤١٠٤))_

[5] ) مسلم،رقم (٧٣٣٣)،ترمذى،رقم (٢٢٤٠))_

بركتناک او زيات شي،داسې چې يو سير غله او د يو غوا يا د يو چيلۍ شودۀ(پئ)به د يو خاندان دپاره کافي کيږي(1)،ټول خلق به ډير زيات عيش وعشرت کښې وي،په مخ د زمکه به د مؤمنانو نه سوا نور هيڅوک نۀ وي،کينه او حسد وغيره به د خلقو نه پورته شي،ماران او مضرځناور(درندګان)به خلقو ته څۀ نقصان نۀ رسوي.

د ياجوج او ماجوج د قوم چې د تورو کوم نيامونه او کمانونه وغيره وي هغه به د خشاک په طور په کار راځي(2) ،دا حالات به اوۀ کالو پورې جاري وي.ددې نه پس به رو رو خواهشات نفسانيه شروع شي.دا ټول واقعات د عيسى سره متعلق دي،په زمکه باندې به د حضرت عيسى قيام څلويښت کاله وي،حج به اوکړي،نکاح به اوکړي،اولاد به ئې پيدا شي،بيا به دوى مبارک وفات شي او د نبي ﷺ په روضه مبارکه کښې به دفن شي(3).

د حضرت عيسى د وفات نه پس به قبيله قحطان(4)کښې جهجاه نومې سړې د دوى خليفه شي،چې عدل او انصاف سره به د خلافت امور پوره کوي،د دوى نه پس به يو څو نور بادشاهان وي،چې د هغوى په زمانه کښې به بيا کفريه او جاهلانه رسومات عام شي او علم به ډير زيات کم شي(5).

د شپې اوږديدل او د توبې دروازه بنديدل: څۀ موده پس به د ذى الحجه په مياشت کښې د نوې اختر د ورځې نه پس شپه دومره اوږده شي چې مسافرو به تنګه شي،ماشومان به د خوب نه بيدار شي او څاروى به د څرن کولو دپاره بې قراره شي،اخر دا چې خلق به د ويرې او د پريشانئ د وجې نه په ژړا ژړا سره توبه کوي،د دريو څلورو شپو په مقدار باندې چې کله داسې حالت تير شي نو ددې نه پس به د پريشانئ په حالت کښې نمر د سپوږمئ په شان معمولى رڼرا سره د مغرب نه راوخيژي،دې وخت کښې به ټول خلق د الله تعالى د وحدانيت

---

(1) جامع ترمذي،رقم (٢٢٤٠)،ومسلم،رقم (٧٣٣٣))_

(2) ويستوقد المسلمون من قسيهم ونشابهم وجعابهم".انظر الجامع للترمذي،كتاب الفتن،باب ماجاء فى فتنة الدجال،رقم (٢٢٤٠)،من رواية النواس رضي الله عنه)_

(3) پورته حواله جات،وابو داود،كتاب الفتن،رقم (٤٣٢٣)،وابن ابى شيبة:٢٠٠/٢١،كتاب الفتن،رقم (٣٨٦٢٩)، ومسند احمد:٢٩٠/٢،رقم (٧٨٩٠)،مسند ابى هريرة،و:٤٣٧/٢،رقم (٩٦٣٠)،والتصريح بما تواتر فى نزول المسيح:٢٤٠،احاديث اخرى مما اخرجه المحدثون......رقم (٥٨)،و:٣٩٣،رقم (١٠١)،واحياء علوم الدين:٤٧٣،كتاب آداب النكاح،ربع العادات،الباب الاول.....والفردوس بماثور الخطاب:٣٦٥/٤، فصل، والعلل المتناهية:٤٣٣/٢،رقم (١٥٢٩)،ذكر عيسى،وعمدة القارى:٤٠/١٦،ومشكاة المصابيح،باب نزول عيسى......كتاب الفتن،رقم (٥٥٠٨))_

(4) جامع ترمذي،كتاب الفتن،باب بلا ترجمة،رقم (٢٢٢٨)،ومسلم،كتاب الفتن،باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر......رقم (٧٢٦٨_٧٢٦٩)،وبخاري،كتاب المناقب،باب ذكر قحطان،رقم (٣٥١٧)،وكتاب الفتن،باب تغيير الزمان حتى......رقم (٧١١٧))_

(5) صحيح بخاري،كتاب الفتن،باب ظهور الفتن،رقم (٧٠٦١_٧٠٦٦)،عن غير واحد من الصحابة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اقرار او کړي لیکن بې فائدې........ځکه چې دې وخت کښې به د توبې دروازه بنده شی،ددې نه پس به نمر د خپل معمول د رڼا سره د مشرق نه راخیژی[1].

**د دابة الارض ښکاره کیدل:** خلق به په دې حالت کښې وی چې د صفا غر به د زلزلې د وجې نه اوشلیږی چې د هغې نه به یو عجیبه قسم ځناور ښکاره شی[2]،لکه د شکل په اعتبار سره به دا ځناور د اووه قسمه ځناورو سره مشابهت لری،په مخ کښې د سړی سره،خپو کښې اوښ سره،څټ کښې اس سره،لکۍ کښې غوئی سره،کوناټی کښې هوسۍ سره،په ښکرونو کښې باره سینګۍ سره او په لاسونو کښې د بیزو سره[3]،دې سره سره به ډیر زیات فصیح اللسان وی[4].

ددې ځناور په یو لاس کښې به د حضرت موسی همسا،په دویم لاس کښې به ورسره د حضرت سلیمان ګوتمه وی،ددې رفتار به ډیر زیات تیز وی چې دا چا پسې شی نو څوک به هم ترینه بچ کیدې نۀ شی،دا ځناور به په هر انسان باندې یو نښه لګوی،که د ایمان والا وی نو د موسی په همسا سره به د هغۀ په مخ باندې یو لکیره راښکی چې د هغې د وجې نه به ددې مؤمن مخ روښانه شی،که کافر یا منافق وی نو د حضرت سلیمان په ګوتمې سره به د هغۀ په پوزه یا څټ باندې تور مهر لګوی چې د هغې د وجې نه به ددې انسان مخ بې رونقه شی،که په یو دسترخوان باندې څو کسان ناست وی نو د هر یو سړی د ایمان او کفر به پته اولګی،دا ځناور چې ددې کار نه فارغ شی نو غائب به شی.

د مغرب نه چې نمر راوخیژی او دابة الارض ښکاره شی نو ددې نه پس به د شپیلۍ پوک وهلو پورې شپږ شلې(۱۲۰)کاله زمانه وی[5].

**د ایماندارو د مرګ هوا:** دابة الارض چې غائب شی نو ددې نه پس به د جنوب د طرف نه یو مزیداره هوا اوچلیږی چې د هغې د وجې نه به د هر مؤمن په ترخ(بغل)کښې یو درد پیدا شی چې د هغې د وجې نه به ترتیب سره افضل،فاضل او بیا ناقص وفات کیدل شروع شی،شرط

---

[1]) بخاري،کتاب الفتن،باب (بلا ترجمة)،رقم (۷۱۲۱)،ومسلم،کتاب الایمان،باب بیان الزمن الذی لا یقبل......رقم (۳۹۶)،وفیه بحث نفیس فی روح المعانی:۸/۴۲۴_۴۲۷،سورة الانعام،الآیة:۱۵۸)_

[2]) قال الله جل ذکره:(واذا وقع القول علیهم اخرجنا لهم دابة من الارض تکلمهم.....) (النمل:۸۲)،وتفسیر الکشف والبیان:۴/۵۱۰_۵۱۲)_

[3]) قد اختلف الروایات فی صفات هذه الدابة،انظر المصدر السابق،ومفاتیح الغیب للرازی: ۲۴ /۵۷۳،سورة النمل،وتفسیر السمعانی:۴/۱۱۴و۱۱۵)_

[4]) روح المعانی:۲۰/۳۱۲،سورة النمل،تفسیر الآیة/۸۲،واخبار مکة للفاکهی:۴/۳۹،ذکر الدابة وخروجها......رقم (۲۳۴۶_۲۳۴۷))_

[5]) تفسیر الکشاف والبیان:۴/۵۱۰_۵۱۲،و روح المعانی:۲۰/۳۱۱_۳۱۵،تفسیر السمرقندی:۲/۵۰۵،وفتح القدیر:۴/۱۸۹،وفتح الباری،کتاب الرقاق:۱۱/۳۵۴،باب بلا ترجمة،رقم (۶۵۰۶)،واخبار مکة للفاکهی:۴/۳۹،باب الدابة وخروجها،ومن این تخرج من مکة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

به دا وی چې بس فاسق نه وی.(۱).
دغه شان قیامت ته نزدې به دا نښه هم ښکاره شی چې ځاروی، کانړی او چابک وغیره به کثرت سره ګویا کیږی، چې کورونو کښې دننه کوم امور دی د هغې او د نورو خبرو اترو خبر به ورکوی.(۲).
**د حبشیانو غلبه او په شام کښې د خلقو اجتماع:** چې کله ټول مؤمنان ددې دنیا نه رخصت شی نو حبشیان به غالب شی، ټوله دنیا کښې به د هغوی حکومت خور شی، دوی به خانه کعبه ورانه کړی (۳) نو حج به بند شی (۴)، قرآن کریم به د زړونو، ژبو او کاغذونو نه پورته شی، د الله تعالی او د آخرت ویره به د زړونو نه ختمه شی، شرم و حیا به ختمه شی خلق به برسرعام د خرو او سپو په شان بدفعلی کوی.(۵)، د حاکمانو ظلم او جهالت به زیات شی، جهالت به دومره قدرې زیات شی چې هیڅوک به لفظ "الله" وئیلو والا پاتې نه شی.(۶).
چې د ټولې دنیا دا حالت وی نو دې دوران کښې به نسبتاً د شام په ملک کښې امن او ارزانی زیاته وی نو ټول خلق به د خپلو بچو سره د شام په طرف روان شی.(۷).
**اور به خلقو لره په شام کښې جمع کړی:** کله چې د قیامت واقع بالکل نزدې شی نو یو ډیر لوئې اور به د جنوب له طرفه ښکاره شی د خلقو طرفته به راځی، د هغې نه د بچ کیدلو دپاره به خلق وارخطا منډې وهی او اور به مسلسل دوی پسې لګیدلې وی، آخر به دا اور دې خلقو لره شام (محشر) ته اورسوی، ددې نه پس به هغه اور غائب شی، دې وخت کښې به د مجموعی طور آبادې اکثریت په شام کښې وی.(۸). ددې نه پس به د قیامت د قائمیدو اولنې

---

(۱) مسلم، کتاب الفتن، باب ذکر الدجال......رقم (۷۳۳۳)، ورقم (۷۳٤۱)، والترمذی، رقم (۲۲٤۰))_
(۲) عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: والذی نفسی بیده لا تقوم الساعة حتی تکلم السباع الانس، وحتی تکلم الرجل عذبه صوته، وشراک نعله، وتخبره فخذه بما احدث اهله من بعده". رواه الترمذی، وقال: هذا حدیث حسن غریب"......کتاب الفتن، باب ما جاء فی کلام السباع، رقم (۲۱۸۱))_
(۳) صحیح البخاری، کتاب الحج، رقم (۱۵۹۱) و(۱۵۹۶)، ومسلم، کتاب الفتن، رقم (۸۳۹۵)، ومسند الطیالسی: ۶۹۶/۲، رقم (۲٤۹٤)، مسند ابی هریرة، وابن حبان، کتاب التاریخ، باب بدء الخلق، ذکر الموضع الذی یبایع فیه المهدی، رقم (۶۸۲۷))_
(۴) صحیح البخاری، رقم ۱۵۱۶، مسنداحمد: ۳۱۲/۲، رقم (۸۰۹۹) ومستدرک الحاکم: ٤۹۹/٤، رقم (۸۳۹۵) ومسندالطیالسی: ۶۹۶/۲، رقم (۲٤۹٤) مسندابی هریرة، وابن حبان، کتاب التاریخ، باب بدء الخلق، ذکرالموضع الذی یبایع فیه المهدی، رقم (۶۸۲۷))_
(۵) مسلم، کتاب الفتن، رقم (۷۳۳۳)، والترمذی، کتاب الفتن، رقم (۲۲٤۰)، عن النواس بن سمعان)_
(۶) مسلم، کتاب الایمان، باب ذهاب الایمان آخر الزمان، رقم (۲۳٤/۱٤۸)، والترمذی، کتاب الفتن، باب منه، رقم (۲۲۰۷))_
(۷) المستدرک للحاکم: ٥٤۹/٤، کتاب الفتن والملاحم، رقم (۸۵۳۸)، عن عبدالله بن مسعود)_
(۸) ابو داود، کتاب الملاحم، باب امارات الساعة، رقم (٤۳۱۱)، ومسلم...... [بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

علامت داوی چې خلق به درې څلور کاله په غفلت کښې پراته وی او دنیوی نعمتونه، مالونه او شهوتونه به زیات شی.

**د شپیلئ اواز، مرکونه او د کائنات د نظام فنا کیدل:** د جمعة المبارک په ورځ، چې د عاشورې ورځ به هم وی.[1]، سحر به خلق په خپلو خپلو کارونو کښې مشغول وی چې اچانک به یو باریک آواز واوریدلې شی، دا به د شپیلئ آواز وی، ټولو طرفونو کښې به دا آواز یو شان اوریدې شی او خلق به حیران وی چې دا آواز څنګه او د کوم ځائې نه راځی؟ رو رو به دا آواز د آسمانی بجلئ د ګړز په شان سختیږی او تیزیږی، خلقو کښې به ددې د وجې نه ډیره بې قراری او بې چینی خوره شی، چې کله دا آواز پوره سخت شی نو خلق به د ویرې او د هیبت د وجې نه مړهٔ کیدل شروع شی، په زمکه باندې به زلزله راشی[2]، ددې ویرې نه به خلق کورونه پریږدی او د میدانونو په طرف به روان شی، وحشی ځناور به ویریږی او هغوی به هم انسانانو سره ملاؤ شی[3]، ځائې په ځائې به زمکه اوشلیږی[4]، سمندرونه به اوخوټکیږی[5]، لوئې لوئې غرونه به د مالوچو په شان والوزی[6]، د خاورو د وجې نه به په ټوله دنیا باندې تیارهٔ خوره شی، دغه آواز به وخت په وخت سختیږی، تردې چې ددې د زیات هیبت ناک کیدو د وجې نه به اسمانونه اوشلیږی او ستوری به ریزه ریزه شی[7]. ددې نه څهٔ موده پس به دوباره د پیدائش او د تخلیق عمل شروع شی، بیا به دویم ځل باندې شپیلئ پوک وهلې شی او ټول خلق به د قبرونو نه راوځی او میدان حشر کښې به جمع کیږی او د حساب کتاب عمل به شروع شی.[8]

الله تعالی دې مونږ ټول ددې ورځې د سختو نه محفوظ اوساتی او الله تعالی دې مونږ ټول د

---

بقیه ازحاشیه گذشته] کتاب الفتن، رقم (۷۲۴۲_۷۲۴۳)، والترمذی، کتاب الفتن، رقم (۲۱۸۳)، وصحیح البخاری مع فتح الباری: ۳۷۸/۱۱، رقم (۶۵۲۲)، کتاب الرقاق، باب الحشر)_

[1] ) مسلم، کتاب الفتن، رقم (۷۳۴۱)، حدیث عروة بن مسعود)_

[2] ) قال الله تعالی: (اذا زلزلت الارض زلزالها) (الزلزال/۱))_

[3] ) قال الله تعالی: (واذا الوحوش حشرت) (التکویر/۵))_

[4] ) قال الله تعالی: (یوم تشقق الارض عنهم سراعا) (ق/۴۴)_

[5] ) قال الله تعالی: (واذا البحار فجرت) (الانفطار/۳))_

[6] ) قال الله تعالی: (واذا الجبال نسفت) (المرسلات/۱۰)، وقال ایضا: (وتکون الجبال کالعهن المنفوش) (القارعة/۵))_

[7] ) قال جل ذکره: (اذا السماء انفطرت، واذا الکواکب انتثرت) (الانفطار/۱_۲))_

[8] ) مسلم شریف، کتاب الفتن......باب فی خروج الدجال......رقم (۷۳۴۱)، عن عروة بن مسعود الثقفی، وباب ما بین النفختین، رقم (۷۳۷۴)، والبخاری فی التفسیر، سورة الزمر، رقم (۴۹۳۵))_ دا ټول تفصیلات د حضرت شاه رفیع الدین دهلوی رحمه الله د رسالې "علامات قیامت" نه لږ بدلون او حذف سره اخستلې شوې دی، اوګورئ مذکوره رساله مطبوعه مع "د قیامت نه مخکښې به څهٔ کیږی؟" (ص: ۲۳، ۴۴)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نبی ﷺ د شفاعت مستحق اوګرځوی.آمین
**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت په دې جمله کښې دې، "فیغدرون" چې دغه رومیان به دهوکه او وعده خلافی اوکړی، ددې وجې نه بې پرواه اوغافله کیدل پکارنۀ دی، بلکه هوښیارتیاسره تیاری هم کول پکاردی.(١). والله اعلم بالصواب

## ⑯ باب: كَيْفَ يُنْبَذُ إِلَى أَهْلِ الْعَهْدِ

یعنی د مصالحت او د معاهدې د ختمیدو اطلاع دشمن ته څنګه ورکړې شی؟
**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری دلته دا فرمائی چې که اهل عهد سره صلح شوې وی او بیا دې مصالحت او صلح ددې خبرې تقاضه اوکړه چې دا وعده او عهد برقرار اونۀ ساتلی شی نو څۀ کول پکار دی؟
ددې سوال جواب په هغې آیت کریمه او حدیث مبارک کښې موجود دې کوم چې په باب کښې ذکر دی چې دا کافران د څۀ اعلان په ذریعه یا په بلې څۀ ذریعې سره خبر کړې شی چې اوس مونږ دا عهد او وعده برقرار ساتل نۀ غواړو، لهذا د فلانی تاریخ نه یا د نن نه دې معاهده ختمه اوګنړلې شی.(٢).
**قوله:** وقوله: (وإما تخافن من قوم خيانة فانبذ إليهم على سواء: الاية/الانفال:۵۸/
او د الله تعالی دا وینا چې که تاسو (صلی الله علیه وسلم) ته د یو قوم له طرفه دا ویره پیښه وی چې دوی به وعده خلافی او بدعهدی اوکړی نو دوی ته د دوی عهد او وعده واپس کړئ دې دپاره چې تاسو او دا خلق برابر شئ.
**د"نبذ"معنی:** پورته په ترجمة الباب کښې، دغه شان په آیت کریمه او راتلونکی حدیث کښې د"نبذ"د مختلفو مشتقاتو ذکر دې، دا د باب ضرب نه دې، دذې اصل معنی ده ویشتل لیکن دلته ددې نه مراد دې وعده ماتول(٣).
**د سواء معنی او د ایت تفسیر:** حضرت ابن عباس خو د سواء معنی بیان کړې ده مثل سره، او امام کسائی ددې تفسیر په عدل سره کوی.(٤)
علامه ازهری فرمائی چې مطلب دا دې چې که تاسو یو قوم سره صلح اوکړئ، معلومه شی چې هغوی وعده خلافی کول غواړی نو بیا هم تاسو په وعده ماتولو کښې جلدی مۀ کوئ، بلکه خبر ورته اولیږئ چې تاسو وعده ماتوئ، دغه شان به تاسو او دشمنان په دې علم کښې برابر

---

(١) عمدة القاری:۱۵/۹۹)_
(٢) فتح الباری:۶/۲۷۹،وعمدة القاری:۱۵/۱۰۰،وقال ابن بطال رحمه الله: اجمع العلماء ان للامام ان يبدا من يخاف خيانته وغدره بالحرب بعد ان يعلمه بذلك".انظر شرحه:۵/۳۶۰)_
(٣) عمدة القاری:۱۵/۱۰۰)_
(٤) فتح الباری:۶/۲۷۹،وعمدة القاری:۱۵/۱۰۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شئ چې معاهده ختمه شوې ده، بيا پرې حمله او كړئ.[1]

۳۰۰۷: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ - رضى الله عنه - فِيمَنْ يُؤَذِّنُ يَوْمَ النَّحْرِ بِمِنًى لاَ يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلاَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ. وَيَوْمُ الْحَجِّ الأَكْبَرِ يَوْمُ النَّحْرِ، وَإِنَّمَا قِيلَ الأَكْبَرُ مِنْ أَجْلِ قَوْلِ النَّاسِ الْحَجُّ الأَصْغَرُ. فَنَبَذَ أَبُو بَكْرٍ إِلَى النَّاسِ فِي ذَلِكَ الْعَامِ، فَلَمْ يَحُجَّ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ الَّذِي حَجَّ فِيهِ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - مُشْرِكٌ.[2] [ر: ۳۶۲]

## رجال الحديث

① **ابواليمان**: دا مشهور محدث ابو اليمان حكم بن نافع دې.

② **شعيب**: دا شعيب بن ابى حمزه دې. ددې دواړو حضراتو تذكره د "بدء الوحى" په "الحديث السادس" كښې تيره شوې ده.[3]

③ **زهرى**: د مشهور محدث ابن شهاب زهرى حالات "بدء الوحى" كښې راغلي دى.[4]

④ **حميد بن عبدالرحمن**: دا مشهور تابعى محدث، حضرت حميد بن عبدالرحمن بن عوف دې. د دوى تذكره په كتاب الايمان، "باب تطوع قيام رمضان من الايمان" كښې تيره شوې ده.[5]

⑤ **ابوهريره رضى الله عنه**: د مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضى الله عنه تذكره د كتاب الايمان په شروع كښې تيره شوې ده.[6]

**د حديث شريف ترجمه**: حضرت ابوهريره فرمائى چې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په منى كښې د اعلان كولو دپاره نورو خلقو سره زۀ هم اوليږلم، اعلان دا وو چې ددې كال نه پس به هيڅ يو مشرك حج ته نۀ راځى، نۀ به څوک بربنډ د كعبة الله طواف كوى. او د حج اكبر ورځ يوم النحر ده اودې ته د "حج اكبر" وئيلو وجه داده چې خلقو به دې ته "حج اصغر" وئيلې. نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه دې كال باندې خلقو (دشمن) ته د معاهدې د ختمولو او ماتولو اطلاع وركړه. په دې وجه باندې د حجة الوداع په كال هيڅ يو مشرك حج ته رانغې په كوم كال چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم حج او كړو.

**د مشركانو د منع كولو وجه**: پورتنى حديث كښې دا راغلې دى چې مشركان د بيت الله د حج نه منع كړې شوې وو، ددې وجه علامه مهلب دا بيان كړې ده چې نبى صلى الله عليه وسلم ته دا ويره وه چې

---

[1] ) پورته حواله جات)_

[2] ) قوله: ان ابا هريرة رضي الله عنه ":الحديث، مر تخريجه فى الحج، باب لا يطوف بالبيت عريان......)_

[3] ) كشف البارى: ۱/۴۷۹_۴۸۰)_

[4] ) كشف البارى: ۱/۳۲۶، الحديث الثالث)_

[5] ) كشف البارى: ۲/۳۱۶)_

[6] ) كشف البارى: ۱/۶۵۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مشرکان خدانخواسته څۀ شرارت اونۀ کړی، څۀ مکر و فریب اونۀ کړی، ددې وجې نه هغوی منع کړې شو چې ددې کال نه پس به هيڅ يو مشرک حج ته نۀ راځی، دغه شان دې سره دا فائده هم اوشوه چې د الله تعالى په حکم سره د مشرکانو د نجاست نه بيت الله شريف پاک کړې شو،

د الله تعالى ارشاد دې: (انما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد الحرام بعد عامهم هذا)[1] ددې نه علاوه د الله تعالى په ارادې سره طواف کول هم د بې لباسئ په حالت کښې منع کړې شو ځکه چې دا کار د الله تعالى د کور د ادب او د تعظيم نه خلاف دې.[2] والله اعلم

**ترجمة الباب سره د ايت او د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره د آيت کريمه او د حديث مناسبت په دې معنى کښې دې چې په ترجمه کښې د يو کار متعلق سوال وو چې ددې څۀ طريقه کيدل پکار دی؟نو د هغې جواب په آيت کريمه کښې موجود دې، دغه شان په حديث شريف کښې هم ددې سوال جواب موجود دې.

د فقه حنفى په مشهور کتاب "هدايه" کښې دی:

"وإن صالحهم مدة، ثم رأى نقض الصلح أنفع نبذ إليهم الامام، وقاتلهم لانه عليه السلام نبذ الموادعة التى كانت بينه وبين أهل مكة، ولان المصلحة لما تبدلت كان النبذ جهاداً، وايفاء العهد ترك الجهاد صورة ومعنى، فلابد من النبذ تحرزاً عن الغدر، وقد قال عليه السلام: "وفاء لاغدر"[3]

ولابد من اعتبار مدة يبلغ خبر النبذ إلى جميعهم، ويكتفى فى ذلك بمضى مدة يتمكن ملكهم بعد علمه بالنبذ من إنفاذ الخبر إلى أطراف مملكته لان بذلك ينتفى الغدر.

قال: وإن بدؤا بخيانة قاتلهم، ولم ينبذ إليهم إذا كان ذلك باتفاقهم، لانهم صاروا ناقضين للعهد، فلا حاجة إلى نقضه، بخلاف ما إذا دخل جماعة منهم، فقطعوا الطريق، ولا منعة لهم، حيث لايكون هذا نقضاً للعهد، ولو كانت لهم منعة، وقاتلوا المسلمين علانية يكون نقضا للعهد فى حقهم، دون غيرهم لانه بغير إذن ملكهم، ففعلهم لايلزم غيرهم، حتى لوكان باذن ملكهم صاروا ناقضين للعهد لانه باتفاقهم معنى"[4]

---

[1] التوبة/٢٨)_

[2] شرح ابن بطال:٥/ ٣٦٠_ ٣٦١، وفتح البارى:٦/٢٧٩)_

[3] قال العلامة الزيلعى رحمه الله عن هذا الحديث(ما ملخصه): لم اجده مرفوعا، ولا حمد واصحاب السنن وابن حبان من حديث عمرو بن عبسة انه غزا مع معاوية، فكان يقول: الله اكبر، وفاء لا غدر". انظر الدراية فى تخريج احاديث الهداية للزيلعى:٣/٣٩٠_٣٩١، رقم (٥٧٩٥)، وكذا انظر سنن ابى داود، رقم (٢٧٥٩)، والترمذى، رقم (١٥٨٠)، ومسند احمد، حديث عمرو بن عبسة٥/٨٠٣، رقم (١٧١٤٠)، ومسند الطيالسى٢/٩_١٠، رقم (١٢٥١)، وسنن النسائى الكبرى:٥/٢٢٣، كتاب السير، رقم (٨٧٣٢)، وآخرون)_

[4] الهداية:٢/٥٦٣، كتاب السير، باب الموادعة ومن يجوز امانه)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ⑰ باب: إِثْمِ مَنْ عَاهَدَ ثُمَّ غَدَرَ

**د ترجمة الباب مقصد:** په دې باب كښې امام بخاري د تړون او وعده خلافئ ګناه بيان كړې ده چې معاهده اوشي او بيا د خپل طرفنه وعده خلافي كول او تړون كول نو دا ډير لوئې سخت جرم، لويه ګناه او حرام كار دې برابره خبره ده كه يو مسلمان سره وي يا غير مسلم سره وي(١).

**قوله:** وقوله: والذين عاهدت منهم ثم ينقضون عهدهم في كل مرة وهم لا يتقون :/الانفال:٥٦

او د الله تعالى دا وينا چې تاسو چاسره معاهدې كړې دی، بيا هر ځل هغوی خپله وعده ماتوی او دوی د وعده خلافئ د انجام نه نه ويريږی.

**د ايت كريمه شان نزول او تفسير:** قاضي بيضاوی فرمائی چې دلته د وعده خلافو نه مراد د بنو قريظه يهوديان دی، هغوی نبی ﷺ سره معاهده كړې وه چې مونږ به ستاسو خلاف د هيچا څۀ مدد نۀ كوو ليكن هغوی بدعهدی اوكړه او د اسلحو په ذريعې سره ئې د مشركانو مدد اوكړو، چې كله پوښتنه اوشوه او حقيقت حال معلوم شو نو وې وئيل چې زمونږ نه هير شو. بيا ورسره نبی ﷺ صلح اوكړه ليكن هغوی وعده خلافی اوكړی او د غزوهٔ خندق په موقع ئې د نبی ﷺ خلاف د مشركانو مدد اوكړو او مشهور يهودی كعب بن اشرف د مدينې منورې نه د مكې مكرمې سفرصرف ددې وجې نه اوكړو چې د مكې مكرمې مشركان خپل ملګری جوړ كړی(٢).

د آيت كريمه نه دا خبره معلوميږی چې وعده خلافی او دهوكه بازی ډير لوئې جرم دې(٣)، ورنه داسې به ددې مذمت نۀ وو شوې، ځكه چې په دې آيت كريمه كښې د يهوديانو ددې كار خرابی او قباحت بيان كړې شوې دې.

**د ايت كريمه او ترجمة الباب مينځ كښې مناسبت:** ترجمة الباب سره د آيت كريمه مناسبت واضح دې ځكه چې په ترجمة الباب كښې وعده خلافئ ته ګناه وئيلې شوې ده، د هغې دليل په آيت كښې موجود دې چې دا كار ډير خراب او ناكاره كار دې، د هيڅ يو مسلمان دپاره دا مناسب نۀ ده چې هغه دا كار لوكړی، ددې وجې نه ددې نه ځان ساتل پكار دی.

ددې نه پس امام بخاری په ترجمه كښې درې حديثونه ذكر كړې دی، اولنې حديث د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه دې.

٣٠٠٧: (٤) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو -رضى الله عنهما- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه

---

(١) فتح البارى:٦/٢٨٠، وعمدة القارى:١٥/١٠١)_

(٢) القسطلانى:٥/٢٤٢، وتفسير البيضاوى مع حاشيته للشهاب الخفاجى:٤/٤٩٤، سورة الانفال/٦٥)_

(٣) عمدة القارى:١٥/١٠١)_

(٤) قوله: عن عبدالله...... "الحديث، مر تخريجه فى الايمان، باب علامة المنافق، انظر كشف البارى:٢/٢٨٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وسلم- «أَرْبَعُ خِلَالٍ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا مَنْ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا». [ر: ۳۴]

## رجال الحدیث

①**قتیبه بن سعید**:دا مشهور محدث قتیبه بن سعید ثقفی بغلانی دې،د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب إفشاء السلام......" کښې تیره شوې ده.[1]

②**جریر**:دا جریر بن عبدالحمید بن قرط الضبی دې،د دوی حالات په کتاب العلم، "باب من جعل لاهل العلم أیاماً معلومة" کښې تیر شوې دی.[2]

③**الاعمش**:دا سلیمان بن مهران دې چې په اعمش کوفی سره مشهور دې.د دوی ترجمه په کتاب الایمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې راغلې ده.[3]

④**عبدالله بن مره**:دا مشهور تابعی حضرت عبدالله بن مره کوفی دې.[4]

⑤**مسروق**:دا مشهور تابعی حضرت مسروق ابن اجدع ابوعائشه دې.ددې دوارو حضراتو تذکره په کتاب الایمان، "باب علامة المنافق......" کښې تیره شوې ده.[5]

⑥**عبدالله بن عمرو**:دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما دې.د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المسلم من سلم المسلمون......." کښې راغلې دی.[6]

**د حدیث مبارک ترجمه**:حضرت عبدالله بن عمرو فرمائی چې نبی فرمائیلې دی چې څلور عادتونه او خصلتونه داسې دی چې دا په کوم کس کښې وی نو دا به خالص منافق وی،یعنی چې خبرې کوی او دروغ وائی،وعده اوکړی نو د هغې خلاف ورزی اوکړی،چاسره عهد اوکړی نو بدعهدی اوکړی او جنګ کوی نو دې دوران کښې کنځل کوی،د حد نه تجاوز کوی او په کوم کس کښې چې ددې څلورو عادتونو نه یو عادت وی نو په هغهٔ کښې به د منافقت یو خصلت وی،تردې چې دا یو هم پرېږدی.

دا حدیث چونکه په کتاب الایمان [1] کښې مکمل وضاحت سره تیر شوې دې،ددې وجې نه دلته صرف په ترجمه باندې بس والې کړې شوې دې.

---

[1]) کشف الباری:۲/۱۸۹)_

[2]) کشف الباری:۳/۲۶۸)_

[3]) کشف الباری:۲/۲۱)_

[4]) کشف الباری:۲/۲۸۰_۲۸۱)_

[5]) کشف الباری:۱/۶۷۹)_

[6]) کشف الباری:۲/۲۷۳_۲۷۵،و:۲۸۳_۲۹۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت:** د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ددې حديث مطابقت ترجمة الباب سره واضح دې ځکه چې په دې کښې يوه جمله د "وإذا عاهد غدر [۱]" ده چې د منافق خصلت دې، ددې وجې نه په يو حقيقي مؤمن کښې دا څيز نۀ شي کيدې، لکه څنګه چې نور بيکاره خصلتونه نۀ دې کيدل پکار.

دويم حديث مبارک د حضرت علي رضي الله عنه دې.

۳۰۰۸: [۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَلِيٍّ - رضى الله عنه - قَالَ مَا كَتَبْنَا عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - إِلاَّ الْقُرْآنَ، وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ، قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «الْمَدِينَةُ حَرَامٌ مَا بَيْنَ عَائِرٍ إِلَى كَذَا، فَمَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا، أَوْ آوَى مُحْدِثًا، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لاَ يُقْبَلُ مِنْهُ عَدْلٌ وَلاَ صَرْفٌ، وَذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ وَاحِدَةٌ يَسْعَى بِهَا أَدْنَاهُمْ. فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لاَ يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلاَ عَدْلٌ، وَمَنْ وَالَى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لاَ يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلاَ عَدْلٌ». [ر: ۱۷۷۱]

## رجال الحديث

①**محمد بن كثير:** دا محمد بن كثير بصري دې. د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب الغضب في الموعظة....." کښې تيره شوې ده. [۳]

②**سفيان:** دا مشهور محدث سفيان بن سعيد الثوري دې. د دوی حالات په کتاب الايمان، "باب علامة المنافق" کښې تير شوي دی. [۴]

علامه عيني رحمه الله دلته سفيان ته ابن عيينه وئيلې دی (عمدة القاری: ۱۵/۱۰۲) دا صحيح نۀ ده ځکه چې د محمد بن کثير په استاذانو کښې د ابن عيينه نوم نۀ ملاويږي. اوګورئ تهذيب الکمال: ۲۶/۳۳۵، دوی ته غالباً ددې خبرې نه مغالطه شوې ده چې د محمد بن کثير په نوم سره يو راوی هم دې چې واقعی د ابن عيينه شاګرد دې او دې ئې شيخ دې نو دا د نظر په سبقت باندې محمول کيدې شی، اوګورئ تهذيب الکمال: ۲۶/۳۲۹، و: ۱۱/۱۸۶.

③**الاعمش:** دا سليمان بن مهران کوفي اسدی دې، د دوی حالات هم په کتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې راغلې دی. [۵]

---

[۱]) عمدة القاری: ۱۵/۱۰۱، وشرح القسطلاني: ۵/۲۴۲).

[۲]) قوله: عن علي رضي الله عنه: "الحديث، مر تخريجه في كتاب العلم، باب كتابة العلم).

[۳]) کشف الباری: ۳/۵۳۶).

[۴]) کشف الباری: ۲/۲۸۷).

[۵]) کشف الباری: ۲/۲۵۱).

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

④ابراهيم التيمى: دا ابراهيم بن يزيد شريک دې.د دوى تذكره په كتاب الايمان، "باب خوف المؤمن من أن يحبط..... "كښې تيره شوې ده.[1]

⑤أبيه: د ابيه نه مراد يزيد بن شريک تيمى كوفى دې.[2]

⑥على: د حضرت على بن ابى طالب حالات په كتاب العلم، "باب إثم من كذب على..... "كښې راغلي دى.[3]

دا حديث شريف چونكه وړاندې مختلفو ځايونو كښې تير شوې دې، هلته ددې تفصيل سره وضاحت هم شوې دې، ددې وجې نه مونږ هغه دلته دوباره نه ذكر كوو.[4]

**ترجمة الباب سره د حديث مطابقت:** د علامه عينى د وينا مطابق ترجمة الباب سره د حديث مطابقت ددې جملې نه ثابتيږي، "فمن أحدث حدثا أو آوى محدثا..... "ځكه چې په دين كښې څۀ نوې خبره پيدا كول، پيدا كوونكى ته پناه وركول، حفاظت كول وغيره داسې كارونه دى چې په دې كښې د بدعهدئ او د غدر معنى موندلې شى، ددې وجې نه په حديث شريف كښې مذكوره تول كسان دلعنت مستحق هم اوګرځيدل.[5] چې "فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين" او د حافظ صاحب رائې داده چې دا ترجمه ددې جملې "من أخفر مسلما.... "نه ثابتيږي، ځكه چې د إخفار. بالخاء المعجمة معنى ده وعده خلافى كول.[6] نو په دې جمله كښې دا كار ښودلې شوې دې چې مسلمان سره دهوكه او وعده خلافى كول د لعنت او د ملامتيا مستحق څيز دې. والله اعلم بالصواب

دريم حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

٣٠٠٩: قَالَ أَبُومُوسَى حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ كَيْفَ أَنْتُمْ إِذَا لَمْ تَجْتَبُوا دِينَارًا وَلاَ دِرْهَمًا فَقِيلَ لَهُ وَكَيْفَ تَرَى ذَلِكَ كَائِنًا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ إِى وَالَّذِى نَفْسُ أَبِى هُرَيْرَةَ بِيَدِهِ عَنْ قَوْلِ الصَّادِقِ الْمَصْدُوقِ. قَالُوا عَمَّ ذَاكَ قَالَ تُنْتَهَكُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم -، فَيَشُدُّ اللَّهُ عَزَّوَجَلَّ قُلُوبَ أَهْلِ الذِّمَّةِ، فَيَمْنَعُونَ مَا فِى أَيْدِيهِمْ.

---

[1] ) كشف البارى:٢/٥٤٤)_

[2] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب فضائل المدينة، باب حرم المدينة)_

[3] ) كشف البارى: ٤/١٤٩)_

[4] ) اوګورئ، كشف البارى، كتاب العلم: ٤/٢٣٣، وكتاب فضائل المدينة، باب حرم المدينة، وكتاب الجزية، باب ذمة المسلمين وجوارهم واحدة)_

[5] ) عمدة القارى:١٥/١٠٢)_

[6] ) فتح البارى:٦/٢٨٠، وارشاد السارى:٥/٢٤٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

①ابو موسى: دا ابوموسى محمد بن المثنى بن عبيد عنزى بصرى دې.د دوى تذكره په كتاب الايمان، "باب حلاوة الايمان" كښې تيره شوې ده.[1]

②هاشم بن القاسم: دا ابو النضر هاشم بن قاسم تميمى، كنانى، ليثى دې.[2]

③اسحاق بن سعيد: دا اسحاق بن سعيد بن عمرو بن سعيد بن العاص دې.[3]

④ابيه: د ابيه نه مراد سعيد بن عمرو بن سعيد دې.[4]

⑤ابوهريره: د حضرت ابوهريره ﷺ حالات په كتاب الايمان كښې شروع كښې تير شوې دى.[5]

**دا حديث موصول دې يا معلق؟** د صحيح بخارى شريف په اكثرو نسخو كښې تعليقاً "قال ابو موسى....." راغلې دې، هم دا خبره اصحابِ اطراف[6] علامه اسماعيلى، امام حميدى[7] او ابونعيم هم كړې ده ليكن په بعضې نسخو كښې "حدثنا ابوموسى" راغلې دې چې ددې خبرې طرفته اشاره ده چې دا حديث موصول دې، ليكن دا صحيح نۀ ده، اولنې قول صحيح دې چې دا حديث معلق دې.[8]

**پورتنئ صيغه به په سماع باندې محمول وى يا نۀ؟** بيا د اصول حديث په عالمانو كښې په دې خبره كښې اختلاف دې چې آيا دا صيغه يعنى قال وغيره دَ عنعنه قائم مقام كيدو سره په سماع باندې محمول كيږى يا نۀ؟ نو بعضې خو دې لره په سماع باندې محمول كوى او بعضې ئې نۀ محمول كوى ليكن په دې مسئله كښې تحقيقى قول هم دادې چې كه د راوى يا د محدث عادت دا وى چې هغه ددې نه سماع مراد اخلى او په دې كښې ئې استعمالوى نو په سماع باندې به محمول وى او كه داسې نۀ وى نو بيا به په سماع باندې محمول نۀ وى. علامه ابن الصلاح، خطيب، علامه عراقى، حافظ ابن حجر او علامه عينى وغيره دې ته راجح وئيلې دى.[9]

---

[1] ) كشف البارى:٢/٢٥)_

[2] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء، باب وضع الماء عند الخلاء)_

[3] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب العيدين، باب ما يكره من حمل السلاح.....)_

[4] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء، باب الاستنجاء بالحجارة)_

[5] ) كشف البارى:١/٦٥٩)_

[6] ) تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف:٩٥٠٤/، رقم (١٣٠٨٧))_

[7] ) الجمع بين الصحيحين:٢٦١/٣ افراد البخارى، رقم(٢٥٧٩) )_

[8] ) عمدة القارى:١٠٢/١٥، وفتح البارى:٢٨٠/٦، وارشاد السارى:٢٤٣/٥)_

[9] ) انظر تدريب الراوى:٢١٩/١، النوع الحادى عشر، الفرع الثالث: التعليق الذى يذكره الحميدى.....، وفتح البارى:٢٨٠/٦، وعمدة القارى:١٠٢/١٥، وايضا انظر قواعد فى علوم الحديث:١٦٣_١٦٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق ابونعیم اصفهانی رحمه الله په خپل "مستخرج" کښې، امام احمد رحمه الله په مسند کښې او ابویعلی رحمه الله په خپل مسند کښې موصولاً نقل کړې دې.[1]

**قوله: قال: کیف أنتم إذا لم تجتبوا دینارا، ولا درهما؟ فقیل له: وکیف تری ذلك کائنا یا أبا هریرة؟:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چې هغه وخت به ستاسو څهٔ حال وی چې کوم وخت تاسو ته په خراج کښې څهٔ درهم، دینار نهٔ ملاویږی؟ نو ورته اووئیلې شو ائې ابوهریره! ستاسو په خیال کښې به دا څنګه اوشي وی؟

**د تجتبوا صرفی او لغوی تحقیق:** د "تجتبوا" کلمه د باب افتعال نه د جمع مذکرحاضر صیغه ده، په حالت د جزم کښې ده، په مجرد کښې دا د الجبایة. بالجیم والباء الموحدة، وبعدالالف یاء. نه مشتق ده، ددې معنی ده مطلقاً ټیکس لیکن دلته ددې نه مراد خراج او جزیه ده، ځکه چې دا هم یو قسم ټیکس دې چې په کفارو باندې لازمولې شی.[2]

په دې جمله کښې حضرت ابوهریره هغه پیشن ګوئی ذکر کړې ده کومه چې هغوی د نبی ﷺ نه د مستقبل په باره کښې اوریدلې وه چې آئنده به یو داسې زمانه راشی چې په خراج او جزیه کښې به تاسو ته هیڅ هم نهٔ ملاویږی، اهل ذمه وغیره به تاسو ته ټیکس نهٔ ادا کوی، په دې باندې اوریدونکو د حیرانتیا اظهار اوکړو چې ائې ابوهریره! آیا داسې هم کیدې شی چې ذمیان مونږ ته جزیه وغیره نهٔ ادا کوی؟

**قوله: قال: إی والذی نفس أبی هریرة بیده عن قول الصادق المصدوق:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل چې او قسم دې د هغه ذات چې د چا په قبضهٔ قدرت کښې د ابوهریره روح دې، دا خبره د صادق او مصدوق نه د اوریدلو نه پس تاسو ته کوم.

کلمه د "إی" د همزه کسرې او د یاء سکون سره ده، دا حرف ایجاب دې.[3]

بیا د صادق معنی خو ښکاره ده لیکن د مصدوق څهٔ معنی ده، په دې کښې دوه اقوال دی:

① مصدوق یعنی نبی ﷺ ته چې کومه خبره اوښودلې شوه نو رښتیا ورته اوښودلې شوه مثلاً جبرائیل چې ورته کومه خبره هم کړې ده نو رښتیا ئې کړې ده.

② مصدوق په معنی د المصدق (اسم مفعول) یعنی د چا چې تصدیق کړې شوې وی، ددې معنې په صحیح والی کښې هم څهٔ شک نشته.[4]

**قوله: قالوا: عم ذاك؟:** خلقو تپوس اوکړو چې داسې به ولې وی؟ یعنی ذمیان چې مونږ ته د

---

[1]) فتح الباری: ۲۸۰/۶، وتغلیق التعلیق: ۴۸۵/۳، وعمدة القاری: ۱۰۲/۱۵، ومسند الامام احمد: ۳۳۲/۲، رقم (۸۳۶۸)، مسند ابی هریرة......ومسند ابی یعلی: ۵۰۶/۵، رقم (۶۶۰۰))_

[2]) عمدة القاری: ۱۰۲/۱۵، وفتح الباری: ۲۸۰/۶، وارشاد الساری: ۲۴۳/۵)_

[3]) ارشاد الساری: ۲۴۳/۵)_

[4]) پورته حواله، وعمدة القاری: ۱۰۲/۱۵، وشرح الکرمانی: ۱۴۳/۱۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جزيه را كولو نه انكار كوى نو دا ولې؟

**قوله: قال: تنتهك ذمة الله وذمة رسوله صلى الله عليه وسلم فيشد الله عزوجل قلوب أهل الذمة فيمنعون ما في أيديهم:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه او فرمائيل: د الله تعالى او د هغهٔ د رسول ﷺ سره وعدې او عهد به ماتولې شى نو نتيجه به داشى چې الله تعالى به د ذميانو زړونه سخت كړى، د هغې نتيجه به بيا دا وى چې دا خلق به تاسو ته جزيه وغيره نۀ دركوى.

د پورتنى حديث مبارك په عبارت كښې ددې خبرې وجه ښودلې شوې ده چې ذميان به د جزيه او خراج ادا كولو نه ولې منكر شى؟ ددې وجه به دا وى چې كوم حقوق اسلام وركړې دى، هغه به پامال كړې شى، دوى سره به سختى او ظلم كولې شى، چونكه د وعدې پوره والې ضرورى دې، الله تعالى او د هغهٔ رسول ﷺ ددې حكم وركړې دې نو كله چې ددې حكم خلاف ورزى كيږى، دوى د ظلم و ستم نشانه ګرځولې كيږى نو د الله تعالى له طرفه به مؤاخذه هم كيږى، د هغې اثرات به هم وى، ددې نه په حديث شريف كښې په دې كلماتو سره تعبير كړې شوې دې، "فيمنعون ما في أيديهم" چې هغوى به تاسو ته جزيه او خراج نۀ ادا كوى.

"تنتهك" فعل مجهول دې، د باب افتعال نه فعل مضارع مؤنث صيغه ده، ددې معنى ده پرده اخستل، ظلم وستم او بې حرمتى وغيره، او د "ما في أيديهم" نه مراد جزيه وغيره ده.[1]

**ددې معنې نور احاديث:** امام حميدى فرمائى چې امام مسلم هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د باب د حديث په شان يو مرفوع روايت په بل طريق سره نقل كړې دې.[2]، چې د هغې الفاظ دا دى:

"**منعت العراق درهمها وقفيزها، ومنعت الشام مديها ودينارها، ومنعت مصر إردبها ودينارها، وعدتم من حيث بدأتم، وعدتم من حيث بدأتم، وعدتم من حيث بدأتم......**"[3]

چې "عراق به خپل قفيز او درهم منع كړى، شام به خپل مد او دينار منع كړى، مصر به خپل اردب[4] او دينار منع كړى او تاسو به هلته واپس شئ د كوم ځائې نه چې تاسو شروع كړې وه..."

په دې حديث شريف كښې افعال خو د ماضى بيان كړې شوې دى ليكن مراد ددې نه مستقبل دې، ځكه چې په دې كښې ددې خبرې طرفته اشاره ده چې دا بيان كړې شوې څيز به خامخا

---

[1] فتح البارى: ۶/۲۸۰، وعمدة القارى: ۱۵/۱۰۲، وشرح القسطلانى: ۵/۲۴۴)_

[2] فتح البارى: ۶/۲۸۰، وعمدة القارى: ۱۵/۱۰۲، والجمع بين الصحيحين: ۳/۲۶۱، افراد البخارى، رقم (۲۵۷۹)، و: ۳/۲۹۵، افراد مسلم، رقم (۲۶۷۶))_

[3] اخرجه مسلم فى الفتن، باب لاتقوم الساعة يحسر الفرات عن جبل من ذهب، رقم (۷۲۷۷)، وايضا اخرجه ابو داود، كتاب الخراج......باب فى ايقاف ارض السواد و ارض العنوة، رقم (۳۰۳۵))_

[4] اردب تقريباً د پنځه ويشتو پاؤنډو وزن پيمانه ده، يو پاؤنډ تقريباً نيم سير وى، القاموس الوحيد، مادة: اردب")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

واقع کیږی نو د مبالغه کولو دپاره د ماضی افعال راوړلې شوې دی چې د مستقبل په معنی کښې اخستلې شوې دی.[1]

د حضرت جابر رضی الله عنه نه هم د داسې مفهوم یو حدیث روایت دې، فرمائی: "یوشك أهل العراق أن لا یجیئ إلیهم قفیز ولا درهم، قال أبونضرة: قلنا من أین ذاك؟ قال: من قبل العجم یمنعون ذاك، ثم قال: یوشك أهل الشام أن لا یجیئ إلیهم دینار ولا مدی، قلنا: من أین ذاك؟ قال: من قبل الروم......"[2]

یعنی "نزدې ده چې اهل عراق ته به د درهم او د قفیز ادائیګی نۀ کیږی، د حدیث راوی ابونضره وائی چې مونږ اووئیل چې دا به د چا له طرفه وی؟ هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل، د عجمیانو له طرفه چې هغوی به ددې ادا کول بند کړی. حضرت جابر رضی الله عنه بیا اوفرمائیل چې نزدې ده چې اهل شام ته به د دینار او د مد ادائیګی نۀ کیږی. مونږ (ابونضره) تپوس اوکړو، دا به د چا له طرفه وی؟ وې فرمائیل، دا به د رومیانو له طرفه وی".

فائده: ددې حدیثونو یو معنی او مطلب خو هم هغه دې د کوم چې پورته ذکر اوشو چې د ذمیانو له طرفه به خراج او جزیه بنده کړې شی، ددې وجه به داوی چې دوی سره به ناروا سلوک کیږی لیکن ابن الاثیر جزری فرمائی چې ددې مطلب دا هم کیدې شی چې نبی ﷺ په دې حدیثونو کښې ددې خبرې پیشن ګوئی کړې ده چې دا خلق به ډیر زر اسلام قبول کړی او دا کوم ټیکس او جزیه وغیره چې پرې لازم کړې شوې دی نو دا به د اسلام د قبلولو د وجې نه ختم شی، دغه شان به دا خلق د خپل اسلام په ذریعې سره ددې خراج او ټیکسونو منع کوونکی جوړ شی کوم ټیکسونه وغیره چې په دوی باندې لازم وو.[3]

ددې نه پس ابن الاثیر جزری هغه مطلب بیان کړو کوم چې امام بخاری په خپل ترجمة الباب کښې ذکر کړې دې.[4] دې سره د امام بخاری رائې ته طاقت او قوت ملاویږی.

**ترجمة الباب سره د تعلیق مناسبت:** ترجمة الباب سره د تعلیق مناسبت داسې دې چې په ترجمة الباب کښې د وعدې د پوره کولو او د نۀ پوره کولو په صورت کښې د ګناه ګار کیدو بیان اوکړې شو، ددې حدیث نه هم د عهد د پوره کولو فضیلت او د نۀ پوره کولو په صورت کښې د سزا انجام معلومیږی.

لکه ذمیانو سره که د هغوی د وعدې لحاظ او خیال اوساتلې شی، الله تعالی او د هغۀ رسول ﷺ چې ورته کوم حقوق ورکړې دی د هغې خیال اوساتلې شی نو ددې ثمره او میوه به د جزیه او خراج په صورت کښې ملاویږی، ورنه که داسې نۀ وی نو د ملاویدونکی مال نه به هم مسلمانان محروم شی چې دنیوی نقصان دې او د آخرت نقصان ددې نه علاوه دې.

---

[1] ) فتح الباری: ۶/۲۸۰، وعمدة القاری: ۱۵/۱۰۲)_
[2] ) الحدیث اخرجه مسلم، کتاب الفتن، باب لاتقوم الساعة حتی یمر الرجل......رقم (۷۳۱۵))_
[3] ) جامع الاصول فی احادیث الرسول: ۱۰/۵۳)_
[4] ) جامع الاصول فی احادیث الرسول: ۱۰/۵۳)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# باب بلا ترجمة

**د ترجمې مقصد:** دلته دا باب د ترجمې نه بغير دې.[1] او د تير شوي باب په شان فصل دې، دې کښې چې امام بخاری کوم روايتونه نقل کړې دی، د هغې تعلق ددې باب سابقه مضمون د عهد پوره کولو وغيره سره دې.[2]

۳۰۱۰، ۳۰۱۱:[3] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا أَبُو حَمْزَةَ قَالَ سَمِعْتُ الأَعْمَشَ قَالَ سَأَلْتُ أَبَا وَائِلٍ شَهِدْتَ صِفِّينَ قَالَ نَعَمْ، فَسَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ يَقُولُ اتَّهِمُوا رَأْيَكُمْ، رَأَيْتُنِي يَوْمَ أَبِي جَنْدَلٍ وَلَوْ أَسْتَطِيعُ أَنْ أَرُدَّ أَمْرَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- لَرَدَدْتُهُ، وَمَا وَضَعْنَا أَسْيَافَنَا عَلَى عَوَاتِقِنَا لأَمْرٍ يُفْظِعُنَا إِلاَّ أَسْهَلْنَ بِنَا إِلَى أَمْرٍ نَعْرِفُهُ غَيْرِ أَمْرِنَا هَذَا.

## رجال الحديث

① **عبدان:** دا عبدالله بن عثمان بن جبله عبدان دې. د دوی تذکره د بدء الوحی په "الحديث الخامس" کښې تيره شوې ده.[4]

② **ابوحمزه:** دا ابوحمزه محمد بن ميمون السکری دې.[5]

③ **الاعمش:** دا مشهور محدث سليمان بن مهران دې. د دوی حالات په کتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې تير شوي دی.[6]

④ **ابو وائل:** دا مشهور تابعی بزرګ حضرت ابو وائل شقيق بن سلمه دې. د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب خوف المؤمن من أن يحبط......" کښې تيره شوې ده.[7]

⑤ **سهل بن حنيف:** دا مشهور انصاری صحابی حضرت سهل بن حنيف بن واهب رضي الله عنه دې.[8]

---

[1] ) قال الحافظ فی الفتح(۲۸۱/۶): كذا هو بلا ترجمة عند الجميع"۔

[2] ) پورته حواله، وعمدة القاری:۱۰۲/۱۵)۔

[3] ) قوله: سهل.....":الحديث، اخرجه البخاری فی نفس هذا الباب، رقم (۳۱۸۲)، وكتاب المغازی، باب غزوة الحديبية، رقم (۴۱۸۹)، وكتاب التفسير، باب قوله:(اذ يبايعونک تحت الشجرة فعلم ما فی قلوبهم.....)، رقم (۴۸۴۴)، وكتاب الاعتصام......باب ما يذكر من ذم الرای......رقم (۷۳۰۸)، ومسلم، كتاب الجهاد، باب صلح الحديبية...... رقم (۴۶۳۴)، والنسائی فی الكبری، كتاب التفسير، قوله تعالی:(وهوالذی انزل السكينة.....)، رقم (۱۱۵۰۴/۲))۔

[4] ) كشف الباری:۴۶۱/۱)۔

[5] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الغسل، باب نفض البدين من......)۔

[6] ) كشف الباری:۲۵۱/۲)۔

[7] ) كشف الباری:۵۵۹/۲)۔

[8] ) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الجنائز، باب من قام لجنازة يهودی)۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: قال: سئلت أبا وائل شهدت صفين؟قال: نعم:** امام اعمش فرمائی چې ما د ابو وائل نه تپوس اوکړو چې آیا تاسو د صفین په جنګ کښې شریک وئ؟هغوی اوفرمائیل،آو.

**صفین:** صفین.بکسرتین وتشدید الفاء.د عراق مشهور دریاب،د فرات په غاړه باندې د رقه او بالس مینځ کښې د یو ځائې نوم دې،دې مقام ته د حضرت علی رضي الله عنه او د حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه د فوجونو مینځ کښې د جنګ د وجې نه شهرت ملاو شو.

دا جنګ په یکم صفرالمظفر ۳۷هجرئ کښې شوې وو،د فریقینو په تعداد کښې اختلاف دې،د صحیح قول مطابق د حضرت علی رضي الله عنه په لښکر کښې یولاک شل زره او د حضرت معاویه رضي الله عنه فوجیان لس زره کم یولاک وو،په دې جنګ کښې دواړو طرفونو ته اویا زره کسان شهیدان شو،چې په دې کښې پنځویشت زره ملګری د حضرت علی رضي الله عنه او پنځه څلویښت زره کسان د حضرت معاویه شامل وو،د حضرت علی رضي الله عنه له طرفه پنځویشت بدری صحابه کرام رضي الله عنهم هم شهیدان شو.

دا جنګ یوسل لس(۱۱۰)ورځو پورې جاری وو او د فریقینو مینځ کښې لس کم سل ځله جنګونه او مخامخ کیدل اوشو.[۱]

**قوله: فسمعت سهل بن حُنیف یقول: اتهموا رأیکم......:** نوما د سهل بن حنیف نه واوریدل چې ائې خلقو!تاسو خپله رائې مُتهم اوګنړئ.

دا حدیث په مغازی کښې راغلې دې،هلته ددې پوره تشریح هم شوې ده،چې د هغې خلاصه د حدیث د ترجمې سره مونږ دلته ذکر کوو:

"په جنګ صفین کښې چې کله د حضرت علی رضي الله عنه او حضرت معاویه رضي الله عنه مینځ کښې جنګ شروع شو نو رو رو د حضرت علی رضي الله عنه ملګری غالب راتلل،نزدې وه چې حضرت معاویه رضي الله عنه ته مکمل شکست اوشی چې په دې وخت کښې د حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه په رائې سره په دې خبره باندې اتفاق اوشو چې قرآن کریم به حکَم(فیصله کوونکې)اوګرځوو،په دې باندې د حضرت علی رضي الله عنه بعضې ملګرو اعتراض اوکړو چې مونږ په دې وخت کښې غالب یو،په دې باندې حضرت سهل بن حنیف رضي الله عنه اوفرمائیل،"اتهموا رأیکم"ائې خلقو!تاسو خپل ځان او خپله رائې هم متهم اوګنړئ،ضروری نۀ ده چې ستاسو دا رائې صحیح وی،کیدې شی چې د مخالف فریق رائې صحیح وی،ځکه چې په صلح حدیبیه کښې زۀ موجود ووم،هغه وخت زما رائې دا وه چې جنګ کیدل پکار دی او صلح نۀ،ددې باوجود مونږ خپله رائې پریخوده او د نبی کریم ﷺ په رائې باندې مو عمل اوکړو نو د هغې نتیجه او انجام ښۀ شو حالانکه هلته معامله د اسلام او د کفر وه او دلته معامله د مسلمانو خپل مینځ کښې ده،ددې وجې نه په دې معامله کښې خپله رائې حتمی ګنړل او د مسلمانانو په قتل باندې اصرار کول

[۱]) معجم البلدان للحموی:۴۱۴/۳،باب الصادوالفاء.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پكار نۀ دى او مونږ دا تورې د څۀ داسې كار دپاره اوچتې كړې نۀ دى چې هغه څيز مونږ په ويره او خوف كښې اچوى ليكن دا تورې هغه كار زمونږ دپاره آسانولې شو ليكن د جنګ صفين معامله ډيره عجيبه شوې ده، ددې نه د خلاصى صورت اوس ذهن ته نۀ راځى.(1)

۳۰۱۱(2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِيهِ حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو وَائِلٍ قَالَ كُنَّا بِصِفِّينَ فَقَامَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ فَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ اتَّهِمُوا أَنْفُسَكُمْ فَإِنَّا كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ، وَلَوْ نَرَى قِتَالاً لَقَاتَلْنَا، فَجَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَهُمْ عَلَى الْبَاطِلِ فَقَالَ «بَلَى». فَقَالَ أَلَيْسَ قَتْلاَنَا فِي الْجَنَّةِ وَقَتْلاَهُمْ فِي النَّارِ قَالَ «بَلَى». قَالَ فَعَلَى مَا نُعْطِي الدَّنِيَّةَ فِي دِينِنَا أَنَرْجِعُ وَلَمَّا يَحْكُمِ اللَّهُ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ فَقَالَ «ابْنَ الْخَطَّابِ، إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ، وَلَنْ يُضَيِّعَنِي اللَّهُ أَبَدًا». فَانْطَلَقَ عُمَرُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ إِنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ، وَلَنْ يُضَيِّعَهُ اللَّهُ أَبَدًا. فَنَزَلَتْ سُورَةُ الْفَتْحِ، فَقَرَأَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى عُمَرَ إِلَى آخِرِهَا. فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَوَفَتْحٌ هُوَ قَالَ «نَعَمْ». [۳۹۵۳، ۴۵۶۳، ۴۸۷۸]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن محمد**: دا امام عبدالله بن محمد بن عبدالله مسندى دې. د دوى تذكره په كتاب الايمان، "باب أمور الايمان" كښې تيره شوې ده.(3)

② **يحيى بن ادم**: دا يحيى بن آدم كوفى دې.(4)

③ **يزيد بن عبد العزيز**: دا ابوعبدالله يزيد بن عبد العزيز بن سياه اسدى(5)، حِمانى، كوفى دې او د قطبه بن عبد العزيزورور دې.(6)

دې دخپل پلار عبد العزيز، اعمش، رقبه من مصلقه، عبيدالله بن عمر، اسماعيل بن ابى خالد، هشام بن عروة، مسعر، حجاج بن ارطاة او د محمد بن عمرو بن علقمه وغيره نه روايت كوى.

---

1) اوګورئ، كشف البارى، كتاب المغازى، باب غزوة الحديبية.....: ۴۰۰_۴۰۳، نور اوګوره، عمدة القارى: ۱۰۳/۱۵)_

2) قوله: سهل بن حنيف": الحديث، مر تخريجه آنفا)_

3) كشف البارى: ۶۵۷/۱)_

4) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الغسل، باب الغسل بالصاع ونحوه)_

5) قوله: سياه": بكسر السين المهملة، وتخفيف الياء آخر الحروف، وبالها، وصلا و وقفا، منصرف وغير منصرف، والاصح الانصراف". عمدة القارى: ۱۰۴/۱۵.

6) تهذيب الكمال: ۱۹۳/۳۲، وتهذيب التهذيب: ۳۴۶/۱۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د دوی نه چې کوم خلق روایت کوی نو په هغوی کښې اسحاق بن منصور سلولی، ابو احمد زبیری، ابومعاویه الضریر، عمروبن عبد الغفار تمیمی، علی بن میسره رازی، هاشم بن عبد الواحد الجشاس او ابونعیم رحمهم الله وغیره شامل دی.[1]

امام احمد رحمه الله فرمائی، "ثقة"[2]

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی، "ثقة"[3]

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی، "ثقة"[4]

امام ذهبی رحمه الله فرمائی، "ثقة"[5]

ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.[6]

ددې نه علاوه حافظ ابن حجر، حافظ یعقوب بن سفیان، امام دارقطنی، امام ابوحاتم او امام ترمذی رحمهم الله او نورو کسانو ورته هم ثقه وئیلې دی.[7]

د امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام مسلم، ابوداؤد او نسائی وغیره رحمهم الله هم د دوی نه روایت اخستلې دې[8]. رحمه الله تعالی رحمة واسعةً

④**عبد العزیز**: دا عبد العزیز بن سیاه اسدی، حمانی[9]، کوفی رحمه الله دې.[10]

دې د خپل والد سیاه او د حبیب ابن ابی ثابت، ابن ابی عمره، اعمش، شعبی، مسلم الملائی الاعور او د حکم بن عتبیه وغیره رحمهم الله نه روایت کوی.

او کوم کسان چې د دوی نه روایت کوی نو په هغوی کښې ددوی ځوئې یزید او عبدالله بن نمیر، ابومعاویه، یعلی بن عبید، یونس بن بکیر، عبیدالله بن موسی، وکیع او ابونعیم وغیره رحمهم الله شامل دی.[11]

---

[1]) د استاذانو او شاګردانو دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال:۱۹٤/۳۲)_

[2]) پورته حواله، وتهذیب التهذیب:۳٤۷/۱۱، والجرح والتعدیل:۹۳٤۳/۲، رقم (۱۱٦۹))_

[3]) تاریخ عثمان بن سعید الدارمی، رقم (۵۷)، پورته حواله))_

[4]) تهذیب الکمال:۱۹۵/۳۲، وتهذیب التهذیب:۳٤۷/۱۱)_

[5]) الکاشف:۳۸۷/۲، رقم (٦۳۳۷))_

[6]) الثقات:٦۲۳/۷، وتهذیب الکمال:۱۹۵/۳۲)_

[7]) تقریب التهذیب، رقم (۷۷۷۷)، وتعلیقات تهذیب الکمال:۱۹۵/۳۲، وتهذیب التهذیب:۳٤۷/۱۱، والجرح والتعدیل، رقم (۱۱٦۹)، وسنن الترمذی، مناقب عمار بن یاسر، رقم (۳۷۹۹)، وحاشیة سبط ابن العجمی علی الکاشف:۳۸۷/۲، والمعرفة والتاریخ للفسوی:۱۷۷/۳، الکنی.....ومن یعرف بالکنی)_

[8]) تهذیب الکمال:۱۹۵/۳۲، والکاشف:۳۸۷/۲)_

[9]) قوله: الحمانی": بکسر المهلمة.....وشدة میم وبنون. انظر تعلیقات تهذیب التهذیب:۳٤۰/٦، وتوضیح المشتبه، بآب الجیم:٤۱۷/۲)_

[10]) تهذیب الکمال:۱٤٤/۱۸، وتهذیب ابن حجر:۳٤۰/٦، والجرح والتعدیل:٤۵۰/۵، رقم (۱۷۸۹))_

[11]) د استاذانو او د شاګردانو د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال:۱٤۵/۱۸)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام یحیی بن معین رحمه الله او امام ابو داؤد رحمه الله فرمائی، "ثقة"[1]
ابو حاتم رحمه الله فرمائی، "محله الصدق"[2]
ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې[3]
ابن سعد رحمه الله فرمائی، "کان من خیار الناس، وله أحادیث"[4]
امام ذهبی رحمه الله فرمائی، "شیعی صدوق"[5]
امام ابو ذرعه رحمه الله فرمائی، "لابأس به، هو من کبار الشیعة"[6]
د دوی نه علاوه حافظ ابن حجر، امام عجلی، امام ابن نمیر او حافظ یعقوب بن سفیان وغیره رحمهم الله هم د دوی توثیق کړې دې چې دا ثقه دې[7]
د امام ابو داؤد رحمه الله نه علاوه باقی پنځو امامانو د دوی روایت اخستلې دې[8]
د ابو جعفر منصور د خلافت دوران کښې وفات شو[9]. رحمه الله رحمة واسعة

⑤**حبیب ابن ابی ثابت:** دا حبیب بن ابی ثابت دینار کوفی رحمه الله دې[10]

⑥**ابو وائل:** د حضرت ابو وائل رضی الله عنه خالات په کتاب الایمان "باب خوف المؤمن..." کښې راغلې دی[11]

دا حدیث د تیر شوې حدیث دویم طریق دې، په دې طریق کښې د زوړ طریق په نسبت تفصیل لږ زیات دې ځکه چې په دې کښې د حضرت ابو جندل په معامله کښې د نبی ﷺ او حضرت عمر رضی الله عنه مینځ کښې چې کومه مکالمه شوې وه د هغې تذکره په کښې هم شته، چې د هغې تفصیل په مغازی کښې راغلې دې[12]

---

[1] ) تهذیب الکمال:۱۸/۱۴۵_۱۴۶، وتهذیب التهذیب:۶/۳۴۱)_
[2] ) تهذیب الکمال:۱۸/۱۴۶، والجرح والتعدیل، رقم (۱۷۸۹)، وتهذیب ابن حجر:۶/۳۴۱)_
[3] ) الثقات لابن حبان:۷/۱۱۴)_
[4] ) الطبقات الکبری:۶/۳۶۳، وتعلیقات تهذیب الکمال:۱۸/۱۴۶)_
[5] ) الکاشف:۱/۶۵۵، رقم (۳۳۹۱))_
[6] ) تهذیب الکمال:۱۸/۱۴۶، وتهذیب التهذیب:۶/۳۴۱، والجرح والتعدیل ۵/۴۵۱)_
[7] ) تقریب التهذیب، رقم (۴۱۱۴)، وتهذیب التهذیب:۶/۳۴۱، وتعلیقات تهذیب الکمال:۱۸/۱۴۶)_
[8] ) الکاشف:۱/۶۵۵، وتهذیب الکمال:۱۸/۱۴۶)_
[9] ) الطبقات الکبری:۶/۳۶۳)_
[10] ) د دوی حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الصوم، باب صوم داود علیه السلام)_
[11] ) کشف الباری:۲/۵۵۹)_
[12] ) کشف الباری، کتاب المغازی، باب غزوة الحدیبیة......:۳۶۷_۳۶۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره مناسبت**:تیر شوې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا وئیلي وو چې د غدر او د وعده خلافئ انجام بهرحال خراب دې،هم دا نتیجه د حضرت ابو وائل رضی الله عنه ددې حدیث نه هم ثابتیږی ځکه چې قریشو د صلح حدیبیه نه پښ کومه وعده خلافی اوکړه د هغې نتیجه د هغوی دپاره دا شوه چې د فتح مکې په ذریعې سره مسلمانان په هغوی باندې غالب شو او قریش مقهور او مغلوب شو،ددې نه معلومه شوه چې د وعده خلافئ انجام خراب وی او د وعدې د خیال او لحاظ ساتلو انجام غوره وی. لکه علامه عینی رحمه الله وغیره فرمائی:

"تعلق هذا الحديث بالباب المترجم من حيث ما آل أمر قريش،فی نقضهم العهد من الغلبة عليهم والقهر بفتح مكة فانه يوضح أن مآل الغدر مذموم،ومقابل ذلك ممدوح"[1]

۳۰۱۲:[2] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَسْمَاءَ ابْنَةِ أَبِي بَكْرٍ - رضى الله عنهما - قَالَتْ قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّي وَهِيَ مُشْرِكَةٌ فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ، إِذْ عَاهَدُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَمُدَّتِهِمْ، مَعَ أَبِيهَا، فَاسْتَفْتَتْ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أُمِّي قَدِمَتْ عَلَيَّ، وَهِيَ رَاغِبَةٌ، أَفَأَصِلُهَا قَالَ «نَعَمْ، صِلِيهَا». [ر: ۲۴۷۷]

## رجال الحدیث

①**قتیبه بن سعید**:دا شیخ الاسلام قتیبه بن سعید ثقفی رحمه الله دې.د دوی تذکره په کتاب الایمان،باب إفشاء السلام من الایمان"کښې تیره شوې ده[3]

②**حاتم بن اسماعیل**:دا ابو اسماعیل حاتم بن اسماعیل کوفی رحمه الله دې[4]

③**هشام بن عروة عن أبيه**:د حضرت هشام بن عروة بن زبیر بن عوام رحمه الله او د هغوی د والد صاحب یعنی د عروه تذکره په "بدء الوحی"او "کتاب الایمان"،"باب أحب الدين إلى الله أدومه"کښې راغلې ده[5]

⑤**اسماء بنت أبی بکر**:د حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها تفصیلی حالات په کتاب العلم،"باب من اجاب الفتیا باشارة الید"کښې تیر شوې دی[6]

---

[1]) عمدة القاری:۱۵/۱۰۳،وفتح الباری:۶/۲۸۱)_

[2]) قوله: عن اسماء بنت......":الحدیث،مر تخریجه فی الهبة،باب الهدیة للمشرکین)_

[3]) کشف الباری:۲/۱۸۹)_

[4]) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ، کتاب الوضوء،باب،بعد استعمال فضل وضوء الناس)_

[5]) کشف الباری:۱/۲۹۱،و:۲/۴۳۲_۴۴۰)_

[6]) کشف الباری:۳/۴۸۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: قالت: قدمت علي أمي:** حضرت اسماء فرمائي چې زما مور ماته راغله.

**د حضرت اسماء د مور بي بي مختصر تعارف:** دلته د ټولو نه مخکښې خبره خو دا ده چې د حضرت اسماء د مور نوم څه وو؟ په دې کښې مختلف اقوال دي:

د ابن سعد، ابوداؤد طيالسي او د حاکم د روايت نه دا معلوميږي چې ددې نوم قتيله (مصغرا) وو. د حضرت عبدالله بن زبير روايت دې:

"قدمت قتيلة بنت عبد العزى بن سعد من بني مالك بن حسل على ابنتها: اسماء بنت أبي بكر في الهدنة، وكان ابوبكر طلقها في الجاهلية بهدايا: زبيب وسمن وقرظ [1]، فابت أسماء أن تقبل هديتها أو تدخلها في بيتها، وأرسلت إلى عائشة: سلي رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال: لتدخلها" [2] (اللفظ لابن سعد)

يعنى "قتيله بنت عبدالعزى بن سعد...... خپلې لور حضرت اسماء بنت ابوبکر ﷺ کره د صلح په ورځو کښې راغله، حضرت ابوبکر ﷺ ورته د جاهليت په زمانه کښې طلاق ورکړې وو، څه سامان ئې هم ځان سره راوړلو مثلاً اوسکې، غوړې او زيورات وغيره. حضرت اسماء ﷺ د هديو د قبولولو نه انکار اوکړو او ورته ئې کور ته د راتلو اجازت هم ورنه کړو او د حضرت عائشې ﷺ طرفته ئې پيغام اوليږه چې په دې باره کښې د نبي ﷺ نه تپوس اوکړئ. نبي ﷺ اوفرمائيل چې هغه دې کور ته داخليدې شي".

د پورتنى روايت نه چې څنګه دا خبره معلومه شوه چې ددې نوم قتيله وو، نو دا هم معلومه شوه چې دا دحضرت اسماء ﷺ حقيقي مور وه، ددې وجې نه دادحضرت اسماء ﷺ رضاعي مور تصور کول وهم دي [3] او زبير بن بکار ﷺ ددې نوم قيله او ابن ماکوله قتله نقل کړې دې، کيدې شي چې دا چې د تصغير په طور قتيله جوړ کړې وي. [4]

او علامه داودي ﷺ ددې نوم ام بکر نقل کړې دې چې د هغې په باره کښې ابن التين ﷺ فرمائي چې کيدې شي دا کنيت وي. [5]

---

[1]) د ابوداؤد طيالسي په روايت کښې دا لفظ طاء مهمله سره قط راغلې دې، ددې معنى ده د غوړو والي. غالباً هم دا لفظ صحيح دې، قرظ (ظاء معجمه سره) ددې معنى ده ګوند، ددې دلته هيڅ مطلب نه جوړيږي، ددې وجې نه مونږ دلته ددې ترجمه په زيوراتو (کالو) سره کړې ده. ترجيحا لرواية الطيالسي، انظره: ٢٨٩/٢، رقم (١٧٤٤)، او د حاکم (٥٢٧/٢) په روايت کښې "أقطا" راغلې دې، ددې معنى ده پنير (کچ)، ددې معنې احتمال هم کيدې شي۔

[2]) الطبقات الكبرى: ٢٥٢/٨، ترجمة اسماء بنت ابي بكر، و مسند ابي داود الطيالسي: ٢٨٨/٢_٢٨٩، رقم (١٧٤٤)، والحاكم: ٥٢٧/٢، رقم (٣٨٠٤)، كتاب التفسير، سورة الممتحنة، ومطالب العالية: ٣٨٧/٣، رقم (٣٧٧٨)، سورة الممتحنة من كتاب التفسير، وجمهرة انساب العرب: ١٣٧/١)_

[3]) فتح الباري: ٥/٢٣٣)_

[4]) پورته حواله، والاكمال لابن ماكولا ٧/ ١٣٠، باب قيلة وقتلة)_

[5]) فتح الباري: ٥/٢٣٣)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د حضرت ابوبکر رضي الله عنه خوئي عبدالله رضي الله عنه هم ددې نه وو.[1]

**قوله:** وهي مشركة: دې حال کښې دا مشرکه وه.

راجح هم داده چې د حضرت اسماء رضي الله عنها د مور انتقال د شرک په حالت کښې شوې دې، بعضې حضراتو چې ددې د اسلام د قبوليت وينا کړې ده نو دا غلطه ده.[2]

**قوله:** في عهد قريش إذ عاهدوا رسول الله صلى الله عليه وسلم ومدتهم: دې ورځو کښې چې کله قريشو د نبى ﷺ سره صلح کړې وه.

دلته د عهد نه مراد "صلح حديبيه" ده.

او مطلب دادې چې حضرت اسماء رضي الله عنها کره مور راغله نو دا د صلح حديبيه او د فتح مکه مينځ کښې چې کوم وخت وو دغه وخت کښې راغلې وه.[3]

**مع أبيها:** خپل پلار سره.

په دې کښې ضمير مجرور د حضرت اسماء رضي الله عنها طرفته راجع کيږى، يعنى د هغې مور سره د هغې نيکۀ هم وو. او دا غلط او تصحيف دې. صحيح لفظ "ابنها" دې، يعنى خپل ځوئى سره راغلې وه، چې د هغۀ نوم حارث بن مدرک بن عبيد بن عمرو بن مخزوم دې، **کما قاله الزبير بن بکار.** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي:

"ولم أر له ذكرا في الصحابة، فكأنه مات مشركا".[4]

بيا د حضرت اسماء رضي الله عنها د نيکۀ په نوم کښې هم اختلاف دې، بعضو وئيلې دى چې عبدالعزى نوم دې او هم دا مشهور دې.[5]

او د علامه قسطلانى رحمه الله کلام په دې کښې ګډوډ دې لکه کله هغه د عبدالعزى نوم ليکى[6] او کله د حارث بن مدرک.[7] ليکن دا غلط دې، اصل کښې خو حارث بن مدرک ئې د ځوئى نوم دې، دغه شان مدرک بن عبيد خاوند شو.

**قوله:** فاستفتت رسول الله صلى الله عليه وسلم فقالت: يا رسول الله ﷺ، إن أمي قدمت علي وهي راغبة أفأصلها؟ قال: نعم، صليها.: نو حضرت اسماء

---

[1]) پورته حواله)_

[2]) فتح البارى:۵/ ۲۳۴، وعمدة القارى:۱۳/ ۱۷۴، کتاب الهبة، باب الهدية للمشرکين، رقم (۲۶۲۰))_

[3]) فتح البارى:۵/ ۲۳۴، وعمدة القارى:۱۵/ ۱۰۴، وشرح القسطلانى:۵/۲۴۵)_

[4]) فتح البارى:۵/ ۲۳۴، وايضا عمدة القارى:۱۳/۱۷۳، و ارشاد السارى: ۴/۳۶۲)_

[5]) فتح البارى:۵/ ۲۳۴، وعمدة القارى:۱۳/ ۱۷۴، والاصابة: ۴/ ۲۲۹، رقم (۴۶))_

[6]) لم اجده فى شرح القسطلانى)_

[7]) شرح القسطلانى:۵/۲۴۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رضی الله عنها د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو چې یا رسول الله ﷺ! زما مور ماته راغلې ده او ددې خبرې طرفته میلان لری چې زهٔ ورسره صله رحمی اوکړم؟ نبی ﷺ اوفرمائیل، چې بالکل ورسره صله رحمی اوکړه.

د فاستفتت او د قالت ضمیر غائب د حضرت اسماء رضی الله عنها طرفته راجع دې او د ابوذر او د حموی په نسخه کښې فاستفتت وقلتُ ضمیر متکلم سره دې.[1] او د "وهی راغبة" دوه معنې دی:

① وهی راغبة فی أن تأخذ منی بعض المال چې هغه مانه د څهٔ مال اخستلو باره کښې رغبت لری مطلب دا شو چې هغه ماته راغلې ده او ماته د هغې د راتګ مقصد دادې چې زهٔ ورته څهٔ مال ورکړم، یعنې څهٔ پرې خرچ کړم او دا جائز ده چې یو ښځه خپلې مور یا پلار ته څهٔ مال وغیره ورکړې، اګرچه مال د خاوند وی او مور پلار مشرکان وی، په دې باندې امام بخاری رحمه الله په کتاب الادب کښې دوه ترجمې هم قائم کړې دی.[2]

② وهی راغبة فی الاسلام چې هغه د اسلام په قبلولو کښې رغبت لری، مطلب دادې چې هغه د اسلام د قبلولو په نیت راغلې ده.[3]

هم ددې مطلب د بیانولو د وجې نه بعضې حضراتو ددې د مسلمانیدو قول نقل کړې دې، چې هغه ابوموسی رحمه الله داسې رد کړې دې چې په هیڅ یو روایت کښې دا منقول نهٔ دی چې دې ښځې اسلام قبول کړې وو، صحیح مطلب هم هغه دې کوم چې پورته تیر شو چې دا د مال اخستلو دپاره راغلې وه، ددې وجې نه حضرت اسماء رضی الله عنها تپوس هم کړې وو چې کهٔ د اسلام د قبولیت په نیت راغلې وه نو د اجازت ضرورت بالکل نهٔ وو.[4]

ددې نه علاوه ددې جملې نورې معنې هم بیان کړې شوې دی.[5]، په هغه ټولو کښې راجح قول دغه اولنې قول دې. کما یدل علیه صنیع البخاری أیضاً

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مناسبت:** ما قبل ترجمة الباب سره ددې حدیث تعلق او مناسبت په دې معنی کښې دی چې د غدر نهٔ کولو تقاضه داده چې رشته دارانو سره صله رحمی او ښهٔ سلوک جائز وی، اګرچه هغوی غیرمذهب وی او بیشکه دا حدیث ددې تقاضې مطابق دې.[6]

---

[1] ) پورته حواله)_

[2] ) صحیح بخاری، کتاب الادب، باب صلة الوالد المشرک، وباب صلة المراة امها ولها زوج. نور اوګوره، کشف الباری، کتاب الادب: ۳۴۲_۳۴۴)_

[3] ) فتح الباری: ۲۳۴/۵، وعمدة القاری: ۱۷۴/۱۳، وارشاد الساری: ۲۴۵/۵)_

[4] ) فتح الباری: ۲۳۴/۵، وعمدة القاری: ۱۷۴/۱۳)_

[5] ) فتح الباری: ۲۳۴/۵)_

[6] ) عمدة القاری: ۱۰۴/۱۵، وفتح الباری: ۲۸۲/۶)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حضرت شیخ الحدیث صاحب رائې:** لکه څنګه چې تاسو دا خبره اوکتله چې امام بخاری رحمه الله دلته په ترجمة الباب کښې صرف "باب" وئیلې دې او وړاندې مونږ د بخاری د شارحینو په حوالې سره دا نقل کړې دی چې دا **کالفصل من السابق**،دې یعنی کوم مقصد چې د ماقبل باب وو هم هغه مقصد ددې باب هم دې او دا ددې تتمه ده.

لیکن حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چې ددې باب دپاره دا ترجمه قائمیدې شی "**باب مضار الغدر ومنافع عدمه.....أی الوفاء**"[1]

یعنی ددې باب د قائمولو مقصد دادې چې د بدعهدئ،وعده خلافئ نقصانات او د وعدې د پوره کولو فائدې او مصلحتونه بیان کړې شی.

بیشکه د باب احادیث بالکل ددې ترجمة الباب مطابق او موافق دی،اولنې حدیث چې د هغې تعلق حدیبیه سره وو نو دغه شان به دې ترجمې سره هم موافق شی څکه چې نبی ﷺ او صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم د صلح حدیبیه د شرطونو پوره والې اوکړو اګرچه د بعضې کسانو زړونه مطمئن نهٔ وو لیکن د هغې میوه د "فتح مکه" په شکل کښې ښکاره شوه،ددې وجې نه الله تعالی صلح حدیبیې ته فتح مبین اوفرمائیله.او دویم حدیث یعنی د حضرت اسماء رضی الله عنها حدیث د هغې تعلق هم د صلح حدیبیه سره دې څکه چې د حضرت اسماء رضی الله عنها مذکوره مور دې ته راغلې وه نو دغه د صلح حدیبیې ورځې وې،ددې وجې نه مسلمانانو او په خپله حضرت اسماء رضی الله عنها د صلح حدیبیه د شرطونو د لحاظ ساتلو د وجې نه دې ښځې ته هیڅ هم اونهٔ وئیل،هیڅ ضرر او نقصان ئې ورنهٔ کړو بلکه فائده ئې ورته اورسوله حالانکه دا مشرکه ښځه وه او هرقسم کار ورسره ممکن وو،نو ددې نه د وعدې د پوره کولو اهمیت او فائده ښهٔ طریقې سره واضح کیږی. والله اعلم بالصواب

## ⑱ باب: الْمُصَالَحَةِ عَلَى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، أَوْوَقْتٍ مَعْلُومٍ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا فرمائی چې کفارو سره کوم مصلحت اوکړې شی نو هغه د دریو ورځو دپاره هم کیدې شی او ددې دپاره څهٔ وخت هم مقرر کیدې شی.[2]

**د صلحې زیات مدت څومره دې؟** په مقرره وخت کښې په مصالحت کولو کښې اتفاق دې،په دې کښې څهٔ اختلاف نشته لیکن اختلاف په دې کښې دې چې د مصالحت زیات نه زیات مدت او وخت څومره دې؟

په ائمه اربعه کښې د امام شافعی رحمه الله او په یو روایت کښې د امام احمد رحمه الله رائې داده چې ددې مصالحت زیات نه زیاته موده لس کاله مقرریدې شی،که ددې نه زیاته موده مقرر کړې شو نو هغه به باطله وی،د هغې د زیاتوالی به هیڅ اعتبار نهٔ وی.[3]

---

[1] ) الابواب والتراجم للکاندهلوی:۱/۲۰۹ـ

[2] ) عمدة القاری:۱۵/۱۰۴،وفتح الباری:۶/۲۸۲)ـ

[3] ) المغنی:۹۲۳۸/،رقم (۷۵۹۱)،والام:۲/۴/۱۸۹،المهادنة علی النظر للمسلمین،رقم (۱۳۳۵۶))ـ

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا حضرات استدلال د صلح حدیبیه نه کوی چې نبی ﷺ په صلح حدیبیه کښې لس کال موده مقرر کړې وه،لکه څنګه چې په ابوداؤد او سیرت د ابن اسحاق [1]کښې د لس کالو وضاحت موجود دې.

او امام اعظم ابوحنیفه،امام مالک اوپه یو روایت کښې امام احمد رحمهم الله تعالی فرمائی چې که دا موده د لسو کالو نه زیاته وی نو بیا هم جائزه ده ،ددې دارومدار د وخت په امام باندې دې،هغه چې څومره وخت او موده مقررول مناسب ګنړی نو هغه مقررولې شی[2]

او د صلح حدیبیه د مودې نه استدلال کول بې محله دې،ځکه چې که حضور اقدس ﷺ لس کاله موده مقرر کړې وه نو ددې نه دا څنګه ثابته شوه چې ددې نه زیاتوالې ممکن نهٔ دې او نبی ﷺ دا لس کاله موده انتهائی او آخری موده ګرځولې دې؟دغه وخت د مصلحت تقاضه دا وه ددې وجې نه نبی ﷺ لس کاله موده مقرر کړې وه.

دغه شان امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چې دا یو عقد دې چې د لسو کالو دپاره جائز دې نو ددې نه زیاتې مودې دپاره به هم جائز وی لکه څنګه چې په اجاره کښې وی.[3]

۳۰۱۳: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ حَكِيمٍ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ حَدَّثَنِي الْبَرَاءُ-رضی الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَعْتَمِرَ أَرْسَلَ إِلَى أَهْلِ مَكَّةَ يَسْتَأْذِنُهُمْ لِيَدْخُلَ مَكَّةَ، فَاشْتَرَطُوا عَلَيْهِ أَنْ لاَ يُقِيمَ بِهَا إِلاَّ ثَلاَثَ لَيَالٍ، وَلاَ يَدْخُلَهَا إِلاَّ بِجُلُبَّانِ السِّلاَحِ، وَلاَ يَدْعُوَ مِنْهُمْ أَحَدًا، قَالَ فَأَخَذَ يَكْتُبُ الشَّرْطَ بَيْنَهُمْ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، فَكَتَبَ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ. فَقَالُوا لَوْ عَلِمْنَا أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ لَمْ نَمْنَعْكَ وَلَبَايَعْنَاكَ، وَلَكِنِ اكْتُبْ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ. فَقَالَ «أَنَا وَاللَّهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَأَنَا وَاللَّهِ رَسُولُ اللَّهِ». قَالَ وَكَانَ لاَ يَكْتُبُ قَالَ فَقَالَ لِعَلِيٍّ «امْحُ رَسُولَ اللَّهِ». فَقَالَ عَلِيٌّ وَاللَّهِ لاَ أَمْحَاهُ أَبَدًا. قَالَ «فَأَرِنِيهِ». قَالَ فَأَرَاهُ إِيَّاهُ، فَمَحَاهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِيَدِهِ،[4]

---

[1] ) قال ابن المنذر:اختلف العلماء فی المدة التی كانت بين رسول الله ﷺ وبين اهل مكة عام الحديبية؟ قال عروة:كانت اربع سنين،وقال ابن جريج:كانت ثلاث سنين،وقال ابن اسحاق:كانت عشر سنين".انظر تفسير القرطبی:۴۰/۸)_

[2] ) امام قرطبی رحمه الله فرمائی: وقال ابن حبيب عن مالك رحمه الله :تجوز مهادنة المشركين السنة والسنتين والثلاث،والى غير مدة".الجامع لاحكام القرآن:۴۱/۸،وانظر ايضا بداية المجتهد:۴۳۹/۳،الفصل السادس فی جواز المهادنة......والهداية:۲۰۴/۴،باب الموادعة،من كتاب السير)_

[3] ) المغنی/۹۲۳۸)_

[4] ) قوله: البراء":الحديث،مر تخريجه فی كتاب العمرة،باب كم اعتمر النبی ﷺ ؟)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فَلَمَّا دَخَلَ وَمَضَى الْأَيَّامُ أَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوا مُرْ صَاحِبَكَ فَلْيَرْتَحِلْ. فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «نَعَمْ» ثُمَّ ارْتَحَلَ. [ر: ١٦٨٩]

## رجال الحديث

①احمد بن عثمان بن حکیم:دا ابوعبدالله احمد بن عثمان بن حکیم بن دینار ازدی کوفی رحمه الله دي.

② شریح بن مسلمه:دا شریح بن مسلمه کوفی رحمه الله دي.

③ ابراهیم بن یوسف:دا ابراهیم بن یوسف بن ابی اسحاق کوفی رحمه الله دي.

④أبي: د أب نه مراد یوسف بن ابی اسحاق رحمه الله دي[1]

⑤ابواسحاق:دا مشهور محدث ابواسحاق عمرو بن عبدالله کوفی سبیعی رحمه الله دي.د دوی حالات په کتاب الایمان،"باب الصلوة من الایمان"کښې تیر شوي دی[2]

⑥البراء: د براء بن عازب رضی الله عنه حالات هم په کتاب الایمان کښې پورتنی مذکوره باب کښې تیر شوي دی[3]

**د باب د حدیث شریف ترجمه:** حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چې کله نبی ﷺ د عمرې د ادا کولو اراده اوکړه نو په مکه مکرمه کښې د داخلیدو دپاره ئې د اهل مکه نه اجازت طلب کولو دپاره پیغام واستوو.نو اهل مکه دا شرط اولګوو چې تاسو به دلته صرف درې ورځې قیام کوئ،اسلحه به درسره بند وی او د اهل مکه هیڅ یو کس به هم تاسو ځان ته راتلو ته نه پریږدئ.
حضرت براء رضی الله عنه فرمائی چې د فریقینو مینځ کښې کوم شرائط مقرر کړې شو نو دا حضرت علی رضی الله عنه لیکل نو هغوی اولیکل،"هذا ما قاضی علیه محمد رسول الله"په دې باندې د مکې مکرمې قریشو اووئیل چې که زمونږ دا یقین وو چې تاسو د الله تعالی رسول یئ نو مونږ به تاسو منع کړې نۀ وئ او ستاسو نه به مو بیعت کړې وو لیکن دا اولیکئ،"هذا ما قاضی علیه محمد بن عبدالله"نبی ﷺ اوفرمائیل،په خدا قسم زۀ محمد بن عبدالله یم،په خدائې قسم زۀ د الله تعالی رسول یم.حضرت براء رضی الله عنه فرمائی چې حضرت علی رضی الله عنه ددې په لیکلو باندې رضا نۀ وو نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل چې د"رسول الله"الفاظ وران کړه.هغوی اوفرمائیل،په خدائې قسم! زۀ به دا کلمات وران نۀ کړم.نبی ﷺ اوفرمائیل چې ما ته اوښایه،هغوی ورته اوښودل نو نبی ﷺ په خپلو لاسونو مبارکو باندې هغه وران کړل.کله چې نبی ﷺ په مکه مکرمه کښې داخل شو او مذکوره ورځې هم تیرې شوې نو کفارو

---

[1] ) ددې ځلوروارو حضراتو د حالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الوضوء،باب اذا القی علی ظهر المصلی قذر..)
[2] ) کشف الباری:٢/٣٧٠_
[3] ) کشف الباری:٢/٣٧٥_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت علی رضی الله عنه ته اووئیل چې خپل آقا ته اووایه چې ددې ځائې نه تشریف یوسی،دا خبره هغوی نبی کریم ﷺ ته اوکړه نو نبی ﷺ اوفرمائیل چې صحیح ده.او بیا روان شو.

**د جلبان معنی او ددې ضبط:** ولا يدخلها إلا بجلبان السلاح په دې کښې جلبان د جیم او د لام ضمه او باء مشدده سره دې،دغه شان د جیم ضمه،د لام سکون او باء مخففه سره هم ضبط کړې شوې دې جلبان د څرمنې هغه تهیلئ ته وئیلې شی چې په هغې کښې تیکې د تورې سره کیخودې شی.علامه ابن الاثیر رحمه الله فرمائی "شبه الجراب من الادم، ويوضع فيه السيف مغموداً"[1]

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ترجمة الباب سره د باب د حدیث شریف مناسبت په دې جمله کښې دې چې "أن لا يقيم بها إلا ثلاث ليال"[2] ددې نه دا ثابتیږی چې د مقرره وخت دپاره صلح کیدې شی.

## ⑲ باب: الْمُوَادَعَةِ مِنْ غَيْرِ وَقْتٍ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله ددې خبرې جواز بیانوی چې د وخت او د مدت د مقررولو نه بغیر که صلح اوکړې شی نو ددې هم ګنجائش شته،که امام په دې کښې مصلحت ګنړی او د هغهٔ رائې وی نو صحیح ده.[3]

**په مذکوره مسئله کښې اختلاف:** پورته چې کومه مسئله ذکر شوه نو په دې کښې هم د امامانو اختلاف دې.

① د احنافو،شوافعو او د مالکیه رائې داده چې د وخت د مقررولو نه بغیر هم صلح کول صحیح ده.[4]

ددې حضراتو دلیل هم هغه حدیث دې کوم چې امام بخاری رحمه الله تعلیقاً ذکر کړې دې،په هغې کښې دی چې نبی ﷺ اهل خیبر سره د غیرمعینه وخت دپاره صلح کړې وه،ددې وجې نه که امام او د اهل رائې دا خیال وی او ددې ضرورت هم وی چې صلح اوکړې شی نو جائز ده، علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی:

"ليس فى أمر المهادنة حد عند أهل العلم لا يجوز غيره، وإنما ذلك على حسب الحاجة والاجتهاد فى ذلك إلى الامام وأهل الرأى"[5]

---

[1] ) القاموس الوحید،باب الجیم،مادة جلب"،وعمدة القاری:۱۰۵/۱۵،والنهایة فی غریب الحدیث: ۲۸۲/۱،باب الجیم مع اللام،وکشف المشکل:۲۵۰/۲،من مسند البراء،رقم (۸۵۸))_

[2] ) عمدة القاری:۱۰۵/۱۵، د حدیث شریف د مزید وضاحت دپاره اوګورئ، کشف الباری،کتاب المغازی، باب صلح الحدیبیة:۳۶۵_۳۶۷)_

[3] ) عمدة القاری:۱۰۵/۱۵،وفتح الباری:۲۸۲/۶)_

[4] ) پورته حواله جات،وابن بطال:۳۶۷/۵،وارشاد الساری:۲۴۶/۵،والام:۱۸۹/۴/۲،رقم (۱۳۳۵۷))_

[5] ) شرح ابن بطال:۳۶۷/۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

② ددې خلاف حنابله ددې خبرې قائل دی چې دغه شان صلح كول صحيح نهٔ دی.[1]

**وَقَوْلِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «أُقِرُّكُمْ مَا أَقَرَّكُمُ اللَّهُ بِهِ». [ر:٢٢١٣]**

او د نبی ﷺ قول مبارک ترځو چې الله تعالی تاسو دلته برقرار ساتی نو زهٔ به هم تاسو برقرار ساتم.

**د مذكوره تعليق مقصد:** د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دا حديث امام بخاری رحمه الله دلته ددې وجې نه ذكر كړو چې امام بخاری رحمه الله په ترجمه كښې كوم مؤقف اختيار كړو نو چې دا په هغې باندې دليل شی چې د وخت مقررولو نه بغير هم صلح كول صحيح دی لكه څنګه چې دا حديث پرې دلالت كوی.

**د مذكوره تعليق تخريج:** مذكوره تعليق امام بخاری رحمه الله په كتاب المزارعة كښې موصولاً نقل كړې دې. ددې موصول روايت يو حصه مصنف دلته ليكلې ده.[2]

ددې نه علاوه دا حديث امام مسلم رحمه الله هم موصولاً نقل كړې دې.[3]

**ترجمة الباب سره د تعليق ماسبت:** ترجمة الباب سره د تعليق مناسبت واضح دې څكه چې ترجمة الباب د غيرمعينه وخت د صلحې كولو د جواز وه او ددې دعوې دليل په حديث شريف كښې موجود دې. **والله اعلم بالصواب.**

## ⑳ باب: بَابُ طَرْحِ جِيَفِ الْمُشْرِكِينَ فِي الْبِئْرِ وَلاَ يُؤْخَذُ لَهُمْ ثَمَنٌ

**د ترجمة الباب مقصد:** ددې ترجمة الباب دوه جزونه دی:

① طرح جيف المشركين فى البئر ② ولا يؤخذ لهم ثمن

د اولنی جزء مقصد دادې چې مشركان د قتل كولو نه پس كوهی ته غورځول هم جائز دی، بلكه غوره كار دې، دې دپاره چې په لاره باندې تيريدونكو خلقو ته تكليف نهٔ وی په دې شرط چې په دغه كوهی كښې اوبهٔ نهٔ وی او شاړ كوهی وی، كنی كه اوبه په كښې وی نو بيا په كښې غورځول جائز نهٔ وی.[4]

دويمه خبره داده چې په دې كښې د مشركانو بې عزتی ده او تدفين او تكفين خو اعزاز او اكرام دې او مشركان ددې اعزاز او اكرام مستحق نهٔ دی.

**د جيف ضبط او معنی:** جيف. بكسر الجيم وفتح الياء. د جيفة جمع ده او ددې معنی ده لاش، چې كله

---

[1] ) المغنى لابن قدامة: ٢٣٨/٩، رقم (٧٥٩٠)).
[2] ) الصحيح للبخارى، كتاب المزارعة، باب اذا قال رب الارض: اقرك......رقم (٢٣٣٨)).
[3] ) عمدة القارى: ١٠٥/١٥، وفتح البارى: ٢٨٢/٦).
[4] ) الصحيح لمسلم، كتاب المساقاة، باب المساقاة والمعاملة بجزء من التمر......رقم (٣٩٦٧)).
[5] ) عمدة القارى: ١٠٥/١٥، وشرح ابن بطال: ٣٦٨/٥، وارشاد السارى: ٢٤٦/٥).

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بوئی شروع کړی.(١)

د دویم جزء مقصد دادې چې د مشرکانو د بدنونو او د لاشونو بیع کول جائز نهٔ ده، ددې وجې نه که چرته دوی وارثان د دوی د لاشونو په بدله کښې مال ورکول غواړی نو ددې اخستل به جائز نهٔ وی(٢) دا د جمهورو مذهب دې، په دې کښې د چا اختلاف منقول نهٔ دې، کما صرح به النووی رحمه الله(٣)

**د جمهورو دليلونه:** ①د دوی یو دلیل د حضرت ابن عباس ﷠ روایت دې، کوم چې امام ترمذی ﷫ روایت کړې دې چې مشرکانو اوغوښتل چې د یو مشرک سړی بدن واخلی نو نبی ﷺ انکار اوفرمائیلو(٤)

②دویم دلیل هغه واقعه ده کومه چې ابن اسحاق ﷫ ذکر کړې ده چې مشرکانو نبی کریم ﷺ ته دا درخواست راوړلو چې مونږ ته د نوفل بن عبدالله بدن راکړه، دې په خندق کښې پریوتلې وو او مړ شوې وو نو نبی ﷺ اوفرمائیل، "لاحاجة لنافی جسده، ولا ثمنه" چې مونږ ته نهٔ ددهٔ د قیمت ضرورت شته او نهٔ د بدن. ابن هشام وائی چې مشرکانو د نوفل بن عبدالله د بدن قیمت لس زره درهمه لګولې وو.(٥)

③ددې نه علاوه دا وجه هم ده چې دا مرداره ده او د مردارې نهٔ مالک کیدل جائز دی او نهٔ عوض اخستل، لکه څنګه چې د حضرت جابر بن عبدالله ﷠ په یو حدیث مبارک کښې د مردارې او د بتانو دواړو قیمتونو اخستلو ته ناجائز وئیلې شوې دی(٦). فرمائی چې د فتح مکې په ورځ رسول الله مبارک ﷺ اوفرمائیل:

"إن الله ورسوله حرم بيع الخمر والميتة والخنزير والاصنام..... "(٧)

---

(١) عمدة القاری:١٠٥/١٥، والنهاية للجزری:٣٢٥/١، باب الجيم مع الياء)_

(٢) عمدة القاری:١٠٥/١٥، وشرح ابن بطال:٣٦٨/٥، وارشاد الساری:٢٤٦/٥)_

(٣) قال ﷫ : واما الميتة والخمر والخنزير، فاجمع المسلمون على تحريم بيع كل واحد منها". انظر شرح النووی على مسلم:٢٣/٢)_

(٤) الجامع للترمذی، ابواب الجهاد، لا تفادی جيفة المشركين، رقم (١٧١٥))_

(٥) قال ابن اسحاق ......: نوفل بن عبدالله بن المغيرة، سالوا رسول الله ﷺ ان يبيعهم جسده، وكان اقتحم الخندق، فتورط فيه، فقتل، فغلب المسلمون على جسده، فقال رسول الله ﷺ: لا حاجة لنا في جسده ولا بثمنه، فخلى بينه وبينهم")_ قال ابن هشام: اعطوا رسول الله ﷺ بجسده عشرة آلاف درهم، فيما بلغنى عن الزهری". انظر السيرة النبوية:٢٦٥/٣، قتلى المشركين (فی غزوة الخندق))_

(٦) ابن بطال:٣٦٨/٥، وفتح الباری:٢٨٣/٦، وعمدة القاری:١٠٥/١٥، والقسطلانی:٢٤٦/٥)_

(٧) الحديث اخرجه البخاری فی البيوع، باب بيع الميتة والاصنام، رقم (٢٢٣٦)، ومسلم فی صحيحه فی المساقاة، باب تحريم بيع الخمر والميتة، رقم (٤٠٤٨_٤٠٤٩)، والترمذی فی البيوع، باب فی بيع جلود الميتة، رقم (١٢٩٧)، وابو داود فی الاجارة، باب فی ثمن الخمر والميتة، رقم (٣٤٨٦)..... [بقيه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې "الله تعالى او د هغهٔ رسول د شرابو، مردار، خنزير او د بتانو بيعه حرامه گرځولې ده".
حضرت گنگوهی فرمائی:

"ولا يؤخذ لهم ثمن" فان البيع وإن كان فيه توهين للمبيع، ولكنه لا يخلو عن اعزاز له أيضاً لما فيه من جعله ذا خطر، إذا البيع لا يجرى فيما لا رغبة فيه ولا هو ذو خطر، فنهينا عن بيع اجساد المشركين لئلا يلزم فيه إعزازها" (۱)

ددې مطلب دادې چې "د مشركانو د بدنونو عوض به نهٔ اخستلې كيږي، ددې وجه داده چې د بيع د وجې نه اگرچه د مبيع توهين كيږي ليكن دې سره سره د مبيع اكرام او اعزاز هم كيږي، هغه داسې چې ددې مبيع څهٔ حيثيت وو ددې وجې نه خرڅه شوه، ځكه چې په كومو ځيزونو كښې د خلقو رغبت نهٔ وى او څهٔ حيثيت ئې نهٔ وى نو د هغې ځيزونو بيع خو بالكل هډو كيږي نهٔ، ددې وجې نه مونږ د مشركانو د بدنونو د اخستلو نه منع كړې شوې يو، دې دپاره چې دې بيع سره د هغوى اعزاز او اكرام لازم رانهٔ شى، نو ددې وجې نه مطلقاً ممانعت اوكړې شو، نو دغه شان به په خلقو كښې دې طرف ته نهٔ څهٔ رغبت وى او نهٔ به د خلقو په نزد ددې څهٔ حيثيت وى"

۳۰۱۴: (۲) حَدَّثَنَا عَبْدَانُ بْنُ عُثْمَانَ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - قَالَ بَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - سَاجِدٌ وَحَوْلَهُ نَاسٌ مِنْ قُرَيْشٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ إِذْ جَاءَ عُقْبَةُ بْنُ أَبِي مُعَيْطٍ بِسَلَى جَزُورٍ، فَقَذَفَهُ عَلَى ظَهْرِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمْ يَرْفَعْ رَأْسَهُ حَتَّى جَاءَتْ فَاطِمَةُ - عَلَيْهَا السَّلاَمُ - فَأَخَذَتْ مِنْ ظَهْرِهِ، وَدَعَتْ عَلَى مَنْ صَنَعَ ذَلِكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اللَّهُمَّ عَلَيْكَ الْمَلأَ مِنْ قُرَيْشٍ، اللَّهُمَّ عَلَيْكَ أَبَا جَهْلِ بْنَ هِشَامٍ، وَعُتْبَةَ بْنَ رَبِيعَةَ، وَشَيْبَةَ بْنَ رَبِيعَةَ، وَعُقْبَةَ بْنَ أَبِي مُعَيْطٍ، وَأُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ - أَوْ أُبَيَّ بْنَ خَلَفٍ». فَلَقَدْ رَأَيْتُهُمْ قُتِلُوا يَوْمَ بَدْرٍ، فَأُلْقُوا فِي بِئْرٍ، غَيْرَ أُمَيَّةَ أَوْ أُبَيٍّ، فَإِنَّهُ كَانَ رَجُلاً ضَخْمًا، فَلَمَّا جَرُّوهُ تَقَطَّعَتْ أَوْصَالُهُ قَبْلَ أَنْ يُلْقَى فِي الْبِئْرِ. [ر: ۲۳۷]

دا حديث بعينه هم دې سند سره په كتاب الوضوء (۳) كښې تير شوې دې.

**د حديث مبارك ترجمه:** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې نبی كريم صلی الله عليه وسلم په سجده كښې وو او گيرچاپيره د قريشو څهٔ مشركان ناست وو، اچانک عقبه بن ابی معيط نبی صلی الله عليه وسلم ته د اوښ بچه دانی راوړه او د نبی كريم صلی الله عليه وسلم په ملامباركه ئې واچوله نو نبی صلی الله عليه وسلم خپل سر

---

بقيه ازحاشيه گذشته] والنسائی فی البيوع، باب بيع الخنزير، رقم (۴۶۶۹)، وابن ماجه فی التجارات، باب مالا يحل بيعه، رقم (۲۱۶۷))_

(۱) لامع الدراری: ۷/۳۲۸)_

(۲) قوله: عن عبدالله رضی الله عنه: الحديث، مر تخريجه فی الوضوء، باب اذا القی علی ظهر.....)_

(۳) كتاب الوضوء، باب اذا القی علی ظهر المصلی قذر.....)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مبارک د سجدې نه اوچت نۀ کړو تردې چې حضرت فاطمه رضي الله عنها تشریف راوړلو او هغه څیز ئې د نبی کریم ﷺ د ملا مبارکې نه اوچت کړو، کوم خلقو چې داغلط حرکت کړې وو نو د هغوی دپاره ئې خیرې اوفرمائیله،نبی کریم ﷺ ددې خلقو دپاره خیرې کولو کښې اوفرمائیل چې اې الله!د قریشو دا ډله گرفتاره کړه،اې الله!ابو جهل بن هشام،عتبه بن ربیعه، شیبه بن ربیعه،عقبه بن ابی معیط او اُمیه بن خلف یا ابی بن خلف«راوی ته شک دې» گرفتار کړه «راوی حضرت عبدالله وائی چې»په خدائې قسم! ما دا ټول اولیدل چې په غزوهٔ بدر کښې مردار کړې شو.نو دا ټول کوهی ته اوغورځولې شو،علاوه د امیه یا ابی بن خلف نه، د هغې وجه دا شوه چې دې ډیر د ډیل ډول سړې وو،کله چې دې صحابه کرامو رضي الله عنهم راښکۀ نو ددهٔ اندامونه یا جوړونه کهلاؤ شو مخکښې ددې نه چې دې کوهی ته واچولې شی.

**د حدیث شریف د اخری جزء"فانه کان رجلا.... "تشریح:** ددې حدیث په آخری جزء کښې یو لفظ د اوصال راغلې دې،چې د وصل جمع ده،ددې معنی اندام هم دې او جوړ هم(۱)،او د مذکوره جملې مطلب دادې چې کله صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم امیه بن خلف کوهی ته د غورځولو دپاره راښکۀ نو ممکنه نۀ شوه،ځکه چې ددهٔ اندامونه مات شوې وو.

ددې بنیادی وجه دا شوې وه چې دا د رمضان المبارک ورځې وې او ډیره گرمی وه(۲)،نو د مرگ نه پس ډیر وخت پورې په دې حالت کښې پراتهٔ وو چې ددې وجې نه ئې بدنونه پړسیدلې وو او تور شوې وو،نو کله چې دوی کوهی ته غورځولې شو نو د امیه بن خلف بدن درونډ وو،ددې وجې نه ممکن نۀ شوه چې دې کوهی ته واچولې شی،ددې وجې نه دې هم په دې حالت باندې پریخودلې شو(۳)

ددې حدیث نور تشریحات په کتاب الجهاد او کتاب المغازی کښې راغلې دی.(۴)

**ترجمة الباب سره د حدیث شریف مطابقت:** د ترجمة الباب اولنی جزء سره خودحدیث مطابقت په دې جمله کښې دې،"......فالقوانی بئر"ددې نه ددې کار وضاحت سره جواز معلومیږی چې په غیرآباد کوهیانو کښې د مشرکانو لاشونه غورځول جائز دی.

د ترجمة الباب دویم جزء سره د حدیث مناسبت په دې معنی کښې دې چې عرفاً دا خبره معلومه ده چې که ددې مقتولینو د وارثانو په ذهن کښې دا خبره راتله چې مونږ به مال خرچ کړو نو ددې لاشونو حاصلول به مونږ ته ممکن شی ددې باوجود هغوی ددې کوشش اونۀ کړو،ځکه چې هغوی ته ددې ښهٔ پته وه چې دا کوشش به ضائع وی،په دې خبره باندې د ترمذی شریف پورتنې مذکوره حدیث هم دلالت کوی.(۵)،کوم چې مونږ وړاندې بیان کړو،

---

(۱) مجمع بحار الانوار:۵/۶۳،مادة وصل،باب:و،ص )_

(۲) کما فی المغازی: وکان یوما حارا"،باب دعاء النبی ﷺ علی......رقم (۳۹۶۰))_

(۳) لامع الدراری وتعلیقاته:۷/۳۲۸)_

(۴) کشف الباری،کتاب الجهاد:۱/۷۳۰_۷۳۳،وکتاب المغازی:۱۰۰)_

(۵) په دې حدیث باندې اگرچه کلام شوې دې لیکن دا گواه جوړیدې شی،.... [بقیه برصفحه آئنده...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دغه شان د ابن اسحاق رحمه الله روايت هم په دې معامله کښې واضح دې.د حافظ ابن حجر رحمه الله د قول مطابق په مذکوره مسئله باندې د باب د حديث نه د امام بخارى رحمه الله استدلال هم ددې نکتې او د عرف په بنياد باندې دې (١)

**د باب د حديث نه مستنبطه يوه فائده** امام طبرى رحمه الله فرمائى:

"د هر سړي خواه هغه مسلمان وى يا کافر، مړي پټول او ددې دفن کول فرض دى، د خلقو د نظرونو نه د پټ ساتلو دپاره چې هر قسم طريقه اختيارولې شى نو د هغې اختيارول ضرورى دى، ددې وجه او دليل د نبى کريم ﷺ هغه حکم دې په کوم حکم کښې چې د بدر کوهى کښې د مشرکانو د غورځولو دپاره وئيلې شوې وو او فراخه ځائې کښې هغوى وانه چولې شو، ددې وجې نه په دې معامله کښې د نبى کريم ﷺ اقتداء او تابعدارى کول زيات غوره او مستحب ده ليکن په هرحال کښې به موقع محل ته کتلې شى، داسې نۀ چې......مسلمانان په کفن دفن کښې مصروف وى او دشمن پرې دوباره حمله اوکړى.

هرکله چې حربى مشرکانو سره د نبى کريم ﷺ دا طريقه وه نو هغه مشرکان چې ذميان او اهل عهد دى، که د هغوى يو کس مړ شى، د هغۀ څوک ولى نۀ وى، نۀ ئې څوک د مذهب ملګرى او مسلمان موجود وى نو د سنتو په رڼا کښې ددۀ لاش پټول او دفن کول غوره دى. لکه د حضرت على رضي الله عنه د والد صاحب ابو طالب په وفات باندې نبى کريم ﷺ فرمائيلې وو "اذهب فواره....." (٢) چې "لاړ شۀ او هغه پټ کړۀ".

البته! که د څۀ مصروفيت يا د بل څۀ مانع د وجې نه مسلمانان دا اونۀ کړى نو زما په خيال کښې په دې کښې څۀ حرج نشته ځکه چې د نبى کريم ﷺ په اکثرو جنګونو کښې چې په هغې کښې قتلونه هم شوې وو نو کوم ذکر چې د بدر متعلق اوشو داسې ذکر د يو جنګ متعلق هم نشته چې په هغې کښې د مشرکانو مړى پټ کړې شوې وى" (٣) والله اعلم بالصواب

---

بقيه ازحاشيه گذشته] اوګورئ جامع ترمذى، ابواب الجهاد، باب لا تفادى جيفة......رقم (١٧١٥)، وفتح البارى:٦/٢٨٣، وشرح ابن بطال:٥/٣٦٨)_

(١) شرح ابن بطال:٥/٣٦٨، والمتوارى:٩٩١، وفتح البارى:٦/٢٨٣، وتعليقات اللامع:٧/٣٢٨)_

(٢) الحديث اخرجه ابن ابى شيبة فى مصنفة:٧/٣٧٩، و٣٨١، كتاب الجنائز، باب فى الرجل يموت له القرابة المشرك: يحضره ام لا؟ رقم (١١٩٦٢)، وابو داود فى الجنائز، رقم (٣٢١٤)، والنسائى فى الطهارة، رقم (١٩٠)، وانظر كذلک تعليقات محمد عوامه على المصنف، كتاب الجنائز، باب فى المسلم يغسل المشرک...... رقم (١١٢٦٧)، په دې معنى کښې نور احاديث هم موجود دى، په سنن بيهقى کښې د عمر بن يعلى بن مرة عن ابيه د طريق نه مروى دى، حضرت يعلى فرمائى سافرت مع النبى ﷺ غير مرة، فما رايته مر بجيفة انسان الا امر بدفنه، لا يسال امسلم هو ام كافر". سنن كبرى: ٣/٣٨٦، كتاب الجنائز، باب وجوب العمل فى الجنائز من الغسل...، رقم (٦٦١٧) ددې نه علاوه اوګورئ: د مصنف ابن ابى شيبه رحمه الله پورتنې ذکر شوې باب:٧/٣٧٨، ٣٨١)_

(٣) شرح ابن بطال:٥/٣٦٩_٣٧٠)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698
https://t.me/Afghansalarlibrary

## ۲۱_ باب: إِثْمِ الْغَادِرِ لِلْبَرِّ وَالْفَاجِرِ

**د ترجمة الباب مقصد** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا بيانوی چې بدعهدی کول ګناه ده، برابره خبره ده که دا بدعهدی يو نيک سړی سره اوکړې شی يا يو بد سړی سره اوکړې شی، او دغه شان بدعهدی کوونکې په خپله نيک سړې وی يا بد سړې وی، لکه حافظ صاحب او علامه عينی رحمهما الله وغيره ليکی:

**قوله: "أي: سواء كان من بر لفاجر أو بر، ومن فاجر لبر أو فاجر".[1]** ددې وجې نه نجات په هيڅ صورت کښې نشته، په هرحال کښې به ګناهګار وی او دا د منافقت علامت دې.

حافظ مزيد فرمائی چې کوم ترجمة الباب د "باب إثم من عاهد ثم غدر" دړې بابونه وړاندې تير شو نو دهغې او ددې باب مينځ کښې د عمومِ خصوص نسبت دې.[2] مطلب دادې چې وړاندې کوم باب تير شو نو هغه عام وو او دا باب خاص دې.

او حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله په دواړو بابونو کښې دا فرق بيانوی چې په دې کښې د ګناه د نوعيت د اختلاف طرفته اشاره ده چې د غدر مختلف نوعيتونه دی، دې حساب سره ددې ګناه هم ده، ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله ددې مطلب بيانولو دپاره مختلفې ترجمې قائمې کړې دی.[3]

او حضرت ګنګوهی رحمه الله د نيک او فاجر د دواړو د ذکر توجيه کوی او فرمائی: لما كان من الامور المنكرة ما لا كراهة فيه إذا ارتكبها مؤمن كامل في إيمانه، ولا يمكن من ارتكابه الفاسق الغير الآمن على إيمانه توهم أن الغدر لعله من هذا القبيل، فرفعه بإطلاق الرواية، ولفظ "كل" الدال على العموم".[4]

ددې مطلب دادې چې په ناکاره کارونو کښې بعضې داسې دی چې که يو مؤمن هغه اوکړی نو په کښې هيڅ کراهت نشته، بد نۀ ګڼړلې کيږی، ليکن که هم دغه عمل يو فاسق او ناقص مسلمان اوکړی نو هغۀ ته ددې اجازت نۀ شی ورکولې او هغه ددې نه منع کولې شی، لکه څنګه چې د يوم الشک روژه ده، چونکه د غدر او وعده خلافئ متعلق هم چاته دا ګمان کيدې شو چې دا کار هم ددې قبيل نه دې چې کامل مؤمن ئې اوکړی نو څۀ باک به په کښې نۀ وی او غيرکامل، فاسق او ناقص مسلمان ئې اوکړی نو هغه به ګناهګار وی نو امام بخاری رحمه الله دا وهم د روايت د اطلاق په ذريعې سره او لفظ "كل" چې په عموم باندې دلالت کوی، ددې په ذريعې سره ختم کړې دې چې بدعهدی خواه نيک سړې اوکړی يا بد، دواړه به ګناهګار وی. والله اعلم بالصواب

---

[1] فتح الباري: ۶/ ۲۸۴، وعمدة القاري: ۱۵/ ۱۰۶)_

[2] فتح الباري: ۶/ ۲۸۴)_

[3] الابواب والتراجم للكاندهلوی: ۱/ ۲۰۹)_

[4] پورته حواله، ولامع الدراري: ۷/ ۳۲۹)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

٣٠١٥ (١) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ.
٣١٨٧- وَعَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ- قَالَ أَحَدُهُمَا يُنْصَبُ وَقَالَ الآخَرُ- يُرَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُعْرَفُ بِهِ».

## رجال الحديث

①ابوالوليد: دا ابو الوليد هشام بن عبد الملک طيالسی رحمه الله دی.د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب علامة الايمان حب الانصار" کښې تيره شوې ده.(٢)

②شعبه: دا اميرالمؤمنين فی الحديث شعبه بن الحجاج عتکی رحمه الله دی.د دوی حالات په کتاب الايمان، "باب المسلم من سلم المسلمون من......" کښې راغلي دی.(٣)

③سليمان الاعمش: دا سليمان بن مهران دي چې په اعمش سره مشهور دی.د دوی ترجمه په کتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې تيره شوې ده.(٤)

④ابووائل: دا ابووائل شقيق بن سلمه دی.د دوی تذکره په کتاب الايمان، "باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله......" کښې تيره شوې ده.(٥)

⑤عبدالله: د مشهور صحابی حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه حالات په کتاب الايمان، "باب ظلم دون ظلم" کښې تير شوې دی.(٦)

⑥ثابت: دا ابو محمد ثابت بن اسلم بُنانی دی.د دوی تذکره په کتاب العلم "باب القراءة والعرض على المحدث" کښې تيره شوې ده.(٧)

⑦انس: د حضرت انس رضي الله عنه حالات په کتاب الايمان، "باب من الايمان....." کښې راغلي دی.(٨)

---

(١) قولهما: عن عبدالله رضي الله عنه ،وعن انس رضي الله عنه ":اما حديث عبدالله فاخرجه البخاری فی هذا الموضع فقط. واخرجه مسلم فی الجهاد،باب فی تحريم الغدر،رقم (٤٥٣٣_٤٥٣٥)،وابن ماجه،کتاب الجهاد،باب الوفاء بالبيعة،رقم (٢٨٧٢)،اما حديث انس فاخرجه البخاری فی هذا الموضع،واخرجه مسلم،کتاب الجهاد، باب تحريم الغدر،رقم (٤٥٣٦))_

(٢) کشف الباری:(٢/٣٨)_

(٣) کشف الباری:(١/٦٧٨)_

(٤) کشف الباری:(٢/٢٥١)_

(٥) کشف الباری:(٢/٥٥٩)_

(٦) کشف الباری:(٢/٢٥٧)_

(٧) کشف الباری:(٣/١٨٣)_

(٨) کشف الباری:(٢/٤)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حديث شريف سند سره متعلق يو اهم وضاحت:** تاسو گورئ چې دا حديث دوه صحابه كرام رضي الله عنهما روايت كوى، په پورتنى سند كښې چې د "وعن ثابت....." كوم الفاظ دى، د هغې قائل حضرت شعبه بن الحجاج رحمه الله دې، د مسلم شريف په روايت كښې ددې وضاحت موجود دې، چې د هغې طريق دادې، "عبدالرحمن بن مهدى عن شعبة عن ثابت عن أنس"[1] او امام اسماعيلى هم دا روايت د "ابوخليفة عن ابى الوليد شيخ البخارى" طريق سره دوو سندونو سره نقل كړې دې او دواړو ځايونو كښې دا فرمائى چې دې سره په هغه سړى[2] باندې رد كيږى چا چې دا كار جائز ښودلې دې چې دا په ابوالوليد باندې عطف دې، دغه شان به دا روايت د "الاعمش عن ثابت....." د طريق نه شى، حالانكه حقيقت كښې داسې نۀ ده بلكه دا د "شعبه عن ثابت......." د طريق نه دې. ددې نه علاوه امام مزى رحمه الله هم په تهذيب[3] كښې د اعمش عن ثابت روايت په بخارى كښې شامل كړې نۀ دې او په دې باندې ئې د بخارى علامت نۀ دې لګولې.[4]

**قوله: عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: لكل غدر لواء يوم القيامة:** د نبى كريم ﷺ نه روايت دې چې هغوى اوفرمائيل چې د هر وعده خلاف دپاره به د قيامت په ورځ يو بيرغ وى.

**قوله: قال أحدهما ينصب وقال الآخر: يرى يوم القيامة يعرف به:** په دواړو كښې يو اوفرمائيل چې نصب كولې به شى او دويم اوفرمائيل چې څۀ ښودلې شى نو د هغې نه به پيژندلې شى.

په مسلم شريف كښې چې ددې حديث كوم روايت دې نو په هغې كښې نۀ خو كلمه د ينصب شته او نۀ د "يرى"[5] شته. دلته د راويانو شک شوې دې چې يو خو "ينصب" نقل كړې او دويم "يرى" نقل كړې دې ليكن دې سره د روايت په صحت باندې څۀ اثر نۀ كيږى ځكه چې دواړه روايتونه د بخارى د شرط موافق دى، دلته د شک د ذكر كولو وجه صرف داده چې التباس اونۀ شى.[6]

---

[1] ) انظر صحيح مسلم، كتاب الجهاد، باب تحريم الغدر، رقم (٤٥٣٦))_

[2] ) قال به الكرمانى ايضا، انظر شرحه الكواكب الدرارى: ١٤٧/١٣، وعمدة القارى: ١٠٦/١٥)_

[3] ) تهذيب الكمال: ٧٧/١٢، (ترجمة سليمانٌ بن مهران الاعمش رحمه الله)_

[4] ) فتح البارى: ٢٨٤/٦)_

[5] ) پورته حواله، وصحيح مسلم، كتاب الجهاد، باب تحريم الغدر، رقم _٤٥٣٦))_

[6] ) دا د علامه عينى رحمه الله (١٠٦/١٥) رائې ده چې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت كوونكو راويانو ته شک شوې دې ليكن دا څوک دى، دا معلومه نۀ شوه. البته زمونږ..... [بقيه برصفحه آئنده....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۰۱۲: (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنهما - قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ « لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يُنْصَبُ لِغَدْرَتِهِ». [۵۸۲۳، ۵۸۲۴، ۶۵۶۵، ۶۶۹۴]

## رجال الحدیث

①**سلیمان بن حرب**: دا سلیمان بن حرب الوشحی دې.د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب من کره أن یعود فی الکفر کمایکره أن...... "کښې تیره شوې ده (۲)

②**حماد**: دا حماد بن زید دې.د دوی حالات په کتاب الایمان، "باب المعاصی من أمر الجاهلیة..... "کښې تیر شوې دی (۳)

③**ایوب**: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی دې.د دوی تذکره په کتاب الایمان، "باب حلاوة الایمان" کښې تیره شوې ده (۴)

④**نافع**: دا نافع دې چې د ابن عمر مولی دې.د دوی تذکره په کتاب العلم، "باب ذکر العلم والفتیا فی المسجد" کښې تیره شوې ده (۵)

⑤**ابن عمر**: د حضرت عبدالله بن عمر حالات په کتاب الایمان، "باب الایمان..... "کښې راغلې دی (۶)

**قوله: قال: سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول: لکل غادر لواء ینصب لغدرته**: حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائي چې ما دنبی کریم ﷺ نه واوریدل چې دهر وعده خلاف

---

بقیه ازحاشیه گذشته] رائې داده چې د احدهما نه مراد حضرت ابن مسعود او د الآخر نه مراد حضرت انس رضی الله عنهما دی، په دې باندې قرینه غالباً دا ده چې امام بخاری رحمه الله دا روایت د دواړو صحابو نه یوځائې نقل کړې دې، ددې وجې نه ددې کلماتو نزدې محمل هم دا دواړه صحابه کیدې شی، خصوصاً چې هرکله دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه د روایت صرف یو طریق بیان کړې شوې وی والله اعلم بالصواب)

[1] ) قوله: عن ابن عمر رضی الله عنهما: "الحدیث، اخرجه البخاری، کتاب الادب، باب ما یدعی الناس بآبائهم، رقم (۶۱۷۷_۶۱۷۸)، وکتاب الحیل، باب اذا غصب جاریته فزعم.....رقم (۶۹۶۶)، وکتاب الفتن، باب اذا قال عند قوم شیئا.....رقم (۷۱۱۱)، ومسلم، کتاب الجهاد، باب تحریم الغدر، رقم (۴۵۲۹_۴۵۳۲)، وابو داود، ابواب الجهاد، باب فی الوفاء بالعهد، رقم (۲۷۵۶)، والترمذی، ابواب السیر، باب ما جاء ان لکل غادر لواء.....رقم (۱۵۸۱)

[2] ) کشف الباری: ۲/۱۰۵)_

[3] ) کشف الباری: ۲/۲۱۹)_

[4] ) کشف الباری: ۲/۲۶)_

[5] ) کشف الباری: ٤/۶۵۱)_

[6] ) کشف الباری: ۱/۶۳۷)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دپاره به د قیامت په ورځ يو بيرغ وي چې د هغهٔ د وعده خلافئ د وجې نه به ښخولې شي.

**د"بغدرته" په باء کښې احتمالات:** د بغدرته باء خو يا سببيه ده يا صرف جاره ده، په دواړو صورتونو کښې غدرته مجرور دې او ددې مضاف محذوف دې کومه چې کلمه د سبب ده يا کلمه د قدر ده، "أي بسبب غدرته في الدنيا او بقدر غدرته"[۱] مطلب دادې چې د وعده خلاف دپاره کوم بيرغ ښخولې شي نو د هغې وجه او سبب به ددې انسان په دنيا کښې وعده خلافي وي.

په دويم صورت کښې به مطلب دا شي چې په دنيا کښې د وعده خلافئ کوم مقدار وي نو د هغې په اندازه به بيرغ هم وي "بقدر غدره"[۲] ددې دويمې معنې تائيد د مسلم شريف د روايت نه هم کيږي، چې په هغې کښې د "بقدر غدره"[۳] وضاحت دې[۴]

**بيرغ به چرته لګولې شي؟:** په اکثرو روايتونو کښې ددې خبرې وضاحت موجود نهٔ دې چې هر وعده خلاف ته د بيرغ ښخولو کومه سزا ورکولې شي نو ددې محل به څهٔ وي؟ البته! په مسلم شريف کښې چې د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه کوم روايت دې نو په هغې کښې په دې الفاظو سره ددې وضاحت راغلې دې، "لكل غادر لواء عند إسته يوم القيامة"[۵] چې ددې محل او مقام به شاته ملا (دبر) باندې پورته ځائې وي.

**د"لكل غادر لواء" مختلفې معنې او مطلبونه:** د قيامت په ورځ چې وعده خلاف ته کوم بيرغ لګولې شي نو ددې وجه به څهٔ وه؟

د حديث شارحينو ددې مختلف جوابونه ذکر کړې دی:

① علامه تورپشتي رحمه الله فرمائي چې الله تعالى به وعده خلاف سړې په ټول محشر کښې د قيامت په ورځ رسوا کړي، په دنيا کښې چې دهٔ کومه وعده خلافي کړې وه د هغې د بيان دپاره به دا بيرغ اولګولې شي چې دا بدعهده دې او په دې سره به دا انسان پيژندلې کيږي، لکه څنګه چې د يو لښکر قائد په خپل بيرغ سره پيژندلې شي"[۶]

② علامه ابن المنير رحمه الله فرمائي چې ګويا دې وعده خلاف انسان سره به ددهٔ د قصد او د ارادې خلاف عمل اوکړې شي، ځکه چې بيرغ عموماً په سر باندې وي ليکن ددهٔ بيرغ به لاندې وي چې دې ښهٔ ذليل او رسوا شي، ځکه چې سترګې غالباً د بيرغونو طرفته ځي، نو

[۱] ) عمدة القاري:۱۰۶/۱۵)_

[۲] ) كما في حديث ابي سعيد الخدري رضي الله عنه: لكل غادر لواء يوم القيامة، يرفع له بقدر غدره....."انظر الصحيح لمسلم، كتاب الجهاد، باب تحريم الغدر، رقم (٤٥٣٨))_

[۳] ) پورته حواله)_

[۴] ) فتح الباري:۲۸٤/۶)_

[۵] ) انظر، صحيح مسلم، كتاب الجهاد، باب تحريم الغدر، رقم (٤٥٣٧))_

[۶] ) كتاب السير:۸۵۹/۳، رقم (۲۷۰۷)، وعمدة القاري:۱۰۶/۱۵)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې وعده خلاف انسان دا کار به هم د قيامت په ورځ ددې سبب وي چې د خلقو سترګې به په دې بيرغونو باندې لګيدلې وي کوم بيرغونه چې ددې بدعهدو دپاره لګولې شوې وي دغه شان به دا خلق ښه ذليل او رسوا شي.[1]

④امام قرطبی فرمائی چې د "لکل غادر لواء" په دې جمله کښې نبی کريم ﷺ اهل عرب هغه کار سره مخاطب کړې دی کوم کار چې به دې اهل عرب په خپله کوو.لکه د اهل عرب عادت وو چې هغوی به د وفا دپاره سپين بيرغ او د بدعهدئ دپاره تور بيرغ اوچتولو،يعنی دې دواړو رنګونو به په دې کارونو باندې دلالت کوو،دې دپاره چې خلق بدعهدو لره ملامته کړی،مذمت ئې اوکړی،ددې وجې نه د حديث تقاضه هم داده چې بدعهده انسان سره د قيامت په ورځ هم داسې اوشی چې ددهٔ دا کار مشهور شی او اهل محشر ئې مذمت بيان کړی. هرچه وفاداری ده نو ددې په باره کښې څهٔ حديث خو نهٔ دې راغلې ليکن دا څهٔ لرې نهٔ ده چې ددې د تعريف او مدح دپاره هم دغه شان بيرغ پورته کړې شی او خلق ددې خلقو تعريف اوکړی،خصوصاً هرکله چې د نبی کريم ﷺ دپاره "لواء الحمد" ثابت وی،ددې وجې نه د لواء الوفاء کيدل هم څهٔ لرې نهٔ ده.[2]

**ترجمة الباب سره د درې واړو احاديثو مناسبت:** پورته د دريو حديثونو ذکر راغلې دې،يو د حضرت ابن مسعود،دويم د حضرت انس او دريم حديث د حضرت ابن عمر ﷺ،ترجمة الباب سره ددې درې واړو حديثونو مناسبت په دې کلماتو کښې موجود دې، "لکل غادر لواء" ځکه چې لفظ د "کل" په عموم باندې دلالت کوی،ددې نه دا معلوميږی چې بدعهدی خواه دنيک سړی نه اوشی يا د بدسړی نه ليکن په هرصورت اوهرحال کښې مذموم او د ګناه کار دې.[3]

**د حديث نه راوتلې شوې بعضې فائدې:**

**غدر او وعده خلافی کول حرام دی:** د پورتنی احاديثو نه يو خو دا خبره معلومه شوه چې وعده خلافی حرامه ده.خصوصا چې هرکله دا کار يوحاکم يا والی اوکړی،ځکه چې ددې کار نقصان او ضرر متعدی وی او د الله تعالی مخلوق ددې نه متاثره کيږی،دويمه وجه داده چې حاکم چونکه د وعدې په پوره کولو باندې قدرت لری،د هغهٔ دپاره څهٔ مانع نهٔ وی،ددې وجې نه چې حاکم هم بدعهدی کوی نو دا ډيره عجيبه او د عقل نه لرې خبره ده

---

[1]) فتح الباری:۶/ ۲۸٤)_

[2]) پورته حواله،والمفهم لما اشکل من تلخيص کتاب مسلم،باب النهی عن الغدر،من کتاب الجهاد:۱۱/ ۵٤)

[3]) قال المهلب: اخبر ﷺ ان عقوبة الغادر يوم القيامة ان يرفع له لواء؛ليعرف الناس بغدرته،فينظرون منه بعين المعصية،وهذه عقوبة من نوع ما قال الله فی عاقبة الکاذبين علی الله:(ويقول الاشهاد هؤلاء الذين کذبوا علی ربهم) (هود:۱۸)،وانما قال البخاری:باب اثم الغادر للبر والفاجر"لعموم قوله ﷺ لکل غادر لواء....." فدخل فيه من غدر من بر او فاجر،دل ان الغدر حرام لجميع الناس،برهم وفاجرهم؛لان الغدر ظلم، وظلم الفاجر حرام کظلم البر التقی".انظر شرح ابن بطال:۵/ ۳۷۰_۳۷۱)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت قاضي عياض رحمه الله فرمائي، مشهوره خو داده چې دا حديث مبارك د حاكم او والي په مذمت كښې راغلې دې، چې دوى خپل قوم، رعيت او خپل فوج سره كومې وعدې كړې دي او هغه پوره نۀ كړي، يا د خپل ولايت او حكومت هغه ضروريات پوره نۀ كړي، د كومو ضرورياتو ذمه دارى چې ئې په خپله اخستلې ده. نو هركله چې دۀ خيانت اوكړو او رعيت سره ئې د نرمئ او د مهربانئ سلوك اونۀ كړو نو دۀ خپلې وعدې او عهد سره غدارى اوكړه.

قاضي عياض رحمه الله مزيد فرمائي چې بعضې حضراتو دا وئيلې دى چې د حديث مراد رعيت لره د امام د نافرمانئ نه منع كول او بندول دى، لكه د رعيت دپاره دا جائز نۀ دى چې هغوى د امام خلاف خروج او بغاوت اوكړى او د هغۀ نافرمانى اوكړى، ځكه چې په دې سره ډيرې فتنې پيدا كيدې شى. بيا قاضي صاحب رحمه الله اولنى قول ته ترجيح وركوى او فرمائي، "والصحيح الاول"(١)

ليكن حديث لره يو معنې سره خاص كول مناسب نۀ دى هركله چې د دويمې معنې احتمال هم لرى، ددې وجې نه حافظ صاحب رحمه الله فرمائي چې معلومه نۀ ده چې ددې حديث په عموم باندې حمل كولو كښې څۀ څيز مانع دې؟ بيا د حديث راوى حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په خپله هم ددې نه هغه معنى مراد اخلى كومه چې قاضي عياض مرجوحه ښودلې ده، لكه د كتاب الفتن په روايت كښې ددې عبارت زياتوالې هم راغلې دې. "وإنا قد بايعنا هذا الرجل على بيع الله و رسوله، وإني لا أعلم غدراً أعظم من أن يبايع رجل على بيع الله ورسوله، ثم ينصب له القتال، وإني لا أعلم أحداً منكم خلعه، ولا بايع في هذا الامر الا كانت الفيصل بيني وبينه"(٢)

مطلب دادې چې مونږ د هغه سړى (يزيد بن معاويه) په لاس د الله تعالى او د رسول صلى الله عليه وسلم په شرط باندې بيعت كړې دې او زما په نزد ددې نه زياته لويه وعده خلافي نشته چې د يو سړى په لاس باندې د الله تعالى او د رسول صلى الله عليه وسلم په شرط سره بيعت اوكړې شى بيا هم ورسره جنګ اوكړې شى. كه ماته په تاسو كښې د چا په باره كښې معلومه شوه چې هغۀ د يزيد بن معاويه بيعت مات كړې دې يا ئې په دې معامله كښې د هغۀ بيعت اختيار كړې نۀ دې نو زما او د هغۀ مينځ كښې به فيصله وى (يعنى زما او د هغۀ تعلق به ختم وى).

ددې وجې نه حديث په عموم باندې محمول كول زيات مناسب دى. والله اعلم(٣)

**د قيامت په ورځ به كوم نسبت سره اواز كولې شى؟** د باب د حديث په بعضې طرقو كښې دا الفاظ هم راغلې دى، "هذه غدرة فلان بن فلان"(٤).

---

(١) فتح البارى:٦/٢٨٤، واكمال المعلم شرح مسلم للقاضى عياض:٦/١٩_٢٠، باب تحريم الغدر)_

(٢) الصحيح للبخارى، كتاب الفتن، باب اذا قال عند قوم شيئا، ثم......رقم (٧١١١))_

(٣) فتح البارى:٦/٢٨٤، وبه قال العينى فى العمدة:١٥/١٠٦)_

(٤) مثلاً اوګورئ صحيح بخارى، كتاب الادب، باب ما يدعى الناس بآبائهم، رقم (٦١٧٧_٦١٧٨)، وكتاب الفتن، باب من قال عند قوم شيئا......رقم (٧١١١))_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

یعنی د بیرغ لګیدو نه پس به د مزید رسوائی او ذلت دپاره دا اعلان هم کیږی چې دا د فلانی چې د فلانی څوې دې دهغهٔ د وعده

خلافئ نتیجه ده،ددې نه دا معلومیږی چې د قیامت په ورځ به اولاد ته د پلار په نوم سره آواز کولې شی.

او د طبرانی د یو روایت نه کوم چې د ابوامامه باهلی رحمه الله نه روایت دې،نه دا معلومیږی چې اولاد ته به د مور په نوم سره آواز کولې شی[1].

ددې تعارض دوه جوابونه دی:

① د طبرانی د پورتنی مذکوره روایت سند ډیر زیات ضعیف دې،ددې وجې نه ددې نه استدلال صحیح نهٔ دې او په مقابله کښې د صحیحینو وغیره روایت دې،بیا په ابوداؤد وغیره کښې د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه یو مرفوع حدیث دې،چې په هغې کښې د پلارانو په نومونو سره دبلنې وضاحت دې "إنکم تدعون یوم القیامة باسمائکم وأسماء آبائکم،فاحسنوا اسمائکم"[2]

② که دا روایت هم تسلیم کړې شی کوم روایت کښې چې د مور په نوم سره د آواز کیدو تذکره ده نو د باب په حدیث کښې چې کومه خبره ده هغه به ددې عام نه خاص وی.

لکه ابن دقیق العید رحمه الله فرمائی: "وإن ثبت أنهم یدعون بامهاتهم فقد یخص هذا من العموم"[3]

امام بخاری رحمه الله په دې مسئله باندې په کتاب الادب کښې مستقله ترجمه هم قائم کړې ده[4] والله اعلم بالصواب

٣٠١٧:[5] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَ فَتْحِ

---

[1] ) المعجم الکبیر:٢٥٠/٨،رقم (٧٩٧٩)،سعید بن عبدالله الاودی عن ابی امامة،ومجمع الزوائد:٤٥/٣، الجنائز،باب تلقین المیت بعد دفنه،وقال الهیثمی: وفی اسناده جماعة لم اعرفهم"،والجامع الکبیر للسیوطی:١/ ٣٤٩،حرف الهمزة،رقم (٢٥٧١)،وتهذیب سنن ابی داود لابن قیم:٤٥٤/٢،باب ما یدعی الناس...... واخرج ابن عدی من حدیث انس مثله،وقال: منکر"انظر الکمال له:٣٤٣/١،ولسان المیزان:٥٢٣/١، ترجمة اسحاق بن ابراهیم الطبری،رقم (١٠٨٣))_

[2] ) سنن ابی داود،کتاب الادب،باب فی تغییر الاسماء،رقم (٤٩٤٨)،والسنن الکبری للبیهقی:٩٥١٥/، کتاب الضحایا،باب فی حسن الاسماء،رقم (٢٦٩٤)،وشرح السنة للبغوی:٣٨٢/٦،کتاب الاستئذان.....باب تحسین الاسماء،رقم (٣٢٥٢)،وموارد الظمآن کتاب الادب،باب ما جاء فی الاسماء،رقم (١٩٤٤)،ومسند احمد: ١٩٤/٥،رقم (٢٢٠٣٥)،وشعب الایمان:٣٩٣/٦،باب فی حقوق الاولاد...الستون من شعب....رقم (٨٦٣٣)

[3] ) فتح الباری:٢٨٤/٦،دغه شان اوګورئ،فتح الباری:٥٦٣/١٠،وشرح ابن بطال:٩٣٣٥/)_

[4] ) صحیح بخاری،کتاب الادب،باب ما یدعی الناس بآبائهم،د حدیث مزید وضاحت دپاره اوګورئ: کشف الباری،کتاب الادب:٥٩٦_٥٩٧،والابواب والتراجم للکاندهلوی:١١٨/٢)_

[5] ) قوله: عن ابن عباس رضی الله عنهما":الحدیث،مر تخریجه فی الحج،باب لا یحل القتال بمکة)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مَكَّةَ «لاَ هِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ، وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا» . وَقَالَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ «إِنَّ هَذَا الْبَلَدَ حَرَّمَهُ اللَّهُ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ، فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللَّهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، وَإِنَّهُ لَمْ يَحِلَّ الْقِتَالُ فِيهِ لأَحَدٍ قَبْلِي، وَلَمْ يَحِلَّ لِي إِلاَّ سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ، فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللَّهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، لاَ يُعْضَدُ شَوْكُهُ، وَلاَ يُنَفَّرُ صَيْدُهُ، وَلاَ يَلْتَقِطُ لُقَطَتَهُ إِلاَّ مَنْ عَرَّفَهَا، وَلاَ يُخْتَلَى خَلاَهُ» . فَقَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِلاَّ الإِذْخِرَ، فَإِنَّهُ لِقَيْنِهِمْ وَلِبُيُوتِهِمْ. قَالَ «إِلاَّ الإِذْخِرَ». [ر: ١٥١٠]

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله**: دا مشهور محدث على بن عبدالله ابن المديني رحمه الله دې، د دوى تذكره په كتاب العلم، "باب الفهم في العلم" كښې راغلې ده.[1]

② **جرير**: دا جرير بن عبد الحميد رحمه الله دې.

③ **منصور**: دا منصور بن معتمر سلمى كوفى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره په كتاب العلم، "باب من جعل لاهل العلم....." كښې تيره شوې ده.[2]

④ **مجاهد**: دا لوئې مفسر حضرت مجاهد بن جبرمكى رحمه الله دې. د دوى حالات په كتاب العلم، "باب الفهم في العلم" كښې بيان شوې دى.[3]

⑤ **طاوس**: دا طاوس بن كيسان يمانى رحمه الله دې.[4]

⑥ **ابن عباس رضى الله عنهما**: د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حالات د "بدء الوحى" په اولنى حديث كښې راغلې دى.[5]

د باب خلورم حديث د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې، ددې حديث تشريح وړاندې په مختلفو مقاماتو كښې تيره شوې ده.[6]

**ترجمة الباب سره د حديث شريف مطابقت**: ترجمة الباب سره ددې حديث په مناسبت كښې څۀ غموض دې، چې د هغې د لرې كولو دپاره مختلفو حضراتو دا لاندينى اقوال ارشاد فرمائيلې دى:

① علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چې ترجمة الباب سره د حديث مناسبت ددې قول نه كيدې

---

[1] ) كشف البارى: ٢٩٧/٣)_

[2] ) كشف البارى: ٢٦٨/٣_٢٧٢)_

[3] ) كشف البارى: ٣٠٧/٣)_

[4] ) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ، كتاب الوضوء، باب من لم ير الوضوء الا من المخرجين......)_

[5] ) كشف البارى: ٤٣٥/١، دغه شان اوګورئ، كشف البارى: ٢٠٥/٢)_

[6] ) كشف البارى، كتاب الجهاد: ٥٥/١_٥٦، و: ٢٤٧، و: ٦٤٨/٢_١٠٧)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شی، "وإذا استنفرتم فانفروا" ځکه چې ددې مطلب هم دادې چې حاکمانو او واليانو سره بدعهدی مهٔ کوئ او د دوی مخالفت مهٔ کوئ، ځکه چې امام کله د نفير(د وتلو)حکم اوکړی نو وتل واجب دی، نو هم دا کار ددې خبرې تقاضه کوی چې وعده خلافی دې حرام وی، "لان ايجاب الوفاء بالخروج مستلزم لتحريم الغدر"[1]

② علامه کرمانی رحمه الله مزيد فرمائی چې يا امام بخاری رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنهما دا حديث دلته نقل کولو سره دې خبرې طرفته اشاره فرمائيلې ده چې نبی کريم ﷺ په مکه مکرمه کښې قتل وقتال او جنګ کولو سره څهٔ وعده خلافی نهٔ ده کړې، ځکه چې دا خو د الله تعالی په حکم سره وو، الله تعالی د نبی کريم ﷺ دپاره د ورځې په څهٔ حصه کښې جنګ کول جائز ګرځولې وو، ددې وجې نه څوک دې دا خيال نهٔ کوی چې نبی کريم ﷺ په مکه مکرمه کښې جنګ کولو سره بدعهدی کړې ده، ددې وجه ښکاره ده ځکه چې که د الله تعالی اجازت نهٔ وو نو نبی ﷺ دپاره به په مکه مکرمه کښې هيڅکله جنګ کول جائز نهٔ وو،

لکه علامه کرمانی رحمه الله ليکی: "أو أشار إلی أن النبی صلی الله عليه وسلم لم يغدر باستحلال القتال بمکة بل کان بإحلال الله له ساعة، ولولا ذلك لما جاز له"[2]

او هم دا رائې د علامه سندهی رحمه الله هم ده.[3]

③ ابن بطال رحمه الله د ترجمة الباب او د حديث مناسبت بيانولو کښې فرمائی:

د بندګانو دپاره د الله تعالی د حرام کړې شوې څيزونو حيثيت د وعدو او د ميثاق په شان دې، ګويا الله تعالی دوی نه ددې خبرې وعده اخستلې ده چې دوی به ددې حرام کړې شوې څيزونو او منهياتو نه ځان ساتی او دې کښې به نهٔ مبتلا کيږی، نو کوم کس چې ددې خلاف ورزی کوی ګويا هغهٔ دا وعدې پوره نهٔ کړې او الله تعالی سره ئې چې کومه وعده کړې وه نو د هغې خلاف ورزی ئې اوکړه او د وعدو نهٔ پوره کوونکې، د وعدو خلاف ورزی کوونکې په غادرينو او عهد ماتونکو کښې دې.[4]

④ دغه شان کله چې نبی کريم ﷺ مکه مکرمه فتح کړه نو د مکې په اوسيدونکو ئې فضل او احسان اوکړو، برابره خبره ده چې مسلمانان وی يا منافقين او دا خبره واضحه ده چې په

---

[1]) شرح الکرمانی:۱۳/۱٤۸، وفتح الباری:۶/ ۲۸٤، وعمدة القاری:۱۵/۱۰۷)_

[2]) شرح الکرمانی:۱۳/۱٤۹، وفتح الباری:۶/ ۲۸٤، وعمدة القاری:۱۵/۱۰۷)_

[3]) صحيح البخاری بحاشية السندی:۲/۲۰۶، دار المعرفة، بيروت)_

[4]) شرح ابن بطال:۵/۳۷۱، ومثله عن العلامة الکنکوهی رحمه الله فی اللامع (۷/۳۲۹)، حيث قال ومطابقته بالترجمة من حيث انه قال فی خطبته يومئذ: فان دمائکم واموالکم عليکم حرام کحرمة يومکم هذا، فی بلدکم هذا، فی شهرکم هذا" فکان التعرض بشئ منها غدرا وهتکا لحرمة الله تعالی")_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوی کښې منافقان هم وو، بیا نبی ﷺ دا خبره اوفرمائیله چې مکه مکرمه د قیامت پورې د الله تعالی حرمت سره حرامه ده او دا چې دلته د هیچا دپاره قتل وقتال حلال او جائز نهٔ دې، چې هرکله معامله دا ده نو په دې کښې چاسره وعده خلافی کول جائز نهٔ دی، خواه هغه نیک وی یا بد وی ځکه چې د نبی کریم ﷺ اعلان امان او معافئ ډې ټولو ته شاملې دی.(۱)

⑤ابن المنیر رحمه الله فرمائی: ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت داسې دې چې نبی کریم ددې خبرې وضاحت کړې دې چې په مکه مکرمه کښې قتل و قتال حرام دې، علاوه د هغه وخت نه د کوم وخت چې الله تعالی په خپله نبی کریم ﷺ ته اجازت ورکړو، ددې هیڅکله دا مطلب نهٔ دې چې دلته مؤمن او صالح وژل حرام دی ځکه چې په دې سره هرځائې او هره ټکره موصوف ده چې یوځائې کښې هم د یو مؤمن بنده قتل جائز نه دې، بلکه د مکې مکرمې د حرمت تخصیص د هغه فاجر دپاره دې چې د قتل مستحق هم وی چې د داسې کس قتل هم په مکه مکرمه کښې جائز نهٔ دې، ددې وجه هغه عهد دې کوم چې الله تعالی مکې مکرمې سره خاص کړې دې چې دلته د فاجر سړی قتل هم صحیح نهٔ دې.

اوس که یو سړې یو فاجر سره د مکې مکرمې نه علاوه په یو بل ځائې کښې څهٔ وعده اوکړی نو دغه وعده پوره کول لازم دی، ددې خلاف کول حرام دی.

دغه شان په اولنی حدیث کښې چې د نیک سړی او بد سړی سره د وعده خلافئ کولو کوم عموم دې نو هغې کښې به قوت راشی او دواړو سره به وعده خلافی کول حرام اوګرځی.(۲)

⑥حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

ددې خبرې هم احتمال دې چې امام بخاری ددې حدیث دلته په ذکر کولو سره د هغه سبب طرفته اشاره کړې وی کوم چې د مکې مکرمې د فتح کولو سبب وو.

لکه د فتح مکه سبب دا وو چې قریشو د نبی کریم ﷺ ملګرې قبیله بنوخزاعه سره وعده خلافی کړې وه، کله چې د بنوخزاعه او بنوبکر(کوم چې د قریشو ملګری وو)مینځ کښې جنګ شروع شو او قریشو د بنوبکر مدد اوکړو او په بنوخزاعه باندې دواړو(قریش او بنوبکر) حمله اوکړه او ډیر کسان ئې د دوی قتل کړل، دغه شان د قریشو او د نبی کریم ﷺ مینځ کښې چې کومه د لسو کالو د صلحې معاهده شوې وه، هغه قریشو ماته کړه.

ددې وعده خلافئ انجام د قریشو دپاره داسې ښکاره شو چې مسلمانانو پرې حمله اوکړه او مکه مکرمه ئې فتح کړه او قریش ډیر زیات ذلیل او خوار شو او امن وامان ئې طلب کړو، د قوت، عزت، شان و شوکت نه پس خوار او ذلیل شو، تردې چې د اسلام په قبلولو باندې

---

۱) شرح ابن بطال:۳۷۱/۵)_

۲) المتواری علی تراجم ابواب البخاری:۲۰۰)_

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

